



ډاکټر نوراحمد خالدی


# افغانستان

## خلک . تاریخ . سیاست

پښتو ژباړن

ذبیح الله خوګیانی

# افغانستان

## خلک، تاریخ او سیاست

**لیکوال: ډاکټر نوراحمد خالدي**

**ژباړن: ذبیح الله خوګیانی**

**پښتو اډیټر: روح الله وسیم**

د پښتولومړی الکترونیک چاپ

8 سپتمبر 2022

KRD Books

بسم الله الرحمن الرحیم

## د کتاب پېژندنه


**د کتاب نوم:** افغانستان: خلک، تاریخ او سیاست

**لیکوال:** ډاکټر نوراحمد خالدي

**د کتاب اصلی ژبه:** دري

**ژباړن:** ذبیح الله خوګیانی

**پښتو اډیټر: روح الله وسیم**

**د کتاب قطع**: 176 ملي متر × 250 ملي متر ISO B5

**کاغذ: gsm70**

**ناشر**: کې ار ډي کتابونه KRD Books

**مطبعه**: الکترونیک پی دی اف PDF کاپی





**الکترونیکي پتې**:

noor.khalidi@gmail.com

zabih.khogyani@gmail.com



**ISBN 978-164945970-1**

# اهداء

**دا کتاب د کابل پوهنتون او د هېواد نورو پوهنتونونو محصلینو ته وړاندې کوم، څو د هېواد د ځوانانو په علمي پوهه کې پراخوالی راولي او د هېواد په مهمو سیاسي مسایلو باندې د تاریخي شرایطو په رڼا کې افغانستان ته وګوري، او خپل د وطنپالنې او  هېواد سره د مینې احساس لا نور هم مستحکم کړي!**

د افغانستان د دولت اغېزمنه رهبري
د هېواد د دولت د مشرتابه پر حکمت،لیاقت،
قاطعیت،عدالت، شایستګۍ او شجاعت
پورې اړه لري!

**یادونی**

په پښتو چاپ کی د اسلامی جمهوری دولت نسکوریدل په څوارلسمیه برخه او یوشمیر نوی موضوعات د لیکوال لخوا اضافه شوی دی..

لاندې برخو کې د ښاغلي تمهید الله سیلاني لخوا ژباړل شوي فېسبوکي موادو څخه، د دري کتاب سره د موضوع د سمون خوړلو په موخه، په ډېر لږه لاسوهنه استفاده شوې:

ایا غلجي هماغه خلجي دي او د برېټانیا د دولت د حقوقي مشاور مشوره!)

# لیکلړ

# سریزه

ډېرو دوستانو د دې غوښتنه کړې ده چې خپلې لیکنې، مقالې او یادښتونه چې د لسو کلونو راپدېخوا په فېسبوک او نورو رسنیو کې موجودې دي د یوې ټولګې په ډول سره را ټول کړم او مینوالو ته یې د لا غوره استفادې په خاطر وړاندې کړم. په دې هیله چې دغه ټولګه د هغو محصلینو د استفادې وړ وګرځي چې د هېواد په داخل او خارج پوهنتونو کې په درس بوخت دي، او ځینو په خپلو پیغامونو کې د مختلفو موضوعاتو په هکله زما څخه معلومات غوښتي دي.

د هر څه د مخه د هغه ټولو دوستانو څخه مننه کوم چې زما لیکنې، مقالې او یادښتونه په فېسبوک او نورو چاپي او انټرنیټي رسنیو کې تعقیبوي، لولي، او خوښوي یې او یا هغه دوستان چې د مهربانۍ او لطف څخه یې پر دې لیکنو خپل نظر ورکړی. همدا راز د هغه دوستانو څخه چې د «دورنما: ساعتی با داکتر خالدی» خپرونه یې د زرین د نړیوال تلوېزوني شبکې څخه تعقیبوله، مننه کوم. د دوی تبصرې، علاقمندي او نظریات دې مقالو او لیکنو ته د دوام ورکولو لپاره یو سبب وو.

همدا راز لازم ګڼم چې د فېسبوک، یوټیوب، نور چاپي او انټرنیټي جراید او رسنیو څخه لکه تاند، سباوون، دعوت میډیا، افغان جرمن انلاین، اریانا افغانستان انلاین، د زرین د نړیوال تلوېزوني چینل مسول محترم نور وجوهات، د محترمه سجیه کامراني په مدیریت د افغانستان تلوېزون، د اشنا غږ رادیو مسول محترم در محمد اشنا، افغان چاپي مجله (ګان)، او د نورو رسنیو څخه هم مننه کوم چې دا لیکنې، مقالې او یادښتونه او همدا راز زما مصاحبې، بیانیې او نورې خپرونې یې نشر ته سپارلې دي. په دې ټولګه کې د افغانستان په اړه یو شمېر سیاسي، امنیتي، اجتماعي، ادبي، فرهنګي او تاریخي مسایل او مقالې چې د هېواد په رسنیو، انټرنیټي تلوېزونونو، انټرنیټي رسنیو لکه ورځپاڼې، جریدې، مجلې، ویبسایټونه، فېسبوک، یوټیوب او داسې نورو رسنیو کې د تېرو څو کلونو په موده کې خپرې شوې دي، په دې ټولګه کې شامل دي.

باید دې ته هم متوجه اوسو چې دغه ټولګه د مختلفو وختونو  تیت او پرک لیکل شوي مواد سره را غونډ شوي، په دې ډول د یو کتاب په شکل څنګه چې لازم دي ترتیب او تنظیم شوي نه دي. په دې اساس، د ځینو مضامینو او یا د سر لیکونو د تکرار له وجهې د درنو لوستونکو څخه بښنه غواړم. په دې هیله چې د دې ټولګې په وړاندې کولو سره د هېواد هغه ځوانانو ته چې د خپل ګران هېواد د لانور پېژندنې او شناخت تږي دي او غواړي خپل خلک د قومپرستۍ، ژبې، فرقه بندۍ، د سمت او سمت بازۍ، حزبي او تنظیمي عینکو څخه پرته په شفاف ډول وګوري او وپېژني یې، زما د خدمت مطلب همدوی دي.

ډاکټر نور احمد خالدي

د برزبن ښار، استرالیا، د می ۲۱، ۲۰۲۰ زېږدیز کال

# لومړی برخه: د افغانستان هېواد او خلک

## د افغانستان جغرافیه

د اوسني افغانستان په جغرافیه کې هغه مناطق ټول او یا بعضې حیصې یا حوزې شاملې دي چې په تېرو زمانو کې د اریا، اریو، اریانا، ایران، خراسان، سیستان، غرجستان، زابلستان، کابلستان، گندارا، تخارستان، افغانستان او پداسې نور نومونو یادې شوې دي. دا نومونه په اسطوره یي یا پخواني شفاهي اثارو، کیسو، تاریخي، جغرافیایي، او همدا راز د نړۍ د گرځندویو په نقشو کې هم یاد شوي دي.

**لومړی چارت: د نني افغانستان او د هغه چاپېریال او د قومونو د ترکیب نقشه**




هغه منطقه د خراسان په نامه یادېده چې له ری څخه په لوېدیځ کې تر تخارستان پورې په شمال ختیځ کې، له مرو (نني ترکمنستان) په شمال کې تر هرات او په سوېل کې د سیستان تر سیمو پورې غځېدلې وه .په دې کې مشهور شامل ښارونه هرات، نیشاپور (ننني ایران) او مرو وو. انگرېزي جورج فورستر له بنگال څخه لندن ته په خپل سفر کې د تیمور شاه دراني په وخت کې د کشمیر، پېښور، کابل، کندهار، هرات او مشهد له لارې، کله چې د نني شینډنډ سیمو ته رسېږي، د دې کاروان مخ شمال د هرات طرف ته اړوي داسې لیکي: «په څلورویشتمه ورځ، وروسته له شپږ فرسنگ سفر (یو فرسنگ نیږدې ۳.۵ میل مسافه تخمین کېږي)، د روانو اوبو په غاړه په غیروني کلي کې چې یو مشهور کلی دی، د حق العبور او د دری ورځني سفر د اکمالاتو د تیاری په خاطر د یوې دښتې له لارې چې د خراسان سیمو

ته رسېږي، ودریدو» (ج فورستر، ص ۱۱۳) .په بابرنامه کې (۱۵۲٦ ز) بابر داسې لیکي چې «د کندهار څخه خراسان ته لاره همواره ده، غر او کوتل په لار کې نشته».

هغه سیمه چې د هرات د تیموریانو (۱۳۷۰-۱۵۰۰ز) په وخت کې د افغانستان نوم ورکړل شوی وو، ظهیرالدین محمد بابر چې کله یې کابل تسخیر کړ (۱۵۰۴ز) د بابرنامه په کتاب کې د هغې څخه په همدغه نوم ذکر کوي. همدا راز د «تاریخ فرشته» په کتاب کې (ابولقاسم فرشته، بیجاپور،هندوستان ١٦٠٦ز) هم د دې حدود پکې بیان شوي دي چې د کابل د سوېل څخه پیل بیا د هلمند او سند سیند پورې او د سلیمان غره تر شاوخوا پورې ټوله سیمه نیسي. د تیمور شاه د سلطنت له وخت راپدېخوا، د وخت په تېرېدو سره د درانیو د سلطنت ټول قلمرو ته د افغانستان نوم اطلاق ورکړی شو.

د پورته ذکر شوې جغرافیایي حوزو څخه، هېڅ یو یې هم په یوازې د اوسني افغانستان ټولې ساحې نه تشکیلوي. په تاسف سره په هندوستان کې ځینې لیکوال د سند د سیند لوېدیځ خوا ټولو سیمو ته خراسان نوم ورکړی وو چې دا نادرسته اشاره او نوم اېښودنه د ډېرو تاریخ لیکونکو د غلط فهمۍ سبب وګرځېده.

**افغانستان د تمدنونو څلورلارې**

په دې کې شک نشته چې افغانستان د خپل شته څلورخواوو سره په حقیقت کې د پخوانیو تمدنونو څلورلارې دی. د ورېښمو لاره د همدې هېواد څخه تېره ده، تجارتي لارې د هند څخه منځنۍ اسیا ته له همدې هېواد څخه تېرېږي، د منځنی اسیا هېوادونه، پخوانی اریانا چې افغانستان د هغې یوه برخه ده، د ډېرو ځواکونو د لښکرې لاریونونو شاهدان دي. په همدې بنسټ د دې سیمو ګډ تاریخ د ډېرو ملتونو ګډ تاریخ هم بلل کېږي.

د فارس هخامنشیانو څو زره کاله د مخه یې دا سیمې تسخیر کړې او حتی تر مصر او نن‌ني ترکیه پورې هم حکومت وکړ. د هغې څخه وروسته یوناني مقدوني سکندر پر دې سیمو یرغل وکړ او د هغې څخه وروسته د سیلوسید امپراتوري منځ ته راغله او د ګریکو–باختر دولت د نن‌ني افغانستان په شمال کې منځ ته راغی. د هغې څخه وروسته بیا سپین هونان (یفتلیان) او د ګوپتا امپراتوري هند او کوشاني مدنیتونه په لوړه کچه هندي او بودایي مدنیتونه یې منځ ته راوړل چې د هغوی اثار په بامیان، کاپیسا، هډه او لوګر کې موجود دي. په همدې وخت کې پارتیان یا اشکانیان چې د پارته څخه د کسپین بحیرې سوېل - ختیځ څخه (د اسلامي دوران د خراسان څخه) را پاڅېدلي وو، یوه لویه امپراتوري چې د نن‌ني افغانستان د لوېدیځ څخه او ټول فارس یې په خپل محوطه کې نیولی وو، منځ ته راوړه او د نیمې پېړۍ لپاره یې په دې ساحې حکومت وکړ. د دې څخه وروسته بیا د فارس ساسانیانو دا هېواد تر خپل تسلط لاندې راوست.

نیږدې یو زر او څلور سوه کاله پخوا،عربانو پر دې ساحې یرغل وکړ او اسلامي تمدن یې دلته خپور کړ. د عربو څخه وروسته بیا د همدې سیمې طاهري او صفاري حکومتونه چې د خراسان او سیستان څخه یې منشا اخیستې وه، پر دې سیمو یې خپل تسلط ټینګ کړ. د طاهریانو په وخت د لومړي ځل لپاره دري ژبه عربي رسم الخط مني او د صفاریانو

په وخت کې لومړني شعرونه په دري ژبه وېل کېده. د يعقوب ليث صفاري په وخت کې د کابل ښار د دوی لخوا فتح شوه او د اسلام دين په دې سيمه کې نافذ او وپېژندل شو. د دې څخه وروسته د بخارا د مرکزيت څخه سامانيانو د سيستان د صفاريانو حاکميت له منځه يوړ، او د بغداد خليفه د عباسي خلافت په حدودو کې د دوی حاکميت پر دې سيمه په رسميت وپېژند. سلجوقي ترک تېرو هم د يوې لويې امپراتورۍ په جوړېدو چې لويوالی يې تر نننی ترکيې او ايران ته رسېده، د سامانيانو ځای ونيسي.

د لومړي ځل لپاره يو خپلواک دولت چې مرکزيت يې د نننی افغانستان حدود دي په غزني کې الپتگين او سبکتگين د ترکمن تبارانو لخوا جوړ شو او د سلطان محمود غزنوي لخوا په يوه پراخه امپراتورۍ بدله شوه چې حدود يې د هندوستان څخه تر فارس پورې وو. غوريان وروستی سلسله ده چې د خوارزمشاهانو سره يو ځای پر دې هېواد اثر لري د هغو څخه وروسته بيا مغول دې هېوادونو ته رسېږي او چور تالان ته لاس اچوي. وروستي فاتحين د دې ساحې بيا تيموريان، بابريان او صفويان دي. دا فاتحين او دولتونه، د ورانولو تر څنگ، تمدونونه هم ايجاد کړي چې د ډېرو خلکو دې ساحې ته د سفر او هجرت سبب گرځېدلي چې اقتصادي، اجتماعي او فرهنگي اثار يې ليدل کېږي او تر اوسه په ځای پاتې دي.

په دې اساس دا هېواد چې نن ورځ ورته د افغانستان نوم ورکړل شوی د دې بنسټ په ۱۷۰۹ز کال کې د ميرويس خان هوتکي قيامونو ايښی دی او احمد خان ابدالي په ۱۷۴۷ز کال کې د مغولي، صفوي او افشاري حکومتونو پر خرابيو او ماتو باندې بنسټ کېښود؛ په تېرو زمانو کې يې ډېر مدنيتونه ليدلي او تجربه کړي چې لرغونپوهانو د هغوی اثار موږ ته موندلي دي. ډېر مهاجرتونه هم شويدي او په دې اړه د اريايانو د مهاجرت په اړوند د قفقاز له شمال څخه سوېل طرف پرتو هېوادو خواته مختلفې تيوريگانې موجودې دي. دا ټولې لښکرکښۍ، تمدنونه او مهاجرتونه، د دې سيمې د نفوس په جوړښت خامخا اثر اچولی دی.

## اريايان، حقيقت څه دی او خيالي کيسې کومې دي!

د ځينو لپاره د تاجکانو ارتباط ورکول «اريايانو» ته او د پښتون د «اريايي» د ريښې څخه سترگې پټول د تعصب تر حد پورته تللي دي. مگر حقيقت دا دی چې موږ هغه نژاد يا طايفې ته د يو فرانسوي عالم د ليکنو له خيراته ارين وايو، چې دا ليکنه يې د اتلسمې پېړۍ په اخر کې کړې وه، چې بيا په شلمه پېړۍ کې دې ته ورته کلمه «اريايي» د يو ايراني ناسيونالېست په واسطه چې رضا شفق نومېدو اختراع او استعمال شوه، په دې نوم کې دواړه پښتانه او تاجکان شامل دي.

پروفيسور نظروف د اريايي گډه منشاء پښتون او تاجک قومونو دپاره مطرح کوي. مرحوم مير غلام محمد غبار او احمد علي کهزاد د اريايانو پښتانه او داديک ذکر کړی. د ځينو تاجک سياسي فعالينو لپاره د دې فرضيې منل، يانې پښتانه او تاجکانو هم نژاده او هم طايفه منل، چې په اصل کې د هغوی د طايفه پرستی يا د يو نژاد برتريت بل نژاد پورې د ايډيالوژۍ د بنسټ نقض بلل کېږي، په بشپړه توگه ردوي او نه يې مني. نو په دې لحاظ بايد څېړنه وکړو څو پوه شو چې اريايي يانې څه؟ ايا د دې نوم اصل او منشاء د ژبې يا د نژاد او طايفې په اساس دی؟ اريايان څوک وو او کوم

ځای کې یې ژوند کولو؟ اریایان د کوم ځای څخه راغلل؟ ایا د اریایانو د کډه کېدو او مهاجرت فرضیه د قفقاز له شماله د منځنۍ اسیا سوېلي سیمو ته، نننی ایران، نننی افغانستان او هندوستان ته حقیقت لري او که نه؟ د دې فرضیې اساس پر څه ولاړ دی؟ ایا ایرانیان اریایي دي؟

د یوې پېړۍ څخه اضافه، اکثر تاریخ لیکوالان او د چاپېریال پېژندونکي په دې باور دي چې د اریایانو مهاجرت او کډه کېدل د قفقاز له شمال او د روسیې سوېل نه دریو خواوو ته، په لوېدیځ کې د اروپا، په سوېل کې د نننی ایران لور ته او سوېل-ختیځ کې افغانستان او هند لور ته باور مند دي. باید یادونه وکړو چې د اریایانو د کډې عقیده ډېر لرغونی تاریخ نه لري. د لومړي ځل لپاره انګرېز سر ویلیام جونز د اتلسمې پېړۍ په سر کې د هندي او اروپایي ژبو د ربښو په یو رنګوالي یې خپل معلومات څرګند کړل. د دې په وخت کې یو فرانسوي عالم ادیپرون چې اوستا شناس وو د اوستا لومړۍ ژباړه په اروپایي (فرانسوي) ژبه وکړه، په ۱۷۶۰ ز کال کې ده غوښتل چې هغه قوم ته اشاره وکړي چې اوستا یې لیکلی وو. ده د «اریا» د کلمې څخه استفاده وکړه چې دا یې په اوستا کې ذکر کړی وو او فرانسوي ته ورته کلمه Arian یې اختراع کړه چې دغه قوم ته یې ارین نوم ورکړ. بیا په وروستیو پېړیو کې الماني عالمانو په تدریج سره د هند او اروپایي ژبو مشابهتونه طایفوي یا نژادي شباهتونه وبلل او په دې خاطر چې دوی نژادي او طایفوي مساواتو باندې باورمند نه وو او دوی د یو بهتر او لوړ رتبه نژاد یا طایفې په پلټنه بوخت وو او د ارین د نژاد تبلیغ یې کولو.

تر دې وخت او زمان پورې اصلا د فارسي/دري معادل «اریایي» لا جوړ شوی هم نه وو. د نولسمې پېړۍ په وروستۍ لسیزه کې میرزا اقاخان کرماني لومړنی ایراني شخص وو چې ارین نژاد ته یې اشاره وکړه. په شلمه پېړۍ کې رضا شفق په خپل مشهور کتاب «د لرغوني ایران تاریخ» کې د لومړي ځل لپاره د «اریایي» د کلمې څخه کار اخلي. د هغې څخه وروسته د اریایي اصطلاح د ناسیونالیستي عقیدو او زېر بناو په اساس او ایډیالوژیکو اساساتو باندې د یو غوره نژاد په حیث، د ادولف هیټلر د پُل په شکل تبدیل شو او همدا اصلي علت وو چې د فارس نوم یې ایران ته واړولو، د هخامنشیانو په نامه د تیرو څخه جعلي جوړې شوې لیکنې له خاورو څخه راوویستل شوې او هخامنشي پاچاهان اریایي وګڼل شول، د بل شخص قبر ته د کوروش نوم ورکړل شو، اهورا مزدا د دوی خدای کېږي او داسې نور.

نن ورځ په ایران کې اکثر پېژندل شوي څېړونکي په دې باور نه دي چې اریایانو د له شمال ختیځ (منځنۍ اسیا) څخه نننی ایران یا پخواني فارس ته مهاجرت کړي وي، د شاه د دوران د هخامنشیانو لرغوني اثار جعلي لیکنې بولي. د دوی د جملې څخه یو هم ډاکټر شاهرخ وفاداری او رضا ضیا ابراهیمي دي چې د ایران د تاریخ کار پوه او د اکسفورډ پوهنتون استاد هم دی د فارسي بي بي سي سره په یوه تلوېزوني مصاحبه کې په دې اړه بحث کړی چې د اریایانو مهاجرت ته د یو نژاد یا طایفې په شکل عقیده نه لري. ډاکټر مازیار د جینیتیک استاد د انګلستان په پورت سموث پوهنتون کې په دې خبرو کې داسې وایي: «دا ډول مهاجرت د جینیتیک علم تاییدولی نه شي.دوی وایي دا چې اریا په اوستا کې یو قوم او یا دوی خاصې طبقې ته یا کومې ژبې ته اشاره کړې،په دې اړه مور هېڅ نه پوهېږو».

په همدې ډول د ایران معاصر استاد ډاکټر مرادي غیاث ابادي د یوې فرانسوۍ راډیو د فارسي څانګې سره په مصاحبه کې وایي چې د ایران اوسېدونکي د همدې سیمې پخواني اوسېدونکي دي او د بل هېڅ ځای څخه یې دې هېواد ته کډه نه ده کړې. د اریایانو په هکله هغه وایي اریا په (اوستا) کې او د کوشانیانو «اریو» د هغې ساحې خلک دي چې د نننی افغانستان شمال او شمال لوېدیځ، بلخ او هرات څخه دي.

د دې څرګندونو سره سم، دا لومړۍ ځل دی چې د افغانستان د قومونو په اړوند جینیتیکي تحقیقات په پلوس وان جریده کې خپاره شول (د چاپ سلسله اته ویشت د ۲۰۱۲ ز کال د مارچ میاشت ) چې په دې کې د پښتنو د جنیتیکي قرابت د تاجکانو سره فزیکي جنیتیکي عامل وړاندې کوي او د اریایي مهاجرت نظریه له شمال څخه سوېل ته، په مستندل شکل تر پوښتنې لاندې راوړي.

**د افغانستان د نفوس اندازه**

په افغانستان کې تر اوسه پورې لومړنۍ او وروستۍ سرشمېرنه په ۱۳۵۸ (۱۹۷۹ز) کال کې د ملګرو ملتونو په مرسته تر سره شوې ده. د دې څخه د مخه په ۱۹۷۲-۱۹۷۳ز کال کې یوه پروژه د « په افغانستان کې دموګرافیکي او د کورنیو د لارښوونې سروې»[1] تر نامه لاندې د پلان وزارت له خوا تر سره شوه چې د هېواد اوسېدونکو شمېر یې ۱۱ میلیون او ۵۲۰ زره تنه اټکل کړ[2].

د ۱۹۷۹ ز کال ( ۱۳۵۸ ه ل) سر شمېرنې د افغانستان د اوسېدونکو نفوس یې ۱۳،۰۵ میلیونه او د کوچیانو نفوس یې ۱،۵ میلیون تنه اټکل کړ. په ۱۹۷۵ ز کال کې د افغانستان نفوس د داوود خان د جمهوریت د اووه کلن پلان د اټکل په اساس د ۱٦،٦ میلیون تنه (۱۴٬۲ اوسېدونکي او ۲،۴ کوچیان) اټکل شوي وو[3] .

د ځینو خلکو د خبرو خلاف (لکه د اقتصاد وزیر امین فرهنګ، ۲۰۰۴ ز کال) د ۱۳۵۸ کال سرشمېرنه (۱۹۷۹ز) یو نمایشي عمل نه وو د دې د مقدماتو برابرول دری کاله د داوود خان د جمهوریت په زمانه کې ونیول. په مقدماتي دوره کې د کلیو او بانډو او د هېواد د ښارونو کارتوګرافیکي نقشو برابرول سرته ورسېد، د ټولو دروازو نمره بندي او د دروازو تر شا د ټولو کورنیو حساب نیول او د کوچیانو د کېږدیو او خېمو حساب کول او شمېرنه، نمبر وهل کارونه سر ته ورسېدل.

د ۱۳۵۸ ه ل کال د خلکو شمېرل اصلي عملیات شل ورځې ونیولې چې د دوه میلیون څخه اضافه پوښتنپاڼې کورونو ته د لس زره سرشمېرونکو څخه اضافه کارکونکو لخوا اجرا شوې، د هرې کورنۍ د مشر سره یې مصاحبې وکړې او د هېواد په ټولو امن سیمو کې سرته ورسېدې. په هغه سیمو کې چې د تګ راتګ لارې هموارې نه وې او صعب العبور

[1] University of Buffalo “Afghanistan National Demographic and Family Guidance Survey 1972-1973”. Funded by United States Agency for International Development (USAID).

[2] Spiter, James and Nancy Frank, 1977, *Afghanistan a Demographic Uncertainty, Research Not 6, Bureau of Census, Washington DC.*

[3] Academia, Demographic Profile of Afghanistan, 1979, Dr Noor A Khalidi,

https://www.academia.edu/11860590/Demographic_Profile_of_Afghanistan_1979.

ګڼل کېدې، لکه غرنۍ ساحې او نامکنه ځایونه، په هغه ځایو کې سرشمېرنه ونه شوه. په همدې اساس په ذکر شوې نا امنه او ناهمواره سیمو کې چې اکثر کوچیان هلته ژوند کوي، د کوچیانو سرشمېرنه بشپړه محتوا نه درلوده. مګر د دې مناطقو د نفوس د اټکل لپاره د کورنیو د ابتدایي فهرستونو څخه چې په لومړۍ مرحله کې ترتیب شوي وو او د نفوس د زیاتېدو د اندازې د اټکل په استفاده تر سره شول.

د سرشمېرنې د عملیاتو نه وروسته د پوښتنلیکونو معلومات کمپیوټرونو ته داخل کړل شو او د هغې څخه وروسته لومړنې معلومات په ۱۹۸۰ز کال او مکمل معلومات  په ۱۹۸۳ ز کال کې د مرکزي احصایې د ادارې لخوا، په هغه وخت کې چې زه پخپله د نفوس د سرشمېرنې او دموګرافیکې سروې عمومي مدیر وم، نشر شول.

د ۱۳۵۸ ه ل کال څخه تر اوسه پورې، بیا د نفوس کومه سرشمېرنه په هېواد کې اجرا شوې نده. د دې سره سره چې د ۲۰۰۱ز کال د بن د کنفرانس او د اسلامي جمهوریت د جوړېدو څخه وروسته د نفوس سرشمېرنه د پروژې د تطبیق کېدو دستور د نوي حکومت د کار په لست کې ځای پر ځای شو او د دې د تطبیق په خاطر د ملګرو ملتونو د نفوس شمېرنې صندوق او د احصایې د مرکزي ادارې لخوا کار پرې پیل شو مګر د امنیتي وضیعت د خرابوالي له وجهې تر ننه مو دولت په دې نه دی توانېدلی چې دا پروژه سرته ورسوي. هر ماشوم په دې پوهېږي چې د سرشمېرنې لپاره د امنیت ښه والی لومړنی او اساسي شرط دی. هېڅ سیاسي رهبر نشي کولی چې د دېرش زرو څخه اضافه د سرشمېرنې کارکونکي (معمولا د ښوونځیو ښوونکي) ژوند په خطر کې واچوي او دوی لرې کلیو او بانډو ته ولېږي. حتی په ۱۳۵۸ ه ل کال کې چې د اوسنیو کلونو په پرتله امنیتي وضع ډېره ښه وه، د مرکزي احصایې د سرشمېرنې ځینې کارکونکو خپل ژوند له لاسه ورکړ.

په افغانستان کې د احصایې مرکزي اداره د افغانستان د نفوس او احصایې د راټولولو او خپرولو مسولیت لري. په همدې اساس نوموړې اداره هر کال د هېواد د اوسېدونکو احصائیه د ولایتونو، ولسوالیو، ښارونو، ناحیو او د جنس (نر او ښځه) په توپیر خپره کړي. د تېرو کلونو د نفوس د شمېر اټکلونه چې سرته رسېدلي دي او په تېرو ۳٦ کلونو کې چې دولت او موسساتوپه خپل پروګرامونو کې د هغوې څخه کار اخیستی دا ټول د ۱۳۵۸ ه ل کال د سرشمېرنې د نتایجو او ۲۰۰۱ز کال نه راپدېخوا د کورنیو سروې فهرستونه، اټکلونه او محلي سر شمېرنې  پر بنا ولاړ او مستحکم دي. په دې ورستیو کې د مرکزي احصایې ادارې ۱۳۹۸ ه ل کال (۲۰۱۷/۲۰۱۸ز کال) د هېواد د نفوس شمېر ۳۱,٦ میلیونه اټکل کړ او د معلوماتو د نشتوالي په اساس د کوچیانوشمېر ۵,۱ میلیون اټکل شو (د مرکزي احصایې د ادارې ویب سایټ).

ځینې بیا وایي چې د افغانستان حکومتونو د افغانستان نفوس شمېرل په دې خاطر سرته نه دی رسولی چې چارواکو دا نه غوښتل چې د قومونو نفوس معلوم او څرګند شي. دا یو ناسم وړاندیز دی. د سرشمېرنې لومړنی مطلب او موخه د قومونو د نفوس معلومول نه دي. د هېواد په هېڅ اساسي قانون کې او په هېڅ وخت کې قومونو ته امتیازات نه دي ورکړل شوي، په همدې اساس د قومونو د نفوس شمېرل د دولت پر پالیسیو او څرنګوالي اثر نشي اچولی. د افغانستان ټول خلک د قانون، حقوق، امتیازات او مسولیتونو په وړاندې مساوي ګڼل کېږي. د سرشمېرنې دلیل او موخه د هېواد د نفوس د شمېر پېژندنه او د دموګرافیکی ځانګړتیاوو لکه نر او ښځې، د عمر او نور داسې ترکیبونو معلومول دي.

همدا راز د نفوس د سرشمېرنو څخه د وګړو اجتماعي مشخصات، د سواد کچه، مدني حالت د نفوس اقتصادي مشخصات او د وظیفو او شغل په باره کې غوره اټکل کولو او د تولیداتي سکتورونو څرنګوالی، د خلکوعایدات، او همداراز د ښارونو، کلیو، او د کوچیانو د جغرافیې د پېژندنې په شان ډېر مهم معلومات تر لاسه کېږي. د قومي او ژبني تقسیماتو پېژندنه هم د نفوس شمېرنې مهم هدف دی اما د افغانستان په اوسنیو شرایطو کې د اعتماد او د سیاسي توازن د کموالي او ضعیفوالي په خاطر دا ډول معلومات اړین نه دي او دا ډول احصائیوي ارقام کولی شي د مغرضینو په لاس کې د هېواد د قومونو یووالي د تضعیف سبب وګرځي.

د نفوس سرشمېرنې عملیات، لومړۍ مرحلې نه تر اخره پورې، د ارقامو پروسس کول، تحلیل او ارزیابي د ارقامو او د نتایجو خپرول ډېر مصرفه، وخت غوښتونکی، تخنیکي، او مسلکي کار دی. له همدې کبله سر شمېرنه په اکثر پر مختللو هېوادونو کې په هر لسو کلونو کې یو ځل سرته رسېږي. یوازې څو محدود هېوادونه سرشمېرنه په هر پنځه کلونو کې سرته رسوي، د مثال په توګه د دې سره سره چې استرالیا هر پنځه کاله وروسته بیا سرشمېرنه کوي، د دې سره سره د دریو کلو راهیسې د ۲۰۱۶ ز کال د سرشمېرنې نتایج کمپیوټري پروسس تر اوسه جریان لري او د بشپړ نتایجو اعلان ممکن راتلونکي دری کاله نور هم ونیسي.

واقعیت دا دی چې زموږ سیاستوالو تر اوسه د دموکراسۍ پروسه د زړه له کومې نه ده منلې، په همدې ډول د ۲۰۱۴ او ۲۰۱۹ ز کلونو د ټاکنو نتایج دا په ګوته کړل، چې تر اوسه سرشمېرنه او د ټاکنو د نتایجو د هضم قابلیت لا تر اوسه موجود نه دی. د مثال په ډول، د مجاهدینو دولت او د اسلامي جمهوري دولت د بن د کنفرانس څخه وروسته په خپلو خپرونو کې د سیاسي تعصب له مخې د ۱۳۵۸ ه ل کال سرشمېرنې نتایج چې د حفیظ الله امین په وخت سرته رسېدلې، انکار کوي، یا هغه ته په ټیټه سترګه ګوري او اهمیت ورته نه ورکوي. حتی د مرکزي احصایې د ادارې سرپرست یا د ناپوهۍ او یا د اجبار او سیاسي تعصب له مخې داسې وایي چې ۱۳۵۸ ه ل کال سرشمېرنه پیل شوې وه خو سرته ونه رسېده! په داسې حال کې چې پوهېږو دا سرشمېرنه د میلیونونو ډالرو په مصرف پیل او د مقدماتي کارتوګرافۍ، په دروازو شمېره وهل، د کورنیو لېست جوړول، تر سیموي عملیاتو سرته رسولو پورې، د ارقامو کمپیوټري پروسس کول، تحلیل او د نتایجو ارزیابي کول، د راپورونو برابرول، تکمیل او د ارقامو خپرول نیږدې پنځه کاله ونیول او بشپړ شول.

له نیکمرغه په خپرو شویو نتایجو کې داسې څه موجود نه دي چې د ارقامو صحت پر قومي، ژبني، یا سیاسي بانو په علت تر پوښتنې لاندې راوړي. مګر ځکه چې زموږ سیاستوال د ارقامو د منلو او د هضم قابلیت نه لري او که په راتلونکې کې د هېواد د سرشمېرنې څخه لاسته راغلي ارقام خپل غوښتنې او عقیدو سره سم ونه ویني او د پوهې قابلیت یې هم نه لري، په دې اساس په راتلونکې سرشمېرنه کې د قوم د نوم پوښتنه باید له خلکوو څخه ونشي. زه د بشپړ اطمینان سره کولی شم ووایم که چېرې دولت د یوې بریالۍ سرشمېرنې په سرته رسولو باندې وتوانېږي او د خلکو څخه د قومیت پوښتنه وکړي، هغه کسان چې ځانونه په اقلیت کې ګوري، هغه بیا د سرشمېرنې نتایج نه مني او د نتایجو په هکله پوښتنې او شک پکې کوي او په دې اساس د ټولې سرشمېرنې پایله د سوال لاندې راوړي.

افغانستان د دې توان نه لري چې د قوميت د پوښتنې په شاملولو سره د ټولې سرشمېرنې پايله ضايع کړي په داسې حال کې چې ډېر مصارف په دې پروسه کېږي. د قوميت په اساس د نفوس د احصايې د پوهېدو په خاطر نورې لارې شته دي.

## په جنګي شرايطو کې د سرشمېرنې تکميلول نه عملي کېږي

محمد امين فرهنګ د ای.تي. ان تلوېزون سره په يوه مرکه کې دا ادعا کړې وه، چې که د کرزي حکومت (چې خپله پکې د پلان يا د اقتصاد وزير وو) د قومي اغراضو په موخه د فعلي دولت سرشمېرنه يا د نفوسو شمېر نه غواړی چې سرته ورسېږي. دا راز خبرې پوچې او بې مانا خبرې دي او د غير مسلکي خلکو لخوا وېل کېږي چې د سرشمېرنې د مغلقې پروسې په هکله معلومات نلري. سرشمېرنه په يو هېواد کې، تر ټولو لوی عمليات دي چې په دې پروسه کې د سرشمېرنې کارکوونکي په هېواد کې د هرې دروازې شاته بايد ورشي، دروازه و ټکوي او خلاص يې کړي او د کورنيو سره د دروازس شاته پوښتنليک چې لږ تر لږه نيم ساعت وخت نيسي تکميل او درج کړي. په هېواد کې چې ۳۹ زره کلي او زرګونه ښاري ناحيې موجود وي دا ډول عمليات به لږ تر لږه شل زره سرشمېرنې کارکوونکي او پنځه زره کنټرولوونکو ته ضرورت لري څو د يوې مياشتې په شا او خوا کې دا ډول عمليات سرته ورسوي. په داسې يو هېواد کې چې تر نيمايي زيات د کليو او باندو امنيت د سرشمېرنې د کارکوونکو لپاره تضمين کېدای نشي، څنګه يو شخص او يا يو مقام دا جرئت وکړي چې د زرګونو کارکوونکو ژوند په خطر کې واچوي او دوی لرې او ناامنه سيمو ته ولېږي. د ۲۰۰۸ ز کال د سرشمېرنې پلان شوی کار د ضرورت وړ امنيتي حالت د نه برقرارېدو يا نه تضمين کېدو په خاطر د ملګرو ملتونو او د افغانستان د دولت لخوا په تعويق ولوېدله. دا مشکلات نن ورځ هم موجود دي. ما په خپله په عمل کې د سرشمېرنې د پروسې ستونزې ليدلې. زه د نفوس د مسايلو کار پوه يم او په همدغه صفت د استراليا په څو سرشمېرنو کې او هم د مايکرونيشيا هېواد په سر شمېرنه کې مې ونډه اخيستې ده. همدا راز د افغانستان په لومړنۍ او وروستنۍ سرشمېرنه کې چې په ۱۹۷۹ ز کال کې تر سره شوه، د ماسټر ترېنر په حيث مې کار وکړ او وروسته د نفوسو د سرشمېرنې د عمومي مدير په صفت مې کار وکړ او نتايج مې تحليل، ارزيابي او (۱۹۸۳ز کال) کې مو خپاره کړل. په ۱۳۵۸ ه ل کال د حفيظ الله امين په وخت کې کله چې د مجاهدينو جنګونه نوي پيل شوي وو او د لرې سيمو د امنيت وضع د نن په شان لا خرابه نه وه، د هغې سره سره د سرشمېرنې په ترڅ کې د سرشمېرنې لسګونو کارکوونکو خپل ژوند له لاسه ورکړ. د مثال په توګه ما د نيمروز، فراه، هرات او بادغيس ولايتونو د سرشمېرنې کارونو د ارزيابۍ په خاطر د عملياتو د پيل څخه شل ورځې مخکې دغو سيمو ته سفر وکړ. د دې سره سره چې اکثر واليانو ډېر اطمينان راکړ او قومندانانو او نظامي څانګو پوره ډاډ راکړ، مګر د هغې سره سره کابل ته هم بېرته نه وم راستون شوی چې د مرحوم راد د بادغيس ولايت د احصايې د مدير او د هغه د همکارانو د شهادت خبر راته راورسېدو. همدا راز د مجاهدينو د حملې په پايله کې د لوګر ولايت د سرشمېرنې د دفتر ټولو کارکوونکو د دفتر د مدير په شمول چه د کابل پوهنتون د اقتصاد په پوهنځۍ کې زما همټولګي وو دوی ټولو خپل ځانونه وبايلل. د امنيتي اوضاع د خرابوالي په خاطر همغه وخت د هېواد ۳۵ ٪ سيمو کې سرشمېرنه سرته ونه رسېده. نو اوس څنګه يو شمېر بې خبره او غير مسلکي کسان په منافقانه ادعاوو چې د

قوم پالنې او تعصب رنګ یې ښکاري، غواړي د عامو خلکو ذهنونه مغشوش کړي، د پښتون ټبر په مشرانو باندې تور لګوي چې د هغې سرشمېرنه سرته رسول چې د ملګرو ملتونو د پلان په اساس په ۲۰۰۸ ز او ۲۰۱۰ ز کلونو کی په نظر کې نیول شوې وه ګویا د سیاسي اغراضو په اساس یې سرته ونه رسوله؟ په تاسف سره باید ووایم چې ځینې خلک غواړي چې هرې مسئلې ته قومي رنګ ورکړي او د بېخبرو ځوانانو ذهنیتونه مخشوش کړي.

## د افغانستان د نفوس تازه اټکلونه

په دې اخر وختونو کې د طلوع نیوز لخوا غلط معلومات خپاره شول داسې یې وښودله چې د ریموت سنسنګ د تخنیک څخه په استفادې (د لرې لار څخه احساسول) کولی شو په لږ وخت او په لږو پیسو، د نفوس شمېرلو پروسه په هېواد کې سرته ورسوو.

زه په ډیموګرافي او یا د نفوسو د علم متخصص یم او په همدغه رشته کې ډاکټري لرم. همدا راز په ۱۹۸۲-۱۹۸۴ ز کلونو کې د افغانستان د مرکزي احصایې د ادارې د نفوس سرشمېرنې عمومي مدیر په صفت دنده درلوده. په تازګۍ مې د استرالیایي اوسېدونکو د نفوس (ابروجینیان) د ۲۰۱٦ ز کال د سرشمېرنې د نتایجو په اساس مې د راتلونکو شلو کلونو لپاره د یو قراداد په اساس د استرالیا د نیو ساوث ایالت د ټولنیزو چارو او مسکن وزارت لپاره اټکل سرته ورسولو. که د افغانستان د نفوس په هکله پلټنه کول غواړئ، نو دې مسلکې ټکو ته توجه وکړئ.

- د احصایې مرکزي ادارې کومه نوې د نفوس سرشمېرنه سرته نه ده رسولې او پلان یې هم نشته مګر د دوی د ویبسایټ د لیکنې په اساس «هغه مودل چې د نفوس د شمېرلو بیا کتنې لپاره په نظر کې نیول شوي هغه د نفوس شمېرنې ارقامو بیا استفاده ده چې ۱۳۵۸ ه ل کال کې پلان شوی وو، د ۱۳۸۳-۱۳۸۵ ه ل کلونو د کورنیو فهرست جوړولو معلومات، او په هېواد کې د وروستنې اجتماعي–اقتصادي او دموګرافیکي سروې پایلې پکې شاملې دي چې په ۱۳ ولایتونو کې د هېواد دننه د دې ادارې لخوا تطبیق شوي وو، همدا راز هغه د مصنوعي سپوږمکیو تصویرونه دي چې د دولتي او غیر دولتي ارګانونو لخوا دې ادارې ته تسلیم شوي دي اوس فلومایندر ادارې ته تسلیم شوي دي.».
- په دې مانا چې د څلورو منابعو څخه په استفاده چې پکې د ریموت سنسنګ تخنیک هم شامل دی د احصایې مرکزي اداره د ملګرو ملتونو د نفوسو د صندوق او د فلومایندرز د موسسې په مرسته د هېواد نفوس د یو نوي مودل په اساس اټکل کړی نه د یو پُر مصرفه (۲۵۰ میلیون امریکایي ډالر) او سیموي عملیاتو په شمول سرشمېرنه چې په اوسني امنیتي حالاتو کې امکان نه لري. د مرکزي احصایې د اداري د عمومي رییس احمد جاوید رسولي په قول:«موږ دا تګلاره د ۲۰۱٦ ز کال څخه پیل کړې چې د هغې په اساس مو اوس وکولی شو د نفوسو په ارزیابۍ او شمېرنه کې ښه نتایج لاسته راوړو. دا تګلاره ۹۵ په سلو کې دقیق ارقام دي» (ذبیح الله جهانمل د قوس ٦، ۱۳۹٦ طلوع نیوز).
- مګر هغه څه چې طلوع نیوز یې بیا لیکي: «د دې ټولو سره سره، هغه ښه والی چې ریموت سنسنګ سافټویر لري، دا دی چې په لږ وقت کې  د لږو پیسو په لګښت، کولی شو د سرشمېرنې پروسه په هېواد کې سرته ورسوو»

دا په بشپړ توګه نا سمه او ګمراه کوونکې خبره ده. تر ټولو لومړی دا چې ریموت سنسنګ داسې کوم «نرم افزار» یا سافټویر نه دی، مګر د احصایې یو تخنیکي موډل دی چې د فضایي عکسونو په واسطه د مسکوني تغیرات، زراعتي، فزیکي، او نور توپیرونه په ښارونو او کلیو کې په مختلف زماني واټن کې ثبتوي. دوهم دا چې دا ډول تخنیک د سرشمېرنې د نتایجو د بهتر کولو په خاطر په هغه سیمو کې چې سرشمېرنه عملي شوې نه وي؛ د نفوس ښه اټکل کول دي په هغه سیمو کې چې سرشمېرنه نه عملي کېږي، ورڅخه استفاده کېږي. د دې په اساس، ریموت سنسنګ د طلوع نیوز د لیکنې پر خلاف، نشي کولی د سرشمېرنې ځای ونیسي او نشي کولی چې د دې څخه په استفاده په کم وخت او لږ مصارفو باندې سرشمېرنه یا د هېواد نفوس شمېرنه سرته ورسېږي.

- د ملګرو ملتونو د نفوس صندوق د ۲۰۲۰ ز کال د سرشمېرنو په ترڅ کې چې په اکثر پرمخ تللو هېوادونو کې سرته رسېږي، د نتایجو د لا ښه والي په موخه د ریموت سنسنګ د تخنیک نه هم کار اخلي چې د فضایي عکسونو په مرسته د مسکوني، زراعتي، فزیکي توپیرونه په کلیو، او ښارونو کې په مختلفو زماني مقطعو کې په ډاګه کوی. د دې سر بېره بیا د ارقامو جمع کول د نتایجو د بهبود او ښه والي په سیمه کې استعمالېدی شي. د دې تخنیک څخه د افغانستان د وروستني نفوس اټکل کې د فلومایندرز د موسسې لخوا هم استفاده شوې ده .

- باید توجه وکړو چې د ۱۳۸٦ ه ل کال (۲۰۰۵)ز کال څخه راهیسې، د اساسي قانون په حکم، هر کال د مرکزي احصایې اداره، د دوه منابعو پر اساس د نفوس اټکل تازه کوي. لومړی منبع یې د ۱۳۵۸ ه ل کال د سرشمېرنې ارقام دي او دوهمه منبع یې د ۱۳۸۳-۱۳۸۵ ه ل کلونو د کورنیو فهرستونه دي، او دا نتایج هر کال حکومت ته ورکوي.

- لکه څنګه چې د احصایې مرکزي ادارې په لیکنه کې ذکر شو، لومړنۍ (او وروستنۍ) سرشمېرنه کله چې حفیظ الله امین په قدرت کې وو ۱۳۵۸ ه ل (۱۹۷۹ ز) کې تر سره شوه، مګر مقدماتي کارونه یې د داوود خان په جمهوریت کې تکمیل شول. د داوود خان په زمانه کې د سرشمېرنې ټول مقدماتي کارونه، چې په هغه کې د دروازو نمره وهل، د کورنو لېست نیول هم پکې شامل وو، د دریو کلونو په ترڅ کې بشپړ شول او داسې پلان وو چې سرشمېرنه د زماني مهال وېش په اساس د ۱۳۵۷ ه ل کال د چنګاښ په میاشت کې سرته ورسېږي مګر د ثور ۱۳۵۷ ه ل کال کودتا دا پلان د یو کال لپاره ځنډنی کړ. د ۱۳۵۸ ه ل کال په سر شمېرنه کې ٦۵٪سلنې په شاو خوا کې د هېواد ساحې شاملې وې او د نورو ۳۵٪ سلنو سیمو څخه د نفوس اټکل د مقدماتي عملیاتو د کورنیو د لېستو نو په استفادې او د نفوس د طبیعي رشد په نظر کې نیولو سره په لاس راغی. د ۲۰۰۱ ز کال نه را پدېخوا دوه ځله کوښښ وشو چې سرشمېرنه بیا سرته ورسېږي، مګر د امنیتي اوضاع د خرابوالي په خاطر دا پروژه په تعویق وغورځېدله. په دې دوران کې د ۱۳۸۳-۸۵ ه ل کلونو چې امنیت په نسبي ډول ښه وو د کورنیو لېست نیول سرته ورسېده.

- د سرشمېرنې په بدل کې د احصایې مرکزي اداره د ملګرو ملتونو په مرسته د ولایتونو تدریجي اقتصادي-اجتماعي دموګرافیکي سروې سرته ورسوله چې د ۲۰۱۱ ز کال څخه راپدېخوا د کار لاندې ده او په ۱۳ ولایتونو کې تر

اوسه تطبیق شوې ده. په دې سروې کې د قومیت او د ژبې پوښتنې د خلکو څخه نه دي شوې څو د هغه حساسیتونو سره چې د دې په وړاندې موجودې دي د دې ملي لویې پروژې نتایج تر پوښتنې او شک لاندې راني.

- په نړۍ کې سرشمېرنه په ډېرو لګښتونو، هر لس کاله وروسته یو ځل سرته رسېږي، یوازې استرالیا ده چې د ډېرو منابعو په درلودلو سره هر پنځه کاله وروسته سر شمېرنه سرته رسوي. هېڅ تذکره او د زېږېدنې سند، نشي کولی چې د سرشمېرنې یا نفوس شمېرنې ځای ونیسي. د تذکرې له مخې نشو کولی نفوس په یو مقطع د زمان لکه ورځ یا میاشت کې تعیین کړو. نوې زېږېدنې، وفات کېدل او مهاجرتونه ټول پر دې تاثیر کولی شي. سرشمېرنه د نړۍ په ټولو هېوادونو کې او په اروپایي نړۍ کې هر لس کاله وروسته سرته رسېږي.په استرالیا کې چې تر ټولو بشپړ او بهترین د زېږېدنې د تصدیق سیستم لري او د وفات کېدو ډېر ښه ډېټابیس هم لري، د هغې سره سره سرشمېرنه په هر پنځه کلونو کې بیا د نفوس عمومي سرشمېرنه سرته رسېږي او داسې یوه مانا لري لکه د هېواد د نفوس یو تصویر یې چې په یوه خاصه ورځ کې اخیستی وي.
- د احصایې مرکزي اداره، په افغانستان کې د یو ځل سرشمېرنې مصارف په داسې حال کې چې امنیت برقرار وي، د ۲۵۰ میلیون امریکایي ډالرو په اندازه تخمین کړې ده.

**د افغانستان د نفوس قومي جوړښت**

د افغانستان موقعیت چې د تمدنونو څلورلارې ګڼل کېږي، بې له شکه د دې هېواد د نفوس د قومونو په جوړښت کې تاثیر کړی دی. په افغانستان کې د شپاړسو څخه ډېر قومونه مېشت دي چې په هغه کې پښتون، تاجک، هزاره، ازبک، پشه یي، عرب، قرغېز، ترکمن، بلوڅ، قزلباش، بیات، او داسې نور شامل دي. هر قوم د هېڅ کوم بهرني فشار څخه پرته، خپل خاص قومي هویت تر نن ورځې ساتلی دی. او د دوی قومي هویت د دوی د نفوسو په تذکرو کې مشخص شوی او د نورو قومونو د احترام وړ دی. په مجموعي توګه دغه قومونه وروڼه، سره برابر او افغان ملت تشکیلوي چې فرهنګي ځانګړتیاوې یې د هېواد ملي هویت جوړوي او د نورو ملکونو څخه یې بېلوي. په دې سیمه کې د مېشته پښتنو او نورو ورونو قومونو لپاره چه نن ورځ یې د افغان ملت په نوم پېژنو د یو ځانګړي خپلواک هېواد او دولت جوړول، د افغانستان نوم، په هېواد کې رسمي دري او پښتو ژبې، د هېواد نورې ملي ژبې، د هېواد تېر شوی تاریخ، د انګرېزي استعمار په مقابل زموږ د نیکونو قهرمانه مبارزې، د سیاسي استقلال د بیا لاسته راوړل او د استقلال ساتنه او د یرغلګرو په وړاندې د هغې ساتنه او د نفوذ اضافه کېدل، او په سیمه کې د هېواد ملي منافع او ملي ارزښتونه ټول د ملي هویت برخې ګڼل کېږي.

په هېواد کې د مختلفو قومونو د نفوس شمېر هېڅ وخت په رسمي ډول د افغانستان د حکومتونو لخوا اټکل شوی، راټول شوی او نشر شوی نه دی. په ۱۳۵۸ ه ل کال سرشمېرنه کې (تر اوسه پورې د افغانستان رسمي لومړنۍ او وروستۍ سرشمېرنه) د دې سره سره چې د قوم پوښتنه په لومړي سر کې په پوښتنلیک کې شامله شوې وه، اما د سرشمېرنې د پیل په وخت کې د ځینې حساسیتونو په نظر کې نیولو سره، حکومت دا تصمیم ونیولو چې د سرشمېرنې د عملیاتو د

اخلال د خطر څخه د مخنیوي په خاطر، او همدا راز چې د راټول شویو معلوماتو په صحت باندې شک پیدا نشي، د خلکو نه  د قوم د نوم پوښتنه ونشي. په همدې اساس وو چې د خلکو د قومیت د نوم پوښتنه ونه شوه. مگر په تېرو کلونو کې په افغانستان کې د قومونو د نفوس په هکله اټکلونه د مختلفو مراجعو لخوا  شوي دي. د نفوس د سرشمېرنې څخه د قومونو د نفوس د معلومات د نه شتون په حالت په تقریبي ډول سره د قومونو د نفوس تخمین یا اټکل کول داسې کېدای شي چې لومړی د کلیو او ولسوالیو نفوس د قومونو په تفکیک سلنه (٪) د محلي خلکو د معلوماتو له مخې جوړول دي چې د هغې نه کولی شو د قومونو نفوس د ولایتونو په تفکیک او د هېواد په سطح اټکل کړو.

لومړنی شخص چې د افغانستان د قومونو د نفوس په اټکل یې لاس ووهلو په ۱۸۰۹ ز کال کې انگرېز مونټ سټیوارټ الفنسټون وو. دی د خپل تحقیقاتي ټیم سره د افغانستان د حکومت تر واک لاندې  مختلفو قومي سیمو، په یو کیلو متر مربع کې د نفوس اوسط شمېر اټکل او د قومي ترکیب په نتیجه کې د افغانستان د قومونو د نفوس شمېر  اټکل کړی او په خپل کتاب کې یې لیکلی دی.[4] دا لاندې  جدول د ده د کتاب ۱۱۴ پاڼه ده:



114 MOUNTAINS—CASHMEER.

hundred to the square mile, was allowed to any large tract except Cashmeer, and sometimes (as in the whole country of the Hazaurehs) only eight souls were allowed to the square mile.

The different nations who inhabit the kingdom of Caubul were supposed to contribute to the population in the following proportions :—

| | |
|---|---|
| Afghauns . . . . | 4,300,000 |
| * Beloches . . . . | 1,000,000 |
| * Tartars of all descriptions. | 1,200,000 |
| Persians (including Taujiks). | 1,500,000 |
| Indians (Cashmeerees, Juts, &c.) | 5,700,000 |
| Miscellaneous tribes . . | 300,000 |

لکه څرنگه چې وینو، دا پورتني ارقام د افغان دولت د حاکمیت لاندې سیمو کې په کال (۱۸۰۹-۱۸۱۰ ز) د الفنسټون او د هغه ۲۰۰ کسیز تحقیقاتي هیئت د سفر په مهال د نفوس قومي جوړښت ښکاره کوي. د دې معلوماتو څخه په استفادې سره موږ کولی شو په ۱۸۱۰ ز کال کې (افغانستان ته د الفنسټون د سفر په مهال) د افغانستان د نفوسو د قومي جوړښت د ډېورنډ د ترون څخه وروسته سرحداتو لپاره اټکل او مقایسه کړو دا لاندې  جدول لاسته راتلی شي:

[4] مونټ سټیوارټ الفنسټون، د کابل د سلطنت او په هندوستان، تارتاری او فارس، کی د هغې د ملحقاتو راپور، لندن ۱۸۳۵).

**د افغانستان د قومونو د نفوس اټکل د مونټ ستوارټ الفنستون په واسطه ۱۸۱۰ زیږدیز کال**

| **قومونه** | د ۱۸۱۰ کال نفوس اټکل د ډیورند کرښې وروسته سرحدات لپاره (خالدي) | | د ۱۸۱۰ کال نفوس اټکل د ۱۸۱۰ ز کال سرحداتو مطابق (الفنستون) | |
|---|---|---|---|---|
| | سلنه (٪) | د کسانو شمېر | سلنه | د کسانو شمېر |
| پښتانه | ۴۳.۷ | ۲،۱۵۰،۰۰۰ | ۳۱.۲ | ۴،۳۰۰،۰۰۰ |
| بلوڅ | ۲.۵ | ۱۲۵،۰۰۰ | ۷.۲ | ۱،۰۰۰،۰۰۰ |
| تاتاران (ټول ترک تېر له هزاره ګانو سره) | ۲۴.۴ | ۱،۲۰۰،۰۰۰ | ۸.۷ | ۱،۲۰۰،۰۰۰ |
| فارسان (د تاجکانو سره) | ۲۶.۴ | ۱،۳۰۰،۰۰۰ | ۹.۴ | ۱،۳۰۰،۰۰۰ |
| هندیان(کشمیریان، جټان، متفرفه) | ۰ | ۰ | ۴۱.۳ | ۵،۷۰۰،۰۰۰ |
| متفرقه قومونه | ۳.۰ | ۱۵۰،۰۰۰ | ۲.۲ | ۳۰۰،۰۰۰ |
| **ټول** | **۱۰۰** | **۴،۹۲۵،۰۰۰** | **۱۰۰** | **۱۳،۸۰۰،۰۰۰** |

دې ته په پام سره چې د ۱۳۵۸ ه ل کال (۱۹۷۹ ز) د سرشمېرنې مطابق د افغانستان مجموعي نفوس په هېواد کې ۱۴.۵ میلیونه کسان اټکل شوی ؤ (مسکون یا مېشته ۱۳ میلیونه، کوچیان ۱.۵ میلیون)، په ۱۸۱۰ز کال کې د نفوس اټکلي اندازه د پورتني جدول مطابق تر ۴.۹ میلیونو کسانو پورې یو د دقت وړ او واقعیت ته نیږدې اټکل ښکاره کېږي. د دې لپاره چې په ۱۶۹ کاله مصافه کې چې د الفنستون د سفر څخه تېرېږي، د دې سنجشونو په اساس د نفوس کلنی او اوسط زیاتوالی ۰.۶۵ ٪ اټکل کېږي. دا اندازه یا اټکل د هندوستان د نفوس د زیاتېدو سلنه د ۱۸۰۰زېږدیز کال څخه تر ۲۰۱۱ ز کال پورې چې ۰،٦٦ ٪ اټکل شوې ده نیږدې او سر خوري (د هندوستان او اندونیزیا د تاریخ مقایسه کول د مقالو ټولګه، پلوس و ان، نیویارک ۱۹۷۸، ۲ مخ).

په دې وروستیو کلونو کې بین المللي موسسو د هېواد د قومي جوړښت نقشې خپرې کړې دي. د هغې جملې څخه دا لاندنی دوهم چارت کې نقشه د افغانستان نفوس د قومي جوړښت له نظره او د هغه جغرافیایي توزیع د امریکامتحده ایالاتو د مرکزي استخباراتو (سي ای اې) او د امریکامتحده ایالاتو د جغرافیایي استخباراتي مرکزي ادارې لخوا نشر شوی دی. د دې اټکل په اساس د افغانستان د قومونو د نفوس جوړښت په لاندې ډول ښودل شوی دی: پښتون ۴۲

سلنه، تاجک ۲۷ سلنه، هزاره ۹ سلنه، اوزبک ۹ سلنه، ایماق ۴ سلنه، ترکمن ۳ سلنه، او نور قومونه ټول ۷ سلنه د افغانستان عمومي نفوس تشکیلوي.

**دوهم چارت**: د افغانستان د نفوس قومي جوړښت او جغرافیایي توزیع د امریکامتحده ایالاتو د مرکزي استخباراتو (سي ای اې) اداري لخوا او د امریکا د مرکزي جغرافیایي استخباراتو د اداري لخوا:




Source: GAO analysis of Central Intelligence Agency and National Geospatial-Intelligence Agency data; National Geospatial-Intelligence Agency and Map Resources (maps).

په لاندې جدول کې د افغانستان د قومونو د نفوس اټکل د مختلفو منابعو څخه وړاندې کېږي:

**د افغانستان د نفوس قومي جوړښت اټکل د مختلفو مؤلفینو او منابعو څخه**

| لیکوال/خپرونه | منبع | پښتون (٪) | تاجک (٪) | هزاره (٪) | اوزبک (٪) | نور قومونه (٪) | ټول قومونه (٪) |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| شپږ کاله سروې او تحقیق | د واک موسسه ناروې 1999 | 62.73 | 12.4 | 9 | 6 | 10 | 100 |
| مکس کلومبرگ | افغانستان 1960 | 60 | 30 | 3 | 3 | 4 | 100 |
| ویلیام میلي | د اسلامي بنیاد گری بیا زېږېدنه، افغانستان او طالبان/لندن 1998 | 62.7 | 12.4 | 9 | 6 | 9.9 | 100 |
| محم محجوب او ف. باوري | د نړۍ جغرافیه پنځم چاپ، ایران | 60 | 20 | 5 | 5 | 10 | 100 |
| پروفیسور سی ا. بروک | د نړۍ نفوس 1981 شوروي اتحاد | 52.8 | 18.6 | 8.6 | 8.6 | 11.4 | 100 |
| پروفیسور محمد علي | افغانستان-کابل 1955 | | 60 | 20 | | 20 | 100 |
| پروفیسور اسلانوف | دافغانستان ملي ژبې/ شوروي اتحاد 1964 | 60 | | | | 40 | 100 |
| محمد انعام واک | فدرالي سیستم په افغانستان کې، پاکستان 2000 | 62 | 12 | 9 | 6 | 11 | 100 |
| افغان ملت جریده 42-43 شمېره | پاکستان 1995 | 50 | 21 | 8 | 8 | 13 | 100 |
| عبدل احمد المیر | د افغانستان زېږېدنه | 58.7 | 28.7 | 2.7 | 8 | 1.9 | 100 |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | او تاریخ لندن 1980 | | | | | | |
| عبدالعظیم ولیان | د افغانستان زېږېدنه او تاریخ /ایران 1987 | 70 | 13 | | | 17 | 100 |
| علی اکبر جعفریان | د سخن مجله | 50 | 20 | | | 30 | 100 |
| لوی دوبری | افغانستان 1973 امریکا | 46 | 25 | 6 | 7 | 16 | 100 |
| ورلد الماناک | افغانستان 1997 امریکا | 38 | 25 | 19 | 6 | 12 | 100 |
| مکینزي | د نړۍ مهمې ژبې 1987 | 55-65 | | | | 35-45 | 100 |
| انتوني | افغانستان | 45 | 23 | 10 | 8 | 14 | 100 |
| سی.ای.اې | Fact Book | 42 | 27 | 13 | 9 | 9 | 100 |
| د 2004 ز کال د جمهوري ریاست ټاکنې[5] | د ټاکنو کمیسیون | 55.4 | 16.3 | 11.6 | 10 | 6.7 | 100 |
| ډاکټر نور احمد خالدي | اکاډمیا 2016 | 43.7 | 26.4 | 12.2 | 12 | 5.7 | 100 |

د مختلفو منابعو څخه د استفادې په پایله کې د افغانستان د نفوس قومي جوړښت د ۱۳۹۷ ه ل کال رسمي نفوس د اټکل له مخې (۲۰۱۷/۲۰۱۸ ز ) په لاندې جدول کې خلاصه کولی شو:

[5] حامد کرزی (پښتون) 55.4 ٪، یونس قانوني (تاجیک) 16.3 ٪، محمد محقق (هزاره) 12.2 ٪، عبدالرشید دوستم (اوزبک) 12 ٪.

**د افغانستان د نفوس اټکل او سلنه د هېواد د قومونو په تفکیک سره:**

| قومونه | د نفوس سلنه | د نفوس شمېر ۱۳۹۷ ه ل |
|---|---|---|
| پښتون | ۴۳.۷ | ۱۳،۸۰۹،۲۰۰ |
| تاجک | ۲٦.۴ | ۸،۳۴۲،۴۰۰ |
| هزاره | ۱۲.۰ | ۳،۷۹۲،۰۰۰ |
| اوزبک | ۹.۰ | ۲،۸۴۴،۰۰۰ |
| ترکمن | ۳.۰ | ۹۴۸،۰۰۰ |
| بلوڅ | ۲.۵ | ۷۹،۰۰۰۰ |
| نور قومونه | ۳.۴ | ۱،۰۷۴،۴۰۰ |
| ټول قومونه | ۱۰۰.۰ | ۳۱،٦۰۰،۰۰۰ |

**اخیستنه:** قومي جوړښت د ډاکټر نور احمد خالدي اټکل - د افغانستان د نفوس اندازه د احصایې د مرکزي ادارې له ویبسایټ څخه.

**د افغانستان د قومونو سرچینه**

پورته مو ولیدل چې پښتانه او تاجکان د افغانستان د لویو قومونو څخه دي چې په مجموع کې د هېواد د نفوس ۷۰ سلنه تشکیلوي. که د دې هېواد لومړني اوسېدونکو ته د تمدن له اړخه «اریایي» ووایو دا دوه قومونه «اریایان» او د دې هېواد اصلي اوسېدونکي بلل کېږي. د بلې خوا څخه تاریخي نظریات، لرغونپېژندنې، او جینیتیکي نظریات چې ډېر نوي نظریات هم دي، دا ښکاره کوي چې د افغانستان تاجکان د افغانستان د پښتنو سره ډېر کم توپیر لري، دواړه یوه نژادي منشاء یا سر چینه لري. مرحوم میرغلام محمد غبار په دې هکله لیکلي دي: « د هرودوت، بیلیو او نورو اقوالو په تایید سره داسې ښکاري چې تاجکان همغه پخواني پښتانه دادیکان دي چې د هغوی د اوسېدو تاریخي سیمه همغه ختیځې سیمې او د افغانستان شمالي سیمې دي او د وخت په تېرېدو سره د هغه ځای څخه نورو سیمو ته د افغانستان په داخل او خارج کې مهاجرتونه کړي چې تر نن ورځې پورې په افغانستان، ماورالنهر او فارس کې د تاجک، دهگان، او دهوار په نامه یادېږي» (غبار، افغانستان د تاریخ په اوږدو کې). د (پختانه دادیکان) موخه دلته د مرحوم غبار لخوا دقیقا توضیح شوې نه ده.

همدا مفهوم د غبار د زمانې څېړونکی استاد احمد علي کهزاد د هرودوت د قول نه روایت کړی او لیکي: «دادیکان Dadicae (تاجکان) هرودوت (پکتی) یا (پختون) پښتانه بولي، او د (گنداهاری) سره یې متصل بولي او ذکر یې کړی

چې د اریانا د ختیځو سیمو د اوسېدونکو سره په ځانګړې توګه ګنداهاریانو سره یو ارتباط لري» (احمد علي کهزاد، اریانا، ۸۵ ص). کهزاد بیا وایي: «دادیکان یا تاجکان همدغه خلک دي د همدې خلکو څخه دي چې د زند په ژبه کې د داکیو (Daqyou) په نامه یادېږي چې د اریانا د هېواد سویلي ساحې دي، په دې مانا چې تر نور هر څه د بزګرۍ او کرنې سره یې ډېر شوق وو». د ځینو لیکوالانو په قول د «دهقان» یا بزګر کلمه همغه «داکیو» د کلمې څخه منځ ته راغلې چې د عربانو لخوا په خراسان کې د اسلام د دین د خپرېدو څخه وروسته د «دهقان» یا بزګر کلمه کارول شوې وه. په همغه وخت کې د «دهګان» نوم د خراسان په خلکو کې مروجه او د کلیو ملکانو ته د لوی عنوان او فضیلت کلمه وه او استعمالېده. د دې څخه چې د «ګ» توری په عربې ژبه کې نشته د هغې پر ځای یې د «ق» توري څخه کار واخیست.

همدا راز جینیتیکي مطالعاتو ثابته کړې چې د وراثت د انتقال پروسې د هندوستان څخه افغانستان ته، د پښتون او تاجک قومونه ته جریان درلود. دا پورتني نتایج د میر غلام محمد غبار او د احمد علي کهزاد خبرې د پښتون او تاجک قومونو د نیږدېوالي تایید کوي.

په همدې شکل پروفیسور حق نظر نظروف د پختو د دادیک د اصطلاح په اړوند، عقیده لري چې «... تاجکان او پښتانه دواړه د یو نسل او یوې رېښې څخه اریایي منشاء لري ...». (د تاجکانو مقام د افغانستان په تاریخ کې، دوشنبه، ۱۹۹۹ ز). په لاندې پاڼو کې د افغانستان د لویو قومونو معرفي وړاندې کوو.

## لومړی – پښتانه

د پښتون قوم (پختون چې پښتانه یا پختانه جمع ده) یو لوی قوم دی چې اصلي هېواد یې د پېښور شمال لوري ته د چترال او کنړ او په ختیځ کې تر اټک د سند (اباسین) سیند تر غاړې پورې او په سوېل کې تر ملتان او کویټې او په لوېدیځ کې تر ننګرهار، لغمان، کابل، ارزګان، کندهار، هلمند او فراه پورې رسېږي. پښتانه د هندوکش د سوېلي سیمو د غور څخه د اباسین سیند پورې تر ټولو لوی قوم دی. په ۲۰۱۹ ز کال کې د پښتنو مجموعي نفوس شپیته میلیون تنه اټکل شوی دی (د ۱۵ میلیونو په شاوخوا په افغانستان کې، ۳۵ میلیونه تنه ختیځ پښتانه دي چې د ډېورنډ د کرښې بلې خوا ته په اوسني پاکستان کې اوسېږي او نیږدې لس میلیونه پښتانه په هندوستان، عربي هېوادونو، اروپا، امریکا او نورو هېوادونو کې ژوند کوي)

پښتانه په هندوستان کې د پټان، افغان او همدا راز د روهیله په نوم مشهور دي او په ایران کې د افغان په نامه پېژندل کېږي. د جنیتیکي څېړنو په اساس (د پلوس وان مجله ۲۰۱۲ ز کال) پښتانه حد د اقل د کرنې او مسې تمدن د پیل د زمانې څخه ( دولس زره کاله را په دېخوا) په هغه سیمو کې چې د هندوکش په سوېل کې موقعیت لري د اباسین سیند پورې مېشته دي. دې خلکو پخوا د خپل هېواد لپاره کوم ځانګړی نوم نه درلود.

**دریم چارت: د د پښتنو د مېشت ځایونو نقشه**




فارسیانو، ترک ټبرو، او عربانو پښتنو ته د اوه ګان، اپګان او بلاخره افغان چې د عتیق له زمانې څخه په دې سیمو کې سوار کارانو او نجیب زاده ګانو ته ورکول کېدو، نوم ورکړی وو او دوی ته یې «افغان» خطاب کولو، چې د دوی ټاټوبي ته یې «افغانستان» ویل. ابن بطوطه چې د خپل سفر په ترڅ کې کابل ته راغلی وو په خپله سفر نامه کې لیکي: «بیا مو کابل ته سفر وکړ، دلته د عجمو څخه یوې طایفې ژوند کولو چې افغان نومېده. کابل د پخوا څخه د افغان پاچاهانو پلازمېنه وه. (ابن بطوطه عربي متن ۴۰۶ پاڼه، کابل ته سفر 1320 ز)». دا برداشت یا پوهه د دې په اساس ده چې فارسیان، ترک ټبرو، د هندوکش د شمالي ساحې او فارسیوانان کوم چې د کابل د شمالي ساحې اوسېدونکي وو، او د دوی د خولې څخه بیا عربانو دوی ته «افغان» وویل. د دې څخه وروسته بیا سیف هروي د هرات د تاریخ په کتاب کې چې په اوومه هجري پېړۍ کې (۷۲۱ ه ل 1321 ز کال) لیکل شوی چې افغانستان ته د ملک شمس الدین د تګ څخه په تفصیل سره یادونه کوي [6] .

په همدې ترتیب سره په بابر نامه (توزک بابري) کتاب کې ظهیرالدین محمدبابر د کابل خلکو د قول څخه په ۱۵۲۸ ز کال کې لیکي چې د کابل سوېلي خواته ټول «افغانستان» دی. په همدې اساس او د نورو کتابونو څخه په استفادې

---

[6] د «تاریخ نامه هرات» لیکوال سیف بن محمد بن یعقوب الهروي (۶۸۱-۷۲۱ه س)، د غلام رضا طباطبایي مجد په بیا تصحیح سره. د تاریخ نامه هرات کتاب په لومړي ځل د محمد زبیر صدیقي لخوا چې د کلکتې په پوهنتون کې د ختیځو ژبو استاد وو د کلکتې په شاهي کتابتون کې د یوازېنۍ پاتې شوې نسخې له مخې نه چې په اتمې هجري پېړۍ پورې ارتباط لري، اصلاح شو او د یو مفصلې سریزې سره په انګلیسي او فارسي ژبو د خان بهادر خلیفه محمد اسد الله په کومک سره په ۱۳۶۲ ه ل کال کې په کلکته کې چاپ شوی. د هغې څخه وروسته غلام رضا طباطبایي مجد لخوا د همدغې دوهم ځل تصحیح شوي متن له مخې دا کتاب په ۱۳۸۳ ه ل کال کې په تهران کې خپور شو.

لکه د «تاريخ فرشته» کتاب چې د مغولو په زمانه کې د ابوالقاسم فرشته په نوم د يو مهاجر فارسي ليکوال لخوا په هندوستان کې ليکل شوی او چاپ شوی وو- او همدا راز د بابر نامه يا توزک بابري په استناد چې د اکبر پاچا د امپراتورۍ په وخت په هندوستان کې چاپ شوی وو؛ انگريزانو او نورو اروپايانو هم پښتنو ته د«افغان» په نامه خطاب وکړ او د دوی هېواد يې د «افغانستان» په نامه ياد کړی.

مگر بايد متوجه اوسو چې د فارسيانو (ايرانيانو) لپاره د هندوکش سوېل خواته ټول خلک «افغان» او سيمه يې «افغانستان» وو. د ايران په تاريخي کتابونو کې د افغانستان خلکو ته په اشاره د پښتون او تاجک نومونو څخه هېڅکله کار نه دی اخيستل شوی بلکې د هغې په ځای د «افغان» او د هغه جمع چې «افاغنه» دی استفاده شوې ده. د دې په اساس دا طبيعي ده چې د احمد شاه ابدالي د دولت د جوړېدو څخه وروسته ورو ورو د هېواد نوم افغانستان او د ملت نوم افغان په سيمه کې رواج شو تر هغه چې د احمد شاه دوراني د مړينې څخه اووه لس کاله وروسته په رسمي توگه تثبيت شو لکه چه حاجي ابراهيم د قاجاريانو د دولت صدر اعظم په ۱۷۸۹ز کال کې په رسمي مکتوب کې د شاه زمان لومړی وزير وفادار خان ته د «افغانستان هېواد د صدر اعظم» په نامه خطاب کوي (صديق فرهنگ، افغانستان په پنځو وروستيو پېړيو کې). تر هغه ځايه چې زه معلومات لرم دا لومړی ځل دی چې د افغانستان نوم په رسمي توگه د يو بهرني دولت لخوا وليکل شو. د دې رسمي مکتوب په ځواب په همهغه کال کې د شاه زمان صدر اعظم وفادار خان هم په رسمي ډول د افغانستان د هېواد نوم اخلي (صديق فرهنگ، افغانستان په پنځو وروستيو پېړيو کې) چې د افغانستان د نوم لومړنی ثبت شوی رسمي سند دی.

حامد نويد ليکي: «د تاريخي منابعو څخه په استفادې، د افغان کلمه د اسوه کان Asvakan د اصطلاح څخه رېښه اخيستې ده چې د سانسکرېټ په ژبه کې سوار کار مانا لري، اوه گانا د پرکريت په ژبه کې، اوه گان د اوستايي په پخوانۍ ژبه کې، ابگان، په پهلوي ساساني ژبه کې او په اسلامي زمانو کې د «افغان» په ډول تلفظ شوی او ليکل شوی وو چې په دواړو ژبو يانې په دري او پښتو کې معمول او رواج شول. د ۰۰۰افغان اصطلاح د تاريخ ليکونکو د مطالعاتو په اساس او د ژبپېژندونکو لکه جان مارټن Martin John اير کليوس Reclus – E چې د فرانسې څخه وو، کريستن ليسن Lassen Christianد ناروې څخه، مک کرندل McCrindleاو الکساندر کنينگهم Cunningham Alexander د برېتانيا څخه هغه لقب يا نوم وو چې د ډېر وخت راهيسې سوار کاران يا د اس سپرو ته وېل کېده. دا نظر اگره وال Agrawala چې د سانسکرېټ ژبې يو مشهور هندي څېړونکی وو تاييد کړې او د هغه په نظر د افغان کلمه د يو خاص قوم يا ټبر لپاره استعمال شوې نه ده. د دې په خاطر د پښتنو په قومونو لکه ځدراڼ، منگل، غلزي، دوراني، هوتک، اندړ، کاکړ، احمدزي، سړبني، پوپل، سوري، گدن، لودي، ستانکزي، محمدزي، يوسفزي، بنوڅي، خروټي، سواتي، سهاک، شينواري، ابدالي، توخي، بارکزي او نور د پښتنو قومونه لکه اورکزي، بامي زي، هوتخېل او تره خېل د هېڅ يوه قبيله د افغان يا افغانزي په نوم شتون نه لري ». (حامد نويد، اريانا افغانستان انلاين، د کلماتو رېښه يابي ۲۷/۲/۲۰۱۸ ز).

په هندوستان کې د مشهور «افغان» ټبر خلک د «خان» د کلمې سره یو ځای استعمالیږي لکه غفار خان، یوسف خان، عمران خان، قادر خان، شاهرخ خان، امجد خان او نور مشهور کسان. د هغه مقام او منزلت سره چې د مختلفو پاچاهانو لکه د غزنوي، غوري، لودي او سوري درلود، هغوی د هند خلک په یاد لري. په هندوستان کې دغه ټولې سلسلې په ښوونځیو او پوهنتونونو کې د «افغان» شاهانو په نوم تدریس کیږي. حتی د ایران صفویانو، افشارو او قاجاریانو په زمانه ایرانیانو موږ ته خراسان نه ویل مگر افغان او جمع یې «افاغنه» بلل. په خواشینۍ سره باید ووایم چې د هندوستان پرخلاف، په ایران کې د افغان او افاغنه د نوم څخه کرکه او نفرت کیږي او د تبعیض په سترگو ورته کتل کیږي، په سلهاوو ځلې افسوس چې په دې اخیرو کلونو کې په ایران کې زموږ هزاره افغانان د دې نفرت او تبعیض هدف گرځېدلي دي.

نن د «افغان» نوم په ټوله نړۍ کې د افغانستان د ټولو اتباعو استازیتوب دی او د دری سوه کاله را په دېخوا، د میرویس خان د وخت څخه بیا تر نن ورځې پورې، د افغان حکومتونو د هویت ښکارندوی پاتې شوی او ټوله نړۍ موږ په همدې هویت پېژني. د افغان انگلیس دری جگړې (۱۸۳۸- ۱۸۴۲ز، ۱۸۷۸ –۱۸۸۰ز، او ۱۹۱۹ز) د خراسان ـ انگلیس د جنگونو په نوم نه دي ثبت شوې. موږ نشو کولی د ستمي سیکتاریستانو او جدایي غوښتونکو کسانو د خوښۍ لپاره د خپل هېواد معاصر تاریخ له یاده وباسو او خپل لرغوني تاریخ ته د پای ټکی کېږدو.

کریم پوپل په مشعل وېبپاڼه کې (Mashal.org) د پښتنو قبایلو په اړوند داسې لیکي: «پخ او یا پکت د هند د اریایي جنگیالیو قومونو څخه یو قوم دی چې ... نورو قومونو د فشارونو په خاطر یې د هندوکش سوېل ساحې ته هجرت کړی بلاخره د پکتین په نامه (پکتیا) یوه سیمه کې مېشت شول، او د دې ځای خلکو ته پکتون (پختون) او سیمې ته د پکتانو کور وېل کېدو. پروفیسور مورگسترن د افغان قبایلو د رېښې په اړوند لیکي: پکتو د لومړي ځل لپاره د هیرودت پواسطه ولیکل شو. دی یادونه کړې چې پښتانه د اریایي یوولس قومونو څخه یو قوم دی چې د منځنۍ اسیا دښتو د سوېل څخه یې مهاجرت پیل او د هندوکش له سرو غرونو د تېرېدو څخه وروسته د سلیمان غرونو په مناطقو کې مېشته او پاتې شول. هیرودت لیکي چې د پکتیک خلک ډېر زړه ور او جنگیالي خلک وو. پښتانه د بلوڅانو سره اکثر یو ځای پاتې شوي دي. دا احتمالي لاره چې پښتانه غزني او پکتیا ته داخل شول، دوه نظرونه شته دي. د مرو له لارې سیستان، کندهار، غور، بامیان، غزني او پکتیا. دوهمه لاره منځنۍ اسیا، بلخ، بامیان، غور، غزني او پکتیا. پښتانه مسکون او مالدار خلک دي د اوړي په موسم کې یې د بابا او هندوکش د غرو په لمنو کې د مالدارۍ کارونه کول. د دوی یوه وړه فرقه په کندهار، بلوچستان، ارزگان، بامیان، غور، غزني او پکتیا کې اصلي مېشته کسان شول. د دوی لویه فرقه بیا د غزني او سیستان تر منځ سیمه کې مېشته شول. د عربو تر راتلو پورې د دې قوم لیک او لوست نه وو زده. د لوېدیځو سیمو پښتانه د عربو د راتلو سره سم مسلمانان شول. د خیتځو سیمو پکتان په کابل باندې د عربو د حملې سره مسلمانان نه شول، مگر وروسته له دې چې د کابل خلک مسلمانان شول، دوی هم مسلمانان شول. چې د دې قوم مسلمانېدل ډېر سخت وو، دوی هم په زور مسلمانان شول. چې دې ته سوټه مسلمان هم وېل کېږي. د دوی نښانې دا دي چې ځینې پښتانه د شنو او ابي رنگه سترگو خاوندان دي. د پکتانو په پخوانۍ ژبه کې د غ او ف توري شتون نه درلود. په دې شکل تر نن ورځې د پکتیا خلک افغانستان ته اوگانستان وایي. د دې څخه وروسته چې د دې قوم نفوس زیات شو د

کندهار، هلمند، لوګر او کابل ولايتونو ته مهاجر شول. عرب، سلطان محمود غزنوي، غوريانو په خپلو جګړو کې د دې قوم (سوريانو) څخه په خپل لښکر کې استفاده وکړه. د شنسب (فخر الدين)اولاده، امير پولاد، امير کروړ او نورو سوري شاهان چې د تخارستان، غور، هرات او خراسان په غرونو او رغونو کې يې پاچاهي کوله د خپلې حکمرانۍ په وخت کې د غرشاه په نامه يادېدل. د دې امکان هم شته چې غرزوی، غرزي، او غلجي د همدغه څخه نوم اخيستی وي. د غور اکثره سوريان د غزنويانو سره يو لاس شول د غزنويانو په لښکر کښې هندوستان ته ولاړل او جګړو په کې يې برخه واخيسته. د غوريانو په دې لښکر کښې کې (چې د څو مليتونو څخه جوړ وو) د قدرت خاوندان شول او نسل يې تر هندوستان پورې ورسېد. اوس د پښتون د مليت شاخې ډېرې شوېدي او د افغانستان، پاکستان، او هندوستان په ګوټ ګوټ کې موجود او مېشته دي». (کريم پوپل، افغان، د مشعل وېب پاڼه).

بايد وليکو چې پښتنو د نېکونو د مهاجرت تيوري، د منځنۍ اسيا څخه د هندوکش سوېلي سيمو ته حتی د اباسين سيند تر څنډو هېڅ لرغونپېژندنې، ژب پېژندنې او جنيتيکي ثبوت نه لري. د دې بر عکس هغه جنيتيکي معلومات چې شته دي په دې سيمو کې د دې خلکو اوسېدنه او شتون د دولس زره کلونو څخه هم اضافه ګڼي.

د پښتنو قومونو د ريښې په هکله په فېسبوک کې زما يو ملګري پوښتنه وکړې:

پوښتنه: «ځينې پښتانه په خپله دا ادعا کوي چې موږ د بني اسراييلو قوم څخه يو او د دوی دا ادعا د يو کتاب په اساس ده چې تاريخ خورشيد جهان نومېږي ...زموږ معاصر ليکوالان، پښتانه اريايي معرفي کوي په دې دليل چې د ژبپوهنې د علم په اساس په پښتو ژبه کې عبري (هبرو) لغات نشته، دا په داسې حال کې چې اريايي کلمات پکې ډېر دي، که ممکن وي د دې مسئلې د رد يا منلو په اړه يوه مقاله وليکئ.» (عبدالله حبيب سرحدي)

حقيقت دا دی چې پورته ذکر شوې ادعا د موجوده تاريخي، مهاجرتونو، او نور جنيتيکي معلوماتو سره مطابقت نه لري چې لاندې پرې غږېږم:

لومړی – داسې کسان د مذهبي عقايدو په اساس د قيس عبدالرشيد او خالد نومونه چې اصلا په خراسان کې د عربو قوماندانان وو، کله چې جګړه ختمه شوه او د دوی ماموريت سرته ورسېد، نو دوی د پښتنو په سيمه کې مېشت شول، په همدې سيمو کې يې د پښتنو سره ودونه وکړل او عربستان ته د بېرته تګ څخه يې انکار وکړ چې د دوی څخه خپل نسلونه پاتې دي، چې په عقيده وي لحاظ ځينو په اشتباه د پښتنو سره د خالد چې يو مشهور قوماندان وو نسل يو ګڼي چې دا بی بنسته ادعا د بنی اسرايلو سره د پښتنو د ارتباط په دې اساس ولاړه ده.

دوهم- په تېرو کلونو کې جينيتيکي څېړنو ( سلول پېژندنه) د پښتنو موجوديت د سند په ټوله سيمه کې، او د هند او پاکستان په شمال کې په تېرو زرګونو کلونو کې تثبيت کړی. د غور د غرونو څخه تر چترال او بلوچستان پورې د پښتنو قومونه مېشت دي. جينيتيکي څېړنو د پښتنو د نيکونو قرابت د سند او د هند او پاکستان شمال سره ثابت کړی دی. دا خلک حد اقل د دولس کلونو را هيسې ياني د کرکيلې د پيل څخه په دې سيمه کې مېشت دي.

دریيم – د پښتنو نفوس په پاکستان او افغانستان کې د پنځوس میلیونو څخه ډېر دی او د لس میلیونو څخه ډېر نور پښتانه په نورو هېوادونو لکه هندوستان، ایران، متحده عرب امارات، او د نړۍ په نورو هېوادونو کې مېشته دي. په دې حساب د پښتنو نفوس د نړۍ په سطحه تر شپېتو میلیونو اټکل کېږي. دا په داسې حال کې چې د ټولو یهودانو نفوس په اسرایلو او د نړۍ په ګوټ ګوټ کې د پنځلس میلیونو څخه کم دی. دا څنګه امکان لري چې د دوی یوه وړه څانګه د دوی څخه پنځه ځلې اضافه نفوس ولري. او په تاریخی کتابو کې هم لیکل شوي ندي چې د مصر او فلسطین څخه د خلکو لویې کتلې د هلمند د سیند یا اباسین سیند حوزې ته مهاجر شوي وي.

څلورم- تر کوم ځایه چې تاریخ ښکاره کوي، پښتنو او غوریانو د اسلام دین او  دري ژبه د هند شمال ته یوړله او په ۱۲۲۰ ز کال کې لومړنی پښتون واکمن، سلطان جلال الدین (چې د جلال اباد ښار د ده په نامه دی)، په هندوستان کې واک ته رسېږي، د اسلام د ظهور څخه وروسته یانې د ٦۰۰ کلونو څخه په لږ وخت کې. دا په خپله دا ښکاره کوي چې د پښتنو قومونه د نفوس، ژوند او اوسېدو د سابقې له لحاضه او د هلمند او سند سیند تر منځ سیمه کې د سیاسي نفوذ له لرلو څخه چې تاریخي قدامت او لرغونی تاریخ لري دوی ته په هندوستان کې د حکومت جوړونې امکان ورکړ.

پورته دلایلو ته په کتو سره پښتانه اسرایل ګڼل یا د اسرایلو هجرت له منځني ختیځ څخه دې سیمو ته کوم علمي بنسټ نه لري

پنځم- ځینې څېړونکي، لکه احمد علي کهزاد او ارغندیوال، په دې باور دي چې د اسد طوسي ګرشاسپ نامه او د فردوسي طوسي شاهنامه اسطوره یزقهرمان «ګرشاپ» همغه د پښتون افسانوي څېره «غرغښت» دی. د دې سربېره دوی دا هم مني چې د زرنج صفاریان هم د پښتون  قوم څخه وو.

دا یوه  تصادفي خبره نه ده چې زموږ په مېشته سیمو کې پښتنو دولتونو د مغولي، صفوي، او نادر افشار د حاکمیتونو ځای ونیو. دوی پدې سیمه کې د افغانستان د دولت د جوړېدو تر مخه، د ټولو نه لویه قومي کتله وه. په هندوستان کې یې د څلورسوه کالو څخه ډېر حکومت وکړ او د دوی حکومتونه د غلجیانو څخه تر لودیان او سوریانو، د بنګال څخه تر کابل او کندهار پورې حاکمیت درلود. دا پښتانه وو چې د غوري نظامیانو تر عنوان لاندې یې د هند په شمال کې اسلام ته پراختیا ورکړه.

پښتنو په هند کې د مالیاتو غوره سیستم جوړ کړ. د پښتون سلطان شیر شاه سوري وروستی حکمراني، بابر پادشاه د زوی همایون لخوا فارس د صفویانو په ملاتړ ختمه شوله. د هند پښتون حکومتونه د کندهار څخه تر بنګال پورې تجارتي لارې لرلې او په مناسبو ځایونو کې  کاروان سرایونه جوړ شول. پښتنو دري/فارسي ژبه چې د خلکو تر منځ د افهام او تفهیم وسیله وه د مختلفو قومونو تر منځ، لکه اردو چې په هندوستان کې وه، د خپلې ادارې رسمي ژبه وټاکله. دوی په هندوستان کې د دري ژبې د پرمختګ لپاره ډېرې هلې ځلې وکړې، چې د پښتنو  په پیروی وروسته بیا بابري مغولو هم فارسي دري ژبه خپله رسمي ژبه غوره کړه.

پورته ذکر شویو دلایلو ته په کتو سره، د پښتون قوم د بني اسرایلو یوه څانګه ګڼل فرضیه او د منځني ختیځ څخه دې ساحې ته د مهاجرت نظریه، هېڅ تاریخي، ژبني، نفوسي، کلتوري او جنیتیکي علمي بنسټ نلري.

***د پښتنو فرهنګ***

احمد شاه مسعود څو کاله د مخه په یوه تدریسي غونډه کې خپلو زده کوونکو ته داسې وویل چې پښتانه یو بې فرهنګه او وروسته پاتې قوم دی! د دې سرببېره بیا په دې وروستیو کې ځینو هزاره او تاجک لیکوالانو د قبیلوي دولت او یا د قبیلې د لغت څخه په استفاده یې د افغانستان حکومتونه د قوم، قومونو، قبیلې او قبیله یي حکومت معرفي کړي او په خبرواترو کې پښتانه په تحقیر امېزه ډول «پس مانده»، «بې فرهنګ»، «بدوي»، «ابتدایي» او داسې نورو اصطلاحاتو څخه په کار اخیستو معرفي کړي دي. د دې ناسم او قوم پالنې اصطلاحاتو په استعمالولو سره د تاجک او هزاره ځوانانو په فکر او عقیده غلط اثر اچولی دی، بالخصوص د پښتنو په مقابل کې د دوی د روش او نظر، په مجموع کې پر ټول پښتون قوم یې ډېر منفي اثر کړی، هره ورځ ټولنیزې او انټرنیټي رسنۍ د دې شاهد دي. دا خبره او تګلاره تر هغه مخته ولاړه چې یو داسې باعلمه او پوه شخصیت لکه والسمشر محمداشرف غني ته چې د هغه با فرهنګه کورنۍ د څو نسلونو څخه په کابل ښار ژوند کړی او همدا راز په کابل کې زېږېدلی، د نړۍ په ډېرو پرمختللو هېوادونو او ښارونو کې لوی شوی او د نړۍ په غوره پوهنتونونو کې یې زده کړې کړې «کوچی» او «د قبیلوي» خطاب کړی. راځئ سره وګورو چې فرهنګ څه شی دی او د پښتون د فرهنګ مقایسه د تاجک او هزاره ګانود فرهنګ سره څه ده!

د سلهاوو موجوده تعریفونو په ترڅ کې زما په نظر د فرهنګ"Culture"، دا لاندې تعریف ډېر د اعتبار وړ دی: «فرهنګ د پوهې، علم، عقیدې، ارزښتونو، کړنلارې او مادي وسایلو ټولګه ده چې بشري ټولنه په ورځني ژوند کې او د نورو ټولنو په هکله د هغې څخه استفاده کوي، او دا مجموعه یا ټولګه په متداومه توګه پرمختګ کوي او نورو نسلونو ته پاتې کېږي».

د پورتني تعریف په اساس ایا پښتانه، په هغه شکل چې احمد شاه مسعود څو کاله مخکې په یوه تدریسي غونډه کې خپلو زده کونکو ته ویلي وو، یو بې فرهنګه او وروسته پاتې قوم دی؟ د دې مسئلې څېړنه اسانه ده. د فرهنګ انعکاس او ښوونه په څو شیانو کې تر ټولو پورته او جوته وي؟ ایا د کرهنې سیستمونه په تاجک مېشته سیمو(پروان، کاپیسا، پنجشیر، غوربند، سالنګ او بدخشان) کې د ننګرهار، کنړ، لغمان، پکتیا، کندهار او هلمند څخه غوره او عصري دي؟ د دې پوښتنې ځواب منفي دی. ایا کرنیز مناسبات په تاجک مېشته سیمو کې نظر پښتون مېشته سیمو ته بهتر دي؟ یو ځل بیا د دې ځواب منفي دی. ایا هنري نوښتونه او هنري خلاقیتونه په تاجک مېشته سیمو لکه پروان او بدخشان کې د ننګرهار او کندهار څخه غوره دي؟ یو ځل بیا ځواب منفي دی. ایا ټولنیزې او سیمه ییزې اړیکې په تاجک مېشته سیمو کې نظر پښتون مېشته سیمو ته بهتره دي؟ پرله پسې، ځواب بیا منفي دی.

په همدې اساس، دغه ادعا چې د تاجک فرهنګ د پښتون له فرهنګ څخه غوره دی، دا په کومو عناصرو کې ښکاره کېږي؟ احمدشاه مسعود په اورګون او ګردېز ښارونو کې چې پښتنو اوسېدونکو سیمې دي، د تاجکانو اوسېدل د مثال په ډول وړاندې کوي. ایا دا سمه ده؟ نه نا سمه! باید په یاد ولرو چې په اورګون او ګردېز کې تاجکان یو اقلیت دی چې اقلیتونه د ځمکو خاوندان نه وي. تاجکان په اورګون او ګردېز کې اقلیت دی، په فیوډالي ټولنو کې د اقلیتونه نورې نړۍ ته په کتو مجبور دي چې حرفوي کارونه لکه تجارت، او صنعت باندې کار وکړي. تاسو هندوان او سېکانو

ته وګورئ په ننګرهار، پروان او کندهار کې. یهودانو ته په ټوله نړۍ کې وګورئ. دا ټول اقلیتونه په ښارونو کې مېشته صنعتګران او سوداګر دي دا ځکه چې ځمکې نشي اخیستی. په دې اساس دا فرضیه سمه نه ده.

ایا پښتنو یو شین او په مېوه رسېدلی د خراساني فرهنګ دولت مات کړی او د دې دولت په ماتو یو بې فرهنګه قبیلوي دولت ور تپلی؟ ډاکتر صیب نظر مرادي په یوه مقاله کې چې نوم یې «از احمد شاه ابدالي تا عبدالرحمن خان» د خراسان زمین په انټرنیټي جریده کې د قوس ۲۸، ۱۳۹۰ ه. ل داسې لیکي:

«د نادر افشار خراساني مرګ په ۱۷۴۷ز کال کې د تازه سیاسي بدلونونو سبب شو چې د ایران او لوی خراسان په سیمو کې د هغې څخه وروسته بیا په هند او ماورالنهر کې د جغرافیایي قید سبب وګرځېد په دې ترڅ کې احمدخان ابدالي یا دورانی د غلجیو قوم رییس په لاس د څو پښتنو قبایلو څخه جوړ شوی د افغانانو د حکومت بنسټ په کندهار کې کېښودل شو. د هغې څخه وروسته د خراسان سیاسي حاکمیت د کندهار په محوریت کې پاتی شو، چې د دې قبیلې د نظامي پراختیا شرایط یې مهیا کړل د هغه هېواد لپاره چې وروسته یې نوم «افغانستان» کېښودل شو. احمد شاه ابدالي و توانید چې د پښتنو قبیلو لپاره یو حکومت د لوی خراسان پر ځمکو ودروي [صاحب نظر مرادي، «خراسان زمین» انټرنیټي جریده چاپ ۲۸ قوس، ۱۳۹۰ ه. ل].

په دې مقاله کې کار شوي اصطلاحاتو قوم، قبیله، او قبایلو د «وروسته پاتې»، «بې فرهنګه»، «بدوي»، «ابتدایي» کلماتو څخه په تحقیر امېزه توګه استفاده کاملا واضح ښکارېږي. په داسې حال کې چې د پښتنو قبیلو د ارزښتونو پر اساس «پښتنولي» د یو ټولنیز کود د یوې مثبتې پدیدې په شکل د پښتنو رهبرانو حاکمیت ته ټولنیز مشروعیت ورکړی او د دوی د ټولنیز او نظامي قدرت لاره یې هواره کړې ده.

حقیقت دا دی چې په دوه سوه تېرو شویو کلونو کې د میرویس خان د قیام څخه او د هوتکي سلسلې د جوړېدو او بیا د احمد شاه دوراني او مغولو، صفویانو او نادر افشار پر دې سیمو باندې حکومت کړی.د صاحب نظر مرادي د لیکنو په اساس د لږ معلوماتو لرونکی تاجک او یا هزاره ځوان بیا داسې فکر کوي چې ګني پښتانه په لوی خراسان کې یو پس پاتې او په قبیلوي اساساتو ولاړ حکومت په لوی خراسان او ایران کې د یو ډیموکراتیک او پرمختللی جفرسوني چې د بشري حقوقو احترام پکې موازي وو د صفویانو او نادر افشار په وخت کې اداره کېدو، ځای پر ځای کړی! واقعیت هغه دی چې شاه اسماعیل صفوي خپل درباریانو ته حکم وکړ چې د شیبک خان اوربک د مړه بدن غوښې وخوري! د ایراني تلوېزون څېړونکي او خبر رسوونکي (بهرام مشیري) په قول د صفوي حکومت ګورګین خان ته امر وکړ چې پر سني مذهبه افغانانو د هېڅ نوع ظلم څخه دریغ ونکړي. همدا راز نادر افشار خراساني؛ په خراسان او نورو ښارونو کې دومره ظلم وکړ او انسانان یې ووژل چې د هغوی سره یې خپل زوی هم ووژلو او د ډهلي د خلکو په عام وژنه یې پیل وکړ،څو بلاخره د ده شاه او خواته خپلو کسانو یې سر له تنه بېل کړ او مړی یې په بیابان وغورځاوه!

نن هېڅ شاعر، لیکوال، معمار، نظامي افسر، د استعمار ضد رهبر، دیني عالم چې تاجک ټبر او هزاره وي، په یاده شوې زمانه کې یې ژوند کړی وي او تاریخ یې پاتې وي، موږ ته معلومات نشته دي. ولې برعکس دا میرویس خان هوتکي، شاه محمود خان هوتکي، شاه اشرف هوتکي او احمد شاه ابدالي وو چې خپل قومونه یې د پردیو ښکېلاکګرو په

وړاندې تجهیز او یو موټی کړل او نه یوازې د پردیو سلطه یې ختمه کړه بلکې د صفویانو امپراتورۍ یې هم نسکوره کړه. ایا د پښتنو رهبرانو دا قیامونه او لاسته راوړنې ټول تصادفي دي؟ او که د پښتنو قبایلو طبیعي او منطقي تکامل او پراختیا په دې سیمه کې د دوی د رول تاکونکی وو چې د دې ټولو لاسته راوړنو سبب شو؟

د پښتنو رهبرانو د بریالیتوب لامل څه وو؟ ایا د دوی بین الاقوامي پر مختللی سیستم د دوی په بریالیتوب کې برخه درلوده او که نه؟ لومړنی یې میرویس خان او د هغې څخه وروسته بیا احمد شاه ابدالي د پښتون قومونو په حساب تر ټولو لوی قوم چې په دې سیمه کې مېشت دی، د خراسان څخه تر کندهار، کابل او پېښور پورې وو. دوهم یې د پښتنو رهبرانو د هغه شرایطو څخه پوهه او معلومات وو چې په خوسا شوې صفوي، مغولي او افشاري امپراتوریو کې موجود وو چې ویې شوی کولی د هغې څخه د پښتنوالۍ په ګټه کار واخلي. درېیم یې د یو دموکراتیک قبیلوي سیستم موجودیت وو چې د پښتنولۍ د ټولنیز کود سره چې د پښتون رهبر حاکمیت ته یې اجتماعي مشروعیت ورکولو او د نظامي قدرت مرجع یې برابروله. څلورم دا چې په دې هېواد کې مېشت قومونه په مختلفو درجو، د مسلطو سیاسي او اجتماعي شرایطو سره د مغولي هند او فارس صفویانو سره راضي نه وو او بومي زعامت ته یې ترجیح ورکړه. تاجک، اوزبک او هزاره مشران چې په هغې زمانه کې دستونزو په جریان کې وو او بل داچې پښتون قوم په سیمه کې مېشت تر ټولو ډېر نفوس لرونکی قوم وو په فعال او یا په غلي ډول سره د پښتنو مشرتابه چې عملي پوهه یې هم درلوده د مشرانو په توګه منلي وو او د دری سوه کلونو په تېرېدو سره په هېواد کې د یاد قبایلو څخه د جدایی غوښتنې کوم حرکت یا جنبش نه دی ښکاره شوی.

د افغانستان د خپلواک دولت د جوړېدو څخه وروسته، د بابري، صفوي او افشاري نه پاتې هېواد کې چې نن افغانستان نومېږي، پښتنو دري ژبه په هم هغه پخواني شکل سره د خپلې رسمي ژبې په حیث مخ ته یوړه. افغان پاچاهانو لکه احمد شاه، تیمور شاه او شاه شجاع په دري ژبه شعرونه لیکل.

ځینو بیا د پښتنو واکمنو کورنیو جګړو ته د ۱۸۰۰ز کال څخه تر ۱۸۸۰ ز کلونو پوره اشاره کوي او دا شخړې د یو پرمختللي فرهنګ نه شتون بولي. په دې کې شک نشته چې دغه جنګونه په ورور وژنې او حتی د ځینو حاکمانو د نیږدې خپلوانو د سترګو ایستلو سبب هم شوې او د اویا کلونو څخه ډېر یې هېواد په ګډوډیو سر کړ، خو باید له یاده ونه باسو چې دا پېښې یا جګړې چې د خپل ورور شاه زمان په مقابل کې شهزاده شاه محمود د انګرېزانو په مستقیم تحریک او د فارس د قاجاریانو د لښکرو په حمایت سره پیل شوې وې، د افغانستان په خلاف د انګرېزانو لومړی او دوهمې جګړې سره سمون وخوړ او د امیر عبدالرحمن خان قدرت ته په رسېدو سره سم ختمې شوې.

ځینې بیا په تېرو دری سوو کلونو کې د هېواد د ورو او پڅ اقتصادي او ټولنیزې ترقۍ او پرمختګ څخه ناخوښ دي. دا باید له یاده ونه باسو چې افغانستان د دوو لویو استعماري لوبغاړو انګلیس او تزاري روسیې په منځ کې راګیر وو، د انګرېزانو سره لومړۍ او دوهمه جګړه یې تېر کړې او کله یې چې خپلواکي واخیستله د اماني علم پالونکی، ترقي غوښتونکی او د تجدد غورځنګ لومړی د ګوډ ملا لنګ له بغاوت سره په پکتیا او وروسته د یو ارتجاعي او د ترقۍ ضد او پوهې دښمن سقاو سره مخ شول او بشپړېد ته یې پرېښنښود.افغانستان په وچه کې ګیر هېواد او د خپلو ګاونډیانو

برخلاف د نفت، گازو او ډیرو طبیعي ذخیرو خاوند نه دی. د نورو معدني منابعو لکه وسپنه او مس څخه استفاده، د یوې خوا ډېرو لګښتونو ته اړتیا ده او له بلی خوا داخلي او بهرني بازار غواړي او د دې د حمل او نقل لپاره زېربنایي لومړني شرایط لکه سړکونه، او د اوسپنې یا د رېل ګاډي پټلۍ او نور بحري بندرونو ته هم لاس رسی نشته. په تېرو څلوېښتو کلونو کې د جګړو دوام د پرمختیایي پروژو د بشپړولو لړۍ هم دروله. په عین حال کې د مجاهدینو حکومت رباني- مسعود وو چې د پاکستان د حکومت سره یې د افغانستان د دولت د انحلال او د ملي اردو د ټوټې ټوټې کولو لپاره لاس یو کړ او د دوی قومي ملېشې د دولت ټوله منقوله او غیر منقوله پانګه، د ملي اردو ثقیله وسلې او مهمات د پاکستان په بازارونو کې خرڅ کړل.

د پښتنو حکومتونو په افغانستان کې د نورو قومونو فرهنګي عناصرو او اجتماعي قشر ته احترام کړی او د دوی په حفظ او ساتنه کې یې کوښښونه کړي دي. د خراسان تاریخي فرهنګ ته به هم هغه ډول په هېواد کې دوام ورکړل شوی، نوی کال یا نوروز په ټول هېواد کې په ازادانه ډول سره نمانځل کېږي، د برات شپه، د یلدا شپه، د شاهنامې لوستل، عروس بېدل او همداراز د محرم د میاشتې احترام، تکیه خانې او د هندوانو او سیکانو د ویساک نمانځنه دا ټول ساتل شوي او دوام لري.

د افغانستان پښتون واکمنو د تګ راتګ خپلواکي، د هېواد په ټولو ولایتونو کې د مېشت کېدو د ځای ټاکنه، د کار او بار خپلواکي،د هر قوم څخه د ژوند د ملګري د غوره کولو خپلواکي یې د ټولو قومونو او قشرونو لپاره له کوم تبعیض او امتیاز پرته تضمین کړې. د کابل، جلال اباد، کندز، مزار شریف، هرات او کندهار ښارونو فرهنګي ځایونه ټول د همدې خپلواک تګ را تګ او د اوسېدو د ځای د ټاکلو او خپلواکۍ نمونې دي. په بدل کې مو ولیدل چې ځینې جمعیتي والیانو په دې وروستیو کې د افغانستان شمالي ولایتونو او سیمو ته د پښتنو د سفر مخنیوی کړی، همداراز د هېواد په مرکزي سیمو کې د کوچیانو د تېرېدو او مېشت کېدو مخنیوی شوی او د موسمونو په اساس د کوچیانو تاریخي سفرونو د مخنیوي لپاره دوی په مختلفو بهانو لارې تړلې دي.

دا باید هېر نه کړو چې د افغانستان د دولت پښتنو واکمنو یوه اندازه ناقلین پښتنو ته د سوېلي او ختیځ د کمو ځمکو یا غرنیو سیمو څخه قطغن، افغاني ترکستان او فاریاب ته اجازه ورکړې چې لاړ شي او هلته استوګنه وکړي، همدا راز بې له کوم تبعیض یې د تزاري روسیې او بالشویکانو د یرغل څخه د امن پاتې کېدو او ځان ژغورلو په خاطر زرګونه تاجک او اوزبک کورنیو ته په بدخشان، قطغن، ترکستان او فاریاب کې د مېشتېدو اجازه ورکړه.

## د پښتنو ټولنیز سیستم

### ***د پښتنولی اصول***

الیور روی په خپل مشهور کتاب کې د افغانستان په هکله (الیور روی، اسلام او په افغانستان کې مقاومت، کمبرېج، دوهم چاپ ۱۹۹۰ ز) د پښتنو مدني کود ؛ پښتنولي؛ یې ؛دموکراتیک؛بللی دی (۳۶ص) او داسې لیکي ؛په قومي زونونو کې یو مثبت مدني کود یا اساسه د پښتنولی په نوم شته چې دا سیستم د جرګو په اساس ولاړ دی. پښتنولي له یوې خوا یوه ایدیولوژي ده او له بل لوري د مدني حقوقو یوه ټولګه هم جوړوي. د قبایلي مدني کود یا اساسه په خپل ذات کې

غیر مذهبي دی دا قانون، یا پښتنولي حتی شریعت سره هم په ځینې ابعادو کې مخالف دی؛.الیور روی داسې لیکي چې په غیر پښتون ټولنو کې د جزایي قانون اصلي اصول د ؛شریعت؛ پر بنا ولاړ دي اما په داسې حال کې د شریعت څخه پیروي کول یوازې د یو شعار او معیار په نامه پاتې دی، نور هېڅ سیستم وجود نه لري چې د هغې ځای ونیسي؛ (۳۵ص). په نتیجه کې په طبیعي شکل سره په هغو کلیو کې چې غیر پښتانه هلته اوسېږي، د کلیو او سیمه ییزو واکمنو او زورواکو لخوا او محلي رهبرانو، محلي دیني مشرانو مطلقه زورواکي هلته پلې شوې او د هغې افراطي شکله استعمال او پلي کېدل په هغه کلیو کې چې هزاره مېشت دي یا هزاره جاتو کې ډېر لیدلی شو.

صاحب نظر مرادي لیکي:

احمد خان چې د زمان خان زوی د ابدالي قبیلې رییس، هم د خپل اقتدار او سیاسي حاکمیت د خپرولو او د خپلو رقیبانو په وړاندې د رضایت د تر لاسه کولو په موخه په ۱۷۴۷ زکال کې په کندهار کې د جرگې څخه استفاده وکړه او د هغې فیصله یې قانوني او ملي بڼه یې ورته ورکړه...احمد خان د قبیلوي ټولنو اړیکو ته په کتو سره په دنده سپارلو او د مقرریو کار یې تر لاس لاندې ونیوو... د قبایلو مشرانو، لویانو د لاربښوونو مطابق اساسامې او دیني، سیاسي او نظامي چارو کې په کار واچولې.د دې مقرراتو د نوم اخیستو څخه دا روښانه برېښي چې احمد خان یوازې پر فقه او د اسلامي شریعت په ټول اړخیزه مانا اکتفا ونکړه او خپل د قبایلو سم او غوره مقرراتو او مدیریت لپاره یې د ځانگړو قبیلوي مقرراتو اړتیا احساس کړه.[صاحب نظر مرادي،خراسان زمین، ۲۷ د قوس، ۱۳۹۰ه ل]

مرادي دا زیاتوي : په هر حال پادشاه د یوې خاصې قبیلې یا قوم پورې تعلق لري (تر ۱۸۱۸ ز کاله پورې د ؛سدوزیو؛ او تر ۱۸۷۸ ز کال پورې د بارکزیو د قبیلې څخه او د هغې څخه وروسته بیا محمدزیو) قبیلو تر منځ د ودونو کولو په پایله کې، چې د ساتنې او مراقبت او د نورو غیر دوراني قبایلو د په قدرت کې داخلېدو لپاره یې لاره خلاصه کړه، دا عموما د هغه میندو د غوښتنو څخه منشاء واخیستله چې خپلو زامنو ته یې د قدرت د سپارلو غوښتنه کوله. پُستونه او چوکۍ د دوراني قبایلو تر منځ تقسیم شوې، ټاکنې یا د یوې (لویې جرگې) له لارې او یا هم توري او ټوپک د استعمال له لارې شوې. دا جنگونه اکثرا سمبولیک شکل لري، او په دې خاطر چې ټول د قدرت غوښتونکي (مدعیان د قدرت) د دوراني قوم څخه دي، تصمیم نیول د غیر دوراني قبایلو لخوا سرته رسېدو؛. [هم هلته]

په دې کې شک نشته چې جرگې او لویې جرگې د پښتنو قومونو یو دود دی.هېڅ څوک هم دا شک نه لري او دا یې نه دي ویلي چې دا سیستم د لوېدیځو ټولنو د دموکراسۍ په اساس جوړ او بیا انکشاف ورکړل شوی. اما دا ډول جرگې د تاریخ په لړۍ کې د افغانستان مختلفو قومونو ته د مهمو او ملي تصمیمونو د نیولو لاره همواره کړې ده. که د تېرو نیږدې کلونو مثالونه په نظر کې ونیسو. د بن کنفرانس تصمیمونه چې یوازې بیا د یوې لویې جرگې د تصمیم څخه وروسته مشروعیت پیدا کړ او د هغې څخه وروسته د ۲۰۰۴ ز کال لویه جرگه چې د افغانستان اسلامي جمهوریت اساسي قانون یې تصویب کړ. ما ته حتی د یو هزاره او یا اوزبک مشر معلومات نشته چې ویلي وي دا لویه جرگه یو پس پاتې او یا قبایلي عمل دی او د دې خلاف یې څه خبره کړې وي. مگر دا ډول تحریم د ډاکټر عبدالله لخوا په ۲۰۱۳ ز کال کې د مشورتي لویې جرگې په مقابل کې چې د جمهور رییس حامد کرزي لخوا دعوت شوی وو،

وشو او د خپلو طرفدارانو په شور ماشور سره د لويې جرګې د ذليل کولو او تحقيرولو لاس پورې کړ.او د هغه تشکيل يې د يوې ملي  شورا په موجوديت کې غير لازم او يو نه منل شوی قبيلوي دود وبللو.عبدالله او د هغه پيروان داسې ګڼي چې حامد کرزي لويه جرګه د دې په خاطر راغوښتې وه چې د امريکا سره د امنيتي تړون د لاسليک مخنيوی وکړي. د دې سره سره چې حامد کرزي داسې کومه غوښتنه نه درلود، اما د هغې د غوښتنې پر خلاف لويه جرګه د امنيتي تړون تصويب وکړ او دا يې ثابته کړه چې په خپلواک  ډول سره کولی شي چې د حاکم د غوښتنی خلاف تصميم و نيسي او نهايي يې اعلان کړي. د ورځو او ژوند د عجايبو څخه يو دا دی چې همدا عبدالله عبدالله او پيروان يې نن بې صبرانه د لويې جرګې د جوړېدو په انتظار دي، د دې په خاطر چې يوازې او يوازې لويه جرګه کولی شي چې د هېواد په اساسي قانون کې تغيرات راوړي او د لومړي وزير نوی مقام د افغانستان د حکومت په جوړښت کې اضافه کړي او د دې رول ته د افغانستان په حکومت کې مشروعيت ورکړي.

هغه کسان چې د طالبانو تحريک ته يو پښتون قومي تحريک يا حزب نوم ورکوي، په دې پوهېږي چې د ؛پښتونولۍ د ارزښتونو په داخل کې تضادونه موجود دي او د طالبانو د تحريک د ژورو مذهبي عقايدو څخه بې خبره دي. پورته مو د صاحب نظر مرادي نقل قول ولوست چې احمد خان ... د خپلو قبايلي مشرانو د لارښوونې په خاطر د دې ډول ديني، سياسي او نظامي اساسنامې څخه استفاده وکړه. د دې ډول مقرراتو څخه په ښکاره ډول جوته ده چې احمد خان يوازې او يوازې په فقهې او اسلامي شرعي احکامو اکتفا ونکړه د خپلو قبايلي مشرانو د ځانګړيو مقرراتو ضرورت يې د خپلو قبايلي مشرانو او د دوی په مديريت کې احساس کړ، د احمد شاه ابدالي لخوا د مقرراتو او قوانينو د وضع کېدو علت دا وو چې د (پښتنولۍ) اصول لکه چې د اليور روی له ژبې مو هم ولوست، د قانون په سطح د شريعت سره په تضاد کې   دي. د پښتنو په سنتي ټولنو کې پښتانه، په کليو او باندو کې د ملا مقام په دومره سطح نه دي، لکه د غير پښتنو په کليو او سيمو کې چې دی، په ځانګړې توګه بيا په هغه سيمو کې چې هزاره قبيلې هلته مېشت دي. د دې نښانې ټوله ورځ د تلوېزون له لارې د هزاره وو او د دی د هوادارانو لخوا د محمد محقق د لاسونو مچې کولو موږ عيني شاهدان يو. د ملا او د روحاني اشخاصو رتبه  په هزاره جاتو کې، د شيعيه افغانانو په سيمو کې، د رهبر، پېشوا په توګه صرف تقليدي رتبه ده. خو د پښتنو په ټولنه کې ملا بيا داسې کوم مقام نه لري.د ملا نقش په سنتي پښتون مېشته سيمو کې يو مشورتي نقش دی چې تصميم نشي نيولی. دې ته په کتو د طالبانو د تحريک او د پښتنو د  دود او دستور تر منځ يو مرکزي تضاد موجود دی.

بايد هېره نه کړو چې طالبان د مذهبي  مدرسو توليد شوي عناصر دي چې د پاکستان په پښتون مېشته سيمو کې روزل شوي. اکثر دغه کسان په پاکستان کې د مهاجرينو په کمپونو کې زېږېدلي، هلته لوی شوي، په وهابيت او د هغې په اساساتو د محمدي شريعت د لارښوونو څخه لرې تربيه او روزل شوي. سعودي عربستان په پيسو او د سعودي او وهابي پاکستاني امامانو لخوا ورته درس ورکړل شوی.د دوی د اکثريت په فکر او خيال کې د افغانستان سره تاريخي تعلق، د افغانستان ملي شتمني او ارزښتونه، د پښتنولۍ اصول او د افغانستان نيشنلېزم نشته او شتون نه لري. د دې يو مثال د باميانو بودايي مجسمې تخريبول موږ وليدل. د درې سوه کلونو راهيسې د پښتنو حکومتونه چې د پښتنولۍ د دود او دستور سره سم حکومتونه وو، په دې مجسمو د ملي شتمنۍ په نوم او حيث لاس هم نه وو پرې وهل شوی. په داسې

حال کې چې طالبانو د مذهبي تعصب له مخې بالخصوص د ای اېس ای په همغږۍ او هندوستان سره د ضدیت په خاطر د دې د ورانولو څخه خوند اخیست.د دې سره سره طالبانو د خپل د حکومت په وخت کې د هغو دودونو او رواجونو چې په پښتون مېشت سیمو کې رواج او پلي کېدل، مخنیوی ونه شو کړی او تر سره کېدل.

باید په نظر کې ولرو چې هغه حکومتونه چې په یو قبیله باندې استواره وي، او هغه هم په داسې هېواد کې چې ډېرې قبیلې هلته اوسېږي لکه افغانستان چې په دې کې تاریخي ځایونه لکه خراسان، سیستان، بلوچستان، زابلستان،کابلستان، ترکمنستان، بدخشان، غرجستان، افغانستان او نور شامل دي، په دې قادر وو چې د درې سوه کالو څخه ډېر د هېڅ کوم جدي تحریک،جدایي یا بیلتون غوښتونکي، یا تجزیه غوښتنې پرته ادامه ولري.جالبه بیا دا ده چې د جمهوري ریاست په اخري ټاکنو کې (۲۰۱۴ز کال) د لسو څخه زیات نوماندانو بیا په خپلو سیاسي او اجتماعي دریځونو کې د تجزیه غوښتنې حتی د فدرالېزم موضوعات هم شامل کړي وو.د دې عوامل بیا توماس بارفیلډ د خپل کتاب په سریزه کې (د افغانستان فرهنگي او سیاسي تاریخ) تر عنوان لاندې ذکر کړي، چې دوراني پاچاهانو د ۱۷۴۷ څخه تر ۱۷۷۸ ز کلونو کې سره د دې چې د پښتنو له اجتماعي نظام څخه یې سر پورته کړی وو، اما د خپلې واکمنۍ اساس یې د حکومدارۍ پر دې مودل کېښود چې د کورنیو په داخلي سلسله مراتبو ولاړه او مستحکمه وه او په دې شکل یې تنظیم کولو. دې زمامدارانو د قبیلوي دموکراتیک مودل د تطبیق کولو څخه د پښتنو قبایلو په سطحه موجود وو، مخنیوی او لرې کولو (توماس بارفیلد، ۴ ص).؛ په دې اساس د پښتنو واکمنو وکولی شول چې د سلطنت او زمامدارۍ مدعیان او یا غوښتونکي د قوم او قبیلې له چوکاټ څخه وباسي او په یوه محدوده کورنۍ دایره کې داخل کړي او په دې ترتیب د ممکنه مخالفتونو څخه مخنیوی وکړي.

دا تاریخي واقیعتونه د پښتون ستېزه او پښتون ضد د دروغو تبلیغاتو سره سره دا په گوته کوي چې د پښتون ټبرو واکمنو هېڅ فاشیستي کړنې نه دي لیدل شوې.ځینې بیا په هزاره جاتو کې د امیر عبدالرحمن خان کړنو ته اشاره کوي په ځانگړي ډول بیا په درېیمه جگړه کې د قومي ملیشه وو برخه اخیستل چې د زیاده رویوو او د دوی په اسارت نیولو سبب وگرځېدې ته اشاره کېږي دا حادثې له شک پرته د رباني-مسعود د حکومت د کابل پر افشار باندې د حملې بڼه لري، چې د هزاره قوم په خلاف د نه بښونکي جنایاتو سبب شول.په عین حال کې له یاده مه وباسۍ چې دا حادثې ۱۲۰ کاله د مخه شوې دا نن موږ په داسې حالت کې وینو، موږ د اوس وخت د بشري حقوقو په رڼا کې ورته گورو، د ټولنیز عدالت د اصولو په اساس او د هغه خپلواکۍ په تضمین چې موږ ته یې اساسي قانون راکوی. امیر عبدالرحمن خان همدا راز د قلات غلزي،د پکتیا او ننگرهار په پښتنو قومونو لښکر کښۍ کړې وې او په نورستان یې هم لښکرې ور ویستلې وې. نو په دې اساس موږ گورو چې د دې ډول لښکري لاریونونو منظور او مرام د ځانگړو قبیلو او طایفو په مقابل فاشیستي عمل نه بلکې د افغانستان د حکومت د مستحکم ساتلو او د ملوک الطوایفی د ختمولو او په هېواد کې د سولې د تامین په خاطر اقدامات گڼل کېدی شي. دا له یاده مه وباسۍ چې د هزاره مشران د امیر عبدالرحمن خان د التوماتوم د پیغام یا مکتوب په مقابل کې د درېیم ځل حملی د مخه د هزاره جات د یو خپلواک هېواد په نامه یاد کړي وو (د امیر عبدالرحمن خان د خاطراتو کتاب).

یو شمېر نور بیا طالبان د پښتون د قوم حامیان بولي او داسې وایی چې دغه ډله د پښتون قوم د سیاسي او اجتماعي اهدافو لپاره کوښښونه کوي. حقیقت دا دی چې د تېرو شلو کلونو په ترڅ کې د طالبانو تحریک د یو اجتماعي، سیاسي او نظامي ځواک په شکل په افغانستان کې فعال دی، د هېواد پر امنیتي، سیاسي او اجتماعي اړخونو یې ډېر تاثیر کړی دی. د طالبانو ډله د سیاسي او فکري له نظره د یو افراطي او پس پاتې نظریاتو خاوندان دي چې د پرمختللي علمونو، د تعلیم او تمدن په چارو کې، اجتماعي،حقوقي، دولتداري، تشریع او اوسنۍ زمانې سره جوړښت نشي کولی. نه یوازې طالبان د پښتنو قومونو د موخو او هیلو په یو پر مختللې ټولنه کې نه دي، بلکې د دوی د تفکر ډول او د حکومتدارۍ اساسات او رېښې د افغانستان د حکومتدارۍ د تاریخ سره متقاوت او په تضاد کې دي.

له هېڅا څخه به دا پټه نه وي چې د طالبانو او حقاني ډله د پاکستان د استخباراتي سازمان له لوري د میلیونونو افغان مهاجر ځوانانو او ماشومانو په موجودیت په پاکستان کې او د افراطي مدرسو او مذهبي طلابو په منځ ته راوړلو سره، تجهیز او روزل شوي او ځانګړي هدایات ورته شوي دي. د دې سربېره بیا دا ډله د مالي، ځاني، تبلیغاتي، روزنځای او پټنځای او مذهبي، افراطي احزابو او د پاکستان د رسمي حزبونو ملاتړ لري چې په پښتون مېشت سرحدي سیمو کې د زرګونو تروریستي مدرسو په جوړولو سره د افغانستان په خاوره کې د اختلاف او نا امنو سیمو کې په موازي ډول سره، دا ټولې سیمې یې د معاصرې ښوونې او روزنې څخه لرې ساتلې او د نړۍ د تروریستي ویروسونو د روزنې او پالنې ځالې جوړې کړې دي.

په دې کې شک نشته چې د طالبانو د ۱۹۹۶-۲۰۰۱ز کلونو حکومت د منځنیو پېړیو په څېر یو مذهبي او غیر متمدن حکومت وو چې د شرایطو څخه په غلط استفاده کوم چې په افغانستان د مجاهدینو انارشي مسلط وو په افغانستان کې حاکم شول، خو دا دې منځنیو پېړیو رژیم په عمل کې افغانستان په یو پس پاتې، د پاکستان سره د ژورو ستراتیژیکو اړیکو په تړلو وابسته او مزدور، د هندوستان لپاره په یو خیالي تهدید بدل کړو.

مګر په عین حال کې د طالبانو حکومت د خلکو ځاني او مالي خوندیتوب تامین کړ، د خلکو ناموس یې د اوباشانو د تیري څخه وساتلو چې د رباني-مسعود د انارشۍ حکومت په وخت کې روان وو، او تنظیمي انارشۍ ته یې خاتمه ورکړه.

په تاسف سره چې د بن کنفرانس کې د افغانستان حکومت، په ځانګړې توګه د هغو ډلو ته چې د امریکا په مرسته یې د طالبانو له منځه وړلو کې مرسته کړې وه بالخصوص شورای نظار ته وسپارل شو. دا سیاسي دسیسې،د طالبانو تحریک او د پاکستان ملي اردو ته دا زمینه مساعده کړه چې د افغانستان ته یو اشغال شوی هېواد او حکومت ته د قومونو او اقلیتونو لاس پوڅی نومونه ورکړي او خپل تروریستي فعالیتونو ته د ازادۍ د تحریک تر نامه لاندې یوه ملي بڼه ورکړي.

یا له پوهې یا له ناپوهۍ څخه، خو ځینو احزابو او سیاسي فعالینو چې د پښتنو ضد دي په افغانستان کې د جګړې دوام او د افغانستان سیاسي بحران ته د قومي مبارزې نوم ورکوي او لاسي د طالبانو عملیاتو ته د پښتون قومونو عکس العمل د افغانستان د تاریخي مشرتابه د بیا لاسته راوړلو لپاره یو حرکت بولي. دا راز کسان د دولتي قدرت د انحصارولو،

د معتدل پښتنو موجودیت،تحصیل یافته او پوه مسلکي او مترقي پښتانه د افغانستان په ټولنه یا حکومت کې نه غواړي،هغه چې د طالبانو د فکر ضد دي، هغه په نظر کې نه نیسي او د پښتون قوم په ضد خپل ناسالم تبلیغاتو ته ادامه ورکوي.

په تاسف سره باید ووایم چې فیسبوک او نورې رسنۍ د پښتون ضد نشراتو، تحقیر او توهین امېزه مسایل، د پښتون د فرهنګ او د پښتون د قوم ضد د ستمیانو، جمیعتیانو،د شورای نظار د ډلو، هزاریستانیانو او فارسیستانو څخه ډک دی. په داسې حال کې چې کله کله د دې مسلح ډلو اوباشان په خپلو دولتي موټرو کې د کابل اوسېدونکو ته خپل فاشېزم خوندي وښايي. د دی ډلو سیاسي او نظامي مشران د شپاړس کالو راهیسې د قدرت په انحصار سره، سیاسي، اقتصادي او نظامي تېروتنه او سو استفاده کړې، تاریخي او ملي شتمنۍ،ګمرکي عواید د هېواد د کانونو غیر قانوني استخراج، د دولتي قراردادونو اختلاس،د بهرني مرستو اختلاس، د دولتي ځمکو غصب، د دولتي شتمنیو خرڅلاو، د دولتي بودیجې اختلاس، د ټوپکو او جنګی وسایلو قاچاق او خرڅلاو او د مخدره موادو قاچاق او نور د فساد څخه ډک کارونه او معاملې اجرا کول په تجارتي، شخصي او فامیلې جوړونیې، په مهمو دولتي رتبو کې دوستان د شایستګی په نه نظر نیولو سره مقررول او په کار ګمارل او په پایله کې قاروني ګنجونو او سرمایو په لاسته راوړلو توانېدلي دي. دا ټول بیا د حبیب الله کلکاني د حکومت تجربه او د رباني-مسعود وخت هېڅ وخت د یو لوړ او غوره فرهنګ نښاني کېدی نشي.

**دویم- تاجکان**

په افغانستان کې د تاجکانو نفوس د اووه او اته میلیونو په منځ کې اټکل شوی دی، چې د پښتنو څخه وروسته د نفوس له لحاظه دوهم قوم دی. د تاجکانو نفوس په منځنۍ اسیا کې (اکثر په تاجکستان او ازبکستان) هم د شپږو میلیونو په شاوخوا کې اټکل شوي دي.په مجموع کې د تاجکانو چې په دې کې د نورو هېوادونو تاجکان هم شامل دي، کولی شو د پنځلس میلیونه کسانو په اندازه اټکل کړو. په همدې اړوند پروفیسر حق نظر نظروف دا باور لري چې تاجکستان د تاریخ لیکوالانو د تاجک د پیدایښت تاریخ د ماورالنهر او منځنۍ اسیا په محدوده کې منلی دی... په داسې حال کې چې ٦٢ سلنه تاجکان په افغانستان کې ژوند کوي... دوي د مادي او معنوي فرهنګ جوړولو په برخه کې د دوی سهم د ماورالنهر د تاجکانو څخه ډېر زیات دی (د تاجکانو مقام د افغانستان په تاریخ کې، دوشنبه، ۱۹۹۹ ز کال)

تر اوسه پورې د تاجکانو د نوم، قومي ریښه، پلرونه، تاریخي هویت او نورو په اړه کار پوهانو او سیمه ییزو علماوو او څېړونکو څېړنې کړې او ډېر کتابونه تالیف او لیکلي دي.

ډاکټر احمد جاوید داسې لیکلي: زموږ د تاریخ په مختلفو دورو او ادب په پاڼو کې د تاجک ملیت په لاندې مختلفو نومونو ذکر شوی. چې هر یو په خپل ځای توضیح او تشریح لري: تاژیک، تازیک، تژیک، تات، ابناالاحرار، بني احرار، احرار، ازاده ابناه، ازاده زاده ګاه، ازاد نژاد، دهقان،دهګان، غلچه، دهوار، فارسیوان، سرت یا سارت او داسې نور؛. (جاوید،عبدالاحمد، اکادمیسین ډاکټر، اوستا، کابل۱۳۸۳ه ل)

د مرکزي اسیا اوسېدونکو په لومړیو کې د تاریک (تاجک) نوم د مسلمانانو لپاره کارولو. د ترکانو د ښکاره کېدو سره سم، دا کلمه یې هغه طایفې ته چې ترک نه وو، استعمالوله، مغولانو هر هغه چا ته چې د دوی د ډلی څخه نه وو تاریک (تاجک) ویل.

د فارسي دري ژبې په قاموسونو او فرهنگونو  له دهخدا لغتنامه؛ قاطع برهان؛ فرهنگ معین؛ او نفیسي فرهنگ؛ کې تاجک د غیر عرب، غیر ترک او غیر مغول په مانا راغلی دی. په برهان قاطع قابع کې د تاجک یا تازیک مانا، د عرب څخه پیدا، یا په خراسان کې د عرب لومړی اولاد ذکر شوی دی (د محمد معین لخوا بیاچاپ شوی ۱۳۳۰ه ل کال تهران). باید یادونه وکړم چې د تاژیک د کلمې ترکي کېدل بیا تاجک دی او موږ پوهېږو چې د پارس په دري کې عرب نژاده کس ته تازی،  وېل کېدل او عربي ژبه د ؛تازي ژبې په نامه یادېده.

په همدې اساس په اوسني افغانستان کې هغه کسانو ته چې پښتون، هزاره یا ترک نه وي تاجک ویل کېږي.

میرزا شکور زاده، چې یو تاجک څېړونکی او لیکوال دی د (تاجکان د تاریخ په اوږدو کې) کتاب لیکونکی دی، داسې لیکي، د تر سره شویو څېړنو په اساس، د منځنی اسیا په اکثرو سیمو کې هغه خلک چې پارسي غږېږي، ایران، افغانستان، تاجکستان او حتی کشمیر او کاشغر خپل ځانونه تاجک معرفي کوي.

همدا راز ځینې په دې نظر دي چې تاجکان د ترکانو د ظهور څخه د مخه (په شپږمه پېړۍ کې) په دې سیمو کې مېشت وو.... تاجکان د منځنی اسیا په سیمو افغانستان او ماورالنهر کې مېشت وو (مریم میراحمدي، د تاجک قوم او د تاجک هنر په منځنی اسیا کې، تاجکان د تاریخ په اوږدو کې تهران ۱۳۷۳ه ل، ۲۳۸ ص).

د دې باور په اساس د منځنی اسیا په بومي اوسېدونکو کې یوه یو طایفه ؛دادیک؛ په نامه یادېده، چې دوه زره او پنځه سوه کاله پخوا په همدغه سیمه کې مېشت وو. د وخت په تېرېدو یې د خپلو گاونډي قومونو سارتان، خوارزمیان، سغدیان  او نورو سره گډ ژوند وکړ، په تدریج سره د ؛تاجک؛ نوم ترې جوړ شو چې د ؛دادیک؛سره مترادفه کلمه ده او د تاجدار او تاج اغوستونکي، د زردشتیانو د دورې څخه ورسته مشهرو شول، ځکه چې زردشتیانو تاج لرونکې خولۍ په سر کولې او هغوی ته یې ؛تاجي یا تاجک ویل(د تاجکان؛ اریایان او فلات ایران  د کتاب څخه، د میرزا شکورزداده اثر تهران ۱۳۸۰ه ل).

ولادیمیر بارتولد چې د روسیې یو ختیځ پېژندونکی وو، د تاجک د نوم په پیل کې د تاج کلمه د جوړښت له مخې عربي او د دې زمانه یې په سیمه باندې د عربو د حملې د ختم سره سم بللې ده (ولادیمیر بارتولد، میرزا شکورزاده، تهران ۱۳۸۰).

عبدالغني د خوارزم تاجک یې سارت او د بخارا تاجکان یې تاجک نومولي دي. ځینې په دې نظر دي چې تاجک د پهلوي کلمې تاژیک بدلون دی، د تاجک پخوانی ډول د تاژیک په شکل همغه دادیک اصطلاح ده دې هرودوت چې د نورو تورو په سلسله پارا داتا – پر دادیک او پېشدادي د اساطیرو د دورې څخه د مخې بې ارتباطه نه ده. په همدې اساس دادیکان د تاجکانو پلرونه دي. د دادیک DODIK  کلمه چې د دادگر او عادل مانا لری هم راغلی

دی، د اوستا د فقهې په کتاب کې يې هم ذکر شوی دی. دادیک DO-TIK هم لوستل کېږي او د مقدس سیند (امو) او د بدخشان پر جغرافیه په اریانا ویجه کې یې ذکر شوی (پروفیسور حق نظر نظروف، ۱۳۸۲ه ل).

د تاجک نوم کله د ترکانو لخوا تاجکانو ته، کله تازیانو او عربو او کله هم بر عکس تر استفاده شوې ده.استد میرزا تورسن زاده وایي چې د تاجک نوم د پیل څخه د ټولو د مخه ټولو پارسي ژبو ته چې عجم وو کارول شوی.

د افغانستان تاجکان اکثرا په لاندې ډلو وېشل شوي: د ښار تاجکان (کابل، غزني، بلخ او هرات)، غرني یا کوهستان تاجکان(پروان، نجراب، پنجشیر او غوربند)، د بره کي تاجکان بره کي برک، لوګر او بتخاک د غلزیو په ګاونډ کې)، فورمولي تاجکان (په اورګون کې د خروټو د قوم په منځ کې )، د سرده تاجکان (سوېل– د غزني ختیځ) کې مېشته دي.

داسې وېل کېږي چې په بدخشان کې تاجکان (غلچه) د غرونو په لوړو کې د غره شاه ته په لویو ښارونو رستاق، چاه اب، یتفل،راغ او ...کې ژوند کوي.د ارګو سیمنه د کشم او فیض اباد تر منځ او نور ډېر نفوسه کلي یې اکثر ترکان دي.د فیض اباد په ختیځ کې چېرته چې له بحر څخه د ځمکې سطح نوره هم لوړېږي، په دې سیمو کې اکثر تاجکان مېشته دي. په دې اساس د بدخشان د لوی رودخانې(کندوز او کوکچه )سره نیږدې ډېرې پر ثمره ځمکې چې اوبو ته نیږدې دي د ترک او هزاره د خلکو مېشت ځایونه بلل کېږي. د تاجکانو د غرونو په لوړو کې د مېشته کېدو له امله د غرچه – د غرو مېشته پېشوند ورته اضافه شوی چې د دوی د نوم ښه تمثیل کوي.

د غلچه د کلمې په هکله (د غرونو مېشته تاجکان) اشاره د پامیر د درې د اوسېدونکي په مانا دی چې په دواړو ژبو (فارسي او پامیري) دوی خبرې کوي، په تېرو څو کلونو کې یوه ډله په دې عقیده وه چې روشانیان، شغنانیان،یزغلامان او دینیان او وخیان تاجک نه دي.

ډاکټر عنایت الله شهراني تاجکان د قرقیز او قره قلپاق د نسل څخه بللي دي. دا د تاجکانو منسوبیت د قرقز ترکانو ته، قره قلپاق، قزاق او ترکمنو ته د لوېدیځ د علماوو لخوا د ډي ان اې DNA د څېړنو پایله وه چې د فرانسوي عالم په مشرۍ سره ته رسېدلې، دا تحقیقات د ۲۰۰۹ ز کال د سپتمبر میاشتې په دربیمه پنجشنبه په ورځ د بي بي سي راډیو له لارې خپاره شول او بیا د بي بي سي له ویبسایټ د افغانستان تر عنوان لاندې په دري، اوربیکي، پښتو او فارسي برخو کې (د جنین پېژندنې نوي تحقیقات ترک او تاجک یو دي) په نامه خپاره شول. دې څېړنو په ګوته کړه چې داخلي قومي توپیرونه د بین الاقوامي توپیرونو ته په کتو سره په ترکتبار او تاجک قومونو کې ډېر دي. دا نوې څېړنه په ګوته کوي چې د ترک او تاجک قومونه چې د ورېښم لارې په اوږدو کې ژوند کوي، د شجرې او مېشت پېژندنې د علم په اساس د یو بل څخه ډېر توپیر نه لري. دا څېړنه په ترک او تاجک خلکو باندې د جنین پېژندنې د نمونه اخیستلو په اساس د ۲۴ قومونو او قبیلو څخه د ۱۰۰۰ څخه په ډېرو کسانو په منځنۍ اسیا کې تر سره شوې، دا ښکاره کوي چې جنیتیکي څېړنې، قومي توپیر د دې دوه ژبو او ډلو تر منځ ډېر نه دی او په سلو کې د یو څخه کمه فیصدي ښکاره کوي. د دې په خلاف، دا جوته شوې ده چې داخلي قومي توپیرونه، په ځانګړې توګه د تاجکان په منځ کې، په مراتبو ډېر دي نظر د فارسي ژبو تاجک قومونو، قرقیز، قزاق، ترک او قره قلپاق او منځنۍ اسیا تر منځ دې قومي

تفاوتونو ته. دا څېړنه ښکاره کوي چې ترک او تاجک قومونه له پېړیو څخه د یو بل سره وو یو ځای اوسېدلي تر هغه چې په دوه ډلو د تاجکانو او ترکانو تقسیم شوي.

د جینیتیکي توپیر او د منځنۍ اسیا د قومونو د پیدایښت څېړنه د یو بین المللي تحقیقاتي ډلې لخوا د اولین هې یر(Evelyn Heyer) په مشرتابه سرته ورسېده، چې مشهور د خلکو پېژندنې فرانسوی عالم دی، چې تفصیل یې د سپتمبر میاشتې په لومړۍ نېټه په؛ بي ام سي جینیتیک؛ BMC Genetics انټرنیټي مجله کې خپور شو.

د پورته نتایجو په نظر کې نیولو سره بل ټکی چې د ژبپوهنې عالمان پرې همېشه تاکید کوي دا دی چې باید چې ژبه یوه اجتماعیی پدیده ده او د خلکو څخه نورو خلکو ته، د نژادي او قومي تفاوتونو څخه پرته لاس په لاس کېږي.

ځینې لیکوالان د تاجکانو په تاریخي پېښو کې د اسلام د راتلو څخه وروسته په سیمه کې نه ښکاره کېدل د تعجب اظهار کوي. پروفیسور جاوي په دې هکله لیکي چې تاجکان د اصیل زاده ګانو، اصلي خلک او دهګان زاده، ازاده او احرار په صفتونو یاد شوي. معلومه ده چې د بزګر یا دهقان، تجار او هنرمندان چې د سولې اصول مراعاتوي او سوله غوښتونکي. دګه او سولییز ژوند غوښتونکي دي، دا د دوی د ژوند اصلي عنصر دی او دا یې د ژوند مهمه تګلاره وه، او دوی تیري کوونکي، یرغلګر او بد کار کونکو ته د کرکې په سترګه کتل او نفرت یې ورڅخه کولو. په همدې خاطر د عرب، ترک او مغول د ښاري اوسېدونکو په وړاندې په همدې وسیله ژوند کولو، د مقابلې او جنګ پر ځای د غرونو لوړو او صعب العبور سیمو ته شاتګ کولو(جاوید، عبدالاحمد، اکاډیمېسین ډاکټر، اوستا،کابل ۱۳۸۳ه ل). ممکن د غرچه د نوم ټاکنه (د غرو مېشته) ځینو تاجکانو ته په همدې اساس وي او د دوی د مېشته کېدو علت په کوهستان د بدخشان او پنجشېر په دره، غوربند، تګاب او نجراب کې همدا علت وي.

### دریېیم – هزاره ګان

هزاره ګان چې په ایران کې دوی ته بربري یا خاورې هم ویل کېږي، لکه چې پورته مو ولیدل ۹ تر ۱۲ په سلو کې د افغانستان نفوس جوړوي. د دوی اصلي وطن مرکزي ولایتونه لکه بامیان، غور، دایکنډي او غزنی دي.په همدې دلیل پخوا یې د افغانستان مرکزي سیمو ته هزاره جات ویل. د یوې خوا انزوا،د تجارتي او اقتصادي منابعو نشتوالی، د مواصلاتو لپاره د نښلوونکو لارو نه شتون او د هېواد د نورو مناطقو سره د معاملاتو د کچې د نه اضافه کېدو له وجهې د تاریخ په اوږدو کې د دې سیمو د پس پاتې کېدو سبب شوې. د بلخوا څخه په افغانستان کې هزاره ګانو د پېړیو څخه دلته ژوند کړی د دوو نظرونو څخه، یو اقلیت دی، دا چې د دوی مذهب هم د افغانستان د اکثریت د مذهب سره توپیر لري، او همدا راز هزاره ګان ظاهرا د افغانستان د نورو خلکو سره په څېره یا شکل کې هم توپیر لري. دا علتونه د هزاره ګانو په پرمختګ نه کولو او په چاپېریال کې د دوی د نقش د کموالي سببونه ګڼل کېږي. مګر په خیرو ۱۸ کلونو کې په تدریجي ډول سره د هزاره ګانو نقش د سیاست، اقتصاد او اجتماع په برخو کې حیاتي رول لوبولی او د دوی نفوس لویو ښارونو لکه کابل، مراز شریف، هرات ته تللی دی. د دې په خاطر د مناسبې فرهنګي فضا، د هزاره ګانو په ټولنه کې د برخه اخیستلو او په ښوونځیو او تعلیمي موسساتو کې د هزاره ښځو او نجونو برخه اخیستل ورځ په ورځ ډېر او د روښانه راتلونکې شاهدي ورکوي.

د هزاره د نژاد ربښې په اړوند متاسفانه ډېره څېړنه څومره چې لازمه ده سرته نه ده رسېدلې. په هغه تحقیقي اثارو کې چې لاس ته راوړلی شو، هم د نظر اختلاف پکې شته دی.په دې اړوند ښاغلي سید محمد رشا علوي د ؛سادات افغان؛ په وېبپاڼه کې د حوت میاشتې په ١٦ د ١٣٩١ ه ل کال داسې لیکلي:

هغه کسان چې د هزاره د ټبر په هکله د څېړنې ادعا کوي، همدغه کسانو نن دا حال په هزاره ګانو راوستی دی:

الف – هزاره د مغولو له نسل څخه دي:محمد افضل ارزګانی، یونس طغیان، عزیز طغیان، حسن فولادي، عیسی غرجستانی، حسین علي یزداني، سید عسکر موسوي او ... ازره ګون د کویټې د دې نظر د ټولو مخکښ دی.

ب- هزاره د ترک څخه یوه فرقه ده، اکبر خان نرګس،ناصري داوودي، اسدالله والوالجی، سیرت طالقاني، بصیر احمد دولت ابادي او غالب د شمال د ساحې هزاره ګان (چې د اوزبکانو په ګاونډیتوب کې مېشته دي) په دې باور دي.

ج- هزاره اصیل اریایي نژاد دی:محمد علي افتخاري ورسي (اریانپور) فاضل کیاني جاغوري،شوکت علي محمدي جاغوري، چمن علي ګرشستاني او غالب، د مرکزي سیمو هزاره څېړونکي په دې باور دي. څنګه کولی شو اریایي؛ اوسو په داسې حال کې چې د فېزیولوژیک له نظره د اریایي اصلي ټبر سره متفاوت دي؟؛

د- هزاره د ترک او تاجک یو جوړښت دی: شېخ نظر علي موحدي کیسوي (په خپله تاجک ټبره دی) په یوه لیکنه کې چې د افغانستان قصیده؛ نومیږي لیکلي دي (٥:ص)

په دې اړوند ډېر متناقضه نظریات وړاندې شوي دي. علي نجفي د افغانستان د قومونږ رنګین کمان په کتاب کې، د هزاره قوم نسبت نیږدې لس قومونو ته ورکوي او احتمال لري چې هزاره د تبتي قوم څخه وي لکه تبتي قومونه د کشمیر په لاداخ کې، د پاکستان په اسکاردو او بلتستان کې... هغه خلک د افغانستان د هزاره ګانو سره ډېر زیات شباهتونه لري.

په هر صورت د دې نظریاتو څخه یو هم ثبوت شوی نه دی او ټول غیر علمي او په کوم اساس او حساب ولاړ نه دي، مګر د احساساتو، شخصي ذوقونو، بې اعتباریو او یا د انحراف له نظره لیکل شوي.

ایا کولی شو چې په ټول هزاره قوم یو حکم صادر کړو؟ لازمه ده چې د هزاده قوم باید بېل بېل وکتل شي چې ایا تیره ترک دی، یا تیره مغول، یو یې تاجک دی بل ترکمن یا بیات دی.

ځینې هزاره لیکوالان د خپلې ربښې په اړه دا لاندې پوښتنې کوي:

- ایا هزاره ګان د دې هېواد بومي اوسېدونکي کسان دي؟
- کومه شاخه بومي هزاره ګان دي او کوم یې مهاجرین یا برده ګان دي؟
- که هزاره ګان بومي دي، ولې هزاره ښار او تمدن نه لري؟
- ولې هزاره ژبه، ادبیات او صنایع موجود نه دي؟

هزاره خپله ژبه چې ځینې هزاره ګان هغې ته هزاره ګي وايي د دري تاجکي څخه اخيستل شوې. د هر قوم او مليت لپاره چې کله خپله ژبه يې نه وي، نو د هغه قوم ځانګړی تمدن هم امکان نه لري.ځکه ژبه د تمدن او فرهنګ اساس دی او د ټولنپوهانو باور دا دی چې  هر هغه حکم چې د يو ملت ژبه يې لري، د هم هغې حکم د هم هغې ملت پر تمدن هم صدق کوي. د اکاډيميسين ډاکټر اسدالله حبيب په قول  ژبه يو ژوندی ارګانېزم دی د هر بل ژوندي مخلوق په شکل د زېږېدو تاريخ انکشافي مراحل، ناروغي، روغتيا، ځواک، کمزوري او حتی مرګ لري. د يوې ژبې زېږېدل د يو تمدن زېږی ورکوي، او د يوې ژبې مړينه د يو تمدن د مړينې خبر ورکوي.

په دې خاطر ګرشستانی او د هغې خپرې شوې ليکنې ؛ د ملي  هويت د پېژندنې اړتيا او د هزاره تاريخي ټولنه؛ تر عنوان لاندې، ټول د هزاره انسان د ورکېدو خبرې کوي، چې ډېر مفصل او صريحه مسايل دي. نور وګورئ دربيمه شمېره (ص: ۲۱ ۳۹ او ۴۰) داسې ليکي:

د دې په هکله فکر کول چې موږ څوک وو؟ په کوم ځای کې مو اجتماعي او سياسي ژوند کړی؟ اوس څوک يو؟ او ولې په دې ورځ او حال ګرفتار شوي يو؟ د خپل ځان په هکله فکر کول، علايم، سمبولونه او د هزاره کس پخوانی هويت، د فکر طرز د دې په اړوند چې د ټولنې پلرونه او نيکونه چې نن د هزاره په نامه پېژندل کېږي څوک څوک وو؟

رضاعلوي ليکي چې ؛دا معلومه ده چې دا يو نظر هم کوم اساس او پايه نه لري او د هزاره ټولنه يې قانع کړې نه ده، ځکه چې پر اسنادو او شواهدو ولاړه او مستحکمه نه ده، هر يو يې تخيلي دی يا د شخصي اغراضو په اساس، يا مصلحتي چې د ټولو اشاره يو څو مشترکو ټکو ته کېږي. هغه هم هغه ټکي او نومونه چې خپله خاوند هم نلري؛(سيد محمد رضا علوي، خپرونکی د سادات افغان جريده ۱۳۹۱/۱۲/۱۷ ؛ http://sadateafghan.persianblog.ir/post/6

د هزاره ګانو ځينې با سواده خلک دا کوښښ کوي چې خپل جينيتيکی هويت، په تير تاريخي وخت کې ورک شوی هويت د د تاريخي ځايونو په اساس ځان ثابت کړي نوی او تازه هويت ځانته جوړ کړي، يو جعلي خراساني او اريايي هويت چې د ايراني تلوېزونونو د پردو شاته ناست د ايراني پوهانو د خندا وړ وګرځېدل.دا خبره تر دې حده رسېدلې چې که څوک نن د هزاره نصب مغولي وګڼي دا په دې مانا دی چې لکه هزاره ته د توهين کړی وي. په داسې حال کې چې ۴۱۱ کاله پخوا د ظهير الدين بابر په وخت کې چې دی په کابل کې وو او هزاره ګان په هزاره جات کې اوسېدل هغوی يي معرفي کړي او داسې يې ليکلي چې ؛اکثر هزاره ګان تر اوسه د مغولي ژبې او اصطلاحاتو څخه استفاده کوي (بابر نامه، انګليسي ژباړه انت سوزانا بيوريج، لندن ۱۹۲۲ز کال ( بايد په ياد ولرو چې بابر په خپله د مغولو د برلاس قوم څخه وو. په خپله بومي ژبه يې خپل خاطرات په بابرنامه کې ليکلي او په وياړ سره يې د مغولو د اصل او نصب، د خپلې لويې امپراتورۍ چې په نړۍ کې تر ټولو لويه امپراتوري وه، يادونه کړې.

## د هزاره ګانو نفوس د افغانستان د ټول نفوس په پرتله!

زموږ يو هزاره ورور چې دوراندېش دوراندېش نومېږي په فېسبوک کې پوښتنه کړې چې ايا د شپږ ميليون هزاره وګړو امير عبدالرحمن لخوا عام قتل ته تقبېح او محکومې که نه؟

د دې ور هاخوا چې ما په خپلو لیکنو کې په کراتو په هغه زمانه کې په هزاره ګانو د شویو ظلمونو نیوکې کړې او لیکنې مې کړي، د ښاغلي دوراندېش دغه پوښتنه باید په ډېر دقت سره ځواب شي. موږ باید یو ځای سره حساب وکړو چې د هزاره ګانو اصلي تعداد څو کسان دي او د امیر عبدالرحمن خان په وخت کې څو کسان په قتل رسېدلي دي؟

که ۱۳۰ کاله پخوا شپږ میلیونه هزاره ګان یا د دوی د ادعا په بنسټ د هزاره ګانو شپېته سلنه نفوس عبدالرحمن خان قتل کړي وي، نو د هزاره ګانو نفوس هغه وخت باید لس میلیون ته رسېدی! که دا وګڼو چې هزاره ګان د افغانستان د نفوس لس سلنه جوړوي، نو په دې حساب د افغانستان ټول نفوس د عبدالرحمن خان په وخت کې یا د اوس زمانې څخه ۱۳۰ کاله مخکې باید سل میلیونو ته رسېدو. په دې حساب د نفوس د کلني زیاتوالي د سلنې په نظر کې نیولو سره یو سل او دېرش کلونو وروسته د افغانستات ټول نفوس باید ۱.۳٦ بیلیونو کسانو څخه هم زیات وی چې د واقعیت څخه ډېره لرې خبره ده. باید دا ومنو چې د ریاضي په حساب سره د عبدالرحمن لخوا د شپږمیلیونو هزاره ګانو د وژلو خبر نا ممکنه او نا سم خبر معلومېږي!

ښاغلی دوراندېش په بل ځای په افغانستان کې د هزاره ګانو اوسنی نفوس اته میلیونه اټکل کړی، او وایي چې عبدالرحمن خان د هزاره ګانو څلور شپېته سلنه نفوس قتل عام کړي! باید دا ادعا ارزیابي کړو:

په دې حساب که عبدالرحمن خان د هزاره ګانو عام قتل نه وی کړی، نن باید د هزاره ګانو نفوس ۲۲ میلیونه او دوه سوه زره کسانو ته (۲۲.۲ میلیون تنه) ته به رسېدی.که دا سم وي نو د هزاره ګانو ټول نفوس یو سل او دېرش کاله پخوا باید ۱٦.۵ میلیونه وی، چې په دې حساب او د کلني نفوس د زیاتېدو د سلنې په حساب سره د افغانستان نفوس په کال کې دوه سلنه اضافه کېږي چې ۲۲۱ میلیون ته به رسېدلی وی چې د پاکستان او ایران د نفوس څخه زیات دی.

لکه څنګه چې لیدل کېږي یو سل او دېرش کاله پخوا د امیرعبدالرحمن خان لخوا د هزاره ګانو د نفوس شپېته سلنه دقتل عام احصائیه د ریاضي د منطق سره او د نفوس د علم سره نا سم معلومېږي او له مبالغې ډک ښکاري حد اقل شپږ نیم ځلې د واقعیت څخه پورته مبالغه شوې ده.

د عبدالرحمن خان د امارت د کلونو ۱۸۹۰ ز د نفوس بهترین اټکل چې موجود دی، هغه پنځه میلیون کسان دي چې د یو سل او دېرشو کلونو څخه وروسته د ۳۵ میلیونه نفوس سره سمون خوري.کله چې د افغانستا ټول نفوس ۱۸۹۰ ز کال کې پنځه میلیونو ته رسېدو، نو په هغه وخت کې د هزاره ګانو نفوس کېدای شي پنځه سوه زره تنو ته رسېدو چې بیا د ۹.۴ سلنه بې ځایه کېدل او قتل عام دا تعداد د عبدالرحمن خان لښکر کښیو ممکن ۴۵ زره کسانو ته رسولی وي، د دې سره سره چې د قومي میلېشو او سرتېرو شمېر له مبالغې ډک ښکاري مګر د هزاره ګانو لپاره یو ډېر لوی مصیبت وو چې د هر اړخه د تقبیح وړ دی.

## د مغولو سره د هزاره ګانو جینیتیکي ورته والی

څه وخت محمد محقق پوښتنه کړې وه چې ایا کومه د ډي ان اې څېړنه او پلټنه شوې چې هزاره ګان د مغولو د نژاد څخه ګڼل کېږي؟ اتفاقا د انګلستان اکسفورډ پوهنتون د محمد محقق دې پوښتنې ته ځواب وېلی دی. د دې پوهنتون د ډي ان اې د څېړنو پایله چې د سایمن مایرز تر سرپرستۍ لاندې سرته رسېدلې وه او نتایج یې په ۲۰۱۶ ز کال په لندن خپاره شول د هزاره ګانو او ځینو ترکانو جنینتیکي مشابهتونه یې د مغولانو سره ښکاره کړي چې د جینینو د یو ځای کېدو زمانه او وخت یې په ۱۳ پېړۍ کې د مغولو یرغل او مهاجرت ښودلی دی. او همدا راز د پاکستان د شمال لوېدیځ سیمو د کلاشو جینیتیکی شباهتونه یې د مقدونیه د خلکو او د مقدوني سکندر د حملې د وخت او د یونان باختري دولت د جوړېدو سره تثبیت کړي دي. همدا راز د ایران د جینینو شباهت یې د ترکیې د خلکو سره ښکاره تثبیت کړي دي.

په دې مطالعه او څېړنه کې د نفوس ۹۵ ډلې د نړۍ له ګوټ ګوټ څخه وڅېړل شوې چې په هغه کې پاکستان، د پاکستان پټان، د پاکستان د شمالي سیمو کلاش، ایرانیان، ترکان، د مغولستان خلک، انګرېزان، چینایان او نور شامل وو.

### څلورم – د افغانستان ترک ټبران

ترکان یا د ترک ټبر د افغانستان یو تاریخي مېشته لوی قوم دی. اوزبک او ترکمن د ترک ټبرو د قوم لویې شاخې تشکیلوي، په داسې حال کې چې ځینې(په دې جمله کې الفنستون،۱۸۱۰ ز کال) هزاره ګان او مغول دواړه په ترک ټبرو کې حسابوي، قرغېزان، قزلباش، ایماق، او بیات هم کولی شو د ترک ټبرو قوم په ډله کې حساب کړو.

اوزبک او ترکمن په حدود د ۹-۱۲ سلنه نفوس د افغانستان تشکیلوي. اکثریت د ترک ټبار نفوسد هېواد د شمال ختیځ څخه تر شمال لوېدیځ (بدخشان، تخار، بغلان، سمنګان، بلخ، سرپل، جوزجان، او فاریاب) مېشته دي.د بادغېس، هرات، کابل او نورو سیمو او ولایتونو کې هم د ترک ټبرو وړې وړې کتلې ژوند کوي.

ترک ټبر د افغانستان د ډېر پس پاتې او تر نورو محروم قومونو څخه ګڼل کېږي. د نقیب الله عبید په لیکنه کې؛ د دې لوی قوم د پس پاتې کېدو او محرومیت تر ټولو لوی عامل د سیاسي استازیتوب کموالی او د سیاسي استازیتوب نشتوالی دی، او د مرکزي دولت تبعیض امېزه سیاستونو کې کولی شو دا په ننبه کړو... اما د دولتي کارمندانو په مقررولو کې د دې ملیت حیصه د ۲ سلنه هم کمه ده، هغه هم په ډېرو ټیټو رتبو کې، د مالیې وزارت په ۱۲۰ ریاستونو کې یو کس هم د ترک ټباره قوم څخه نه دی مقرر شوی . هغه وزارتونه چې مرکزي تشکیل یې د ۵۰۰ څخه زیات دی، نشي کولی هلته ۱۰ ترک ټباره ومومې. نیږدې د ۱،۲،۳ بستونو نیم سلنه د ترک ټبرو څخه نه دي مقرر شوي. دا خپله د مرکزي حکومت د تبعیض امېزه سیاستونو ښکارندوی او د ترک ټبرو د سیاسي استازیتوب د کموالي او ظرفیت پایله ده (نقیب الله عبید، د د افغانستان د ترک تېرو ملي او بین المللي پټانشیل ۱۳۹۵ ه ل)

د افغانستان ترک ټبرو د دې هېواد په لرغوني تاریخ او تېرو څلوېښتو کلونو کې مهم رول لوبولی.د لرغونو ترک ټبرو د سلسلې څخه کولی شو د غزنویانو، د هرات تیموریانو او په کابل کې د بابری د حکومت یادونه وکړو. همدا راز په تېرو څلوېښتو کلونو کې د ملي جنبش او نورو سیاسي او نظامي پېښو کې د جنرال عبدالرشید دوستم او د هغه د ملګرو د رول څخه یادونه وکړو.

### د افغانستان جینیتیکي جوړښت

**جینیتیک** (په فرانسوي کې ژنیتیک Genetique ) (په انګلیسي کې جینیتیکس Genetics) (د یونانی yevetikit رېښې څخه چې د پیداښت مانا ورکوي اخیستل شوی) یا **پیدا کول یا افرینش پېژندنه** د چاپېریال پېژندنې څانګې یا د حیات پېژندنې یوه څانګه ده، چې د ژوندیو موجوداتو په وراثت باندې تمرکز کوي.

د افغانستان د نفوس او قومونو په په برخه کې ډېر دقیق جینیتیکي مطالعات د انګلستان پورټ سموث پوهنتون عالم لخوا په اخیرو کلونو کې سرته رسېدلي چې نتایج یې دپلوس وان جریدې په یوه تحلیلي مقاله کې د مارچ په اتمه ۲۰۱۲ ز کال خپاره شوي، دا ښکاره کوي چې د پښتنو او د افغانستان د تاجکانو جینیتیکي شباهت ډېر سره ورته دی او همدا راز دا ښکاره کوي چې د افغانستان تاجک او پښتون قومونه د جینیتیکي نظره د هند د شمال او لوېدیځ د قومونو سره نېژدې دي نظر د قفقاز، اروپا او نننی ایران قومونو ته.

دې مطالعاتو د لومړي ځل لپاره د افغانستان د لویو قومونو تر منځ د Y کروموزوم تر څېړنې لاندې ونیوو.په دې مقاله کې د اوسنیو یا مدرنو افغانانو جینیتیکي ساختمان، جینیتیکي جوړښت او د هغه ډولونه،د تاریخي پېښو سره جینیتیکي تنوع او د ګاونډیانو د نفوس سره حرکاتو اړیکي ارزیابي شوې.

په دې مطالعه کې د افغانستان د پښتنو او تاجکو قومونو تر منځ د جینیتیکي ساختمان شباهتونه او ورته والی ډېر ښودل شوي . همداراز دا مطالعه یا څېړنه دا په ګوته کوي چې د افغانستان پښتون او تاجک قومونه د هند د شمالي ساحې د خلکو سره نظر ترک ټبارانو، هزاره ګانو او د دوی ګاونډیانو یا د نننی ایران او شمالي قفقاز اوسېدونکو ته شباهتونه یا ورته والی ډېر لري، نننی اروپا او ایران کولی شو دې نتیجې ته ورسېږو چې د قفقاز له شمال څخه ایران ته د اریایانو د مهاجرت مخکښنی تیوري نننی افغانستان او له هغه ځای څخه هندوستان ته ناسم دی .

دا څېړنې ښکاره کوي چې د هند او افغانستان د نفوس تر منځ یو ځانګړی جینیتیکي ساختمان شته چې دا جینیتکي ساختمان په اوزبک او هزاره ګانو کې شتون نه لري.همدا راز داسې ښکاري چې د هندوستان څخه افغانستان ته د جنین د انتقال پروسه یوازې په پښتنو او تاجکو قومونو کې شته او بس، حد اقل په دې سیمه کې لومړنی تمدن د سند وادي تمدن،باختر-ماجینیا (د امو او مرغاب سیند شاو خوا تمدن) د انسانانو یا وسېدونکو تر منځ یا له دوی سره موجود وو.څېړنې دا جوته کوي چې د افغانستان لومړني اوسېدونکي، د هند د شمال او لوېدیځ اوسېدونکي، منځنۍ اسیا، ایران او د قفقاز د شمال خلک د جمع وری او ښکار د عصر تر پایه او د زراعت تر پیل ۸۰۰۰ تر ۱۲۰۰۰ کاله مخکې زېږدیز ټول د ګډ پلرونو او نیکونو څخه وو. د زراعت د عصر له پیل کېدو سره، په ځانګړې توګه چې د هېواد

چې موږ یې اوس افغانستان بولو جینیتیک او بیا په ځانګړې توګه د هندوستان او ایران د خلکو سره ورته والی لري. تکامل د قومونو او اجتماعي سیستم بیلتون، په ځانګړي ډول د پښتون او تاجک تر منځ د افغانستان د مسي (برونز) عصر کې یانې د ښاري ژوند د پیل کېدو سره سم پیل کېږي .

څېړنې دا ښکاره کوي چې په افغانستان کې تاریخي مهاجرتونه او لښکر کښۍ پر قومي جوړښتونو ډول ډول اثرات درلودل. دا ډول څېړنې د فارس هخامنشیانو او یونان مقدوني سکندر تاریخي لښکر کښۍ، د دې سره سره چې دا جینیتکي محدودیت د افغانستان د قومونو او د منځنۍ اسیا په ځانګړي ډول د فارسیانو ترمنځ لیدل شوی، اما د دوی هېڅ د ملاحظی وړ ارتباط د مقدونیې او بالکان د خلکو تر منځ لیدل شوی نه دی.

څېړنې دا هم په ګوته کوي چې په اوومه پېړۍ کې د عربو لښکرکښۍ او د دوی د مهاجرت ادعاګانې، په سیمه کې د عربو مېشته کېدل په دې هېواد کې د فرهنګ له لهاظه په سیمه کې لوی تاثیر پرېښئ دی، اما د دې لښکري کښیو جینیتیکي اثرات د دې سیمې په محلي نفوس کې نه لیدل کېږي.

د افغانستان د مروجو ژبو جغرافیایي توزیع هم یوه مغلقه مسئله ده. په داسې حال کې چې د هزاره او اوربک قومونو جینیتیکي جوړښت له یو بل سره ارتباط لري، مګر دا دواړه قومونه د ژبې له نظره په دوه بېلو ډلو وېشل شوي. د هزاره ګانو ژبه د پښتنو او تاجکانو په څېر، د هند او اریایي ژبو پورې تړلې، په داسې حال کې چې اوزبکي ژبه د ترکي ژبو کورنۍ پورې ارتباط لري. داسې برېښي چې په افغانستان کې مروجه اوزبکي ژبه د یوې ترکي ژبې مستقیم ځایناستې وي، چې په پنځلسمه زېږدیزه پېړۍ کې منځ ته راغلې وه. دا په داسې حال کې دی چې د هزاره ګانو او اوزبکانو جینیتیکي بېلوالی د دې زمانې څخه مخکې شوی دی. دا خبره دا په ګوته کوي چې د افغانستان د مشهورو قومونو تر منځ د ژبې اختلافات د فرهنګي تغیراتو په سبب په اخیرو وختونو کې منځ ته راغلي دي.

لکه چې وینو د دې څېړنې پایله، د هغه څه سره څرنګه چې د دې هېواد په برخه کې موږ پوهېږو سر خوري او موافقت ورسره کوي.د مثال په توګه د مغولو د حملی او په سیمه کې د دوی ډېر پاتې کېدل لکه په ماورالنهر خراسان، سیستان، اراکوزیا،فارس، تخارستان، زابلستان، کابلستان او نورو هېوادونو کې د ګوډ تیمور د اولاد پاتې کېدل، په سیمه کې لوی فرهنګي او جمیعتي تغیرات په دې هېواد کې منځته راوړل او د دې قومونو ډېرو خلکو مهاجرت وکړ او په دې سیمو کې مېشته شول چې د جینیتیکي له لهاظه د سیمې د خلکو سره توپیر درلود. دې مهاجرینو د هېواد په مرکزي مناطقو کې ډېرې اوسېدنې او د محلي خلکو سره یوځایوالي په خاطر خپله اصلي ژبه له لاسه ورکړه او محلي ژبې یې ومنلې. د صفویانو په راتګ سره، قزلباش او فارسیان هم په دې سیمه کې مېشته شول او شیعه مذهب یې د خلکو په منځ کې رواج کړ .

## د افغانستان د نفوسو ژبنی جوړښت

له نېکمرغه د هېواد نفوس د ژبني جوړښت په برخ کې احصایوي لومړني معلومات موجود دي. د ۱۳۵۸ ه ل کال په سرشمېرنه کې له خلکو څخه د کورنۍ په سطحه د خبرو کولو پوښتنه وشوه. له دې سره چې لاسته راغلي ارقامو او پوښتنې نتایج اعلان نه شول، مګر دا معلومات د مرکزي احصایې اداره کې موجود دي. دا اداره د نفوس لپاره د ملګرو

ملتونو ملتونو اداري يو ان ايف پي اې UNFPA سره د مقدماتي چارو په سرته رسولو کې د افغانستان د راټلونکې له ۲۰۰۳ څخه تر ۲۰۰۵ ز کال پورې سرشمېرنې کې د هېواد په ټولو کليو او بانډو کې د ټولو کورنيو معلومات راټول کړل، په دې جريان کې يو سلسله معلومات د مجموعي نفوس په هکله راټول شول لکه کور په کور نفوس، ورځنۍ ژبه، د کورنيو محاوره،د روغتيايي مرکزونو شتون، لارې، عمده پيداوار او نور په ټول هېواد او ولايتونو کې د ۳۸ زره کليو څخه راټول شول .

د دې عملياتو يا پلټنې نتايج به کابل کې د مرکزي احصايې د ادارې او ملګرو ملتونو لخوا په يوه مشرکه خپرونه کې د (په ۲۰۰۳ـ ۲۰۰۵ کلونو کې د افغانستان د نفوس دموګرافيکي معلومات) تر عنوان لاندې په انګليسي ژبه خپاره شول .

دا معلومات دا ښکاره کوي چې د افغانستان په کليو کې د ۹ ميليونو څخه لږ اضافه خلک په پښتو ژبه خبرې کوي، د ۷ ميليونو څخه لږ کم په دري ژبه، ۱.۳ ميليون کسان په اوزبکي ژبه،۳۲۹ زره خلک په ترکمني ژبه، ۹۷ زره کسان په بلوچي ژبه، ۲۴۹ زره خلک په پشه يي ژبه،۱۲۷ زره کسان په نورستاني ژبه او ۱۵۳ زره کسان په نورو ژبو خبرې کوي. د ۱۴۶ زره کسانو په اړوند معلومات نه دي ورکړل شوي. بايد يادونه وکړو چې په پورتني ارقامو کې هزاره ګي ژبه د دري ژبې په حساب کې شودل شوې ده .

د کورنيو تر منځ د خبرو ژبو کولو ژبې په هکله معلومات د هېواد د قومونو د پېژندنې او اټکل لپاره استعمالولی شنه شو. د سلګونو کلونو په اوږدو کې په مختلفو سيمو کې د قومونو او کورنيو ځای پر ځای کېدل د خپل قومي سيمې څخه دوی لرې کړي او همدا راز د قومونو تر منځ د ودونو کولو له امله د خلکو ژبې سره ګډې شوې او د سيمې د ژبې سره د کورنۍ محاورې يا خبرې اترې سرته رسېدلې. حتی ځينو د خپل د قوم اصلي ژبه هېره کړې ده. په دې برخه کې کېدی شي د هزاره ګانو څخه يادونه وکړو چې نن په دري ژبه مګر په هزاره ګي لهجه باندې خبرې کوي، د نورزي او ابدالي قومونو څخه چې په هرات کې دي يادونه وکړو چې په دري ژبه خبرې کوي، د بارکزيو، محمد زيو، سدوزيو او نورو څخه چې په کابل کې اوسېږي يادونه وکړو چې په دري ژبه خبرې کوي. همدا راز د ننګرهار، لغمان، کنړ، نورستان، پکتيا، پکتيکا، لوګر، وردګ او نور چې پښتانه دي د کابل ښار کې د مختلط ودونو په سبب د کابل په ژبه چې دري ده خبرې کوي.

# دوهمه برخه: د افغانستان تاریخ ته کتنه

### د سيمې د ګډ تاريخ زمانه

په داسې حال کې چې د تاريخ وړاندې دورې، پخوانی تاريخ او لرغونی تاريخ د هغو سيمو چې نن ورته افغانستان ويل کېږي، د سيمې د ګډ تاريخ څخه ګڼل کېږي چې نن د هندوستان، پاکستان، ايران، تاجکستان، اوزبکستان او ترکمنستان په نومونو پېژندل کېږي، د افغانستان د معاصر تاريخ زمانه د هېواد د سياسي يووالي سره په يو بومي، خپلواک، اسلامي هويت حنفي مذهب او افغاني فرهنګ باندې پيل کېږي.په دی ځای کې کوښښ کېږي د هېواد د تاريخ دوې زمانې په لنډ ډول معرفي شي.

په دې ځای کې د يو هېواد او د هغې د ټولو خلکو تاريخ تر بحث لاندې نيسو نه د يو قوم. که وغواړئ د پښتنو تاريخ وليکئ، د هند پښتانه حکومتونه چې د درې سوه کاله څخه يې ډېر دوام وکړ او نور سيمو کې يې حکومت کړی د ليکنې لويه برخه تشکيلوي. د تاجکانو د حکومت په اړه بايد زموږ د څېړنې مرکز د سامانيانو زمانې منځنۍ اسيا وي، د ترک ټبرو ټول تاريخ د ترکانو، په هند کې مغولانو، د عثماني خلافت او د فارس تاريخ د غزنويانو، سلجوقيانو، خوارزمشاهانو، مغولان، قراقريلو، صفويان، افشاريان، زنديان او قاجاريانو تاريخ سره پيل او د پهلوي واکمنۍ تر پيل پورې يا د ساسانيانو څخه وروسته د فارسي لومړني دولت پورې به په دې کې شامل وي. په دې ليکنه کې د بحث وړ هېوادونه او سيمې چې نن افغانستان نومېږي څوک چې دلته اوسېږي ټول ګډ تاريخ لري.

## له تاریخ څخه د مخه دوران یا پخوانی تاریخ

لرغونپېژندونکې څېړنو د يو تمدني مثلث د موجوديت څخه چې نننی افغانستان د هغې په زړه کې قرار لری پرده پورته کړی. دې تمدني مثلث کې باختر او مرغاب مدنيتونه شامل دي (د امو- مرغاب او هريرود د سيند مدنيت) Bactria – Margiana Civilization په شمال او شمال لوېديځ کې د سند سيند The Indus Valley Civilizationهېواد او مدنيتونه او سراسواتی (هرپه او موهينجو دارو) د نننی پاکستان په سوېل او ختيځ کې. دا دوه مدنيتونه ۵۳۰۰ کاله لرغونتيا لري. د امو د سيند مدنيت، مرغاب او هريرود تمدنونو کې ماورالنهر او لرغونی خرسان شامل دي او د هرپه او موهينجارو کې د هند شمال، پاکستان او د افغانستان سوېل او ختيځ مدنيتونو ځانګې پکې شاملې دي .

د دې لاسته راوړنو او کشفياتو سره سم، لرغونپېژندونکو د اخري جينيتيکي څېړنو سره (پروفيسور ماريار، د انګلستان د پورټسمث پوهنتون) د افغانستان د پښتنو او تاجکانو قومونو رېښې يې د سند سيند د وادي په تمدن کې تثبيت کړې او د ترک ټبروو قومونو (ترک ټبرو کې اوزبک،ترکمن، هزاره ګان، او ايماق شامل دي) هېواد د ماورالنهر په مدنيت (منځنۍ اسيا)، مغولستان کې راځي.

**څلورم چارت: افغانستان د لرغونی تمدني مثلث په زړه کی**




د بلخوا دغه لرغوني او جينيتيکي کشفيات په ريگويدا او اوستا چې د سيمې خلکو مذهبي کتابونه وو کې چې په عتيقه عصر پورې اړه لري او ډېر تاريخی موخذ دی د تائيد مهر لگول شوی دی.،ريگويدا د براهمنه سلسلې د هندوانو مذهبي  کتاب دی چې په سانسگريت ژبه ليکل شوی دی.د ويدي ترانې يا سرودونه د ۱۵۰۰ څخه تر ۲۵۰۰ مخکې زېږديز په هغه سيمو کې چې نن ورته افغانستان ويل کېږي ويل شته و چې بيا په هندوستان کې بشپړ شول، د سيمې د تاريخي اثارو څخه ډېر مهم اثر گڼل کېږي. موږ وېلی شو چې په دې سيمو کې تاريخي دوره د ويدي ترانو يا سردونو سره پيل شوې ده. د ريگويدا په ترانو او شعرونو کې د اريايي خلکو موجوديت يا د اوسېدو ځای هندوکش يا اوسني افغانستان څخه د هندوستان تر شمال پورې ښودل شوی دی. چې د اوو سيندونو په مدنيت کې ژوند کولو چې د هغې جملې څخه موږ د کنړ، کابل، سند او د هلمند سيندونو څخه يادونه کولی شو.

په لاندنی نقشه کې هغه سيندونه چې د رېگويدا په کتاب کې د هغوی نوم اخيستل شوی د انگليسي په لويو حروفو او هغه سيندونه چې د اوستا په کتاب کې د هغه نوم ذکر شوی د انگليسي په کوچنيو حروفو لېکل شوي دي:

**پنځم چارت: د ریګویدا سیندونه**




په دې اشعارو کې د قومونو د مهاجرت څخه یادونه شوې ده چې ډېرو عالمانو د نننې افغانستان د شمالې سیمو څخه د هندوستان لوري ته او ځینو نورو بیا د سراسواتي سیند د تمدن د زوال سره سم ګڼلی چې د ځینو دلایلو له مخې وچ شوی، او د هندوستان له خوا څخه د افغانستان خواته تثبیت کړی دی. وروستني جینیتیکي څېړنې د پښتنو او د افغانستان د تاجکانو تمدن هم د سند سیند تمدن ګڼي په دې خاطر د ختیځ څخه لوېدیځ او شمال د مهاجرت تیوری ته ډېر اعتبار ورکوي.

د سانسګرېت څخه په استفادې د رېګویدا پوهان په اوستا کې راغلو اشعارو په تفسیر باندې ډېر تکیه کوي. اوستا چې باختر د خاورې د زردښتیانو مذهبي کتاب دی ۳٦۰۰ کاله تاریخي قدامت لري. بلخ په زردښت باندې د اوستا د نزول ځای ګڼل کېږي. په اوستا کې د اریانا کلمه یا د ارییو د مېشت ځای ذکر شوی، چې پوهانو د دې موقعیت بیا بدخشان تثبیت کړی دی او د اریا ویجه خلکو مهاجرت شپاړس اوستایي ښارونو ته چې د نننې افغانستان څخه لوی وو او د سند تر سیمو رسېدو، ذکر شوی دی.

د اوستا او رېګویدا چې په ختیځ او لوېدیځ کې د لرغوني تاریخ مهم تاریخي اثر دی هغه دوه معتبر تاریخي کتابونه دي چې د استوره یي دورې څخه د تاریخ مرحلې زموږ مزل په واقعیت کې د دې سره زموږ په هېواد کې پیل شوی دی، او د اکثرو تاریخ څېړونکو اتکا او تکیه هم پر همدې ده. باید یادونه وکړو چې د پخواني فارس او پرژیا د سیمې د خلکو یادونه په دې دواړو کتابونو کې هېڅ راغلې نه ده.

په پخواني عصر یا د تاریخ څخه د مخه د نننې افغانستان سیمې د دوو پُر ثمره مدنیتونو ټاټوبی ګڼل شوی چې هغه مدنیتونه عبارت دي له هغه چې د څلور زره کاله څخه پخوا د امو او مرغاب سیندونه Bactria – Margiana

Civilization مدنیت وو او د سند د سیند Indus Vally Civilization (BCE 1300-3300)چې د افغانستان د شمال او ختیځ څخه د هند تر شمال پورې یې اوږد والی درلود.

د اوستا او ریگویدا کتابونه دوه معتبره تاریخی کتابونه دي چې زرگونه کلونه تاریخي مخینه لري چې زموږ د هېواد استوره یي د دوره څخه د تاریخ مرحلی ته واقعیت او مزل په دغه دوو کتابونو سره پیل کېږي او د اکثرو ختیځ او لوېدیځ لرغون پېژندونکو او تاریخ څېړونکو اتکا هم پر همدې کتابونو باندې ده .باید یادونه وکړو چې د پخواني فارس او پرژیا د سیمې د خلکو یادونه په دې دواړو کتابونو کې هېڅ راغلې نه ده.

نني افغانستان کې مېشت اوسېدونکي د اهورایي اوستا دې شپاړلسو ولایتونو څخه د د نهو ولایتونو(بدخشان،بلخ، فاریاب، هرات، کندهار، کابل، بامیان،هلمند، غزني) اوسېدونکي دي چې د دې ځایونو خلکو په کیسو او تاریخ کې سره یو ځای او گډ ژوندونه کړي. یوازې ری د نني فارس هېواد څخه د اهورایي ولایتو برخه گڼل کېږي. بدخشان، ایرانویجه؛ د اوستا مرکز دی او بلخ زردښت ته د اوستا د نزول ځای دی. که موږ بالفرض د اهورایي ولایتونو خلک د اوستا او ویدا، اریایان؛ و گڼو،دا تعریف بیا د فارس خلکو ته راجع کېدای نشي. د اریا ولایتونه په اوستا کې چې دیوناني مېلاد څخه وړاندې په نقشه کې په وضاحت ښودل شوي دي په دې کې د هندوکش سوېل لوېدیځې ساحې شاملې دي چې هریوا او نننی هرات دی.

ایران شاهنامه همغه د اوستا اران ښار دی چې په بشپړه توگه په نني افغانستان کې واقع شوی دی، د پېشدادي د کیسو شاهانو او کیاني ټول د نني افغانستان خاورې پوره اړه لري او په ځانگړې توگه په بلخ کې دي، د داستان قهرمان رستم، سهراب او گرشاسپ ټول د دې هېواد او ساحې څخه وو.گرشاسپنامه اسد طوسي او د فردوسي طوسي شاهنامه د افسانوي پاچا په توصیف او صفت کې د ایران یا د نني افغانستان په سیمو کې لیکل شوي، نه د فارس په هکله.

د اوستا ژبه همغه باختري، بلخي تخاري ژبه ده... چې د باکتریا او بلخ په حوزو کې منځ ته راغلې ده. اوستایي ژبه د اریایانو پخوانی ژبه ده. په اصل کې د باختر حوزې اریایانو ژبه اري ویل کېږي د ز کال یو زر او یو مخکې زیږدیږ یا د اوستا د کتاب د لیکنې څخه وروسته په اوستایي باندې مشهوره شوه .

د میلاد څخه د مخه ۳۳۰ کال کې کله چې یونانیان د باختر ځمکو ته ورسېدل د دې سرودونو او اسطورو څخه په استفادې یې د امو سیند شمالي ځمکو ته یې باکتریانا، نني افغانستان سیمې ته یې اریانا او شمال لوېدیځ یا خراسان سیمو ته یې پارتیا نوم ورکړ او په خپلو نقشو کې یې په همدې نومونو درج کړل (اراتوستین د میلاد څخه د مخه دریمه پېړۍ) اراتوستین د نړۍ تر ټولو پخوانی نقشه ده چې د میلاد څخه د مخه د دریمې پېړۍ رسامي شوی اثر دی چې مصر د اسکندریه په کتابتون کې موجود دی.

په لاندې جدول کې هغه سلسلې چې د اسلام څخه د مخه یې په نني افغانستان حکومتونه کړي معرفي شوي دي:

## افغانستان:د اسلام د دوران څخه د مخه

| سلسلې | مرجع/تمدن | کلونه | زمانه | د حاکمیت سیمې |
|---|---|---|---|---|
| **هند او اروپاییان (ارین)** | مرکزي اسیا | 1500 | د 550 م ز تر 2000 ز | شمال او لوېدیځ |
| **هخامنشي امپراتوري** | فارس | 216 | د 550 م.ز تر 334 م.ز | ټولې سیمې |
| **مقدوني سکندر** | یونان او اریایي | 4 | د 334 م.ز تر 330 م.ز | ټولې سیمې |
| **سلوسید** | یونان او اریایي | 250 | د 63 م.ز تر 312 م.ز | شمال لوېدیځ |
| **د یـونـان او بـاخـتري سلطنت** | یونان اریایي | 275 | د 256 م.ز تر 10 ز | شمال لوېدیځ |
| **د هند د موریا امپراتوري** | هندي | 136 | د 185 ز تر 321 ز | سوېل ختیځ |
| **هنـد او پـارتیـان، هنـد او شیتن (سکه)** | منځنۍ اسیا/ارین | 112 | د 12 م.ز تر 100 ز | ټولې سیمې |
| **کوشاني امپراتوري** | منځنۍ اسیا /ترک تبر | 315 | د 60 ز تر 375 ز | ټولې سیمې |
| **یفتلیـان(هون) توخـاران سترابي** | منځنۍ اسیا /ترک تبر | 147 | د 420 ز تر 567 ز | شمال او ختیځ |
| **یـفـتلي(هـون) تـوخـاران سترابي** | منځنۍ اسیا /ترک تبر | 83 | د 567 ز تر 650 ز | شمال او ختیځ |
| **ساسانیان** | فارس | 397 | د 224 څخه تر 621 ز | سوېل او لوېدیځ |
| **هندو (کابل) شاهان** | منځنۍ اسـیـا /ترک تبر/هندي | 1588 | د 565 م.ز تر 1026 ز | کـابـل او ختیځې سیمې |

په هېڅ افسانوي اثر، کیسو، تاریخي، حماسي، مذهبي (اوستا) او ترانو یا اشعارو (شاهنامه) محلي، او د اشکانیانو ساسانیانو او د اسلام په دوران کې، د هخامنشیانو او د دوی د پاچایانو لکه کوروش او داریوش نوم نه دی پکې اخیستل شوی. هر هغه څه چې موږ په دې هېواد کې د فارس د هخامنشیانو په تاریخ او ایستیلاگری پوهېږو د یوناني نړۍ

پلټونکو کار پوهانو اثرات دي.د یوناني لیکنو پر بنسټ، د نننی افغانستان شمال او لوېدیځ ساحې د دوه سوه کلونو څخه ډېر (۳۳۴-۵۵۰ د مخکې زېږدیز) د هخامنشیانو لخوا اداره کېدلې.

د فارس د هخامنشیانو څخه وروسته، د یونان باختري دولتونه او سلوکیان د نننی افغانستان په سیمو چې یونانیانو هغې ته اریانا ویل د میلاد څخه د مخه ۲۰۰ CE تر ۳۰۰ BC کلونو کې حکومت وکړ.د دوی څخه وروسته او د دوی سره سم هغه پارتیې چې د کسپین ختیځ خواته یا د اسلامي دورې خراسان کې اوسېدل او د نننی افغانستان په سیمو یې حکومت وکړ د زردښتي دین او د پارتي ژبه (پهلوي اشکاني) یې سیمې ته راوړه او پنځه سوه کاله یې د ۱۹۰ BC څخه تر ۳۰۰ CE زېږدیز یې حکومت وکړ.

ساسانیان چې مرکز یې تیسفون د نننی بغداد په سیمو کې وو د پارتانو سلطه یې ماته کړه او ۳۹۷ کاله د ۲۲۴ څخه تر ۶۲۱ زیږدیز یې په فارس او پارتیا او د نننی افغانستان پر لوېدیځو سیمو حکومت وکړ.په دې زمانه کې د نننی افغانستان په شمال او سیمو کې کاشانیان د شلز کال څخه تر ۲۸۰ زیږدیز پورې، یفتلیان او سپین هونان د ۴۵۵ ز څخه تر ۴۸۴ز پورې، او د هغې څخه وروسته هندوشاهان او کابل شاهان تر ۸۶ز د بامیان، کاپیسا او کابل څخه یې حکومتونو کول.

## لرغونی تاریخ

که موږ د لرغوني تاریخ پیل د خپل هېواد د سیمو د عربو د حملې او د اسلام د دین د معرفي څخه په خپل هېواد کې ومنو دا ټول دوران کولی شو چې په دوه فرعي دورانونو یا زمانو ووېشو: د عربو د مستقیم حاکمیت دوران یا زمانه او د غیر عرب دولتونو د حاکمیت دوران.

## د مسلمان عربو تسلط (۶۷۱ ز څخه تر ۸۲۱ ز)

مسلمان عربو په ۶۵۱ زیږدیز کال کې د ساسانیانو حکومت په فارس کې له منځه یوړ. شل کاله وروسته د مسلمان عربو لښکرو کابل په ۶۷۱ ز کال کې فتح کړ او هندوشاهان او کابل شاهان د حکومت د ساتلو په خاطر عربو ته د باج ورکولو لپاره حاضر شول.

د دوه پېړیو په اوږدو کې د عربو تر تسلط لاندې د نننی افغانستان او ایران په سیمو، د خلفای راشیدینو، امویانو او عباسیانو په حکتومتونو کې حداقل څلوېښت عرب امیران د مرو، بلخ، هرات، طوس، جرجان، او نیشاپور په مرکزونو او د ماورالنهر ولایت چې په هغې کې سمر قند او بخارا هم شامل وو. باندې حکومت وکړ

### غیر عرب سلطنتونه

د هغو سلطنتونو سلسله چې د عربو څخه وروسته یې پر دې سیمو باندې حکومت کړی دا دي طاهریان (۸۲۱ ز څخه تر ۸۷۳ ز)، صفاریان (۸۶۱ ز څخه تر ۱۰۰۳ ز)، سامانیان (۸۷۴ ز څخه تر ۱۰۰۴ ز)،غزنویان (۹۷۷ ز څخه تر ۱۱۸۶ ز)،

غوریان (۱۱۴۸ – ۱۲۱۵ ز)، د سلجوقیانو امپراتوري (۱-۳۷-۱۱۹۴ ز)،خوارزمشاهان (۱۰۹۸ ز څخه تر ۱۲۱۹ ز )، مغول (۱۲۱۹ ز څخه تر ۱۲۷۰ ز)، تیموریان (۱۲۷۰ ز څخه تر ۱۵۰۷ز)، شیبانیان (۱۵۰۰ز څخه تر ۱۵۱۰ ز)، بابري دولت (۱۵۰۴ ز څخه تر ۱۵۳۰ ز)، د هند مغولي دولت (۱۵۳۰ – ۱۷۰۹ ز) او صفویان (۱۵۱۰ز څخه تر ۱۷۰۹ ز) پورې.

د صفاریانو، غزنویانو،غوریانو، د هرات تیموریان او مرکزي د بابري حکومتونه د دوی څخه دا حکومتونه د نني افغانستان په جغرافیاییي محدوده کې حکومتونه وو. مګر د غزنویانو، د هرات تیموریانو او د کابل بابري دولتونه د یوې خوا څخه یې پلازمېنه د نني افغانستان خاوره وه او د بلې خوا څخه د عباسي خلافت څخه خپلواک بغداد او د هغې څخه وروسته د مغول ایل خانان وو.

د بابر څخه وروسته د د ډهلي څخه مغولي حاکمانو پر کابل او د افغانستان په ختیځ او شمالي سیمو حکومت کولو او د صفویانو دولت چې د شیعه مذهبي هویت یې درلود او د نني افغانستان غوڅ اکثریت نه وو د اصفهان څخه پر کندهار، هرات او د افغانستان په لویدیځو سیمو حکومت کولو نیږدې دوه سوه کلونو لپاره. د نني افغانستان د هندوکش ځینې شمالي سیمې د پردیو دولتونو لخوا چې مرکزونه به یې په ډهلی، اصفهان او بخارا کې وو، اداره کېدلې.

د نصب او قومي اصلیت څخه سر بېره، د دې ځمکې پخواني حاکمانو د واضح کولو په خاطر د حکومتونو هغه سلسلې چې مرکز یې د نني افغانستان د ښارونو څخه په یو ښار کې وو،هغوی ته د دې هېواد بومي حاکمیت یا حاکمان نوم ورکوو.د دې تعریف په اساس د افغانستان وروستي بومي حاکمان په ۱۷۰۹ ز کال کې د میرویس خان هوتکي دولت جوړېدل، په (۱۵۱۱-۱۵۳۰ ز کال کې) د بابر دولت په کابل کې او په (۱۳۷۰-۱۵۰۰ ز )په هرات کې د تیموریانو وو.

د سامانیانو څخه د مخه د نني افغانستان ساحې، ماورالنهر یا منځنۍ اسیا او نننی ایران د بغداد څخه عباسي خلفاوو چې عرب وو، تر حاکمیت لاندې او په دوی یې حکومت کولو.د دې سره سره چې طاهریان د خراسان څخه وو او مستقلانه یې حکومت کولو، اما خپل دولت یې د عباسي خلافت تر کنټرول لاندې ګڼلو.

هغه څه چې د فرهنګ له لحاظه موږ ته د طاهریانو له خراسان څخه په میراث پاتې دي هغه د نني فارسي دري لیکلو رسم الخط دی چې د لومړي ځل لپاره طاهریانو عربي حروف د پهلوي حروفو پر ځای استعمال کړل چې د نني دري فارسي د لیکلو نوع یې پیل کړه. سامانیانو بیا دې فرهنګ ته لانور پرمختګ ورکړ.

د معاصر افغانستان د دولت د جوړېدو په وخت کې، هغه وخت چې احمد شاه د کندهار شېرسرخ په جرګه کې د قومونو د مشرانو لخوا د پاچا په توګه وټاکل شو، هغه هېواد چې وروسته د افغانستان په نوم و نومول شو، یو اداري او سیاسي وحدت یې نه درلود. د دوه پېړیو په جریان کې د دې هېواد خلک د هغو لښکرو د حملو په مقابل کې جنګېدلي وو چې د سرحداتو څخه د باندې له خوا یې په دوی حملې کولې چې دوی د پېښو عیني شاهدان وو. کله به یې دفاع کوله او کله به یې ځان او خپل اموال غلا او چور کېدل .

لکه څنګه چې مخکې وویل شو، د افغانستان د معاصر خپلواک دولت د جوړېدو پروسه د ۱۷۰۹ ز کال کې د میرویس خان هوتکي لخوا د صفویانو په وړاندې په بریالي قیام سره په کندهار کې پیل شوه او د کندهار په خپلواکۍ تمام شو، د دې څخه وروسته د هرات ابدالیانو د دې سیمو چې تر مشهد او ماوراه پورې یې سرحد وو، خپلواکي اعلان کړه د

صفوي امپراتورۍ د سقوط کېدو او د میرویس خان د زوی شاه محمود هوتکي(۱۷۲۲ ز)، لخوا د اصفهان ښار د نیولو څخه وروسته دا پروسه په کندهار کې ۱۷۴۷ ز کال کې د احمد شاه ابدالي د پاچاهی په اعلان په سیمه کې د خپلواک دولت په جوړېدو سره مکمله شوه.

**د افغانستان د معاصر تاریخ دوره**

لکه څنګه چې وویل شول د دوه سوه کلونو لپاره د نني افغانستان سیمه د پردیو دولتونو لخوا چې د اوسني افغانستان د سرحداتو څخه د باندې وو لکه ډهلی، اصفهان او بخارا څخه اداره کېدو.د افغانستان د معاصر تاریخ دوران په ۱۷۰۹ز کال کې د پردیو د سلطې د ختم سره سم د یو مرکزي قدرتمند او خپلواک دولت او د نوي هویت سره پر دې سیمه د نني افغانستان، بنسټ کېښودل شو، او د ۱۷۴۷ز کال څخه را په دې خوا د ابدالي په امپراتورۍ او د افغانستان په هېواد بدل شو، چې تر نن ورځې د ډېرو لوړو او ژورو سره سره ځای پر ځای پاتې دی. دې دولت یو وخت د اوسني ایران د شمال کسپین د بحیرې څخه تر ډهلي او د امو سیند څخه د عربو بحیرې پورې د اوسني پاکستان تر سواحلو پورې سرحدونه لرل.

په دې برخه کې کوښښ کوو چې لاندې پوښتنو ته د امکان تر حده مستدل ځوابونه ووایو:

- د افغانستان هېواد څنګه منځ ته راغی او د پښتنو رول په هغه کې څه وو؟
- ایا پښتانه د نورو مېشتو قومونو سره په دې هېواد کې بد روابط درلود؟د دوی حکومتونه ظالم او فاشیست وو؟
- د افغاني دولتونو اړیکې د هندوستان، انګرېزانو،فارسیانو او د منځنۍ اسیا او رسیې له خانانو او ملکانو سره څنګه وو او پر افغانستان یې څه تاثیر وکړ؟

## د نني افغانستان هېواد د اتلسمې زیږدیزې پېړۍ په پیل کې

د هرات د تیموریانو د دوران څخه وروسته (۱۳۷۰ -۱۵۰۰ ز)، په ځانګړې توګه د اوزبیک شیباني خان د شکست او وژلو څخه وروسته (۱۵۱۰ ز )، ظهیر الدین بابر (۱۵۳۰-۱۵۰۴ ز)، د نني افغانستان لوېدیځې سیمې د هرات څخه تر کندهار پورې د فارس د صفویانو په اداره کېدلې . د هېواد ختیځې سیمې چې په هغه کې کابل او ځینې شمالي سیمې شاملې وې د هند د مغولي(بابري، تیموري، ګورګاني). امپراتورۍ تر حاکمیت لاندې وو

د معاصر افغانستان د خپلواک دولت د جوړېدو پروسه په ۱۷۰۹ز کال کې د صفویانو په خلاف د میرویس خان هوتکي د بریالي پاڅون سره په کندهار کې پیل شوه، د صفوي امپراتورۍ د سقوط کولو او د صفویانو څخه د میرویس هوتکي د زوی شاه محمود هوتکي لخوا په ۱۷۲۲ ز کال د اصفهان د نیولو سره سم دې پروسې تحکیم پیدا

کړ او دا پروسه په ۱۷۴۷ ز کال په کندهار کې د احمد شاه ابدالي د پاچاهۍ په اعلان سره سرته ورسېده او یو خپلواک هېواد یې جوړ کړ .

له بلخوا موږ په دې کتاب کې د یو تاریخي او جغرافیایي هویت د پلټنې په لټه کې نه یو چې د یو لجام او نشنلیستي او لوی افغانستان څخه یې لاسته راوړو، مګر زموږ علاقمندي د تاریخ څېړل او د پېښو کتل دي، کوم چې په تېر وخت کې د اوسني افغانستان په سیمو کې شوي دي. او د هېواد پر اوسنیو تحولاتو لا هم اثر لري. غواړو پوه شو چې د افغانستان د دولت د جوړېدو څخه د مخه کوم حکومتونه په دې هېواد کې منځ ته راغلي او حکومتونه کړي دي.

د هوتکو حکومت چې د ۲۰ کلونو لپاره یې د نني افغانستان په سیمو باندې حکومت کړی او د دې سربېره په دې وتوانېدل چې د صفوي امپراتوري هم سقوط کړي او اته کلو لپاره د هغوی په سیمو یا سیمو هم حکومت وکړي.

## د هوتکي او ابدالي حکومتونو د جوړېدو په وخت کې د سیمې شرایط

څنګه افغانان وتوانېدل چې ځان ته یو خپلواک او ملي هویت جوړ کړي او د لومړي ځل لپاره یو خپلواک بومي دولت په دې هېواد کې جوړ کړي.

د میرویس هوتکي د پاڅون په زمانه کې او بیا د هغې څخه وروسته د احمد شاه ابدالي به وخت کې، افغانستان د سیمې د دریو قدرتونو تر منځ واقع شوی وو.دا قدرتونه د هند په ختیځ کې د مغولو امپراتوري، په لوېدیځ کې د صفویانو امپراتوري او په شمال کې د بخارا د جنیدي دولت وو.

په ختیځ کې د هند مغولي امپراتوري له منځه تلو په حال کې وه. په ځانګړې توګه د نني افغانستان له لارې په ډهلي د نادر افشار د حملې څخه وروسته، د د نادر افشار لخوا په ۱۷۳۹ ز کال کې ډهلي د تاراج کول او د ډهلي خلک قتل عام کول، د نادرشا افشار ایران ته د راتګ څخه وروسته دا ورکېدل هغه حالت ته رسېږي چې په عملي توګه د هند مغولي مرکزي دولت د حکومت دروازې را چپه کېږي، د هندوستان د مغولي مرکزي دولت ضعف دومره ډېرېږي چې د مهاراجه ګانو، سکانو او راجپوتانو د نفوذي حوزو درجې ته راټیټېږي.

په لوېدیځ یا نني ایران یا فارس کې صفویان په قدرت کې دي. د صفوي ترک تبره دولت د هرات د تیموریانو د قدرت په زوال سره د شاه اسمعیل صفوي پواسطه د نني عراق په کردستان کې کار پیل او په تبریز کې یې بنسټ کېښودل شو (۱۵۰۱ ز) د اصفهان د نیولو څخه وروسته یې خپله پلازمېنه اصفهان ته انتقاله کړه (۱۵۹۸ ز ). په ۱۵۱۰ز کال کې د هرات ښار او د خراسان نورې سیمو کې شیباني خان اوزبیک ته په شکست ورکولو سره دا سیمې هم لاندې.

شاه عباس صفوي په ۱۵۴۵ ز کال کې د هند مغولي امپراتورۍ څخه کندهار ونیولو او په ۱۵۹۸ ز کال کې یو ځل بیا د شیباني خان اوزبیک څخه بیا ونیولو. شا عباس صفوي د ازبکانو پر لار د مانع د منځ ته راوړلو په خاطر څو زره کرد کورنۍ د اذربایجان د لوېدیځ او کردستان څخه خراسان ته کوچ او ځای پر ځای کړې (هوشنګ مهدوي، د ایران د بهرنیو اړیکو تاریخ، ۱۳۷۵ ه ل تهران ٦۳ ص). بلاخره، شاه اسماعیل په ۹۱٦ ه. س (۸۸۹ خ) کې د خراسان لوري ته لښکر ویست او شیباني خان اوزبیک له ډاره د مرو قلعه ته پناه یوړه او هلته محاصره شو.شا اسماعیل صفوي په اخر کې هغه په چل او دوکې سره له قلعه څخه راویست او جنګ ته مجبور کړ. د مروه جګړه د محمود اباد کلی ته په درې فرسنګه فاصله کې د دوو حریفانو تر منځ ونښته وشوه، د هولناک مړینو څخه وروسته، ازبکانو ماتې وخوړه. شیباني خان له خپلې یوې ډلې ملګرو سره په یوه څلور دېوالۍ کې محاصره او په پای کې د خپل لښکر د اسانو تر پښو لاندې ساه ورکړه، جسد یې بیا شاه اسماعیل صفوي ته یوړ او هلته یې سر له تنه بېل او پوست یې له بوسو څخه ډک کړ او سر یې دوهم سلطان بایزید عثماني ته ولېږلو. د سر کوپړۍ یې په طلا پوښ کړه او د هغې څخه یې شاه اسماعیل صفوي ته د شرابو جام جوړ کړ (محمد مهدی، د اریانا دانشنامه،شیبک خان اوزبیک).

شاه عباس په خپل ژوند کې خپل یو زوی مړ کړ او دوه نور کسان یې ړانده کړل او د ده دوه نور زامن هم په کوچنیوالي کې مړه شول، په دې خاطر ده د مرګ څخه وروسته د قدرت د واګې د نیولو لپاره کوم سرپرست پر ځای پرېښود او په ځای یې لمسی چې شاه صفي نومېدو پاچا شو. یوازې دا یوه پېښه وه چې شاه عباس خپله د نورو کاکا ګانو او خپلوانو په شان له بد برخلیک سره مخ نه شو، حد اقل د هغو نهه کسان د خپلو واکمنو کاکا ګانو دوهم اسماعیل مړه، یا ړانده کړي وو، خو ده نجات وموند.

صفویان یوه مذهبي  شیعه ډله وه چې د قزلباش په نامه یادېدل قدرت ته د رسېدو څخه وروسته په ډېر شدت او تعصب سره د شیعه مذهب د رواج کولو په خاطر یې د ایران او نورو قومونو تر خپل واک لاندې راوستو په منظور د قزلباش اردو د ترک د خلکو منځ کې کارونه کول. د د همدې کبله دی چې نننی اذربایجان هېواد د صفویانو دولت یو ترک اذري دولت بولي. صفویان په دې قادر شول چې یوه لویه امپراتوري له سوریې او ننني عراق څخه تر ختیځ کندهاره او په شمال کې تول خراسان پورې جوړه کړه.

کله چې میرویس خان هوتک په کندهار کې د صفویانو په مقابل کې پاڅون کولو، د صفویانو امپراتوري د زوال په حالت کې وه. په لوېدیځ او شمال لوېدیځ کې عثماني ترکانو اذربایجان، ارمنستان، ګرجستان قفقاز، سوریه او نننی عراق یې له صفویانو څخه بېرته ونیول، او تر همدان پورې یې پر مختګ وکړ. په شمال کې روسانو په ۱۷۲۴ ز کال د کسپین سمندرګي سواحل ونیول. همدا راز د بخارا ازبکانو د شمال ختیځ څخه پر خراسان حملې کولې.

## د میرویس خان هوتکي پاڅون او د هوتکي دولت جوړېدل



میرویس چې د میرویس خان نیکه په نوم مشهور دی په ۱۶۷۳ز کال د غلجي پښتنو په هوتک قبیله کې په کندهار کې زېږېدلی، پلار یې ښالم خان او مور یې نازو د توخي د خانانو څخه د یو خان لور وه . میرویس نیکه دری وروڼه لرل چې میر عبدالعزیز، میر یحیی او عبدالقادر نومېدل، ده دوه زامن درلودل چې نومونه یې میر حسین او میر محمود او د میرویس نیکه ښځه یا مېرمن د سدوزي قبیلې څخه د جعفر خان لور وه. میرویس په کندهار کې لوی شو او د صفویانو دربار دی د سیمې د مشر په حیث وټاکلو او د صفویانو شاه د نوموړي ریاست یا مشري په غلجي قبایلو کې په رسمیت وپېژنده.

میرویس خان د معاصر افغانستان په تاریخ کې حماسي رول لري. ځینې خلک بیا د فتنې او فساد له مخې په داسې حال کې چې پوهېږي او یا د غفلت له مخې میرویس خان ته بخارایي تاتار وایي، څو د افغانستان په تاریخ کې د میرویس خان عمده، حماسي او مرکزي نقش کم رنګ او د پښتنو قومونو تر منځ یې رنګه بده او دې رتبې ته یې صدمه ورسوي.

له یوې خوا پښتنو ته قبیلوي خلک وایي، بیا یې له یاده وتلي چې یو قبیلوي پښتون څو نسلونو پورې خپله شجره پوهېدی شي. هېڅ غیر پښتون نشي کولی ځان په دروغ سره پښتون وشمېري او د قبیلې مشر یا رییس شي په ځانګړې توګه بیا داسې د یو مشهور شخص د کورنۍ څخه چې د بخارا حاکمانو څخه اوسي.

؛پارسي شهزاده، د یو تخیلي داستاني کتاب د یو اتل نوم دی (کروموېل پارسي) نومېږي دا کتاب یو بې نومه سویډني افسر لیکلي چې د میرویس خان هم عصره وو او په ۱۷۲۴زیږدیز کال په لندن کې چاپ شو.دا کتاب عبدال لعلزاد په ۲۰۱۲ ز کال په دري ترجمه کړ. د کتاب لیکونکي د کتاب په سریزه کې لیکلي چې قسطنطنیه ته یې سفر وکړ د ترکیې په ارزروم کې د داغستاني غلو لخوا او د تاتاتریانو پواسطه ونیول شو او د تحفې په شکل پارسي شهزاده ته چې باقر په داستان کې د کندهار پاچا او د میرویس خان پلار دی، کندهار ته ولېږل شو.دا پارسي شهزاده د کتاب د کیسې په اساس د بخارا د امیرانو څخه د یوه زوی وو چې خپل هېواد یې پرېښی او بلخ ته یې تېښته کړې وه.د دې تخیلي داستان په اساس د میرویس بخارایي پلار (پارسی شهزاده یا باقر) د کندهار ښار یې له پارسیانو سره د یوې جګړې په پایله کې لاسته راوړ د کندهار پاچا شو او بیا وروسته میرویس په ۱۶۷۸ز کال کې وزېږېدو، د پلار د مړینې څخه وروسته یې د کندهار حاکمیت په غاړه واخیست او میرویس په ۱۷۲۲ز کال کې د اصفهان ښار ونیو. په داسې حال کې چې میرویس خان په ۱۷۱۵ز کال په کندهار کې سترګې له نړۍ پټې کړې . په دې کتاب کې د صفوي ګرګین بیګلربیګي (والي) څخه یادونه نه ده شوې.

په دې کتاب کې تاریخي حقیقي پېښې د افسانوي او تخیلي څېرو سره مخلوط او ګډې شوې او د یو خیالي یا فلمي داستان د سناریو په شکل، لوستونکي ته وړاندې شوې. که څوک د دې کتاب په اساس د میرویس خان په اصلیت او قوم باندې شکمن شي، په حقیقت کې د تاریخ څخه د مطلق بې خبرۍ ښکارندویي کوي !

کله چې میرویس خان هوتک په کندهار کې د صفویانو په وړاندې پاڅون کوي (۱۷۰۹ ز کال)،د صفوي امپراتوري د زوال په حال کې وه . په لوېدیځ او شمال لوېدیځ کې عثماني ترکانو اذربایجان، ارمنستان، ګرجستان قفقاز، سوریه او نننی عراق یې له صفویانو څخه بېرته ونیول، او تر همدان پورې یې پر مختګ وکړ. په شمال کې روسانو په ۱۷۲۴ ز کال د کسپین سمندرګي سواحل ونیول. همدا راز د بخارا ازبکانو د شمال ختیځ څخه پر خراسان حملې کولې

د دې څخه وروسته چې میرویس خان هوتک د خپلواکۍ اعلان وکړي (۱۷۰۹ ز) د ښار د بیا نیولو لپاره د شاه حسین صفوي پرله پسې اقدامات ناکامه شول. شاه حسین حتی تر فراه پورې د کندهار د بیا نیولو لپاره پر مختګ هم وکړ.بلاخره د میرویس خان د زوی شاه محمود هوتکي په یرغل سره ایران او اصفهان ونیول (۱۷۲۲ ز کال ) شاه حسین صفوي د ایران تاج او تخت ورته پرېښود او د صفویانو دوه سوه کلنه امپراتوري له منځه ولاړه.

دصفوي دولت د دې ضعف څخه په استفادې، د هرات ابدالیانو هم په ۱۷۱۷ز کال کې د اسدالله خان ابدالي په مشرۍ په هرات کې پاڅون وکړ صفوي حاکم یې مړ کړ او د ازادۍ اعلان یې وکړ. دوی د مشهد تر څنډو پورې ټوله سیمه تسخیر کړه.

د دې په هکله چې د احمد شاه څخه مخکې، میرویس خان هوتکي په کندهار کې د پاچاهی اعلان کړی وو او یا یې نه وو کړی،مختلف روایتونه موجود دي په دې هکله سر جان ملکم د ایران تاریخ په کتاب کې لیکي: هانوي چې د میرویس هوتکي معاصر وو داسې لیکي څه وخت چې میرویس خان د پاچاهۍ اعلان وکړ دستور یې ورکړ چې د ده په نامه د سکه ووهل شي (سر جان ملکم،د ایران تاریخ، لندن تاریخ،۱۸۱۵ زکال، اول جلد ٦٠٦ ص).او انګلیسي ژباړې سره په سکه باندې لیکل شوی بیت یې هم ذکر کړی دی. د بیت مضمون په دري ژبه تر دې اواخرو پورې مجهوله وو، څو چې په ۱۹۷۴ز کال کې استاد خلیل الله خلیلي په بغداد کې سفیر وو، یو مضمون په ژوندون مجله کې د عرب تذکره لیکونکو په قول نشر کړ چې په دري ژبه د بیت مضمون داسې دی:

سکه زد بردرهم دارالقرار کندهار – خان عادل شاه عالم میرویس نامدار

ژباړه:

سکه یې ووهله پر درهم په کندهار دارالقرارکی – عادل خان، د نړۍ شاه، نامتو میرویس

په دې اساس، لکه څنګه چې وینو په نننی افغانستان کې د یو خود مختاره او خپلواک دولت جوړېدل د میرویس خان هوتکي څخه پیل کېږي او د احمد شاه ابدالي پواسطه بیا بشپړ کېږي.

د ترکمن افشار له قوم څخه د صفوي اردو یو افسر چې نادرقلي نومېدو په ایران د افغانانو د اته کلو حکومت څخه وروسته په ښکاره ډول د شاه طهماست شاه حسین صفوي د زوی په مرسته راپورته او شاه اشرف ته یې ماتې ورکړه (۱۷۳۰ز) تر ډهلي پورې یې د شاه اشرف هوتکي عسکر تعقیب کړل په دې بهانه چې افغانانو ته یې پناه ورکړې، ډهلی یې چور او تالان کړ او د ډهلي خلک یې قتل عام کړل (۱۷۳۹ ز کال).

نادر قلي افشاري د دې څخه وروسته شاه طهماسب لرې او د هغې وړوکی زوی یې پاچا کړ او بلاخره په ۱۷۳٦ز کال کې یې خپله د پاچاهی اعلان وکړ.نادرشاه افشار د خپلې واکمنۍ ټول وخت د عثمانیانو سره په مقابله تېر کړ. اګر چې دی په لومړیو کې خلکو ته ډېر منلی وو، خو د خپلې واکمنۍ په وروستیو کې دی ډېر قهرجن او غصه ناک انسان ترې جوړ شو حتی تر دې چې د خپل زوی میرزا رضا قلي د ړوند کولو حکم یې هم ورکړ.

نادرشاه افشار په ۱۷۴۷ز کال کې د مشهد ښار ته نیږدې ووژل شو. د هغې د مړینې د جریان په هکله په ایراني وېبپاڼه (نادرشاه-افشار[http://tamadonema.ir/](http://tamadonema.ir/)) کې داسې معلومات لیکل شوي .

نادر افشار د ژوند په وروستیو کې خپلو اخلاقو ته تغیر ورکړ او خپل زوی میرزا رضاقلي یې ړوند کړ. وروسته د خپل دې کار څخه پښېمان شو او خپل خوا و شاه ته هغه کسان چې دی یې مقصر ګڼلو هم ووژل. نادر افشار د خپلو جګړو د لګښت لپاره مجبور وو چې د خلکو څخه ډېرې زیاتې مالیې واخلي، په همدې دلیل د هېواد په ځینو برخو او سیمو کې بغاوتونه کېدل. کله چې نادر د دې بغاوتونو د ځپلو لپاره  خراسان ته ولاړ د علي قلي خان په مشرۍ د سردارانو یوې ډلې په نیمه شپه پر هغه یرغل وکړ او هغه یې له منځه یوړ. د انګرېزي تاریخ لیکونکي لارنس لاک هارت په وینا قصه داسې وه چې نادر افشار د خپل ژوند په وروستیو میاشتو کې د حکومت په سطحه تاوتریخوالی کولو  او په څو دلایلو په خپلو سردارانو بدګومانه وو. نادر افشار یوه شپه د دوی رییس راوغوښت او ورته یې وویل: زه د خپلو ساتونکو څخه راضي نه یم او ستاسو د وفاداری او زړورتوب څخه خبر یم. تاسو ته امر کوم چې سبا سهار هغوی ټول ګرفتار او زنځیرونه ورواچوی که چا مقاومت وکړ هغوی مه پرېږدئ، زما ژوند په خطر کې دی زه د خپل ځان د ساتنې باور او اعتماد یوازې پر تاسې کولی شم؛ یو ګرجي نوکر، دا خبره د نادر افشار سردارانو ته ورسوله او دوی تصمیم ونیولو چې ناوخته نکړي او نادر افشار باید له منځه یوسي. کله چې د شپې یو څه وخت تېر شو، پیره داران د قاجار محمد حسین خان د لور چوکی خېمې ته، چې نادر افشار په دې شپه هلته وو ننوتل. دوی دومره ډار شوي وو چې اکثر یې خېمې ته داخل نشول. یوازې محمد خان قاجار، صالح خان او یو بل کس ور ددننه شول کله چې څوکي دار متوجه شو نادر یې له خوبه ویښ کړ. نادر په ډېر قهر له خوبه پاڅېد  او توره یې راویسته. پښه یې د کېږدۍ په پړي کې بنده شوه او ولوېدو. څو چې د پاڅېدو کوښښ یې وکړ صالح خان ګوزار پرې وکړ او د نادر یو لاس یې پرې کړ. وروسته محمد خان قاجار د نادر سر له تن څخه بېل کړ.(د یکشنبې سهار ۱۱ د جمادي الثاني ۱۱٦۰ ه س کال / ۲۸ د جوزا ۱۱۲٦ ه ل، لاکهارت د جېمز فریزر انګرېزي له خولې څخه).؛ نادر افشار د خپل ځایناستي لپاره مناسب کس د ټاکلو شرایط له منځه وړي وه. هغه د خپل خوا و شا ډېر کسان مړه کړل. ده د مړینې څخه وروسته سردارانو هم په هر ځای کې د خود مختاری بیرغونه پورته کړل . په خراسان کې علي قلي خان افشاري (د نادر وراره) د نادر د کورنۍ ډېر شمېر غړي او

اولادونه قتل عام کړل او خپل ځان يې؛ عادلشاه؛ په نوم ونومولو او حکومت يې پيل کړ. دی چې يو ډېر عياش او قاتل سړی وو، محمد حسن خان قاجار ته يې ماتې ورکړه، د هغه زوی اقا محمد خان يې د کورنۍ او اولاد سره ورک کړ، مگر په اخير کې د خپل ورور ابراهيم خان لخوا ړوند او بيا ووژل شو. افشاري مشرانو د نادر لمسی شاهرخ ميرزا قدرت ورسولو. هغه هم يو کال وروسته ختم او ړوند شو مگر بيا هم قدرت ته ورسېد، مگر دا ځل د شاه سليمان ثاني لخوا (د صفوي خاندان شخه چې د ټولو د احترام وړ وو) شکست يا ماتې وخوړه. ړوند شاهرخ ميرزا يوازې په خراسان باندې اته ځلوېښت کاله سلطنت وکړ . د کريم خان د مړينې څخه وروسته، اقا محمد خان قدرت ته ورسېد او پر خراسان يې يرغل وکړ او شاهرخ ميرزا يې په ډېر عذاب سره ووژلو. د شاهرخ ميرزا زوی نادر ميرزا، خپل سپينږيری او ړوند پلار د اقا محمد خان لاسته يوازې پرېښود او افغانستان ته وتښتېدو او د فتح علی شاه د سلطنت په زمانه کې يې د سلطنت ادعا وکړه چې ونيول او وروسته بيا ړوند شو. ژبه يې ورڅخه پرې او په قتل يې ورسوو، دا د افشار د کورنۍ څخه د سلطنت اخرين مدعي وو چې له منځه يوړل شو (سايټ / http://tamadonema.irنادرشاه-افشار) په دې شرايطو کې وو چې د نادرشا افشار يو سپهسالار احمد خان ابدالي چې د افغان او اوزبيک لښکرو قومنداني يې په غاړه لرله، د کندهار خواته روان او يو خپلواک افغان حکومت يې هلته اعلان کړ.

**د هوتکيانو سلسله**

| شمېره | د پاچا نوم | د پخواني پاچا سره نسبت | د حکومت پلازمېنه | د حکومت دوره (زېږديز) |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ميرويس خان هوتک | د هوتکيانو د سلسلې موسس | کندهار | ۱۷۰۹-۱۷۱۵ |
| ۲ | مير عبدالعزيز هوتک | د ميرويس خان هوتک ورور | کندهار | ۱۷۱۵-۱۷۱۷ |
| ۳ | شاه محمود هوتکي | د ميرويس خان هوتک زوی | کندهار-اصفهان | ۱۷۱۷-۱۷۲۵ |
| ۴ | شاه اشرف هوتکي | د مير عبدالعزيز هوتک زوی | اصفهان | ۱۷۲۵-۱۷۲۹ |
| ۵ | شاه حسين هوتکي | د ميرويس خان هوتک زوی | کندهار | ۱۷۲۹-۱۷۳۸ |

# درېيمه برخه: معاصر افغانستان د شاهي نظام تر ړنګېدو پورې

### د احمد شاه ابدالي لخوا د افغانستان د معاصر دولت تشکيل



احمد شاه ابدالي د زمان خان زوی چې وروسته يې د احمد شاه بابا لقب وګټلو، د خپل پلار د مړينې په په کال يانې په ۱۷۲۲ز کال د هرات په ښار کې زېږېدلی دی. څه وخت چې د احمد شا ابدالي د پلار رقيب محمد خان ابدالي هرات ونيو د احمدشاه مور زرغونې له خپل زوی فراه ته ولاړل ده هملته زده کړې وکړې همدارنګه په دواړو پښتو او دري ژبو پوهېدو، د مير غلام محمد غبار په قول تر دې حده چې په پښتو ژبه يې شعرونه هم ويل، په ۱۷۴۷کال د اکتوبر په مياشت کې د افغانستان د پاچا په صفت وټاکل شو او په ۱۷۷۳ز کال د کندهار ښار ته نيږدې د توبه په غره کې وفات شو.

د احمد شاه دراني افکار او کړنو د افغانستان په سياسي ژوند او د افغانستان پر ملت باندي مهم تاثير درلود او دې تاريخي هېواد ته يې د يوې خوا څخه بلې خواته حرکت ورکړ. احمد شاه د افغانستان په تاريخ کې له دوه جنجالي او له جنګ جګړو څخه ډک پېړيو تېرېدو څخه وروسته د افغانستان په سياسي تاريخ کې څرګند شو او د افغانستان د خپلواک دولت موسس وګڼل شو. ده يوه ډېره لويه امپراتوري له خراسان څخه تر هندوستان پورې جوړه کړه.

احمد شاه د محمد زمان خان زوی او د ذوالفقار خان سدوزي کشر ورور وو چې د هرات د ابداليانو په زمانه کې يې د دې ښار رياست يا مشري د لږ وخت لپاره په غاړه درلوده. د احمدشاه مور زرغونه الکوزی د عبدالغني خور وه چې د نادر شاه لخوا د کندهار تر نيولو وروسته د هغه ځای حاکم وټاکل شو .

دی په ځوانی کې د نادر افشار په اردو کې شامل شو او د افغان نظامي ځواکونو چې شمېر يې څلور زره کسانو ته رسېدو په تدريج د نايبی تر درجې ارتقاع وکړه. البته يو شمېر هوتکي او ابدالي کسانو د احمد شاه د زمانې مخکې په کندهار او هرات کې د استقلال اعلان وکړ مګر بريالي نشول چې د هېواد په دننه کې يو سياسي يو والی منځ ته راولي.

د۱۷۴۷ ز کال د جون مياشت کې د نادر افشار د وژلو څخه وروسته د خراسان د خبوشان(اوسنی قوچان) په سيمه کې لکه چې پورته په تفصيل وويل شو، افغاني قواوې چې د څلور زره غلجي او دولس زره ابدالي او اوزبيک کسانو څخه

جوړې شوې وو، د عمومي قوماندان نور محمد غلجي او احمد خان ابدالي په مشرۍ د کندهار خواته وخوځېدل. په کندهار کې چې د افغانستان قومونو مرکز وو،نور محمد خان د غلجي خانانو، اوزبیک، ابدالي، هزاره، بلوڅ او تاجکانو ته وړاندیز وکړ چې جرگه تشکیل او پاچا غوره کړي .

کندهار ته د احمد خان له رسېدو څخه وروسته جرگه د افغاني قومونو د ډېرو مشرانو په گډون جوړه شوه، د ډېرو خبرو او مذاکراتو څخه وروسته د یو ملنگ او عارف شخص په غوښتنه چې صابر شاه کابلی نومېدو، احمد خان د پاچاهۍ لپاره وټاکلو او دغه ملنگ د غنمو یو وږی د تاج په ځای د احمد خان پر خولۍ کې کېښود.

دی د دولت د جوړېدو، د اداري نظام د نظم او نسق د لښکر څخه وروسته د ډېرو افسرانو د راټولولو په کار بوخت شو. د احمد شاه په لښکر کې د افغانستان د ټولو قومونو خلک لکه بلوڅ، پښتانه، اوزبیک، قزلباش، هزاره او تاجک موجود وو، احمد شاه ډېر فتوحات په هندوستان او نورو ښارونو کې په بریا سرته ورسول او د نظامي مسایلو له نقطې نظره شجاع او زړور، ښه مدیر او د تجربو څخه ډک وو چې د دې فتوحاتو له مخې یې یو ډېر لوی حکومت جوړ کړ چې د اوسني افغانستان څخه سربېره کشمېر، لاهور، سند هم پکې  شامل وو.

احمد شاه د هېواد په مسایلو لکه فرهنگي، اقتصادي، بیا رغونې او ابادۍ کې ډېره توجه ونکړه. د ۲۵ کاله سلطنت په جریان کې د مدرسې، د زده کړې ځایونه، کتابتونونه او یا اقتصادي تولید او صنعت په برخه کې هېڅ اقدام و نشو.

## ولی میرویس خان هوتکي او احمد شاه ابدالي د افغانستان د هېواد موسسین بولو؟

یو کس د عبدالحی خراساني په نامه په دې وروستیو کې یو نوی کشف کړی او لیکلي یې دي چې احمد شاه ابدالي د خراسان وروستی شاه وو، نه د افغانستان د دولت او هېواد موسس. دا د ایران پرستانو یو نوی دروغ او جعل کاري ده او د افغانستان او د افغانستان د موسسینو دښمنان دي چې غواړي د افغانستان دولت ریښو ته صدمه ورسوي .

دا مو په یاد وي چې د سیاسي استقلال دغه ماهیت، افغاني فرهنگ او حنفي اسلام (افغانیت او اسلامیت) دا د افغانستان د دولت د هویت او پېژندنې نښانې د میرویس خان هوتکي د وخت څخه د اشرف غني تر وخته پورې گڼل کېږی، نه د دې هېواد نوم .د احمد شاه ابدالي څخه د مخه نادر افشار د ایران شاه وو نه دې خراسان چې په هغه کې نننی افغانستان هم تر سلطنت لاندې وو. د نادر افشار لمسی چې شاهرخ نومېدو د احمد شاه ابدالي لخوا د خراسان د والي په صفت بیا مقرر شوی وو.

که احمد شاه ابدالي د خراسان وروستنی شاه وي ایا څوک ویلی شي د احمد شاه ابدالي څخه د مخه کوم بل کوم شخص د خپلواک خراسان اخرین شاه وو ؟

حقیقت دا دی چې مخکې له احمد شاه بابا څخه نادر افشار دا سیمې د شاه اشرف هوتک څخه نیولې او هوتکي امپراتورۍ ته یې د پای ټکی کېښود او د ایران د پاچا په حیث یې حکومت وکړ.لکه موږ یې چې وینو  په تاریخ کې

د خراسان په نوم کوم خپلواک دولت شتون نه درلود. خراسان یوه پراخه جغرافیایي سیمه ده چې سیمه یې له مرو (ترکمنستان)، نېشاپور (ایران) او هرات (افغانستان) ټول په خپلو حدودو کې نیسي.

## د ابدالي امپراتورۍ تشکیل (دراني)

احمد شاه ابدالي د فارس او هندوستان د دولتونو د ضعف څخه په استفادې د یوې لویې امپراتورۍ په جوړولو لاس پورې کړ چې له نیشاپور څخه بیا د ایران تر خراسان، لاهور، کشمیر او سند تر سیمو پورې رسېدله، دې امپراتورۍ په دومره لویوالی سره د نیمې پېړۍ لپاره د ده د لمسي د سلطنت تر ختمه پورې ۱۷۹۰ ز کال دوام وکړ.

**شپږم چارت: دابدالی سلطنت قلمرو په ۱۷۸۱ زیږیدیز کال**




## له ګاونډیو هېوادونو سره د احمد شاه بابا اړیکې

***هندوستان***

لکه چې مخکې مو ولوستل نادر افشار اشرف افغان ته ماتې ورکړه، او بیا یې افغانان تر ډهلي پورې تعقیب کړل. په ډهلي کې په دې بهانه چې ولې مو افغانانو ته پناه ورکړې، د دوی شتمني چور کوي او ایران ته یې له ځان سره وړي، او مغولي دربار او د ډهلي د خلکو په قتل عام باندې لاس پورې کوي. د نادر افشار د دې حملې په پایله کې د هند مغلي امپراتورۍ مرکزي قدرت عملا د راجپوت مېشتوو ځایي اوسېدونکو ته انتقال شو چې په اخر کې د انګرېزي استعمار لپاره لار هواره کړه.

په دې اساس کله چې احمد شاه درانی قدرت ته ورسېد، د کورګاني سلسله په هند کې ډېره کمزورې شوې وه. محمد شاه د هند پاچا څه وخت چې احمد شاه بابا غوښتل په هند حمله وکړي ۱۷۴۷ ز کال مړ شو او د ده په ځای یې زوی احمد شاه مغولي د قدرت واګې په لاسس کې واخیستې. مګر احمد شاه دراني د ده واکمنۍ په دوران کې ډهلی فتح کړ.

د ډهلي د فتحې څخه وروسته احمد شاه دراني د هند له سیمو څخه مالیې اخیستې او د هند له واکمنو سره ښه روابط ساتلي وو او د کورګاني شاهي کورنۍ لور (ګوهر نساء) یې خپل زوی تیمور شاه ته واده کړه . د دراني دولتونو د هند مغولي شاهي کورنیو سره په نسبي ډول ښه او دوستانه روابط لرل څو چې انګرېزي قواوې هند ته داخلې او د هند شاهي مغولي کورنۍ بلکل له منځه ولاړه.

## د ایران سره اړیکې

احمد شاه د نورو قومونو سره د ودونو کولو له سیاسي ارزښت څخه خبر وو، د دې سربېره چې د کورګاني د سلطان لور یې تیمور شاه ته په نکاح کړه،د نادر افشار له کورنۍ د شاهرخ شاه لور یې هم خپل زوی تیمور شاه ته په نکاح کړه او په دې ډول یې خپل خانداني موقف لانور مستحکم کړ.

احمدشاه شاهرخ چې د نادر افشار لمسی وو د خراسان حاکم وټاکلو. انګرېز جورج فورسټر د تیمور شاه په وخت کې له بنګال څخه لندن ته د کشمیر، پېښور، کابل، کندهار، هرات، مشهد، او روسیې له لارې سفر کولو د افغان دولت د حاکمیت لاندې شرایطو له ارزیابۍ او د خراسان د اوضاع او احوال څخه وروسته، د خپل سفر د سفرنامې په کتاب کې داسې لیکي چې د افغان دولت د فارسي خراسان د شیعه خلکو سره ډېر ښه چلند کوي او دا خلک یې په خپلو ټولنیزو، مذهبي، او فرهنګي کارونو کې په بشپړه توګه ازاد پرېښبي په داسې حال کې  چې شعیه ګان افغان سني مذهبه حتی مسلمان هم نه ګڼي (جورج فورسټر، د لندن چاپ ۱۷۹۸ز،دوهم جلد،۱۴۸ ص).

لکه مخکې مو چې یادونه وکړه په کندهار کې د احمد شاه دراني قدرت ته د رسېدو سره همزمان، د ایران هېواد په بشپړ هرج او مرج کې  ژوند کولو. د مختلفو قبایلو مشرانو او د نادر افشار قومندانانو هر یو، یو منطقه په لاس کې ونیوله. د نادر افشار له وژل کېدو وروسته یې یوه ورور خپل ځان د خراسان پاچاه اعلان کړ او بل یې هغه ړوند کړ وروسته بیا خلکو دواړه ووژل.د ایران مختلف ساحې له یو بل څخه جدا شوې وې تر هغه چې ؛کریم خان زند؛ د نادر افشار یو با تدبیره قومندان په ۱۷۵۷ ز کال دې ګډوډۍ ته د پای ټکی کېښود او د (وکی الرعیا) په نوم یې قدرت په لاس کې واخیست او یو مرکزي حکومت یې جوړ کړ.

## د منځنی اسیا سره اړیکې

په دې زمانه کې منځنۍ اسیا په بخارا کې د جنیدي کورنۍ واکمنه وه. دا حاکمیت نیږدې د ۱۷ زیږدیزې پېړۍ په سر کې پیل شوی او د احمدشا بابا د زوی تیمور شاه  تر زمانې پورې یې دوام وکړ. د افغانستان شمالي ساحې د جنیدي

لښکرو د حملو تر تهدید لاندې وې تر هغه پورې چې د احمد شاه د پاچاهۍ په دوهم کال (۱۷۴۹ ز ) وزیر شاه ولیخان د هېواد شمال ته ولېږل شو او د جنیدي دولت تعهد وکړ چې د افغانستان پر خاوره به بیا یرغل نه کوي او د افغانستان دولت د دې په مقابل کې تعهد وکړ چې د دوی د ساتنه او حمایت کوي. په ۱۷۶۷ز کال کې د یوې توافقنامې له لارې د امو سیند د افغانستان او د بخارا د امارت تر منځ په رسمي توګه د سرحد ډول سره وپېژندل شو. په ۱۷۸۵ زکال جنیدي کورنۍ واکمني له منځه لاړه او په ځای یې د ازوبیکی منغیته په منځنۍ اسیا واکمني پیل کړه په وروستیو کې کله چې افغانستان د انګرېزانو تر تهدید لاندې وو، د بخارا د اوزبیکو دولت هم د روس له تهدید او فشار سره مخ شو تر هغه چې د روسانو د فشار او تهدید په پایله کې د دوی اخرین پاچا افغانستان ته پناه یووړه او د بخارا حکومت له منځه لاړ (۱۸٦۸ ز کال).

## د افغان دولت استحکام

احمد شاه د افغانستان د ملت سره په داسې حال کې مخ شو چې د دوی دیانت او احساسات شریک، د ګټو له نظره سره پاشلي او د اقتصاد له نظره په سخت حالت کې وو. احمد شا د پاچا کېدو څخه وروسته ثابته کړه چې دی د افغانستان په داخلي اوضاع او همدا راز د افغانستان د ګاونډي هېوادونو د سیاسي او نظامي وضیعت څخه خبر دی، او هم په دې قادر دی چې د دې اوضاع څخه د افغانستان په ګټه په عملي ډول کار واخلي. لکه چې و مو لیدل داخلي شرایط او د ګاونډیو هېوادونو اوضاع د افغانستان د یو خپلواک دولت د جوړېدو لپاره مساعد وو.

د افغانستان په داخل کې د ملت اکثریت یانې بزګر او مالداره طبقې د ښاري او کسب ګرې طبقې سره، تېر پرله پسې کلونه د ملوک الطوایفۍ تر اداري لاندې، داخلي او بهرني لښکرو یرغلونو، مالیات او عوارض، ډول ډول ګمرکي تعرفو سره و تړکول شو او د یو مرکزي، مقتدر دولت او د امنیت غوښتونکي وو.د هېواد په لوېدیځ، ختیځ او سوېل کې کلونه خلکو د بهرنیو سره د مبارزې او ددوی د تسلط په خلاف او د ملي ازادۍ د تر لاسه کولو په خاطر مبارزې وکړې چې په دې وخت کې د ملي دولت د ساتنې او تقویې لپاره د بهرنیانو په مقابل کې تیار او حاضر وو.

د هېواد مرکزي ساحه، هزاره جات د بل هر ځای څخه ډېر د فیوډالي نظام، مطلق العناني او ملوک الطوایفۍ لاندې وو، قدرتمنده فیوډالان نسبت د سیمې بزګرانو او مالدارو ته په رعیت دارۍ کې نامحدوده اختیارات او صلاحیت درلود. په دې خاطر د یو میلیو په شاوخوا کې زحمتکش او کارګرو هزاره ګانو، چې د چنګېز خان له یرغل څخه را په دې خوا تر داخلي او بهرني ضربو لاندې وو، د یو څو اربابانو، میر، بېګ او روحاني کسانو د ژوند تېرولو او تفریح په خاطر ځانونه وژل. په دې سیمې مسلط فیوډالان د افغانستان مرکزي دولت ته د اطاعت او مالیې په ورکولو، په سیمه د قدرت د ساتلو لپاره د نولسمې پېړۍ تر پیل پورې د مرکزي دولت د مستقیم تسلط په مقابل کې ډېر مقاومت وکړ او هم یې خپل خلک د هېواد نورو برخو سره د متوازن پرمختګ څخه شا ته پرېښودل. وروسته بیا نور اقتصادي عوامل، فقر او د

مرکزي دولت سیاسي فشار، د دې توقف عمر شاته پاتې والی د شلمې پېړۍ تر پیل پورې اوږد کړ. همداراز په دوهمه درجه کې د افغانستان د شمالي ولایتونو خلک هم تر فیوډالي سخت فشار لاندې پاتې شوي وو.

په سویلي هندوستان کې د اورنګزیب د سلطنت په وخت کې د سیواجي تر مشرۍ لاندې د مرټهه حکومت جوړشوی وو، چې د اورنګ زېب له مرګه وروسته قوي شو او نیږدې د ټول شبهه جزیرې یا سویلي هند واکمن شو.د ده له نظره د هند بابري دولت نور د دې توان نه لري چې لکه د پخوا په شان په افغانستان فشار راولي. په ځانګړې توګه چې په شمالي جبهه کې د سکهه په نوم یو جدیدالظهور او مخالف ځواک منځ ته راغی. محمد شاه نور یوازې په نامه سره هندوستان پاچا وو، د ده تر ټولو لوی والیان لکه په اوده، بنګال، د دکن حیدر اباد، کرناټک او نورو کې ټول خپلواک وو او یوازې پلازمېنې ته یې خراج ورکولو. نوابانو هم خپل ځانونه د لویو والیانو (صوبه دار) تر حکم لاندې ګڼل.

په دې وخت په هندوستان کې انګرېزي استعمارګرانو د تجارانو په جامه کې د اته پښې لرونکي چنګاښ په څېر، په عصري ټیکنالوژۍ سمبال، فتنه ګرۍ او فساد رېښو د غځولو په حال کې وو. همدا راز یو بل ځواک هم په هند کې شته و چې هغه د هند په دربار او اړونده ولایتونو کې د افغانانو سیاسي او نظامي نفوذ وو.د ډهلي په دربار کې د نجیب الدوله افغان په څېر (نجیب خان یوسفزی) یو قدرتمند افسر وو او د کترا، فرخ اباد او ملتان په ولایتونو کې د روهیله، بنګښ او ابدالي افغان سلسلې حکمرانانو (سعدالله خان روهیله، احمد خان بنګښ او زاید خان ابدالي) د ډېرو ځواکونو سره شته و.دې ټولې وضعې احمد شاه د هندوستان له لوري مطمین کړی وو او د افغانستان د ټولواک دولت د جوړولو، تاسیس او حاکمیت زمینه یې برابره کړې وه. دا هغه څه وو چې احمد شاه په ډېر لږ وخت کې په اسانۍ سره وتوانېد چې تر خپل نفوذ لاندې ساحې د امو یا جیحون څخه تر عمان سمندر پورې، د خراسان او سیستان ولایتونو څخه تر ګجرات پورې پراخوالی ورکړي چې د دې هېواد قومونو ته یې سیاسي یووالی ورکړ.

احمد شاه، د دولت مرکزیت او عمومي امنیت په داسې شکل ټینګ کړی وو چې فیوډالانو او ملکانو د بزګرانو په وړاندې په خپلو کړو وړو کې او د دولت په مقابل کې خپل مسولیت احساس کولو. منځنۍ طبقې،ښاري مېشته او تاجر طبقې هم د فعالیتونو لپاره ازاد شرایط لاسته راوړل. دې د فیوډالي سیستم د متمرکز دولت لپاره د ټینګښت اسباب برابر کړل. د بلخوا احمد شاه، ځواکمن فیوډالان په مسلکي او نظامي چارو کې د ونډې اخیستو له لارې رضا کړل. د دوی نظریاتو ته یې په جرګو کې توجه او پام یې ورته کولو، دوی یې په ډېرو جنګي سفرونو کې مصروف وساتل. دا وو چې د یو یا دوه ځل څخه زیات د دوی له نا خوښۍ سره مخ نه شو. د دې مخالفتونو تر ټولو شدیدترین یې د کندهار د فیوډالانو لخوا وو (لکه نور محمد خان میر افغان، عثمان خان توپچي باشي،کدو خان او محبت خان پوپلزی او نور) وشو. دوی د احمد شاه د پاچا د غوره کېدو په ورځ انتخاب کېدو په ورځ، دوی فکر کولو چې یوازې احمد شاه به د دوی او د دوی د قبیلې د مطلق العنانی د مخنیوي علت نه وي، کله چې دوی ولیدل چې د احمد شاه د دولت لاس د ټولنې په ټولو اړخونو را چاپېر کړی او د قوي او پخوانیو فیوډالانو په خوله یې قیضه ووهله، خپله ناخوښي ښکاره کړه، کله چې احمد شاه په بهرني سفرونو مصروف وو، د ده د قتل دسیسه او د مرکزي دولت د ړنګولو کوښښونه یې وکړل، ولې

احمد شاه چې پوره استخباراتي معلومات یې لرل، هغه لویه ډله یې ټول په کندهار کې اعدام کړل.د احمد شاه دې حرکت د لویو فیوډالانو سره د راتلونکي دولت حساب روښانه کړ.

له هغې څخه وروسته، اګر چې احمد شاه د دولت پلوي فیوډالان په کرار ساتل کله به یې منصبونه او کله به یې هم ځینې سیمې دوی ته ورکړې حتی چې د فیوډال د مړینې څخه وروسته به یې زوی د فیوډال په حیث وټاکلو، خو لوی فیوډالان یې له خپلو قومونو څخه لرې په دربار کې ساتل او جنګونو ته یې لیږل مګر اجازه یې نه ورکوله چې په پلازمېنه کې وسله والې قبیلوي قطعې ولري. احمد شاه قبایلي ځواکونه له مرکز څخه بهر کړل، د هغو په ځای یې معاش خوړونکي افسران وګمارل. دا ځواکونه چې د دولت څخه یې په ټاکلې اندازه معاش اخیست، د دې امکان ورسره نه وو چې د خلکو او قبیلو سره مستقیمه اړیکه ولري. احمد شاه حتی یو ځواکمن فیوډال یې هم په خپله قبیلوي سیمه کې په کار نه ګمارلو، د هغه پر ځای به یې د دولت څخه معاش اخیستونکي حاکمان چې د منځنۍ طبقې خلک وو هلته په قبایلي سیمو کې په کار ګمارل. روحاني قشر یا مذهبي ملایان هم د احمد شاه څخه راضي وو، دا ځکه چې احمد شاه دوی ته ډېر احترام کولو او د مسجدونو او قضا ټول کارونه یې دوی ته سپارلي وو.

احمد شاه ته به یې د خدمتونو، اخلاقو او د تقوا له مخې د پلار او غازي خطاب کولو. دا ځکه چې احمد شاه د افغانستان یوازېنی پاچا وو چې تاج یې نه په سر کولو او د تخت پر ځای پر فرش شوې ځمکه کښېناست. دی د خلکو سره په مستقیم ډول په اړیکه کې وو، په تواضع او ورین تندي یې خبرې کولې، د قضایاوو په حل او فصل کې یې د عدل او انصاف څخه کار اخیست، په عین حال کې یې د هغو قوانینو څخه چې ده په خپله وضع کړي وو، په ډېر شدت سره پیروي کوله. احمد شاه د خپل سلطنت په جریان کې عیاشي او تجمل و نکړ او حریص هم نه وو. هغه د دوښمن په مقابل کې په یوه جنګ کې هم له میدان څخه نه دی تښتېدلی، د هېواد د اوسېدونکو او خپل ملت په مقابل کې ملایمه او متواضع وو. د مثال په توګه په مجازاتو کې د بدن د غړو غوڅول، او په تشریفاتو او ملاقاتو کې ډېره خشوع او عاجزي ده نه منله .

احمدشاه خپله کورنۍ او خپلوان د دولت په چارو کې د مداخلې څخه لرې ساتل، یوازې خپل ولیعهد تیمور ته یې د جهان خان پوپلزي تر هدایت لاندې د هېواد په لوېدیځو او ختیځو سیمو کې د سیاسي او نظامي تمریناتو اجازه ورکړې وه. له دولتي چارو څخه د کورنۍ او خپلوانو لرې ساتل تر دې حد پورې وو چې تاریخ او خلک بغیر د تیمور او سلیمان څخه، د احمد شاه کورنۍ او د کورنۍ نور غړي په بشپړ ډول نه پېژني، په داسې حال کې چې احمد شاه ابدالي اته زامن درلودل ( لکه سلیمان، تیمور، شهاب، سنجر، یزدان بخش، سکندر، داراب او پروېز).

احمد شاه د دربار مصارف کم کړل، د کارګرانو او د دولت د عسکرو یا ساتونکو معاشونه یې په خپل وخت باندې ورته ورکول. د دولت مالي دفترونه، د دولت خزانه او خرڅ ټول پراخه او منظم وو. احمدشاه په پلازمېنه کې هم اداري جوړې کړې. چې د هغې څخه وزارت (د صدارت په رتبه کې)، اعلی دېوان (د مالیې وزارت)، خزانه داري، د ضبط بیګي دفتر (امنیه او کوتوالي)،نسقچي باشي (د مجازاتو پلي کوونکي)، داروغه ګي، د اخبار دفتر او هرکاري باشي (د احوالاتو ضبط او استخبارات)،میر اخور باشي (د حیواناتو حمل او نقل)،څو نورې کوچنۍ اداري لکه باجګیر، میراب، خالصه جات،

ښاري کلانتر او نور. همدا راز په ولایتونو کې لاندې ادارو کار پیل کړ، حاکم، پېشکار (معاون)، د لښکر امیر، مستوفي، قاضي، قلعه دار، باجګیر، د ثالثاتو مامور، میر اخور، میراب او کلانتر. او همدا راز د دیوان انشاء په دربار کې، عوض بیګي، مېلمه دار باشي، پېشخانه چي باشي، د طعام د کارخاني ناظر او په اردو کې لښکر لیکونکی، (نظامي دفتر)، اردو باشي، جارچي باشي، سیورسات چي او قورخانه موجود وو.شرعي محاکم په پلازمېنه او ولایتونو کې د قضایي منزلت او قوې په لاس کې وو او همدا راز د قبایلو د لویانو او مشرانو څخه جرګه، افسران او مامورین چې لوړې رتبې یې لرلې، سم د لاسه په پلازمېنه کې استخدام شول، په اداري، نظامي او سیاسي مسایلو کې یې غور کولو، او خپل نظر به یې پاچا ته وړاندې کولو.

احمدشاه د وینې شکر د ناروغۍ له امله د پنجاب او هند څخه د بېرته راتلو څخه وروسته ورځ په ورځ ضعیف کېدلو او همدا راز د اس څخه د لوېدو وروسته یې چې کوم زخم په پوزه جوړ شوی وو هغه هم ناسور شوی وو د ۵۱ کلونو په عمر د د کندهار په سوېل د توبه په غره کې چې د ګناهونو د استغفار لپاره تللی وو ومړ (۱۷۷۲ ز کال د اکتوبر ۲۳ نېټه).

## په هېواد کې د مېشتو قومونو سره اړیکې

په دې کې شک نشته چې افغان سلاطین د هغې جملې څخه امیر عبدالرحمن خان د هغه نه مخکې او وروسته دوی یا کورنۍ یې ظالمان وو. دا استبداد د ټولو قومونو او نسب په وړاندې نه بلکې د مخالفت، واک او ځواک په نظر کې نیولو سره تر سره کېدو. ډېر پښتانه قومونه له خپل کور او کلیو څخه د هېواد لرې سیمو ته تبعید شول. حتی د نادر خان او ورونو په زمانه کې یې هم ځینې کسان لکه ملک قیس د ننګرهار د خوګیانیو په تبعید کې د هېواد په نورو سیمو کې ژوند کولو.

په تېرو نیږدو کلونو کې طالبانو حملې په یکاولنګ، بامیان او مزار شریف کې د هزاره ګانو وژل کولی شو د مذهبي، ضد د شیعه او قومي تعصبونو له وجهې وبولو. همدا راز د طالبانو لخوا د شمال د خلکو باغونو او پټیو ته اور اچول نور جنایتونه دي چې د ننګ داغ یې د طالبانو پر تندي باندې د ابد لپاره وهلی دی. اما د طالبانو مشران هغه کسان دي چې د پاکستان تر حاکمیت لاندې د ډېورنډ کرښې شاوخوا د مهاجرینو په کمپونو کې زېږېدلي او ستر شوي دي، په دیوبندي او په شیعه پاکستاني مدرسو کې یې درسونه لوستي، د دوی په فرهنګ کې د افغان ملت او وطن دوستۍ نښې نشته دي، څو د افغانستان مېشت غیر پښتون قومونو مذهب ته د احترام لرلو سره دوی خپل ورونه وبولي.

باید په یاد ولرو چې د افغانستان د حکمتونو له دری سوه کلن تاریخ څخه تاریخ لیکونکو یوازې دوې پېښې یاد کړې چې په هغه کې مرکزي حکومت له غیر پښتون قوم سره په جګړه کې ښکېل شوی دی، لومړۍ پېښه په هزاره جات باندې د امیر عبدالرحمن خان حمله دویمه پېښه په پخواني کافرستان باندې د امیر عبدالرحمن حمله او هلته په خلکو کې د اسلام مبارک دین خپرول چې نن هغه سیمه د نورستان به نوم یادیږي .

پوښتنه دا ده چې ایا په غیر پښتنو قومونو باندې دا حملې د پښتون قوم فاشیستي او خصمانه عمل ګڼل کېږي؟ او یا په ولایتونو باندې د یو مرکزي دولت د قدرت د تحکیم او ملک الطوایفی تضعیف او له منځه وړلو اقدام د یو دولت اقدام؟

په دې کې شک نشته چې د افغانستان په مرکزي سیمو باندې د امیر عبدالرحمن خان یرغل د هزاره قوم تر ستم لاندې شو، د دوی ځان او مال د پښتنو قومي ملېشې لخوا تاراج شول، د دې عملیاتو په ترڅ کې د هزاره کورنیو ډېر خلک د مرکزي سیمو څخه د هېواد نورو سیمو او د هېواد څخه د باندې سیمو ته خپاره شول. دا زیاتی تر دې حده پورې وو چې له عبدالرحمن خان څخه وروسته زوی یې امیر حبیب الله خان د یو فرمان په صادرولو سره د خپل پلار په کړنو له هزاره ګانو څخه بښنه وغوښته او له دوی څخه یې وغوښتل چې بېرته خپلو کورو ته راستانه شي .

اما په عین حال کې د امیر عبدالرحمن خان دا عمل په بل قوم باندې د پښتون قوم یو فاشیستي عمل نه وو، بلکې دا دې یو مرکزي دولت چې د خپلې واکمنۍ په حدودو کې شامل ولایتونه تر کنټرول لاندې راولي اقدام وو، چې هزاره ګانو د مرکزي حکومت له اوامرو څخه سرغړونه کړه او دوی په خپلو سیمو کې یې خود مختاري غوښته . (د امیر عبدالرحمن خان د خاطراتو کتاب). د امیر عبدالرحمن خان دا یرغل د احمد شاه مسعود لخوا په ۱۹۹۳ ز کال په هزاره ګانو او شیعه ګانو باندې له شوي یرغل سره کوم تفاوت نه لري .

د افشارو په پېښه کې چې احمد شاه مسعود د برهان الدین رباني د حکومت د دفاع وزیر وو، د خپلو نیږدې ملګرو په ملاتړ لکه ډاکټر عبدالله عبدالله، بسم الله خان او نور، د افشارو د هزاره ګانو مقاومت مات او د کابل په لوېديځ افشارو کې یې د دولت حاکمیت ټینګ کړ. اما په عین حال کې د مسعود ځواکونو په دې یرغل سره په افشارو کې لانور نه بښونکي جنایتونه سرته ورسول.

د نورستان واقعه هم د یو حاکم قوم پر محکوم قوم باندې یرغل نه و، مګر عبدالرحمن خان لکه د هر یو سلطان په څېر چې د ده څخه مخکې تېر شوي وو، په هېواد کې د اسلام په خپرېدو سره کار پیل کړ.

د هزاره ګانو سره د اړیکو په هکله محمد سعیدي به خپله یوه تحقیقاتي مقاله کې د هزارستان له اقتداره تر افتخاره تر نامه لاندې او ډاکټر سید عسکر موسوي په خپل کتاب د افغانستان هزاره ګان کې داسې لیکلي دي : درویش علي خان هزاره چې د احمد شاه ابدالي د ژوند تر وروستیو پورې د هرات نایب السلطنه پاتې شو په هرات کې د دراني حکومت په ټینګښت عمده رول درلود.

- په ۱۲۳۱ هجري سپوږمیز کال کې بنیاد خان د جمشیدي او فیروز کوهي هزاره جنګیالیو یوه ډله په ځان راټول کړل، د جام او باخرز ولایتونه یې ونیول او تر مشهد پورې مخکې ولاړ.
- په ۱۲۳۲ هجري سپوږمیز کال د ایران او د افغانستان تر منځ جګړه کې وزیر فتح خان زخمي شو، مګر بنیاد خان هزاره د قاجاریانو دوهم تر ټولو مهم شخص عبدالوهاب معتمد الدوله اصفهاني د جګړې په وروسیتو کې په اسارت ونیو چې وروسته یې په بدل کې شجاع السلطنه د جام، بافرز او غوریان حکومتونه بنیاد خان ته ورکړل .

- په ۱۲۵۴ هجري سپوږمیز کال کې کرنیل شیر محمد خان هزاره څلور زره کسانو جنګي ځواک ترتیب او د هرات د والي کامران له ځواکونو سره یو ځای کړ او د قلعه نو په لور یې د اصف الدوله ایراني د پرمختګ مخنیوی وکړ او په ۱۲۵۵ ه س کال کې یې په یوه چریکي جګړه کې د دوښمن له ځواکونو څخه شپږ سوه اسان ونیول.

هزاره درویش علي خان د هرات لومړنی حاکم په یو جغرافیه کې د افغانستان په نامه وو چې د احمد شاه بابا په دوران کې دې سیمې ته منسوب کېدو او د احمدشاه ابدالي د ژوند تر وورستیو ورځو پورې د هرات نایب السلطنت پاتې شو (انټرنیټي وېبپاڼه /http://Urozgan.org/fa-AF/article/8284/).

الفنستون د ؛کابل سلطنت بیان؛ په کتاب کې لیکي چې د احمد شاه ابدالي د تاج اېښودلو په مراسمو کې د اوزبیک، قزلباش، هزاره ګانو او تاجکانو استازي شته وو.

د ژورنالېستانو د اتحادیې رییس ښاغلي عبدالحمید مبارز په یوه تلوېزوني مصاحبه کې د احمد شاه بابا د وخت د والیانو لېست داسې بیان کړ : درویش علي خان هزاره هرات، عباسقلي خان بیات نیشاپور، اشرف خان غلجی قلات، دوست محمد خان کاکړ شکارپور،شاهرخ افشار مشهد (د نادر افشار لمسی)، خواجه عبدالله کشمیر، امیر سنګ پتیاله، نصیر خان بلاض بلوچیستان، زین خان مهمند پنجاب، نورمحمد خان سندي سند، موسی خان دیره اسمعیل خان، شجاع خان ابدالي ملتان او د دارالانشا په مرکز کې میرزا هادي خان قزلباش وو. په دې ترتیب د احمد شاه ابدالي په وخت کې د هېواد په اداره کې د قومونو تنوع وینو .

**اعلیحضرت تیمورشاه**

تیمورشاه درانی (۱۷۹۳-۱۷۷۳) د دراني امپراتورۍ دوهم پاچا وو چې د افغانستان د معاصر دولت بنسټ یې کېښود. نوموړی په ۱۷۴۶ کال کې په مشهد کې زېږېدلی او په ۱۷۴۷ کال کې د نادرشاه له مړینې وروسته له خپل پلار احمدشاه دراني سره یوځای کندهار ته ولاړ چې احمدشاه خپل واک ټینګ کړي او د دراني امپراتوري جوړه کړي. تیمورشاه په ۱۷۷۳ کې د شاهۍ تخت ته ورسېد. خو هغه د دراني سردارانو په منځ کې یو د عامو د خوښې انتخاب نه و، ځکه چې هغه مخکې د خپل پلار په استازیتوب په شمالي هند کې د واک په ساتلو کې پاتې راغلی و. هغه په 1793 کې د خپل مرګ تر وخته پورې پر افغانستان واکمن شو او له 20 څخه زیات زامن یې درلود. خو د هغه له مړینې سره کورنۍ جګړه پیل شوه او امپراطورۍ د سقوط په کړاونو کې راګیره شوه. ځکه چې د تیمور اولاده وروسته د واک او تخت لپاره په مبارزه کې ښکیل شول.

لکه څنګه چې د "دیوان تیمورشاه" کتاب چې د عزیزالدین وکیلي په تصنیف شوی دی د احمدشاه د پر ځای ناست شاه دراني په اړه د بحث سر یې پیل کړی دی چې په ادبي متنونو کې د اعلیحضرت تیمورشاه دران په نوم یادیږي. د ابدالي دوهمهستره امپراتورۍ وه چې تر اته څلوېښتو کلونو پورې یې دوام ونه کړ. یو تکړه سړی او د افغاني اسلامي

فرهنگ او ادب په لاره کې د پوهنې د نامتو پلار د تینگار او لاربنوونو سره سم یې د فرهنگ او ادب د ودې او پرمختگ په لاره کې هم ستر گامونه پورته کړل.

لکه څنگه چې د سراج التواریخ په تاریخي روایتونو کې راغلي، احمدشاه له مړینې وروسته شپږ زامن پاتې شول: تیمور، داراب، سلیمان، شهاب، اسکندر او پرویز. خو د دوی له جملې څخه یوازې تیمور او سلیمان د شاهي قدرت ته ورسیدل او پاتې نور یې د پام وړ نه وو. د هغه وخت وزیر شاه ولي خان چې اراده یې درلوده خپل زوم شهزاده سلیمان واک ته ورسوي، د احمدشاه د مړینې د ماتم د دورې په پای کې سلیمان په تخت کېناوه. د پایلې په توگه، شهزاده تیمور چې په هرات کې واک درلود، یو لښکر سمبال کړ او د کندهار په لور یې حرکت وکړ. په فراه کې یې وزیر شاه ولي خان او همه رهان ووژل، کندهار ته ولاړ او په ۱۱۸٦ هـ ق ۱۷۷۳ میلادي کال کې پر تخت کېناست. د اعلیحضرت تیمورشاه د تاجپوښتنې د مراسمو له ترسره کولو وروسته هغه کسان چې د اعلیحضرت احمدشاه په زمانه کې یې دندې درلودې په خپلو پخوانیو پوستونو پاتې شول. وروسته په کندهار کې د لنډې مودې له پاتې کېدو وروسته، چې ښه واکمني یې وکړ او د هغه ښار اړوند ټول مسایل یې په بشپړه توگه هوار،حل او فصل کړل، د اوړي د موسم د تېرولو لپاره کابل ته ولاړ. تیمورشاه ته د رسیدو سره سم، د دراني امیران چې د وزیر شاه ولی خان په مړینه خواشیني او خپه وو، له تیمور سره یې ښکاره او پټه دښمني اعلان کړه. هغه چې د دوی له مخالفت څخه خبر شو، ټول یې محکمې ته راوغوښتل او اعدام یې کړل. نور درانیان چې د شاه ولي خان له وژل کېدو خواشیني شوي وو، ډېر وېرېدل او کودتا یې پلان کړه. په پایله کې عبدالخالق خان سدوزی یې خپل مشر وټاکه. په لنډه موده کې د ده په شاوخوا کې شپیته زره سپاره عسکر راټول شول او هغه له کندهاره ووت چې کابل فتحه کړي او د اعلیحضرت تیمورشاه رژیم نسکور کړي. په دې وخت کې تیمورشاه له ٦۰۰۰ څخه زیات اس چلونکي یا جنگي کسان د ځان سره نه درلود. خو د دې سره سره بیاّ هم د څښتن تعالی لطف د اعلیحضرت په برخه شو. څکه پاینده خان بارکزی، محراب خان شیرزی او دلاور خان اسحاقزی له عبدالخالق څخه جلا شول او له شاه سره یوځای شول. کله چې دواړه لوري سره مخامخ شول، سخته جگړه پیل شوه. د کودتا پلانوونکي مات شول او عبدالخالق خان او د هغه ځینې افسران ونیول شول او د شاه عبدالخالق خان په امر ړوند شو. له دې برې وروسته سردار پاینده خان بارکزي او دلاور خان اسحاقزي چې دواړه یې له عبدالخالق سره لاس او گریوان وو او د اعلیحضرت تیمورشاه سره یوځای شول په ترتیب سره د "سرفراز خان" او "مدد خان" افتخاري لقبونه یې ترلاسه کړل.

د احمد شاه زوی تیمورشاه د حکومت د قبیلوي نفوذ څخه د لیرې کولو په خاطر د هیواد پلازمینه له کندهار څخه کابل ته انتقال کړه. دپښتنو په مقابل کې یې د قزلباش ځواکونه چې یو خارجي عنصر وو د خپل د ساتونکو یا څارندویانو په توگه یې وکارول، په دې توگه باید ووایو چې د تیمورشاه د دوه لسیزو پاچاهۍ په اوږدو کې هغه توانیدلی وو چې د دې سره سره چې افغانستان یو خان متمرکز جوړښت درلود،بیاّ هم یو ځواکمن او مرکزي حکومت جوړ کړي. هغه عامل چې د هغه او د مختلفو سیمو د خوانینو تر منځ د داخلي شخړو لامل شو. خو په همدې حال کې تیمورشاه د خپلې واکمنۍ په دوو لسیزو کې داسې رغنده او مهم کارونه ترسره کړل چې د یو متحد، باثباته او پرمختللی افغانستان د بنسټ ایښودلو لپاره یو قوي او غښتلی پایې وي. که د هغه په وخت کې کلتور، ادب او نورو علومو وده وکړه.

په توله کی ویلای شو، چې که څه هم د تیمورشاه هڅې د یوه ځواکمن او متمرکز حکومت په رامنځته کولو متمرکزې او اخته وې، خو د هغه ځایناستي یا ولی العهدان د جګړې په یوه ناوړه کړۍ کې راګیر شول. د افغانستان د ثبات او یووالي لپاره هغه څه چی پاشنه آشیلی غوښتو. په ۱۷۹۳ کال کې د تیمورشاه له مړینې سره سم، د درانی سلطنت هم دهغه د ۲۴ زامنو تر منځ په خپلمنځي شخړه کې ښکیل او راګیر شو.

## لوی شاه زمان

لوی شاه زمان او یا زمان شاه د تیمورشاه زوی او د لوی احمدشاه لمسی و چې د دراني سلطنت بنسټ ایښودونکی هم و. زمان شاه د دراني سلطنت دریم امپراتور و چی د هغه له نسکوریدو وروسته د دراني د سلطنت زرینه دوره پای ته ورسیده. اعلیحضرت تیمورشاه دراني په ۱۷۹۳ کال کې وفات شو. شاه زمان د دوه ویشتو او دریویشتو کلونو په عمر وو چې پلار یې وفات شو، د پلار له مړینې وروسته یې د هغه جنازه ادا کړه او بیآ یې خپلو ورونو ته په لویه جرګه کې د ګډون بلنه ورکړه. لویه جرګه کومې نتیجې ته ونه رسیده او شاه زمان د یو شمیر درباریانو په ملاتړ خپل وروڼه بندیان کړل او د دراني سلطنت تاج یې خپل په سر کړ.

د شاه زمان مشر ورور همایون د ده پاچاهي ونه منله او بغاوت یې پیل کړ، خو د شاه زمان له سختو ماتو سره مخ شو، شاه زمان د دې خاورې یو له سترو کسانو څخه دی. ټول تاریخ پوهان چې د شاه زمان تاریخ لیکي په دې خبره متفق او یو بل سره پر دی هم نظره دي چې هغه د انګریزي استعمار یو له سترو دښمنانو څخه و او هغه ډیره هڅه وکړه چې له هند څخه د هغوی شر او فتنه کمه کړي. د شاه زمان کبیر په اړه چې موږ لا د مخه پوهیږو، موږ ته دا جوته ده چې که دا د هغه د ورور محمود د فتنو نتیجه نه وای او که هغه بیآ د انګریزانو او ایرانیانو د لوبو لوبغاړیتوب نه وای کړې، نو شاه زمان کبیر به په آسانۍ سره هند د غاصبینو له منګولو ژغورلی وای.. د ټیپو سلطان په ګډون د هند ټولو واکمنانو په وار وار له شاه زمان څخه وغوښتل چې پر هند یرغل وکړي او د انګرېزانو له استعمار څخه یې وژغوري، هغه ومنله ځکه چې له یوې خوا یې غوښتل چې پر هند یرغل وکړي او د خپلې خاورې اندازه او مساحت زیاته کړي او له بلې خوا یې د خپلې خاورې د پراخولو غوښتونکی شو. د برتانوي واکمنۍ له پیاوړتیا څخه وېرېدل او د افغانستان لپاره یې هند او د هغې پر پایلو پوهېدل. انګریزانو د محمود او د هغه د زوی فیروز ملاتړ وکړ او په دې بریالي شول چې د بولهوس قاجار شاه فتح علي د پیسو په لګولو سره له دوی سره یوځای کړي او شاه محمود قدرت ته د رسولو په موخه یی په دار ولګوی. محمود څو ځله د ایرانیانو په مرسته د شاهزمان جنګ ته لاړ خو هر ځل یې تر بل هر مخکنی ځله سخته ماته وخوړه.

د شاه زمان کبیر د واکمنۍ پر مهال افغانستان د پوځي لحاظه یو له سترو قدرتونو څخه ګڼل کیده، د شاه زمان کبیر د غبار د تاریخ له مخې ۱۵۰ زره پوځونه درلودل، د احمدشاهي تاریخ لیکوال هم لیکي چې د شاه زمان پوځ اته شپیته زره تنه درلودل چې سل تنه یې پر اوښانو سپاره وو چې د دراني حکومت،سپکې توپخانې په اوښانو بارولې. د شاه زمان په دوره کې د افغانستان د پوځي ځواک په بیانولو کې دومره بس دی چې د هند اکثرو واکمنانو په ټینګار سره افغانستان

ته بلنه ورکړه چې هند ته ورشي او د انګریزي استعمار له منګولو وژغوري. او حتی ناپلیون غوښتل چې له هغه سره یو ځای شي، خو شاه زمان غوښتل چې د خپل پوځي ځواک په تکیه کولو سره انګرېزان له هند څخه وشړي.

بالاخره د بدمرغه مثلث اتحاد یعنې انګریزانو، ایرانیانو او محمود په دې وتوانید چې شاه زمان له واکه وغورځوي او هغه د بینایی یا د لید له نعمته محروم کړي. د هغه ځایناستی یا جانشینان د شخړو او بی باوری په یوه ناوړه کړۍ کې راګیر شول؛ . د افغانستان د ثبات او یووالي لپاره هغه څه چی پاشنه آشیلی غوښتو. په ۱۷۹۳ کال کې د تیمورشاه له مړینې سره سم، د درانی سلطنت هم دهغه د ۲۴ زامنو تر منځ په خپلمنځي شخړه کې ښکیل او راګیر شو.

### د پښتنو پاچاهانو د حکومتدارۍ او چلند څرنګوالی

ایا د پښتنو د حکومتدارۍ تګلارې په پرله پسې زمانو کې له ګاونډیو هېوادونو سره تفاوت درلود؟

پښتنو دولتونو د نورو قومونو او ملتونو سره د خپلې واکمنۍ په زمانه کې څه وکړل؟

راځئ د پښتنو واکمنو د حکومتدارۍ شواهدو ته کتنه وکړو!

- د میرویس هوتکي د زوی شاه محمود هوتکي د لخوا په ایران باندې نظامي حملې ۱۷۲۲ ز کال او د اصفهان نیول چې په نتیجه کې یې شاه حسین صفوي خپل تاج او تخت شاه محمود هوتکي ته پرېښود او د صفویانو دوه سوه کلنه امپراتوري ونړېده. شاه محمود هوتکي په فارس کې د نورو سلاطینو د رواج برخلاف شاه حسین صفوي او کورنۍ یې ژوندي پرېښودل او دوی یې تر خپل نظر لاندې وساتل.
- شاه محمود هوتکي د صفوي شاهي کورنۍ سره د دوستۍ جوړولو لپاره د شاه حسین صفوي له لور او خور سره واده وکړ .
- د ډهلي د فتحې څخه وروسته احمد شاه دراني له هند څخه مالیات اخیستل، خو د هند له واکمن سره یې ښې اړیکې ساتلې د کورګاني شاهي کورنۍ لور (ګوهر نساء) یې خپل زوی تیمور شاه ته په نکاح کړه. د دوراني حکومتونو د مغولي شاهي کورنیو سره نسبتا ښې اړیکې لرلې خو چې هند ته انګرېزي لښکرې داخل او د هند مغولي شاهي کورنۍ یې له منځه یووړه.
- احمد شاه د نورو قومونو سره د واده کولو په سیاسي ارزښت پوهېدلو، د دې سربېره چې د کورګاني سلطان لور یې تیمور شاه ته په نکاح کړې وه، د شاهرخ میرزا لور د نادر افشار لمسۍ یې هم تیمور شاه ته په نکاح کړه په دې ډول یې خپل خانداني موقف لا نور مستحکم کړ.
- احمد شاه شاهرخ چې د نادرافشار لمسی وو د خراسان حاکم وټاکلو.

انګرېزي جورج فورسټر د تیمور شاه په وخت کې له بنګال څخه لندن ته د کشمیر، پېښور، کابل، کندهار، هرات، مشهد، او روسیې له لارې سفر کولو د افغان دولت د حاکمیت لاندې شرایطو له ارزیابۍ او د خراسان د اوضاع او احوال څخه وروسته، د خپل سفر د سفرنامې په کتاب کې داسې لیکي چې د افغان دولت د فارسي خراسان د شیعه خلکو سره ډېر ښه چلند کوي او دا خلک یې په خپلو ټولنیزو، مذهبي، او فرهنګي کارونو کې په بشپړه توګه ازاد پرېښي په داسې حال کې چې شیعه ګان افغان سني مذهبه حتی مسلمان هم نه ګڼي

(جورج فورسټر، د لندن چاپ ۱۷۹۸ زکال،دوهم جلد،۱۴۸ ص)

- په دې زمانه کې منځنۍ اسیا په بخارا کې د جنیدي کورنۍ واکمنه وه. دا حاکمیت نیږدې د ۱۷ زیږدیزې پېړۍ په سر کې پیل شوی او د احمدشا بابا د زوی تیمور شاه تر زمانې پورې یې دوام وکړ. د افغانستان شمالي ساحې د جنیدي لښکرو د حملو تر تهدید لاندې وې تر هغه پورې چې د احمد شاه د پاچاهۍ په دوهم کال (۱۷۴۹ ز ) وزیر شاه ولیخان د هېواد شمال ته ولېږل شو او د جنیدي دولت تعهد وکړ چې د افغانستان پر خاوره به بیا یرغل نه کوي او د افغانستان دولت د دې په مقابل کې تعهد وکړ چې د دوی ساتنه او حمایت کوي. په ۱۷۶۷ز کال کې د یوې توافقنامې له لارې د امو سیند د افغانستان او د بخارا د امارت تر منځ په رسمي توګه د سرحد ډول سره وپېژندل شو.

د احمد شاه ابدالي د حکومت دارۍ دا طریقه په هندوستان کې د پښتنو د تاریخي دولتدارۍ څخه به بې تاثیره نه وي. د افغانستان دولت د جوړښت څخه د مخه پښتنو په هندوستان کې د حکومتدارۍ له څلور سوه کلونو څخه ډېره تجربه درلوده. د غلجیانو، لودیانو څخه تر شیرشاه سوري پورې یې په هندوستان کې حکومتونه کړي دي چې د دوی د واکمنۍ سیمه له بنګال څخه تر کابل او کندهار پورې غځېدله. د هندوستان خلک او ولس تر نن ورځې پورې هغه مشران په ښه نامه یادوي . د دوی څخه د مخه همدا پښتانه وو چې د غوریانو د نظامیانو تر نامه لاندې یې اسلام د هند تر شمال پورې ورسولو.

د هند پښتون دولتونو د کندهار څخه تر بنګال پورې تجارتي لارې وغځولې او په مناسبو ځایونو(فرسنګونو) کې یې کاروان سرایونه جوړ کړل. پښتنو فارسي دري خپله رسمي ژبه وټاکله. اوس که چیرې پښتنو د تاجکانو په وړاندې قومي تعصب لرلی، څنګه کولی شوی چې د هغوی ژبه د خپلې دویمې رسمي ژبې په توګه ومني؟ دوی په هند کې د دري ژبې د پرمختګ په لاره کې ډېر لوی رول ولوبولو چې د پښتنو په پیروی سره بیا بابري مغلو هم فارسي دري ژبې ته د خپلې رسمي ژبې په ډول ادامه ورکړه. د دې سربېره د خپلواک افغان دولت له جوړېدو څخه وروسته، پښتنو بیا هم فارسي دري ژبې ته د خپلې رسمي ژبې په شکل دوام ورکړ. افغان پاچاهانو لکه احمد شاه، تیمور شاه، او شاه شجاع په دري ژبه شعرونه ویل. چې شاه شجاع په دري ژبه کې د شعرونو دېوان هم لري . د افغانستان په پښتون مېشتو سیمو، کلیو او مسجدونو کې د لیکوال د عیني شاهدۍ په بنسټ تر ۱۹۶۰ ز کال پورې د سعدي شیرازي بوستان او ګلستان کتاب ماشومانو ته تدریس کېدل او د حافظ شیرازي شعرونه یې حفظ کول. پښتنو د خپل نوي جوړ شوي دولت لپاره د هند د مغولي او د فارس دولت اداري، نظامي او مالیاتي سیستمونه غوره کړل .

پښتنو په هند کې د مالیاتو ښه سیستم منځ ته راوړ. په هند د پښتنو وروستی واکمني شیرشاه سوري پاچاهي د هند د مغولي پاچا بابر د زوی همایون لخوا د فارس صفویانو په مرسته له منځه لاړه.

## د ګاونډیو هېوادونو د دولت دارۍ طریقه او د دوی د واکمنو چلند

په مجموع کې د پښتنو د حکومتدارۍ طریقه نه یوازې د خپل عصر د نورو ملتونو څخه بدتره نه وه مګر په ډېرو مواردو او ډېر برخو کې عادلانه او بهتره هم وه. دا موضوع د ګاونډیو هېوادونو پاچاهانو او سلطنتي سلسلو ته په یوه لنډه کتنه ښه روښانه کېدی شي.

لاندې مثالونه د ګاونډیو هېوادونو د حکومتدارۍ ښه مثالونه دي.

- شاه اسماعیل صفوي چې د صفویانو د سلسلې بنسټ اېښودنکی وو په ۹۱۶ ه .س (۸۸۹ ل ) کال د یو لوی لښکر سره په خراسان یرغل وکړ، شیباني خان اوزبیک ووژل شو د هغه جسد یې شاه اسماعیل ته یووړ، هغه امر وکړ چې سر یې له تنه بېل او پوست یې ترې وباسئ، د سر پوست یې له بوسو څخه ډک کړ او دوهم عثماني سلطان بایزید ته یې ولېږلو او د ککرۍ هدوکي یې په طلا پټ او د شاه اسمعیل لپاره یې جام ترې جوړ کړ (دانشنامه اریانا،شیبک خان اوزبیک)،
- شاه اسمعیل امر وکړ چې د دربار خلک دې د اوزبیک شیباني خان د بدن غوښې وخوري.
- شاه عباس کبیر د خپلو زامنو سترګې ویستې.
- شاه عباس کبیر امر وکړ چې شهزاده ګان د په چرس او بنګ روږدي کړل شي د ښځو په منځ کې د پالنه وشي څو دې ده پاچاهۍ لپاره کوم خطر منځ ته را نه وړي. صفوي سلطانان د دې سیاست څخه پیدا شوي دي.
- شا عباس صفوي د ازبکانو پر لار د مانع د منځ ته راوړلو په خاطر څو زره کرد کورنۍ د اذربایجان د لوېدیځ او کردستان څخه خراسان ته کوچ او ځای پر ځای کړې (هوشنګ مهدوي، د ایران د بهرنیو اړیکو تاریخ، ۱۳۷۵ ه ل تهران ٦۳ ص).
- شاه عباس په خپل ژوند کې خپل یو زوی مړ او د دوو نورو سترګې ویستې
- یوازې دا یوه پېښه وه چې شاه عباس خپله د نورو کاکا ګانو او خپلوانو په شان له بد برخلیک سره مخ نه شو، حد اقل د هغو نهه کسان د خپلو واکمنو کاکا ګانو دوهم اسماعیل مړه، یا ړانده کړي وو، خو ده نجات وموند.

- نادر قلي بیگ افشار وروسته له هغې چې په دې بریالی شو چې افغانان له ایران څخه وباسي شاه طهماسب یې ونیو او خپله یې د حکومت واګې په لاس کې واخیستې. د ده یو ماشوم زوی یې د هغه ځیناستی وټاکلو ځکه چې هغه نشو کولی هر څه اداره کړي ده خپله ټول کارونه په غاړه واخیستل.
- نادر قلي بیګ افشار په ۱۱۴۸ کال د مغان په دښته کې د سلطنت اعلان وکړ او په شورا کې یې د صفویانو سقوط او له منځ وړل اعلان کړه. په دی شورا کې چې ځینو غړو مخالفت وکړ هغه نادر افشار ووژل.
- نهه کاله وروسته نادر افشار په هندوستان باندې یرغل وکړ ډهلی یې چور او د ډهلي خلک یې قتل عام کړل (۱۷۳۹ ز)
- نادر افشار اګر چې دی په لومړیو کې خلکو ته ډېر منلی وو، خو د خپلې واکمنۍ په وروستیو کې دی ډېر قهرجن او غصه ناک انسان ترې جوړ شو حتی تر دې چې د خپل زوی میرزا رضا قلي د ړنده ولو حکم یې هم وکړ.
- نادر افشار تر ۱۱٦۰ ه س کال پورې ژوندی او قدرت یې په لاس کې وو، د نوموړي د واکمنۍ ډېر وخت د عثماني او کورني پاڅونونو کې تېر شو، دومره مظاهرې او پاڅونونه وشول چې لیونی شو.
- د نادر افشار له وژل کېدو وروسته یې یوه ورور خپل ځان د خراسان پاچاه اعلان کړ او بل یې هغه ړوند کړ وروسته بیا خلکو دواړه ووژل.
- د ایران واکمن ډېر بې رحمه وو څومره چې د دوی توان او قدرت ډېرېدو دومره د دوی بې رحمي ډېرېدله، په پایله کې د هر قدرتمند پاچا څخه وروسته کمزوري پاچاهان منځ ته راتلل.
- په خراسان کې علي قلي خان افشار (د نادر وراره) د نادر افشار اولادونه او د کورنۍ ډېر نور غړي قتل عام کړل، ځان یې عادلشاه ونومولو او حکومت ته یې دوام ورکړ .
- علي قلي خان افشار په پای کې د خپل ورور ابراهیم خان لخوا ړوند او بیا ووژل شو .
- علي قلي خان یو ډېر عیاش او قاتل سړی وو، محمد حسن خان قاجار ته یې ماتې ورکړه، د هغه زوی اقا محمد خان یې د کورنۍ او اولاد سره ورک کړ.
- د شاهرخ میرزا په نوم د نادرافشار لمسی چې د احمد شاه ابدالي لخوا د مشهد والي ټاکل شوی وو یو کال وروسته د خپلوانو لخوا له قدرت څخه لرې او سترګې یې ترې ویستې، مګر بیا قدرت ته ورسېد، ړوند شاهرخ اته څلوېښت کاله یوازې په خراسان باندې حکومت وکړ .

- د نادر افشار څخه وروسته د ایران مختلف ساحې له یو بل څخه جدا شوې وې تر هغه چې کریم خان زند؛ د نادر افشار یو با تدبیره قومندان په ۱۷۵۷ ز کال دې ګډوډۍ ته د پای ټکی کېښود او د (وکی الرعیا) په نوم یې قدرت په لاس کې واخیست او یو مرکزي زندیه حکومت یې جوړ کړ.
- د کریم خان زند له مرګ وروسته، اقا محمد خان قاجار قدرت ته ورسېد او پر خراسان یې یرغل وکړ. د شاهرخ زوی نادر میرزا، خپل زوړ او ړوند پلار اقامحمد خان ته یوازې پرېښود او افغانستان ته وتښتېدو. اقا محمد خان شاهرخ په ډېر عذاب سره مړ کړ.
- د شاهرخ زوی نادر میرزا د فتح علي شاه په زمانه کې د پاچاهۍ ادعا وکړه او ونیول شو، سترګې یې ویستل شوې، ژبه یې پرې او وروسته ووژل شو.
- په عثماني ترکیه کې د پاچاهانو کړنې او سلوک تر دې لا بدتر وو. عثماني پاچاهانو قدرت ته له رسېدو څخه وروسته خپل ټول ورونه، حتی تې خوري واړه ماشومان په خپل حرمسرای کې وژل څو د دوی کوم رقیب پیدا نشي .
- تر هغه ځایه چې عثماني پاچاهانو په خپلو حرمسرایونو کې شرعي او غیر شرعي لسګونه ښځې ساتلې نو د ورونو شمېر به یې هم ډېر وو، دا شهزاده ګان به یې د ورېښمو په پړو یا رسۍ زندۍ کول.
- د عثماني امپراتورۍ په وروستیو کلونو کې د کوچنیو او نویو ځوانانو ورونو د وژلو رواج د حرمسرای په داخل کې په طلایي قفسونو کې په عمري قید بدل شو.
- په هندوستان کې اورنګزېب خپل ورور ووژلو او خپل پلار شاه جهان یې په زندان کې وساتلو.

**په افغانستان کې د غیر پښتون واکمنو سلوک**

ډېری هغه افغانان چې په ۱۹۹۲-۹۳ ز کلونو کې په کابل کې نه وو، د افغانستان د تنظیمي جګړو څخه یو روښانه تصویر نه لري او په سمه توګه د دې ویجاړوونکو جنګونو علتونه، عاملان او نتایج، چې په دې کې زموږ د زرګونو هېوادوالو وینې وبهېدې، د هېواد زرګونه بې ګناه کورنۍ دربدره او مهاجرې شوې په اسانۍ سره په دې نه پوهېږي. په دې ځای کې کوښښ کېږي چې د پورته ذکر شویو پېښو خلاصه د هغه کسانو څخه چې په دې حوادثو شته وو بیان کړو، په ځانګړي ډول د هزاره او یا شیعه ساداتو ساداتو له ژبې او لیکنو څخه، هغه دوه قومونه چې تر ټولو ډېر مصیبتونه یې وګالل.

په ۱۳۷۱ ه ل چې له ۱۹۹۲ ز کال سره سمون خوري په کابل کې د مجاهدینو واک ته له رسېدو وروسته د تنظیمي جګړو ته یوه لنډه کتنه  کوو، چې په دې ټولو کې د عبدالعلي مزاري تر مشرۍ لاندې یو متخاصم وحدت ګوند منځ ته راوړ او چې لاندې پېښې د دوی تر ټولو واضیح ښکارندویي کوي:

- د ۱۳۷۱ ه ل کال په مني کې د شورا نظار ځواکونو لخوا د چنداول په توپ تړل(ورانول)
- د ۱۳۷۳ ه ل کال د سنبلې میاشتې ۲۳ نېټې پېښه ۱۳۷۳ یا په ټوله کې د وحدت ګوند لخوا پاڅون (کودتا) د شیعه ګانو کورونو کې کور په کور جګړه.
- د ۱۳۷۱ ه ل کال دلوې میاشتې په ۲۱ نېټه (فبروري ۱۹۹۳ ز کال) د افشار فاجعه چې د کابل د افشارو په سیمه کې منځ ته راغله، په حقیقت کې د افغانستان په معاصر تاریخ کې یوه ډېره خونړۍ او وحشتناکه پېښه وه. استاد (صباح) په ۲۰۱۳ ز کال د اکتوبر په ۱۴ نېټه په یوه مقاله کې ؛په دری نیمو لسیزو کې په هېواد کې مستند جنایت او انسان وژنه ؛ تر عنوان لاندې په (اصالت ) یوه انترنیتي مجله کې داسې لیکي، دا غم لړلې تراژېدي چې داسې کسانو لخوا لکه د شورا نظار مشر احمد شاه مسعود، د اسلامي اتحاد ګوند عبدالرب رسول سیاف، د رباني د حکومت د استخباراتو مشر محمد قسیم فهیم، د ملي دفاع وزارت قوماندان او د راکټ لوای مشر ډاکتر عبدالله، د کابل د عمومي ګارنیزیون قومندان او د ملي دفاع وزارت عمومي سیاسي رییس یونس قانوني، د بګرام هوایي ډګر مسول او قومندان بسم الله محمدي، د شیخ محمد اصف محسني تر مشرۍ لاندې د اسلامي حرکت د مرکزي شورا رییس سید حسین انوري،د وحدت ګوند اکبري او سید مصطفي کاظمي، د افغانستان د خلکو له منځ وړلو لپاره چې هزاره وو طرح او سرته ورسېده، چې اوس د یو ښکاره او نه انکار کېدونکي جنایت په شکل د تاریخ حافظې ته رسپارل شوی دی.(استاد صباح، اصالت، اکتوبر ۱۴ /۲۰۱۳ www.esalat.org ؛ د عبدالعلي مزاري وحدت ګوند.
- دی لیکي: د سهار په یوه بجه فبروری په ۱۱ نېټه کله چې د افشارو اوسېدونکي په خوب ویده وو، د علوم اجتماعي موسسه(د کابل د ښوونې او روزنې پوهنتون) د دریو خواوو څخه تر حملې لاندې ونیول شو، لوېدیځ څخه د سیاف د اسلامي اتحاد ځواکونو لخوا، د شمال او سوېل  څخه د دولتي ځواکونو لخوا (په حزب کې د هغه جنایتکارانو په مرسته چې مخکې اخیستل شوي او خرڅ شوي وو)ساحه تر محاصرې لاندې  ونیول شوه. دوی تر ۲۴ ساعتونو پورې په قتل، وژل، په کورونو یرغل او اور اچول، ځوان هلکان او نجونې یې د بندیانو په څېر ونیول. د دې اعمالو خبر په همغه وخت په کابل څو ورځې وروسته په ټوله نړۍ خپور شو. د اټکل له مخې په دې پېښه کې نیږدې ۷۰۰ کسان ووژل او یا ورک شول. یو کال وروسته چې د وحدت ګوند دا سیمه بیا ونیوله، هلته څو ډله ییز قبرونه وموندل شول چې په هغې کې  ۵۸ جسدونه پیدا شول. دا قتل عام د بشري حقوقو نړیوال سازمان او ګاونډیو هېوادونو له خوا محکوم او وغندل شو. خو د دې پېښې عاملین هېڅکله نه محاکمه او نه ونیول شول. اګر چې خپله رباني دا قتل عام د خپل حکومت د یوې لویې اشتباه په ډول وغندلو، د پېښې مسولیت د حکومتي ځواکونو په غاړه واچول شو چې داسې ځواکونه د نړۍ په هېڅ ځای د داسې جنایت په تر سره کولو تر اوسه نه دي لیدل شوي، هغه ورځ د افشارو سیمه له ارواحانو سره شباهت درلود، د قتل عام څخه وروسته د سیمې ټول اوسېدونکي کسان له ساحې څخه وتښتېدل. اما د هغې ورځې ترخه خاطرات د خلکو په مغزو او زړونو کې باقي پاتې او مذهبي او قومي اختلافاتو ته یې لا نوره لمن ووهله. دی ادامه ورکوي! په افشارو کې د ډله ییزې وژنې سربېره، په ماشومانو او هم ښځو باندې جنسي تېري وشول، په افشارو کې مجرمو جنایتکارانو د شېږو میاشتو ماشومانو په وینو

په دېوالونو یادګاري شعارونه لیکلي وو، د ماشومانو ځانګوګانې یې په مرمیو ویشتې وې، په ښځو او نجونو یې جنسي تېري وکړل، د یوې دانه ګوتمۍ او غوږوالۍ د غلا لپاره یې د ښځو غوږونه او ګوتې پرې کړې. متاسفانه چې نن ورځ همدا جنګي مجرمین په لوړو دولتي پستونو او څوکیو کې دندې ترسره کوي (استاد صباح، ؛اصالت؛ اکتوبر ۲۰۱۳/۱۴)

- سید محمد علي جاوید د افشارو د پېښې یو تورن په جمهوري خراسان انټرنیټي جریده کې په ۱۳۹۴ ه ل د دلوې په ۲ نېټه داسې لیکي: د ۱۳۷۱ ه ل کال په مني کې په چنداول کې په اټکلي ډول د افشارو ډېر اوسېدونکي په خاورو او وینو کې ولړل شول، او د سنبلې د ۲۳ نېټې په پېښه کې څو زره کسان ووژل شول. د ۱۳۷۷ ه ل کال اسد میاشت کې د مزار شریف په ښار کې زرګونه هزاره ګان د طالبانو لخوا ووژل. او د ۱۳۷۹ ه ل کال په ژمي کې د یکاولنګ په پېښه کې سلګونه غیر نظامي او بې ګناه کسان به خپلو وینو ککړ او د طالبانو لخوا ووژل شول. او د کابل د لوېدیځ او نورو جګړو کې سلګونه زره کسان ووژل شول.
- سید محمد علي جاوید لیکي چې د ۱۳۷۱ ه ل کال د مني په پیل کې چې کله سید منصور نادري کابل ته راغی، په کابل کې د اتیایمې فرقې یو شمېر نظامیان د سید منصور نادري د ښه راغلاست په لپاره د وسلو سره هوایي ډګر ته ولاړل. په داسې حال کې چې هوایي ډګر د جنرال دوستم د کسانو په کنټرول کې وو، خو د هوایي ډګر شاوخوا د احمد شاه مسعود ځواکونه مېشته وو. دوی اجازه ور نه کړه چې د سید منصور ځواکونه د وسلو سره هوایی ډګر ته داخل شي، په پایله کې له لفظي شخړه وروسته وسله واله نښته وشوه چې په ډېر سرعت سره دا جګړه تر کارته پروان او تایمني سیمو پورې ورسېده. په تاسف سره چې دواړه خواوو غیر نظامي کسان نیول او بندي کول. د مسعود ځواکونو هر هغه کس چې هزاره قیافه یې لرله په دې نامه چې اسماعیلي هزاره او د ۸۰ فرقې وسله وال به وي، نیوو او بندي کولو به یې او د ۸۰ فرقې ځواکونو هم هر هغه کس چې د تاجک ګومان پرې کېدو نیولو او زندان ته وړلو. چې په پایله کې د وحدت ګوند او د اسلامي حرکت ګوند ډېر شمېر هزاره ګان د مسعود د ځواکونو لخوا بندي شول (محمد علي جاوید، جمهوري خراسان، دلوه ۲/ ۱۳۹۴).

### د پښتنو قومي او قبیلوي سیستم او دولت

ایا د پښتنو قومي او قبیلوي سیستم د دوی د ټولنیز او فرهنګي وروسته پاتې کېدو څخه سرچینه اخلي او که د هغې بر عکس دا قومي او قبیلوي سیستم د دوی دې اجتماعي تشکیل بنسټ وو، د دوی د سیاسي قدرت بنسټ او اساس وو؟

هره ورځ په چاپي، تصویري، راډیویي او انټرنیټي رسنیو کې په ټوله کې له ډول ډول لکه قبیلوي حکومت، قبیلوي فاشېزم، د قبیلو خلک، قبیلوي اخیستنه، د چاودنو او وژنو قوم، پښتون قوم ته په اشارې، پښتون واکمنوته له اصطلاحاتو مخ کېږو. د دې ډول قوم پرستانه مدعیان اکثرا هغه کسان دي چې سیاسي اړخه د جمعیت اسلامي ګوند او شورای نظار په شاوخوا راټول دي او یا د دوی د سیاست پیروان دي او یا د محمد محقق تر مشرۍ لاندې د وحدت ګوند او داسې

نور د دوی سیاسي ملاتړ کوونکي دي. په عین وخت کې د تاریخ، د تېرو شویو افغان دولتونو په په اړه ډېرى لیکنې او تبصرې په وروستیو کلونو کې د ایران مېشتو هزاره څېړونکو، یا د هغو کسانو لخوا چې هزاره دي او په ایران کې یې زده کړې کړې دي شوې او خپرې کړي دي. سربېره پردې هغه شیعه مذهبي مینه او علاقه چې زموږ هزاره ګان یې له ایران سره لري دې ته په پام سره چې د دوی لاسرسی انګلیسي یا د اروپا په نورو ژبو ته نشته، د دې لیکوالانو ټول ماخذ هغه اثار دي چې یا د ایراني علماوو لخوا لیکل شوي او یا د دوی  لخوا په غوراوي سره ژباړل شوي دي. د دې نظره لوستونکی په ډېر اسانۍ سره کولی شي چې د عرب، افغان او ترک ضد احساس د ایران شوونیستي نیشنلیزم لیکنو کې حس کړي او په ځانګړې توګه د افغانانو او افغانستان هېواد په اړوند چې ایرانیان هغه د لوی ایران څخه د یوه جدا شوې برخه ګڼي.

دا چې د افغانستان هزاره ټولنه ورځ په ورځ څېړونکي، سیاستمداران، تخنیکي ماهران، صنعت ګران، ورزشکاران، او ډېر هنرمندان ټولنې ته  وړاندې کوي دا د خوښۍ او د قدر وړ ځای دی چې په نړۍ کې د افغانستان د سر لوړۍ سبب ګرځي، خو متاسفانه له بلې خوا څخه په لیکنو، تبصرو او تاریخي، اجتماعي او سیاسي موضعګیریو کې د دې څېړونکو، او لیکوالان ډېرى برخه د افغانستان د تېرو حکومتونو په  وړاندې یو خاص خصومت او ښکاره دښمني ښکاره کوي. د دې لیکوالانو د لیکنو او موضعګیریو او سیاسي فعالیتونو څخه داسې برېښي چې کوښښ کوي د ځان لپاره یو نوی فرهنګي چاپېریال جوړ کړي.

د دې نظره، د جعلي اریایي او خراساني هویت څخه دي چې دا لیکوالان د افغان حکومتونو تحقیر په خاطر د قبیلې او قبیلوي مکرر الفاظ استعمالوي او یادوي چې ورسره د لوی خراسان افسوس کوي. ډاکټر صاحب نظر مرادي په یوه مقاله کې د، احمد شاه ابدلي څخه تر عبدالرحمن پورې؛ تر عنوان لاندې چې په خراسان زمین انټرنیټي جریده کې په ۱۳۹۰ ه ل کال د قوس په ۲۷ نېټه خپره شوې لیکي: په ۱۷۴۷ ز کال کې د نادر افشار خراساني مرګ د نوي سیاسي بدلونونو سبب شو چې د ایران او لوی خراسان د جغرافیې د بدلیدو سبب هم شو، د هغې پسې په هند او ماورالنهر کې شو او ...احمدشاه ابدالي بیا دراني د غلجي قبیلي رییس... د افغانانو حکومت له څو پښتنو قبیلو څخه جوړ او په کندهار کې یې بنسټ کېښود. د هغې څخه وروسته د خراسان سیاسي حاکمیت د کندهار په مرکزیت د څو قبایلو په لاس کې وو لکه بارکزي، سدوزي او محمد زي چې د افغاني قبایلو د بدو مناسباتو په خاطر یو د بل په وړاندې ودرېدل، چې دې جوړښت او نظامي څرنګوالي دوی د یو هېواد جوړولو ته چې وروسته یې نوم افغانستان شو، لاره ورته هواره کړه... احمد شاه ابدالي کنسرواسیونی په غوښتنه دپښتنو قومونو او قبایلو څخه جوړ په لوی خراسان باندې د یو قبیلوي حکومت بنسټ اېښودونکی شو [صاحب نظر مرادي، خراسان زمین انترنیتي جریده ۲۸ قوس ۱۳۹۰ ه.ل.

په پورتني مثال کې لیکوال د قوم، قومونو، قبیله او قبایلو اصطلاحات په تحقیر امېزه ډول بیانوي،پس مانده، بې فرهنګ، بدوي، ابتدایي؛ او داسې نورو څخه کار اخیستی. دا همغه مفاهیم دي چې انګرېزي استعمارګرو د قبایلي او کلیوالو سنتي اسیایي او افریقایي ټولنو لپاره د هغو څخه استفاده کوله. دا په داسې حال کې ده چې د پښتنو لپاره هم لکه د عربو ته، یو قوم او یوې قبیلې ځان منسوبول ویاړ ګڼي، د یوه ټولنیز لوړ والي احساس،له یوه قانونمند ټولنیز نظم سره

اړیکه لرل، د یو ټولنیز نظم په وړاندې مسولیت لرل او د یو ټولنیز نظم مراعات او اطاعت کول او داسې نور دي چې د دې تعلقاتو څخه د باندې خلک د دې نعمتونو څخه بې برخې پاتې شوي دي . دا ټولنیز نظم په پښتون ټولنه کې د ؛پښتنولی؛ اصول یا د پښتون ټولنې مدني کود تنظیم او جوړوي، چې په ټولنه کې د اسلامي شریعت او احکامو د محدودیت څخه بهر عمل کوي. اولیور روی فرانسوي ټولنپوه داسې لیکي: دا کار د شریعت د احکامو څخه جدا او متفاوت تفسیر نه دی، مگر دوه مثبت سیستمونه دي چې د یو بل په وړاندې درېدلي دي، هر یو د دې ټولنیز نظم څخه جدا اخیستنه کوي او انعکاس ورکوي [اولیور روی، اسلام او په افغانستان کې مقاومت، انگلیسي متن، دوهم چاپ، کمبرج پوهنتون ۱۹۹۰ ز کال ۳٦ ص]؛.

هزاره او تاجک لیکوالان د افغان حکومتونو د معرفي کولو لپاره د قبیله، قبیلوي دولت او تحقیر امېزه مفهمونو څخه استفاده کوي، دا یې هېر دي چې د نولسمې پېړۍ او یا د هغه نه مخکې حکومتونه لکه بابریان،تیموریان، صفویان، افشاریان، زندیان،قاجاریان او داسې نور په ټولو گاونډیو هېوادونو کې لکه چې د نومونو څخه یې ښکارېږي، د قومي او قبیلوي اړیکو په پایه ولاړ حکومتونه وو. حتی د اکثرو شمالي اروپایي هېوادونو پاچاهانو په خپلو منځو کې کورنۍ او قومي اړیکې درلودې. نیږدې سل کاله د احمد شاه ابدالي له حکومت وروسته اروپایي حکومتونه د یوې کورنۍ په قبضه کې وو چې د انگلستان د ملکی ویکتوریا خپلوان وو (۱۸۳۲-۱۹۰۱ ز کال) نهم کریستیان د ډنمارک پاچا (۱۸۱۸-۱۹۰٦ ز کال)، د انگلستان، بلجیم، ډنمارک، لوکزامبورگ،ناروې، سویډن او هسپانیا شاهي کورنۍ حتی نن ورځ په یوویشتمه پېړۍ کې یې هم جوړوي.

اکثر دا لیکوالان په دې هېواد کې د موجوده شرایطو چې نن یې د افغانستان هېواد په نامه پېژنو هغه د جوړېدو په زمانه کې په بشپړه توگه په نظر کې نه نیسي دا حقیقت پټوي چې د احمد شاه ابدالي په داسې هېواد کې حکومت جوړ کړ چې د دوو پېړیو څخه ډېر د هر حکومت او حاکمیت څخه بې برخې وو او د پردیو پرله پسې یرغلونو له امله د مالیاتو یو گمرگ وو. حتی د خراسان سیمې چې دا لیکوالان یې د وفادارۍ تیره په خپله سینه وهي، د غیر خراساني مغولو، تیموریان، صفویانو او اوزبیک واکمنو د اسانو تر پښو لاندې وو، او دې دغه ټولو حکومتونو مشخص قبیلوي، فیوډالي، کورنۍ او استبدادي اړیکې وې په ځانگړې توگه د صفویانو په زمانه کې شیعه مذهب په ډېر افراطي تعصب سره په ایران کې عملي شو. نادر قلي افشاري چې په دې وروستیو کې هزاره لیکوالانو هغه ته د ایراني په ځای خراسانی خطاب کړی، په حقیقت کې نوموړی وروستنی واکمن وو چې په خراسان کې راپورته شوی دی، نادر افشار په قوم ترکمن وو، پلرونه یې له نورو ځایونو څخه خراسان ته کډه کړې وه. دا کس تر دې حده غوصه ناک او خشن وو او په خپلو شاه و خوا خلکو یې ظلمونه کول چې حتی د خپل زوی څخه یې سترگې وویستلې څو محمد خان قاجاري چې د ده تر ټولو نیږدې دوست وو د ده سر یې له تنه بېل کړ، وروسته بیا کریم خان زند د ده بې سره جسد له قبر څخه راویست او لرې یې وغورځاوو.

تاجک او هزاره نیوکه کوونکي د اتلسمې پېړۍ افغاني حکومتونه تر شلمې پېړۍ پورې دا ټول په هغه معیارونو چې د یو ویشتمې پېړۍ دي څېړي او ارزیابي کوي، دا یې له یاده وتلي چې په هغه وخت کې د ځانگړي نوم لرل، ټاکلې

څلور خواوې، مشخص فرهنګ لرل حکومت د جوړنې لپاره نه وو. د بشري حقوقو، د ښځو د حقوقو، د دموکراسۍ اصطلاحاتو او کلماتو په هغه وخت کې هېڅ نه وو. په همداسې شرایطو کې وو چې احمد خان ابدالي افغان دولت تاسیس کړ او هغه یې په لویه امپراتورۍ بدل کړ چې له نیشاپور څخه تر کشمیر او سند پورې یې پراخوالی درلود. دا واضیح ده چې د افغان دولت اساسات د پښتون قبایلو ټولنیز نظم وو چې د پښتنولۍ په اصولو ولاړ وو، یا د پښتون ټولنې مدني کود، چې د اسلامي شریعت د احکامو سره موازي جوړ شوی دی. مګر کولی شو ووایو چې ۱۷۴۷ز کال کې احمد شاه ابدالي یو جفرسوني اساسي قانون تدوین کړی یا د فرانسې د لوی انقلاب څخه لاسته راغلي دموکراتیک اصول یې چې له دېرش کلونو څخه وروسته معرفي شول کېدی شي چې تر خپل تسلط لاندې سیمو کې پلي کړي وو. د هغې زمانې په شرایطو کې پښتنولي؛ یا د پښتنو قبایلي او ټولنیز مدني کود یو ټولنیز نظم په خپل وخت پورې تړلی شخص ټولنې ته وړاندې کولو چې د اسلامي شریعت د احکامو سره په څنګ کې، د حکومتي کارونو د اداري او مدیریت لپاره په مراتبو او دموکراتیکه ډول د ګاونډیو هېوادونو د حاکمیت د شرایطو څخه وو چې د وخت د واکمنو په غوښه اراده او اسلامي شریعت په اساس اداره کېدل.

ډاکټر صاحب نظر مرادي د اولیور روی، فرانسوي افغانستان پېژندونکي، څخه د افغانانو د قبیلوي ټولنې د ځانګړتیاو په اړوند نقل قول کوي: یو جالبې مسئلې چې عشایرو او د پښتنو قبایلو مشرانو د حاکم د غوره کولو لپاره په لار اچولو سره د هغو څخه کار اخسیتل شوی، د ؛جرګې؛ په جوړولو سره د افغانانو سنتي او تاریخي دود دی. هغه کسان چې د جرګې د واقعتونو څخه لېرې دي، د دولتونو د تبلیغاتو له عنوان څخه داسې فکر کوي چې شاید لویه جرګه د دموکراتیک اصولو په اساس د خلکو د مشارکت سره د دولتي مشرتابه د ټاکلو په شکل چې په معاصره نړۍ کې دي، شباهت لري، په داسې حال کې چې دا برعکس دی، دا د ټولو راټولېدل ؛لویه جرګه؛ نوم اخیستی، په حقیقت کې دا یو وروسته پاتې د سیمه ییزو قبایلو محلي دود دی چې په ښکاره ډول د قبایلي مشرانو راټولېدل د واکمنو د فیصلو، باج ګیریو او سازشونو څخه د پښتنو قومونو د قبایلي مشرانو تر منځ یو سازش دی، چې د کلونو او پېړیو په اوږدو کې متمادي، محلي، قبیلوي دود دی، چې د کلیو د مشرانو یا د قوم خانانو لخوا ترې استفاده شوې ده ( خراسان زمین چاپ ۲۸ د قوس ۱۳۹۰ ه.ل).

زه ډاډمن نه یم چې اولیور روی ؛جرګې او لویې جرګې؛ په هغه شکل سره چې صاحب نظر مرادي یې لیکي ؛ د پښتنو قبایلو یو وروسته پاتې سنت او دود په شکل لیکلی وي. اولیور روی کتاب ؛ Afghanistan: Islam et modernite politique ؛ په فرانسوي ژبه لیکل شوی دی د ډېرو کوښښونو سره سره د هغه انګلیسي متن مې تر لاسه نه کړ. زما شک د دې نقل قول په اصالت کې په دې خاطر دی چې اولیور روی په اصلي کتاب (الیور روی، اسلام او مقاومت په افغانستان کې، کمبریج،دوهم چاپ ۱۹۹۰ ز کال) کې یې چې مشهور هم دی د افغانستان په هکله د پښتنو مدني کود ؛پښتنولي یې ؛دموکراتیک؛ بللی ۰۳٦ ص) او داسې لیکي : په قومي زونونو کې یو مثبت مدني کود یا اساس د پښتنولۍ په نامه شته چې سیستم یې د جرګو په اساس ولاړ دی. پښتنولي له یوې خوا څخه یوه ایدیولوژي ده او له بلې خوا څخه د مدني حقوقو یوه ټولګه هم جوړوي. د قبایلي مدني کود یا اساس په خپل ذات کې غیر مذهبي دی او دا قانون، پښتنولي حتی په ځینو برخو کې د شریعت سره هم مخالف دی. اولیور روی داسې لیکي چې په غیر پښتون ټولنو کې د جزایي قانون

اصلي اصول د ؛ شريعت ؛ پر مبنا ولاړ دي اما په داسې حال کې چې د شريعت څخه پيروي کول يوازې د يو شعار او معيار تر نامه پاتې دی، نور هېڅ سيستم نشته چې د هغې ځای ونيسي (۳۵ص). په طبيعي شکل سره په هغو کليو کې چې غير پښتانه هلته مېشت دي، د کليو او سيمه ييزو حاکمانو، زورواکو لخوا، محلي رهبرانو او محلي ديني مشرانو مطلقه زورواکي هلته پلې شوې او د هغې افراطي شکله استعمال او پلې کېدل په هغه کليو کې چې هزاره مېشت دي او هزاره جات کې ډېر ليدلی شو.

صاحب نظر مرادي ليکي: احمد خان چې د زمان خان زوی او د ابدالي قبيلې رييس وو، هغه هم د خپل اقتدار او سياسي حاکميت د خپرولو او د خلکو د رضايت د تر لاسه کولو په موخه خپل ځان د خپلو رقيبانو په وړاندې په ۱۷۴۷ ز کال په کندهار کې د جرگې څخه استفاده وکړه، او د هغې فيصلې ته يې قانوني او ملي بڼه ورکړه...احمد خان د قبيلوي ټولنو اړيکو ته په پام سره په کار گومارلو او مقرريو کار تر لاس لاندې ونيوو... د خپلو قبايلي مشرانو او لويانو د لاربښوونو په اساس يې اساسامې او ديني، سياسي او نظامي د پام وړ ټکي په کار واچول. د دې مقرراتو د نوم اخيستو څخه دا روښانه برېښي چې احمد خان يوازې په فقه او د اسلامي شريعت په هر اړخيزه مانا اکتفا ونکړه او د خپلو قبايلي مقرراتو د درست او بهتره مديريت لپاره يې د ځانگړو قبيلوي مقرراتو اړتيا احساس کړه.[صاحب نظر مرادي،خراسان زمين، ۲۷ قوس، ۱۳۹۰ ه ل ]

صاحب نظر مرادي دا زياتوي: په هر حال پاچاه د يوې خاصې قبيلې او يا قوم پورې اړه لري (تر ۱۸۱۸ ز کاله پورې د سدوزي او تر ۱۸۷۸ ز کال پورې د ؛بارکزي قبيلې څخه او تر هغې وروسته بيا محمد زي) د قبيلو تر منځ د ودونو د کولو په پايله کې، چې د ساتنې او څارنې او د نورو غير دراني قبايلو په واک کې د شامېلېدلو لاره يې خلاصه کړه په عموم کې دا د هغه ميندو د غوښتنو څخه سرچينه اخلي چې خپلو زامنو ته د واک د سپارلو غوښتنه يې کوله. پُستونه او چوکۍ د دراني قبايلو تر منځ وېشل شوې دي، ټاکنه يا د (لويې جرگې) له لارې او يا هم د تورې او ټوپک د استعمال له لارې شوي. دا جنگونه اکثرا سمبوليک شکل لري، په دې خاطر چې ټول د قدرت غوښتونکي ( د قدرت مدعيان) د دراني قوم څخه دي، تصميم نيول د غير دراني قبايلو لخوا نيول کېدو . [هم هلته]

په دې کې شک نشته چې جرگې او لويې جرگې د پښتنو قومونو يو دود دی. هېڅوک هم دا شک نه لري او دا يې نه دي ويلي چې دا سيستم د لوېديځو ټولنو د ديموکراسۍ په اساس جوړ او بيا پراختيا ورکړل شوې. اما دا ډول جرگو د تاريخ په اوږدو کې د افغانستان مختلفو قومونو ته د مهمو او ملي تصميمونو د نيولو لاره هواره کړې ده. که د نيږدو کلونو مثالونه په نظر کې ونيسو. د بن کنفرانس تصميمونه چې يوازې بيا د يوې لويې جرگې د تصميم نيولو څخه وروسته مشروعيت پيدا کړ او د هغې څخه وروسته د ۲۰۰۴ ز کال لويې جرگې د افغانستان د اسلامي جمهوريت اساسي قانون تصويب کړ. ما ته حتی د يو هزاره او يا اوزبيک مشر معلومات نشته چې داسې يې ويلي وي چې دا لويه جرگه يو وروسته پاتې او يا قبايلي دود دی او د دې خلاف يې څه خبره کړې وي .

بايد هېره نه کړو چې طالبان د مذهبي مدرسو توليد شوي عناصر دي چې د پاکستان په پښتون مېشته سيمو کې روزل شوي. اکثر دغه کسان په پاکستان کې د مهاجرينو په کمپونو کې زېږېدلي دي، هلته لوی شوي په وهابيت او د هغې په

اساساتو د ؛محمدي شریعت؛ د لاربښوونو څخه لرې روزل شوي او درس ورکړل شوی. د سعودي عربستان په پیسو او د سعودي، وهابي او پاکستاني امامانو لخوا ورته درس ورکړل شوی. د دوی اکثریت په فکر او خیال کې د افغانستان سره اړیکه، د افغانستان ملي شتمني او ارزښتونه، د پښتنولۍ اصول او د افغانستان نېشنلېزم نشته او نه شته. د دې یو مثال موږ د بامیانو بودایي مجسمې نړول ویلی شو. د پښتنو حکومتونه د درې سوه کلونو راهیسې چې د پښتنولۍ د دود او دستور سره سم حکومتونه وو، دا مجسمې د ملي او تاریخي سمبول او شتمنۍ د حیثیت په نامه وساتل شوې. په داسې حال کې چې طالبان د مذهبي تعصب له مخې په ځانګړې توګه د ای اېس ای د متعصبینو سره په همغږۍ او مرسته د هندوستان په ضد له نړولو او تخریب څخه خوند واخیست. له دې سره سره یې هم د خپل حکومت په دوره کې طالبانو د هغو دودونو او رواجونو چې په پښتون مېشت سیمو کې رواج لري او پلي کېږي، مخه و نشوه نیولی او د هغه د له منځه وړلو زړه یې هم ونکړ .

## د پښتنو د قومي سیستم د دودونو سره د طالبانو د تحریک داخلي تضاد

هغه کسان چې د طالبانو تحریک ته یو پښتون قومي ګوند یا حزب نوم ورکوي، په دې پوهېږي چې د ؛پښتنولۍ؛ د ارزښتونو په داخل کې تضادونه شته دي او د طالبانو د تحریک د ژورو مذهبي عقایدو څخه بې خبره دي. مخکې مو یو نقل قول د هزاره څېړونکي صاحب نظر مرادي ولوست چې: احمد شاه ابدالي ... د خپلو قبایلي مشرانو د لاربښوونې لپاره د دې دول دیني، سیاسي او نظامي اساس نامې څخه استفاده وکړه . د دی ډول مقرراتو څخه په ښکاره ډول جوته ده چې احمد خان یوازې او یوازې په فقهي او اسلامي شرعي احکامو اکتفا ونکړه د خپلو قبایلي مشرانو د ځانګړو ټاکنو اړتیا یې د خپلو قبایلي مشرانو او د دوی په مدېریت کې احساس کړه. د احمد شاه ابدالي لخوا د قوانینو او مقرراتو د وضع کېدو علت دا وو چې د ؛پښتنولی؛ اصول لکه چې په هغه مو پورته د اولیور روی له ژبې هم ولوستل، د قانون په سطح د شریعت سره په تضاد کې دي.

اولیور روی داسې لیکي: په غیر پښتون ټولنو کې د جزایي اصولو اصلي چوکاټ ؛شریعت؛ تشکیلوي اما په داسې شرایطو کې چې د شریعت څخه پیروي یوازې د یو شعار په شکل پاتې ده، نور هېڅ سیستم هلته نشته چې د دې ځای ونیسي. د دې راز حالت طبیعي پایله په طبیعي شکل سره په هغو کلیو کې چې غیر پښتانه هلته مېشت دي، د کلیو او سیمه ییزو حاکمانو، زورواکو لخوا، محلي رهبرانو او محلي دیني مشرانو مطلقه زورواکي هلته پلې شوې او د هغې افراطي شکله استعمال او پلې کېدل په هغه کلیو کې چې هزاره مېشت دي او هزاره جات کې ډېر لیدلی شو.

د پښتنولی شتون په خپله د پښتنو خلکو د غني فرهنګ څخه استازیتوب کوي. په سنتي پښتنو ټولنو او کلیو کې، د ملا مقام په داسې سطح کې نه دی لکه په غیر پښتون مېشت کلیو او بانډو کې چې دی، په ځانګړې توګه کوم چې بیا په هزاره قبایلو کې دی، د دې نښانې هره ورځ د هزاره ګانو لخوا د محقق د لاسونو مچې کول موږ ټول د تلویزون له لارې عیني شاهدان یو. د ملا او نورو روحاني کسانو رتبه په هزاره جاتو یا د شیعه افغانانو په په سیمو کې، د رهبر، پیشوا رتبه یوازې تقلیدي رتبه ده. بیا د پښتنو په ټولنه کې ملا داسې یو زورور مقام نه لري. د ملا نقش په کلیوالو او سنتي پښتون

مېشته سیمو کې یو مشورتي رول دی او کوم تصمیم نشي نیولی. د دې سربېره د طالبانو په داخل او د پښتنو په عنعنوي دود او دستور په سیستم کې یو مرکزي تضاد شته دی. طالبانو د خپل حاکمیت په وخت کې د دې جرات نه درلود چې پښتنولۍ په اصولو په پښتون مېشتو کلیو او باندېو کې خپله اداره سرته ورسوي.

د پورته پېښو په تېرېدو سره، د افغانستان په دری سوه کلن تاریخ کې ډېر حکومتونه تېر شوي چې په دې کې د افغانستان ټول قومونه د ورونو په څېر د بل ترځنگ اوسېدلي چې دا ژوند د یو سوله غوښتونکي ملت کیسه کوي. په دې کې هېڅ شک نشته چې افغان پاچاهانو د هغوی له جملې څخه امیر عبدالرحمن خان او د هغې څخه مخکې نور پاچاهان او د کورنۍ غړو یې ظلم کړی. دا ظلم د حکومت په ټولو مخالفینو د قوم او نسب په نظر کې د نه نیول په صورت کې پلی کېدو . د پښتنو د قومونو ډېری مشران د خپل کور او کلي څخه د هېواد نورو ځایونو ته تبعید شول. حتی د نادر خان او د ورونو په وخت کې یې لکه ملک قیس د ننگرهار د خوگیانیو څخه د هېواد نورو سیمو ته تبعید کړی شو، د مالیې وزیر ملک خان خپل ټول عمر یې په بند کې تېر کړ.

دولتونه ظالمان وو، اما دا ظلم پر ټولو قومونو او مذاهبو باندې شوی. د هېواد پښتون مېشت سیمې د تاریخ په اوږدو کې په اصطلاح د پښتنو واکمنو په وخت کې د اقتصادي، ټولنیزې، زېربنا، انرژۍ، مخابراتو او مواصلاتي لارې د هېواد غیر پښتنو سیمو ته په کتو سره نه یوازې په بهتر حالت کې نه وو بلکې ښه حالت یې هم نه درلود .

زموږ د هېواد د معاصر تاریخ پیل، له نوي دولتي حاکمیت او خپلواک ملي هویت سره د یوه خپلواک هېواد رامنځته کېدل دي، چې نن په نړۍ کې د افغانستان په نوم یادېږي.

د ایران د کلتوري یرغل له پایلو څخه یو هم په افغانستان کې د نباورۍ او د پاځون منځته راوړل دي. همدا ایران دی، چې د افغانستان د ملي سمبولونو پر وړاندې، په ځانگړې توگه د لږکیو قومونو او یا هم د مذهبونو تر منځ غواړي د دې هېواد خپلواکي او ملي هویت له منځه یوسي.

د ایران دا یرغل پر ملي، علمي او اداري بنسټونو پیل شوی او ورځ تر بلې په لا لویو ملي سمبولونو، لکه د افغانستان دولت پر مؤسیسنو، ددې هېواد پر تاریخ، پاچاهانو، امیرانو، دري ژبه، افغان ملیت، اساسي قانون او بلاخره د افغانستان تر نوم او ځمکنۍ بشپړتیا پورې رسېدلی دی.

دا فرهنگي یرغل په ځانگړې ډول د هغه کسانو لخوا، چې په ایران هېواد کې یې لوړې زده کړې کړې او د یاد هېواد د مستقیم او غیرې مستقیم مالي ملاتړ په ترځ کې د جوړو شویو فعالو خبري، ادبي او مذهبي رسنیو ( ورځپاڼو، مجلو، تلوېزیون او راډیویي خپرونو) له لارې ترسره کېږي.

په دې لیکنه کې د افغانستان نوم، چې داخلي ایران غوښتونکي پېژندل شوي کسان یې پر اکثریتو د اقلیتونو د نوم تحمیل بولي، کتنه کېږي.

د یوه داسې نوي دولتي حاکمیت لرونکي هېواد جوړېدل، چې نن ورځ په نړۍ کې د افغانستان په نوم یادېږي. د لومړي ځل لپاره د فارس د صفویانو پر وړاندې د میرویس خان هوتکي د پاځون سره په ۱۷۰۹ ز کال په کندهار کې یې بنسټ

کېښودل شو، بیا د نادر افشار لخوا د یو لنډ وخت لپاره پر ګډوډیو او اشغال سربېره په ۱۷۴۷ ز کال کې د احمد شاه ابدالي د پاچاهۍ په اعلان سره، چې ورسته په دُراني مشهور شو، تحکیم پیدا کړ او تر نن ورځې پورې پرته له کوم ځنډ څخه، لومړی د کندهار په مرکزیت کې او وروسته بیا د کابل به مرکزیت کې د جغرافیایي حدودو په بدلون سره ادامه لري.

ددې نوي دولت ځانګړې پېژندګلوي د سیاسي خپلواکۍ ماهیت د هغه وخت دوو سیمه ییزو لویو قدرتونو پر وړاندې، چې هغه د هند مغولي او د فارس صفوي دولتونه وو، حنفي اسلامي او افغاني فرهنګ(افغانیت او اسلامیت) څخه جوړ شوي، چې د میرویس خان هوتکي د وخت څخه بیا د ولسمشر محمداشرف غني تر وخته یې بدلون نه دی کړی.

په افغانیت کې نه یوازې د پښتنولی کوډ شامل دی، بلکې خراساني فرهنګ هم پکې برخه لري. د یادونې وړ ده، چې د ۳۰۹ کلونو په ترڅ کې د جغرافیایي بدلونونو، د پاچاهانو او امیرانو د بدلون او برعکس د رژیم بدلېدل ددې هېواد په ځانګړې پېژندنه او نوي دولت کې هېڅ بدلون نه دی رامنځته کړی.

افغانستان له ۱۸ زېږدیزې پېړۍ څخه مخکې، دوې دورې شاته پرېښې دي. لومړی د اسلام څخه د مخه دوره، یانې د هخامنشي، یوناني او باختري، کوشاني، یفتلي او ساساني عصر، او له اسلام څخه وروسته دوره، یانې د خلفاې راشیدینو، امویانو، عباسیانو، طاهریانو، صفاریانو، سامانیانو، غزنویانو، سلجوقیانو او غوریانو عصر او همداسې نور...

دا دورې، په حقیقت کې دسیمې ګډ تاریخ دی چې له بحث څخه بهر دی. هغه څه چې باید دلته بحث پرې وشي، هغه له ۱۸ ز پېړۍ څخه وروسته د نوي افغانستان رامنځ ته کېدل دي (سرور دانش، د افغانستان اساسي حقوق، د سینا چاپ او نشر، ۱۳۸۹، ۱۹۹ص).:

ایراني لیکوالانو د پردیو طرد سلطه کولو سره، د هېواد په ګوټ ګوټ کې د یوه خپلواک، پیاوړي مرکزي دولت رامنځ ته کول، د یوه نوي شیعه هویت ورکول او د دې نظم استمرار یې د خپل هېواد لپاره له هغه عواملو څخه بولي، چې د صفویانو دولت یې؛ د معاصر ایران پیل منلی وو، چې بیا یې تر نن ورځې پورې د افشاریانو، زندیانو او قاجاریانو په سلسله، او بلاخره تر پهلوي او اسلامي جمهوریت پورې یې دوام پیدا کړی دی.

کله چې، موږ په افغانستان کې د معاصر دولت په هکله له داسې پېژندنې څخه ګټه اخلو، نو معاصر افغانستان د هوتکیانو د دولت له جوړېدو سره د میرویس خان په وخت کې رامنځ ته شو. دا دولت له صفوي سلطنت سره په لوېدیځ کې او د هند له مغولي امپراتورۍ سره د هېواد په ختیځ کې پای ته رسېده، او په ټول افغانستان کې یې خپل حکومت حاکم کړ، چې نننی افغانستان منځ ته راغی او په ډېره چټکۍ سره مرکزي، قدرتمند او خپلواک نوی هویت لرونکی دولت د ابدالي په امپراتورۍ، افغان امپراتورۍ او د افغانستان په هېواد بدل شو.

سربېره پر دې، چې افغانستان له درې سوه کلونو څخه را پدېخوا، بیا تر نن ورځې پورې په جګړو کې دفاعي بڼه لري او په سیمه کې د نړۍ له دریو لویو قدرتونو لکه، برېټانوي هند، تزاري روسیې او قاجاري ایران سره د خپل استقلال د دفاع او سرحدونو د ساتنې په موخه کوچنی او لا کوچنی شوی او تر دې مهاله دا لړۍ لا دوام لري.

هر کله، چې د صفوي دولت هویت په ایراني شیعه مذهب او نېشنلېزم شکل بنه اخلي، نو دا د ایراني ملت د منځته راتګ سبب شو. د افغان، هوتکي، ابدالي او عقاب دولتونو هویتونه حنفي سُني اسلام پر افغاني نېشنلېزم شکل ورکوي، چې دا بیا د افغانستان د ملت د جوړېدو سبب شو، چې د هر قوم هر کس د جوړ شوي قانون له مخې د افغان په نوم یادېږي.

د فیض محمد کاتب هزاره، احمد علي کهزاد، عبدالحی حبیبي، میر غلام محمد غبار او صدیق فرهنګ افغان تاریخ لیکونکو په یووالي سره (بلا استثنی)، د افغانستان معاصر تاریخ رېښې په لاندې نومونو یادې کړې:

- یو جلا هېواد؛
- یو واحد او خپلواک هېواد؛
- یو خپلواک ملي افغاني هویت.

پورته نومونه، په ۱۷۰۹ز کال په کندهار کې د میرویس خان هوتک او په ۱۷۱۷ ز کال کې د هرات د ابدالیانو د پاڅون او همدا راز بیا په ۱۷۴۷ ز کال په کندهار کې د احمد شاه ابدالي د پاچاهی تر اعلانېدو، بیا تر نن ورځې پورې پر خپل ځای پاتې دي. د کندهار هوتکیان په دې هم وتوانېدل، چې صفوي امپراتوري په ۱۷۲۲ز کال کې سقوط کړي او د فارس هېواد ټولې سیمې له خپل هېواد سره یو ځای کړي.

کله چې میرویس خان هوتک د صفویانو د سلطنت پر وړاندې پاڅېد. له نن څخه دری سوه او اته کاله وړاندې د اتلسمې پېړۍ(۱۷۰۹ز)، په پیل کې بنیادي یو خپلواک بومي دولت په دې سیمه کې جوړ کړ، هغه ځای چې نن یې د افغانستان په نوم پېژنو. یو خاص نوم یې نه درلود او په دې کې خراسان، ترکمنستان، بدخشان، کابلستان، افغانستان، سیستان، غرجستان، زابلستان، کندهار او بلوچستان سیمې شاملې وې.

دا ځمکې د هرات د تیموریانو له وخت څخه وروسته څه کم دوه پېړۍ له خیتځ څخه تر غزني، او کابل د هندوستان له ډهلي څخه د مغلي امپراتورۍ لخوا اداره کېدلې او لوېدیځ لوري تر هرات، بادغیس او کندهار پورې د فارس د صفوي امپراتورۍ لخوا اداره کیده او همدا راز کندهار ښار څو ځلې ددې دوو قدرتونو ترمنځ لاس په لاس شوی دی.

په یاد هېواد کې له شپاړسو څخه ډېر قومونه، چې په هغې کې پښتانه، تاجک، هزاره، اوزبیک، پشه يي، عرب، قرقېز، ترکمن، بلوڅ، قزلباش، بیات او نور شامل دي ژوند کوي.

تاریخي حقیقت دا دی، چې د هوتکیانو دولت د زرنج د صفاریانو او غوریانو څخه وروسته لومړی بومي دولت دی، چې د دې هېواد د خپلو خلکو څخه رامنځته شوی او قدرت ته رسېدلی دی، او په دې توانیدلي، چې د فارس صفوي دولت له منځه یوسي او خپلې سیمې تر کنټرول لاندې راولي.

دا دولت په تصادفي شکل نه دی جوړ شوی، بلکې د خلکو د اوږدو سختو مبارزو او ددې هېواد د ظلم او د اجباری شیعه سازیو په خلاف او د صفوي ښکېلاګرو او د دوی د سلطنت په ختمولو منځ ته راغلی. په دې هکله د ایران د سیاسي چارو کارپوه بهرام مشیري په یوه تلوېزیوني پروګرام کې داسې وویل:؛ ګرګین ته امر وشو، چې پر دې خلکو

له ظلم او ستم څخه لاس وانخلي. نو په همدې اساس دوی خپل زغم او حوصله له لاسه ورکړه او پر وړاندې یې پاڅون وکړ.

شل کاله وروسته په دغه سیمه کې د هوتکیانو یا لومړي بومي دولت د نادر قلي افشاري په واسطه له منځه یوړل شو، اما د نادر افشار له وژل کېدو څخه وروسته ده د خپلو درباریانو په واسطه او د احمد شاه ابدالي په همت او همدا راز د نورو افغان افسرانو او مشرانو په هڅو بېرته جوړ او پاینښت یې پیدا کړ.

د افغانستان په تاریخي بهیر کې کتاب کې میر غلام محمد غبار داسې لیکي(۳۵۴ پاڼه):

کله چې نادر شاه خراسانی ووژل شو، دا مهال په لوی لښکر کې گډوډي رامنځ ته شوه. په دې وخت کې افغاني لښکر چې د څلور زره غلجي او دولس زره ابدالي او ازبکانو څخه جوړ شوی وو، د نور محمد غلجي او احمد خان ابدالي په مشرۍ یې د کندهار په لوري حرکت وکړ.

کندهار، چې د افغانستان د قومونو مرکز وو، نور محمد خان د غلجي، اوزبیک، ابدالي، هزاره، بلوڅ او تاجک مشرانو او خانانو ته وړاندیزوکړ، چې یوه جرگه جوړه کړي او پاچا وټاکي.

احمد شاه ابدالي په دغه جوړه شوې جرگه کې، وروسته له اتو ورځو خبرو اترو د پاچاه په توگه وټاکل شو.

د تاج اېښودلو په مراسمو کې د پښتون، تاجک، هزاره او قزلباش قومي مشرانو گډون درلود (د الفنسټون کتاب ته د مراجعه کړئ، د کابل سلطنت بیان، دوهم ټوک).

سرور دانش لیکي: په دې ډول د لومړي ځل لپاره د سیمې په سیاسي جغرافیه کې یو دولت د افغانستان په نوم را ښکاره شو او د احمد شاه تر رهبرۍ لاندې سدوزی دولت رامنځ ته شو. احمد شاه د ۱۷۷۳ زکال په جون میاشت کې د ۲۵ کاله پاچاهۍ څخه وروسته په ۵۰ کلنۍ کې له دې نړۍ څخه سترگې پټې کړې (سرور دانش، د افغانستان سیاسي حقوق، ۱۳۸۹ ه ل کال چاپ،۲۰۰ ص).

یو ځل بیا د میر غلام محمد غبار افغانستان په تاریخي بهیر کې کتاب کې داسې لولو (۳٦۱ پاڼه ):

"احمد شاه د ۱۷۴۹ ز کال په پیل کې لوېدیځ لور ته حرکت وکړ او هرات ته ورسېد. نادري حاکم امیر خان عرب د بهبود خان مروي سره د خلکو د غوښتنو په خلاف تسلیم نه شول او کلابندي یې اختیار کړه. په داسې حال کې چې بل لوی خان (درویش علي خان هزاره) د احمد شاه په طرفدارۍ پاڅون وکړ.

همدا سبب شول، چې احمد شاه عسکري بریدونو پیل کړل، د ښار خلکو د خاکستر برج احمد شاه ته ورکړ او د هرات پر مدافعینو یې یرغل وکړ. احمد شاه ښار ونیو، امیر خان یې اعدام کړ او حکومت یې هزاره درویش علي خان ته ورکړ.

احمد شاه ابدالي د دې هېواد قومونه سره یو ځای کړل او په ډېره چټکۍ سره یې یو قوي او زبرځواک دولت، چې په تاریخ کې یې د ابدالي د امپراتورۍ په نوم پېژنو جوړ کړ. د احمد شاه ابدالي د دولت په اداره کې د هېواد ډېرو قومونو برخه درلوده. لکه څرنگه چې ومو لیدل په اردو کې یې هزاره گان، اوزبیکان، غلجیان او ابدالیان شامل وو.

له دې سره سره، چې احمد شاه ابدالي/ دُراني د بېلا بېلو قبايلو له مشرانو څخه د دولت په اداره کې ګټه اخيستله، مګر نوموړی ډېر په قومي فيوډالي او د قومي لښکرو په رامنځ ته کېدو، لکه، ابدالي، غلجي، هزاره، اوزبيک او نورو باندې ولاړ وو. ده د دولت مرکزيت هم په کندهار کې قومي بڼه درلوده... اعليحضرت تيمور شاه پرېکړه وکړه، چې د سيمه ييز فيوډالي قدرت کچه په دولت کې را ټيټه کړي او خپل دولت په يو ملي دولت باندې بدل کړي ... په دې موخه يې پلازمېنه له کندهار څخه کابل ته انتقال کړه او د يوه قومي اردو پر ځای يې، يوه معاش خوره اردو رامنځته کړه. سيمه ييز فيوډالان مجبور وو، چې د خپل قدرت د دوام په موخه په کندهار کې پاتې شي. د تيمور شاه په دولت کې د بيات او قزلباشانو نفوذ ډېر شو او په غيرې پښتون مېشته سيمه کې د مرکز شتون ددې سبب شو، چې دري ژبه د قومونو د پوهېدنې، د دولت اداري ژبه او په يوه ملي فرهنګ باندې بدله شي.

په دغه وخت کې په افغانستان کې پوخ بنسټيه يو ملي دولت رامنځ ته شو او د قومونو برخه د افغانستان په مرکزي دولتي اداره کې زياته شوه.

## ايا کوم چا په خپلواکه توګه د خراسان د پاچا يا امير په نوم حکومت کړئ؟

ساسانيانو د اوسني افغانستان يو شمېر لوېديځې سيمې، د خرسان ولايت په ګډون تر خپل قلمرو لاندې راوستلې. د مسلمان عربو لخوا د يادو سيمو فتحه د ٦٥١ ز کلونو او د دوی د سيمه ييز حکومت د استقرار څخه وروسته د خراسان په مرکز مرو کې، د خراسان ولايت د ختيځو فتحو قلمرو رامنځ ته کړ. د عباسي خلافت په دوران کې د خراسان ټولې سيمې په نني افغانستان کې شاملې نه وې. د بين الاخبار ګردېزي په خبره چې د سلطان مسعود غزنوي په زمانه کې ليکل شوی، د ولايتونو نومونه او د هغوی واکمن (حکام) د (هارون الرشيد زوی) هارون الرشيد په وخت کې داسې وو: ١- محمد الامين: عراق (ايران او نني ايران) يمن، حجاز او د شام يوه برخه ٢- عبدالله مامون: خراسان، ماورالنهر، هند، سند، نيمروز، کابل او زابلستان ٣- موتمن: د شام يوه برخه، مغرب، اذربايجان، روم، زرنج او حبش.

لکه څنګه چې وينو ماورالنهر، نيمروز، کابل او زابلستان (د کندهار څخه تر کابل پورې) د خراسان د عربو له قلمرو څخه د باندې ولايت وو.

حقيقت دا دی، چې د احمد شاه بابا څخه مخکې، نادر افشار دا سيمې نيولې وې او شاه اشرف هوتکي يې لرې او هوتکي امپراتوري يې له منځه يوړه چې د ايران د شاه په نوم يې حکومت وکړ، نه د خراسان د شاه په نوم.

له هوتکيانو څخه مخکې هم صفوي پاچاهانو د ايران د شاه په نوم (فارس) حکومت کړی، نه د خراسان د شاه په نوم. همدا راز د صفويانو څخه مخکې هم شابک خان، اوزبيک او تيموريان د سمرقند او بخارا او هرات څخه حکومت کړی او تر خپل کنټرول لاندې پراخه سيمو لپاره يې کوم ځانګړی نوم نه درلود، چې د ماورالنهر څخه تر سند، فارس او عثماني ترکيې پورې سيمې پکې شاملې وې.

د خراسان اړوند سيمې مرو، هرات، بادغيس او تر نيشاپور پورې وې. د تيموريانو تر واکمنی لاندې ولايتونو او د مغولي سلسلې، خوارزمي، سلجوقي، غزنوي، ساماني، صفاري او طاهري يې له پخوا څخه جوړ کړي وو. لکه څنګه چې وينو،

په تاریخ کې هېڅ وخت د خراسان په نوم کوم خپلواک هېواد او د خراسان کوم خپلواک پاچا نشته و. خراسان یوه لویه جغرافیایي سیمه وه، چې د ترکمنستان له سیمو څخه (مرو)، ایران (نیشاپور)، اوافغانستان(هرات) پکې شامل وو. جالبه بیا دا ده چې د صفویانو په ملکي تشکیلاتو کې هېڅ داسې ولایت د خراسان په نوم شته نه و. د صفوي وخت اړوند په هېڅ کتاب کې هم په کندهار او هرات کې د خراسان نوم ته اشاره نه ده شوې.

احمد شاه ابدالي چې په کوم شکل د خراسان واکمن وو، د کابل او کندهار واکمن یا پاچا هم وو. د احمد شاه ابدالي د حاکمیت په وخت کې خراسان د یو ولایت نوم وو او د احمد شاه ابدالي لخوا د نادر افشار لمسی شاهرخ د خراسان د بیگلربیگي(والي) په توگه ټاکلی وو او تر واک لاندې سیمو کې یې پرته له هرات نه د خراسان اوسنی ایران هم شامل وو. هرات د دُراني د قلمرو بل ولایت وو، چې درویش علي خان هزاره د احمد شاه ابدالي لخوا هلته د اولین بیگلربیگي (والي) په توگه ټاکلی وو.

ډېر خلک د خراسان جغرافیایي حوزه د خراسان د کلتور او تمدن له حوزې سره اشتباه کوي. د خراسان د کلتوري تمدن حوزه په څو ځله لویه او پراخه وه، او له ماورالنهر څخه تر ډهلي، سند او عراق پورې تړول یې تر اغېزې لاندې راوستې دي. دا امر په لومړۍ دوره کې د دري ژبې د بشپړاوي او پیدا کېدو په موخه او پر هغې د ترلیو ادبیاتو په پار(خراساني سبک)، په خراسان کې خپور شو او لوېدیځ خواته تر نننی ایران پورې او تکامل یې د فارسي ژبې په نامه او همداراز وروسته بیا کوچنۍ اسیا (عثماني ترکیې) او د هند نیمې قارې ته یې ادبیات وغځېدل.

## خراسان د هارون الرشید په زمانه کې

د عباسي خلیفه، هارون الرشید په زمانو کې (د زر کاله پخوا) د ولایت نوم او مشران یې (د هارون الرشید زامن) زین الاخبار گردېزي په وینا چې د مسعود غزنوي په زمانه کې لیکل شوی، پداسی توگه وو:

1 ) عراق (نننی ایران او عراق)، یمن او حجاز او د شام ځینې برخې – محمد الامین

2 ) خراسان او ماورالنهر او هند او سند، نیمروز او کابل او زابلستان – عبداله مامون

3 ) د شام برخې، لوېدیځ، اذربایجان، روم،زنج او حبش – موتمن

لکه څنگه چې تاسو لیدی شئ، ماورالنهر، نیمروز، کابل او زابلستان (له کندهار تر کابل ) د خراسان څخه بهر سیمې وې .

په لاندې نقشه کې د خراسان حدود د صفویانو په وخت کې د اروپایي جغرافیې پوهانو په واسطه رسم او په ډېر ښه شکل سره ښودل شوي دي:

**اووم چارت: د خراسان حدود د صفویانو په وخت**




## د افغانستان د نوم عمومي کېدل:

دا یوه تېروتنه او له غرض نه ډک عمل دی چې د میرویس خان یا احمد شاه ابدالي لخوا په کوم رسمي فرمان پسې وګرځو، چې د افغانستان نوم یې په رسمي ډول د خپل سلطنت او واک لاندې سیمو باندې ایښی وي. دا طبیعي ده، چې دولتونه په هغه نوم چې اکثریت قومونه پکې وي نومول کېږي. دا سمه ده، چې د ابدالي واکمنو د واک د قلمرو په لومړیو کې افغانستان نه وو نومول شوی، اما دا نوم په طبیعي شکل سره په تدریجي ډول د دوی د حاکمیت او قیمومیت لاندې سیمو باندې په رسمیت پېژندل شوی دی او په رسمي سندونو کې یې یادونه شوې ده.

دا باید له یاده و نه باسو، چې د دې سیاسي استقلال ماهیت، حنفي اسلام او افغاني فرهنګ دی، چې د افغانستان د دولتونو د دوام ځانګړنه د میرویس خان هوتک له وخت نه تر نن ورځې پورې ده. همدا راز د دې هېواد له نوم نه پرته ډېرو نورو هېوادونو د زیات نفوس لرونکو قومونو نوم (یا دین) د خپل هېواد نوم ایښی دی.، لکه هندوستان،تاجکستان،

ازبکستان، ترکمنستان، قزاقستان، عربستان، ترکیه،جرمني، فرانسه، روسیه او داسې نور، او د هېواد ټول مېشت قومونه د دې طبیعي نومونې سره کومه ستونزه نه لري.

ځرنګه، چې مخکې مو ولوستل، چې درې سوه او نهه کاله د مخه، د اتلسمې زېږدیزې پېړۍ په پیل کې، کله چې میرویس خان په هېواد کې د صفویانو د اساس او بنسټ پر وړاندې د یوه پاځون په ترڅ کې خپلواک بومي دولت جوړ کړ او له هغې څخه وروسته بیا په ۱۷۴۷ ز کال کې احمد شاه ابدالي په دغه هېواد کې یو خپلواک دولت جوړ کړ، په داسې یو هېواد کې، چې نن یې د افغانستان په نوم پېژنو او له دې څخه مخکې یې کوم ځانګړی نوم نه درلود. مګر د بېلابېلو جغرافیایي حوزو څخه جوړ شوی وو.

د افغانستان نوم د اتلسمې زېږدیزې پېړۍ په منځنیو کلونو کې، کله چې د هېواد سیاسي یووالی د یوه افغاني خپلواک دولت په ترڅ کې میسر شو او بلاخره په نولسمه زېږدیزه پېړۍ کې یې شهرت وموند. اګر چې د افغانستان اصطلاح، د یو هېواد د رسمي نوم په شکل په ځو ځله په ۱۷۸۲ ز کال کې د جورج فورسټر په کتاب کې د دُراني دولت د قلمرو په برخه کې ذکر شوې ده، اما د افغانستان کلمه، د پښتنو د ځای او مکان په شکل (پښتانه)، د لومړي ځل لپاره د هرات په تاریخ پاڼه کې، د سیف هروي په تالیف د څلورمې زېږدیزې پېړۍ په سر کې ذکر شوې ده.

## د افغانستان نوم، ملت او دولت ته له کرونولوجیکي نظره لنډه کتنه:

۱) په ۱۷۸۲ ز کال کې د تیمورشاه د سلطنت په وخت کې، جورج فورسټر، له افغانستان څخه د تېرېدو په وخت کې د افغانستان د ملت او هېواد د نوم یادونه کوي (جورج فورستر، د هندوستان د شمال، افغانستان، فارس او روسیې له لارې د بنګال څخه انګلستان ته سفر، د لندن چاپ،۱۷۸۹ ز ).

۲) په ۱۷۸۹ ز کال کې د قاجار دولت لومړی وزیر حاجي ابراهیم په یو رسمي مکتوب کې د افغانستان یادونه کوي (میر محمد صدیق فرهنګ، افغانستان په پنځو وروستیو پېړیو کې).

۳) په ۱۷۸۹ ز کال کې د شاه زمان لومړی وزیر وفادار خان په یو رسمي مکتوب کې د قاجار د لومړي وزیر په ځواب کې د افغانستان یادونه کوي (میر محمد صدیق فرهنګ، افغانستان په پنځو وروستیو پېړیو کې).

۴) د هندوستان مشهور شاعر میرزا اسدالله خان غالب او همدا راز د مغولي دربار تاریخ لیکونکی، چې د اتلسمې پېړۍ په پیل کې نیږدې ۲۵ کاله د لوی احمد شا بابا له زېږېدنې وروسته زېږېدلی . په خپل یو لیک کې چې په اردو ژبه لیکلی شوی، او د ((خطوط غالب)) په نوم مشهور دی) د (خان) کلمه یې تشریح کړې او داسې لیکلي چې: خان؛ په عام ډول سره د افغانستان خلکو ته ویل کېږي.

۵) په ۱۸۸۰ ز کال کې له انګرېزانو د قاجار دولت سره په یوه تړون کې د افغانستان د نوم یادونه شوې.(محمود محمود، په نولسمه پېړۍ کې له ایران سره د انګرېزانو د اړیکو تاریخ)

٦) په ۱۸۰۹ ز کال کې الفنستون د افغانستان هېواد له نوم څخه يادونه کړې ده (مونستوارت الفنستون، د کابل سلطنت بيان او په فارس، کشمير او تاتاري کې د هغې د تابعو قلمرو،چاپ د لندن ۱۸۴۲ ز).

۷) په ۱۸۳۸ ز کال کې د برېټانوي هند وايسرای د انګرېز او افغان د لومړۍ جګړې د پيل څخه د مخه د افغانستان دولت د نوم يادونه کړې ده ((مير محمد صديق فرهنګ، افغانستان په پنځو وروستيو پېړيو کې).

۸ ) په ۱۸۳۷ ز کال کې قاجار پاچا د هرات د محاصرې له ماتې څخه وروسته د ببرته تګ په وخت کې په خپل منشور کې د افغانستان د نوم څخه يادونه کړې ده (محمود محمود، په نولسمه پېړۍ کې له ايران سره د انګرېزانو د اړيکو تاريخ)

**په افغانستان کې د انګليس استعماري لاسوهنې**

د افغانستان په کورنيو چارو کې د انګرېزانو استعماري لاسوهنې له ۱۷۹٦ ز کال څخه د احمد شاه بابا د لمسي شاه زمان د سلطنت په وخت کې پيل شوې دي. او دې لاسوهنو ۱۲۳ کاله يانې تر ۱۹۱۹ز کال پورې دوام درلود. په دغه وخت کې انګرېزانو د افغانستان پر وړاندې درې لاندنې دورې لرلې:

۱. د افغانستان کمزوري کېدل، د سيمه ييزو رقيبانو په مرسته د ابدالي امپراتورۍ زوال (۱۷۹۸-۱۸۳۷ ز)

۲. د افغانستان په مستعمره کولو کې مستقيمې کړنې تر سره کول (۱۸۳۸-۱۸۴۲، او ۱۸۷۸ – ۱۸۸۰ ز کلونه)

۳. افغانستان د استعماری قدرتونو تر منځ يو حايل سيمه بدلول (۱۸۸۱ – ۱۹۱۹ ز)

## لومړی پړاو - د افغانستان کمزوري کېدل ( ۱۷۹۸ – ۱۸۳۷ ز)

له انګرېزي استعمارګرو سره د افغانانو لومړی غيرې مستقيم رامنځ ته شوي کړه وړه، دافغان ملت لپاره ډېر مرګوني وو.

په ۱۷۹۸ ز کال کې د هندوستان خلک او مهاراجه ګان د يوې ختيځې هندي کمپنۍ په لخوا په بنګال،مدراس، ميسور او بمبي کې د انګلستان د استعمار له خپرېدو څخه ډېر په وېره کې وو. د افغانستان پاچاه، شاه زمان ته بلنه ورکوي، څو د انګرېزانو ايستلو لپاره هندوستان ته لښکر ولېږي. د هندوستان مهاراجه ګان دې ته چمتو شول، چې د ورځې يو لک روپۍ د شاه زمان د اردو لګښت ورکړي. شاه زمان له يوه لوی لښکر سره د هند په لور لښکر لېږي.

له انګرېزانو څخه لاره ورکه شوه او د حل لارې په فکر کې کېږي او مهد عليخان بهادر جنګ له ډېرو صلاحيتونو او واک سره ايران ته د فتح علي شاه قاجار دربار ته لېږي، او له قاجار پاچا څخه غواړي، چې افغانستان ته لښکر ولېږي. په دې وخت کې قاجاي پاچا د دُراني واکمنۍ څخه په مشهد او د ايران په خراسان کې ناخوښ وو او بهانو پسې ګرځېدو. مهد علي خان په خپله ليکي، چې ده له شاه څخه غوښتنه وکړه، چې شهزاده محمود، د شاه زمان ورور او د هغه له زوی کامران سره مرسته وکړي، څو نوموړی د شاه زمان ځای ناستی شي. د شاه زمان لښکرې ډهلي نيږدې رسېدلې

وې، چې د ایراني لښکر د یرغل خبر کندهار ته ورسېد. نوموړي بله چاره نه درلوده او بېرته کندهار ته ستون شو، او بیا هلته ونیول شو او دواړه سترګې یې ړندې کړای شوې او شاه محمود د هغه پر ځای په تخت کښېناست.

په دې ترتیب په افغانستان کې د انګرېزانو په توطیه او د ایرانیانو په ورور وژنه د سدوزیو او بارکزیو شهزاده ګانو او قومي مشرانو تر منځ کورنۍ جګړې پیل شوې. او دغه جګړو بیا تر څلوېښت کلونو پورې د امیر دوست محمد خان په پاچاهی کې د افغان انګلیس لومړی جګړې(۱۳۳۸ه س) کال پورې داوم وموند.

انګرېزي استعمارګر وروسته له څلوېښتو کلونو د ګاونډیانو ترمنځ، په ختیځ کې رنجیت سنګ، په لوېدیځ کې د فارس قاجاري دولت او همدا راز د د واک او قدرت ته د رسېدو لپاره د شهزاده ګانو د هڅونې ترمنځ د یو بل پر وړاندې د جوړ شویو دسیسو او نامقدسه اتحادونو د رامنځ ته کېدو په صورت کې د ابدالي دولت د قدرت پر کمزوري کېدو بریالي شول. رنجیت سنګ د ١٦ کلونو په اوږدو کې له ١٨١٨ ز کال څخه تر ١٨٣۴ز کال پورې د انګرېزانو په مرسته کشمیر، ملتان او سند تر خپل واک لاندې راوستل. او په ١٨٢٠ ز کال کې د سند له سیند څخه تېرېږي او د پښتنو سیمه دېره غازي خان نیسي، تر دې چې بیا په ١٨٣۴ ز کال کې پېښور هم لاسته راوړي.

په ١٨٣٨ ز کال کې د ابدالي امپراتورۍ څخه څلور سیمه ییز قدرتونه لا پاتې وو: کابل، امیر دوست محمد خان، کندهار سردار کهندل خان، هرات شهزاده کامران میزا (د شاه محمود زوی) او افغاني تُرکستان، چې د امو له سیند څخه د هندوکش تر غرونو پورې وو، د سیمه ییزو واکمنو لاس ته لوېدلی وو. په دې ترتیب په ١٨٣٩ ز کال کې د افغانستان د اشغال شرایط په بشپړ ډول د انګرېزانو لخوا برابر شوي وو.

## دوهم پړاو- د افغانستان په مستعمره کولو (١٨٣٨-١٨۴٢، او ١٨٧٨ – ١٨٨٠ز)

انګرېزانو یو ځل بیا هڅه وکړه، چې افغانستان د هندوستان په شان په یو مستعمره هېواد بدل کړي.

انګرېزانو د لومړي ځل لپاره د روسانو د مخنیوي په بهانه، د ١٨٣٩ ز کال په مارچ میاشت کې د افغان او اونګلیس ترمنځ لومړۍ جګړه د افغانستان د اشغال او مستعمره کولو په موخه پر افغانستان وتپله.

پایله دا شوه، چې د افغانستان خلکو مقاومت وکړ او په دې ترڅ کې انګرېزانو په ١٨۴٢ز کال کې د جلال اباد لور ته شاتګ ته اړ شول او او د ګندمک په سیمه کې د افغانانو لخوا تر برید لاندې راغلل، چې په دې ترڅ کې پرته له یو څو زندانیانو څخه نور ټول ووژل شول او یوازې د ډاکټر برایډن په نوم یوه کس، خپل ځان جلال اباد ته ورسولو او د انګرېزي قوتونو د لمنځه وړو خبر یې په ننګرهار کې انګرېزي مېشتو قوتونو ته ورکړ.

افغانان خپل ژبنیز او قومي اختلافات یوه خوا پرېږدي او د پلازمېنې څخه د انګرېزانو د ایستلو په موخه سره یو کېږي.

په کابل کې شاه شجاع وژل کېږي، په دې وخت انګرېزان له مجبوریته امیر دوست محمد خان له بنده ازادوي او بیا یې د افغانستان امارت ته ورسولو.

امیردوست محمد خان، د سردار کهندل خان له مړینې وروسته کندهار د مرکز تابع کړ او د۱۸۵۰ز نه تر ۱۸۵۵ ز کلونو پورې افغاني تُرکستان له مرکزي حکومت سره یوځای کړ. وروسته یې بیا په ۱۸۶۱ ز کال کې پر هرات برید وکړ او د لسو میاشتو کلابندۍ څخه وروسته یې ټول ښار ونیو، په دې ترتیب یو ځل بیا د افغانستان د اوسنیو ټولو سیمو یوالی رامنځته کېږي.

انګرېزانو د دوهم ځل لپاره د خپلې استعماري ستراتېژۍ(پالیسي فوروارد) مطابق وغوښتل، چې په کابل کې په زور سره خپل سفیر وټاکي.

د یادونې وړ ده، چې د ۱۸۷۸ز کال په سپتمبر کې امیر شیر علی خان، د امیر دوست محمد خان په پیروی (۱۸۴۳ ز)، په کابل کې د انګرېزانو د سفیر په توګه د ټاکل کېدو څخه ډډه وکړه او له دې سره سره د برېټانوي هند لارد لیټن وایسرای د امیر له خوښې پرته خپل سفیر کابل ته را لېږي.

افغان سرحدي مامورین د خیبر درې په ختیځ کې، افغانستان ته د انګلستان د رالېږل شوي استازي په توګه د نېول چمبرلین Neville Bowles Chamberlain له راتګ څخه، چې وروسته بیا د لویې برېټانیا لومړی وزیر شو مخنیوی کوي. د دې په مقابل کې لارد لیټن وایسرای د برېټانوي هند دا غوښتنې چې ژر تر ژره خپل سفیر کابل کې وټاکي او افغانستان په تمامه مانا سره په یوه مستعمره هېواد باندې بدل کړي. نو په دې خاطر په ۱۸۷۸ ز کال کې برېټانوي ځواکونه له درې خواوو ختیځ، سویلي او کندهار څخه په افغانستان یرغل وکړ او د افغان انګلیس دویمې جګړې په پیل سره یې کابل تر خپلې محاصرې لاندې ونیو. امیر شیر علی خان د روسانو د ملاتړ تر لاسه کولو په موخه بخارا ته لاړ، اما بېرته خپه مزار شریف ته راغی او په مزار شریف کې مړ شو. زوی یې محمد یعقوب خان په کابل کې د ده پر ځای وټاکل شو.

کله چې په بشپړ ډول سره، د ۱۸۴۲ ز کال په لومړۍ افغان انګلیس جګړه کې، د کابل او جلاباد د ګندمک په سیمه کې د انګرېزانو اردو له ماتې سره مخ شوه، په هغه ځای کې یې خیمه ووهله او د ۱۸۷۹ ز کال د می په ۲۸ نېټه یې د ګندمک تړون په امیر محمد یعقوب خان باندې تحمیل کړ.

د ګندمګ تړون دوه اساسي شرطونه لرل

۱ د افغانستان دولت باید د برېټانوي هند د دولت سفیر، چې ممکن اروپایي نژاده وي، په کابل کې د سفیر په توګه ومني.

۲ د افغانستان دولت باید خپلې اړیکې له بهرنیو هېوادونو سره د انګلیستان د سفیر په لارښوونه تر سره کړي او په بدل کې به یې د برېټانوي هند دولت هر کال یو سبسدي افغانستان ته ورکوي.

سر لوی کیوناري، چې د ګندمک تړون یې له امیر سره لاسلیک کړې وو، د انګرېزي ځواکونو په ملاتړ د برېټانیا د سفیر په توګه کابل ته داخل شو. کابل کې له دوو میاشتو اوسېدو څخه وروسته کیوناري په څرګند ډول ښکاره کړه،

چې د دوی رول نه یوازې په بهرنیو چارو کې لاربښوونه ورکول دي، بلکې په عمل کې د اصلي واکمن په حیث فعالیت وکړي. نو په دې ترتیب حالات په مستقیم ډول د برېټانیا د استعمار لپاره برابر شوي وو.

مګر د افغانستان خلکو بل ډول فکر درلود، د دوی پر وړاندې یې پاڅون وکړ. په کابل کې مېشت انګرېزي قوتونه یې تیت او پرک کړل او سر لوی کیوناري یې د خپل راتګ څخه دوه میاشتې وروسته ووژه. دا هغه څه وو، چې برېټانیا ته یې وښوده، چې بهرنیان نشي کولی په مستقیم ډول د افغانستان پر خلکو باندې حکومت وکړي.

له دې څخه وروسته انګرېزي ځواکونه کابل ته داخل شول او د ښار خلک یې تنبیه کول. امیر محمد یعقوب خان له سلطنت څخه لاس ومینځل او انګرېزانو نوموړی هندوستان ته تبعید کړ. نا ارامي او اغتشاش ادامه درلوده او په دې اخ او ډب کې له انګرېزانو څخه د تېښتې لاره ورکېږي.

د شمالي ولایتونو خلکو او مشرانو لکه، میر مسجدي خان او د هغه ورور میر دروېش د ځواکونو په راټولولو پیل کوي او د میر بچه خان تر مشرۍ لاندې انګرېزي ځواکونو په شمالي کې تر برید لاندې نیسي. په داسې حال کې چې د سویلي سیمو ورونه یې د ملا مشک عالم په مشرۍ د کابل د ښار له سوېل څخه د کابل په ښار برید کوي.

تر دې چې انګرېزان له هغه شرایطو په پرتله، چې د عبدالرحمن خان د امارت په وخت کې دده وراره امیر شیر علي خان پر ټول ښار کې د ګډوډیو د رامنځته کېدو موافقه کړې وه. نوموړی له بخارا څخه کابل ته راغی او د ۱۸۸۰ ز کال په جولای میاشت کې امیر د هېواد اداري چارې په خپل لاس کې واخیستې. له دې څخه وروسته انګرېزانو د میوند په جګړه کې تاریخي ماتې وخوړه او له افغانستان څخه ووتل.

وخت ته په کتو، د برېټانوي هند په شمال لوېدیځو پولو کې د ګډوډیو رامنځ ته کېدل، انګرېزان دې ته اړ کړل، چې د امیر عبدالرحمن خان امارت ته غوراوی ورکړي او په کابل کې د سفیر له شتون څخه تېر شول. اما د افغانستان د بهرنیو چارو د څارنې کار یې په غاړه واخیست.

## درېیم پړاو- افغانستان یو حایل او تر حمایت لاندې سیمه (۱۸۸۱- ۱۹۱۹ ز)

د افغانستان پر وړاندې د انګرېزانو سیاست، چې د یو حایل او تر حمایت لاندې حکومت منځ ته راوړل وو. له دې وخت څخه پیلېږي. له بده مرغه چې د افغانانو بریا، د افغان او انګلیس په دویمه جګړه کې په ډېپلوماتیکه بریا نه تمامېږي، اما د دې پر ځای، چې امیر عبدالرحمن خان د افغانستان شرایط په انګرېزانو باندې ومني، له انګرېزانو څخه یې وغوښتل، چې هغوی څه شی غواړي. په دې پایله کې انګرېزان وتوانېدل، چې سره له دې چې په جګړه کې یې ماته غوړلې وه، افغانستان د یوه حایل او د حمایت لاندې هېواد په بڼه بدل کړي، چې بیا دې حالت تر ۸ د اګست ۱۹۱۹ ز کال او د راولپنډۍ د تړون تر لاسلیک ادامه پیدا کړه.

په دې پړاو کې انګرېزانو د هېواد سرحدونه د امیر عبدالرحمن خان په توافق په غاړه واخیستل او په مقابل کې یې سبسدي ورکړه، چې د ۳۹ راتلونکو کلونو لپاره باید د راولپنډۍ تړون دوام ولري.

په همدې اساس انګرېزانو د امیر عبدالرحمن خان او ورپسې د امیر حبیب الله خان په وختونو کې یې له ګاونډیانو سره د افغانستان په پولو او سرحدي کرښو باندې د حاکمیت پیل وکړ. اما د هېواد په کورنیو چارو کې یې کوم رول نه درلود.

د افغان او انګلیس ددوهمی جګړی نه وروسته تر ۱۹۱۹ز د استقلال ترلاسه کول نیتی پوری د افغانستان خاوره د انګریزی هندوستان، تزاری روسیه او ایران ترمنځ د یو حایلی منطقی ( Buffer Zone) حیثیت وموند.

## امیر عبدالرحمن خان



امیر عبدالرحمن خان د محمد افضل خان درېیم زوی، د امیر دوست محمد خان لمسی، له ۱۸۸۰څخه تر ۱۹۰۱ کال پورې د افغانستان امیر او د بارکزیو له کورنۍ څخه په ۱۸۴۰ ز کال کې زېږېدلی دی. نوموړی د خپل پلار د حکومتدارۍ په وخت کې د قطغن او بدخشان د والي په توگه دنده تر سره کړې ده.

نوموړی د خپل کاکا (تره) امیر شیر علي خان په وړاندې راپورته شو او له ماتې خوړلو څخه وروسته بخارا ته وتښتېد. په ۱۸٦٦ زکال کې افغانستان ته بیا راستون شو او شیر علی خان ته یې ماتې ورکړه. خپل پلار محمد افضل خان یې د پاچاهۍ پر تخت کښیناوه، او له درې کلو څخه وروسته شیر علي خان د دویم ځل لپاره واک تر لاسه کړ او دی وتښتېد. د شیر علی خان له مړینې او له پاچاهۍ څخه دده د زوی محمد یعقوب خان تر استعفا وروسته په ۱۸۱۰ ز کال کې د (ضیا الملة و الدین) (د دین او ملت لپاره د رڼا منبع) تر نامه لاندې د هېواد د زمامدارۍ چارې تر لاسه کړې.

څرنگه چې مخکې مو یادونه وکړه، چې له بده مرغه د افغان او انگرېز دویمه جگړه کې د افغانانو بریا په یوه ډېپلوماتیکه بریا بدله نه شوه، او د دې پر ځای چې امیر عبدالرحمن خان د افغانستان شرایط په انگرېزانو باندې ومني، له انگرېزانو څخه یې وغوښتل، چې هغوی څه شی غواړي. په دې پایله کې انگرېزان وتوانېدل، چې سره له دې چې په جگړه کې یې ماتې خوړلې وه، افغانستان د یوه حایل او تر حمایت لاندې هېواد بڼه ورکړي، چې بیا دې حالت تر ۸ د اگست ۱۹۱۹ ز کال او د راولپنډۍ د تړون تر لاسلیک دوام پیدا کړ.

امیر عبدالرحمن خان چې د امیر پنجه اهنین په نوم مشهور وو. د خپلې شل کلنې پاچاهۍ په وخت کې یې د دولت د ادارو په منظمولو باندې پیل وکړ. مالیاتي سیستم یې اصلاح کړ، منظمه پیاوړې نظامي اردو یې جوړه کړه، د مرکزي دولت په پیاوړتیا یې پیل وکړ او په دې لړ کې یې هېواد له اداري اړخه په ولایتونو او لویو حکومتونو ووېشلو، چې نایب الحکومه او حکمرانان به له مرکز څخه ټاکل کېدل، په دې ترتیب د هېواد په شاخوا کې ملوک الطوایفي حکومتداري له منځه لاړه، او هغه قومي مشران چې له امر څخه به یې سرغړونه کوله، په زور بېرته تابع او امر منولو ته اړ کول، د هزاره جاتو سیمې، چې د خپل سرې دعوا یې درلوده، د مرکزي حکومت تر اداري لاندې یې راوستې.

له څه وخت څخه وروسته د کافرستان پر وړاندې، چې په هغه وخت کې مسلمانان نه و، لښکر وایست او دوی یې په جبري ډول سره د اسلام مبارک دین ته راواړول او د دوی سیمو ته یې د ؛نورستان؛ نوم ورکړ. ده د پاچاهۍ په وخت کې د ډېورنډ کرښې تړون لاسلیک شو، او په ۱۸۹۳ز کال کې د برېټانوي هند په لاسلیک باندې، تزاري روسانو پنجده

تر خپل حاکمیت لاندې راوسته، له روسانو او ایران سره د افغانستان د پولو کرښې د ده د پاچاهۍ په وخت کې رسم او وټاکل شوې. نوموړی په کال ۱۹۰۱ ز کې د کابل په باغ بالا کې مړ او په همدې ښار کې خاورو ته وسپارل شو.

عبدالرحمن خان د الهي مشروعیت تر چتر لاندې، د هغه هېواد پاچاه شو، چې معلوم سرحدونه یې نه درلودل، داخلي شخړې په تېزۍ سره جریان درلود، مرکزونه او سوداګریزې لارې د قبایلو له خوا په دایمي ډول سره تر تهدید لاندې وې. د حکومت ټول نیم بنده سیستمونه د دریو نفوذي کسانو، مذهبیان، فیوډالان، او د قبایلو مشرانو له خوا له منځه تللي وو. په بل عبارت حکومت یوازې په یو څو ټکو کې متمرکزه و، او مرکز نور د کنټرولولو توان نه درلود. پر هېواد د ملوک الطوایفۍ روح مسلط و. تر ټولو مهمه دا وه، چې د قدرت د وېشلو پر سر جګړه د دربار په منځ کې جریان درلود او په دوامداره ډول سره یې حکومت فلج کړی وو. امیر عبدالرحمن خان له بهرنۍ ازادۍ څخه د تېرېدو په بدل کې، خپل ځان د انګلیس دلاسوهنې له وېرې خوشی کړ او په کورني کورني مشروعیت باندې بوخت شو. دغه یو خوا والی د دې سبب شو، چې افغانستان د بې ثباتۍ اوګډ وډیو څخه تېر او د نسبي ثُبات خاوند شي.

## د امیر عبدالرحمن د حکومتدارۍ لارې

د افغان او انګلیس د لومړۍ او دویمې جګړې له ماتې خوړلو څخه وروسته انګرېزانو« تفرقه واچوه او حکومت وکړه» په افغانستان کې یې په دې ډول سیاست لاس پورې کړ، چې په دې پړاو کې یې په افغانستان کې فیوډیالېزم پیاوړی کړ. د فیوډالانو پیاوړتیا په دوه شکله سرته ورسېده، یو د انګرېزانو سره د مخالفت له لارې او بل د انګرېزانو سره د موافقت له لارې. ځینې د انګلیس د جګړې څخه ډوډۍ او نانوایۍ ته ورسېدل او ځینې بیا په موافقت کې د ډالۍ د لاسته روړلو لپاره یو له بل څخه مخته کېدل. د انګلیس د دا ډول سیاست څخه اصلي موخه د یو بل په خلاف د وینو بهونکو وسایلو څخه ګټه اخیستل وو، څو له دې لارې پر افغاني ټولنه باندې خپلې موخې تحمیل کړي. د عبدالرحمن خان د کار کولو په ترڅ کې د مرکزي حکومت سیاست او پر واک تمرکز کولو باندې کار وشو، چې بیا دا سیاست د هغه واک لرونکو او سیمه ییزو وینو بهونکو کسانو، چې د خپل ځای ساتنې په لټه کې وو له مخالفت سره مخ شو.

امیر د پیاوړي او متمرکزې جوړې شوې ادارې په ترڅ کې وکولی شول، چې اداري، قانوني او ټولنیز اصلاحات ډلبندي کړي. امیر د عمومي مقامونو د برنامو خرڅول ودرول. هېواد په څلورو لویو ولایتونو، لکه تُرکستان، هرات، کندهار او کابل ووېشل شو او همدا راز په اووه لویو حکومتونو (ولسوالۍ) تقسیم شو او په دې ترتیب، نوی افغانستان رامنځته شو. په دې شکل امیر داسې توافیقاتو ته یې لاسرسی پیدا کړ، چې په خپل ډول کې بې مثاله وو. عبدالرحمن د کار په اجرا کولو کې روڼوالی د ضوابطو په منځ ته راوړلو کې، لکه د قضاء، نصایح الصبیان، شهاب الحساب، او داسې نورو بنسټ کېښود او وتوانېدو چې د قانون لړوالی یا نشتوالی چې په تېرو ادارو کې وو جبران کړي.

د عبدلرحمن خان د قدرت پایې پیاوړې وې چې د هغې په واسطه یې وشو کولی خپل استبداد ته داوم ورکړي. د حکومت پایداره وسایل هم اردو وه. عبدالرحمن وتوانېدو د خپل قدرت د پایو د پیاوړتیا په موخه یوه قوي اردو رامنځ ته کړي، چې پخوا له دې پاچاهان ترې بې برخې وو. د امیر څخه د مخه ادارو فیوډالي او قبیلوي بڼه درلوده، چې د

قبایلو د مشرانو په انساني ځواک، د ځمکو په مالکانو، او ملایانو باندې یې اتکا کړې وه، او د خدمت په فرمان یې کولی شول، چې وسله وال ځواکونه اماده کړي. امیر عبدالرحمن د دې تګلارې د ساتلو له لارې د اردو په عصري کولو هم پیل وکړ. نوموړي اردو په دریو برخو وویشله: توپچي، نظامي سواره او نظامي پلي. د دې اصل په اساس، د اردو پخواني اصلونه په دې شکل سره له منځه ولاړل او د هرې قبیلې د اردو لپاره یې اته نفري اجباري سیستم منظم کړ. په دې ترتیب امیر د هر افسر په خاطر لږ نغدي پیسې او کالي هم برابرول.

عبدالرحمن د خپل سلطنت د ساتلو په موخه (د ظهور افغانستان نوین د کتاب په وینا : ګریګوریان وارتان) شاوخوا ۵۰۰۰۰ تر ۶۰۰۰۰ خدمت ته اماده نظامي قوتونه او په کافي اندازه د نظامي وسایلو انبارونه په خپل واک کې درلودل. عبدالرحمن د سرکښه غلجي قومونو او قبایلو د ځپلو په موخه کوښښ وکړ، چې د یو میلیون سرتېرو څخه جوړه شوې اردو ولري او په ښو او پرمختللیو وسلو سمبال وي.

وروسته یې بیا په اقتصادي ډول وکولی شول، چې په مستقیم ډول د مالیاتو ورکړه رامنځ ته کړي، چې په دې ترڅ کې د پنجشیر او پکتیا خلکو، همدا راز د غلجیو قبیلې پاڅون کولو ته مجبور شول او غلجي خلک چې پخوا یې هېڅ وخت دولت ته مستقیم مالیات نه وو ورکړي، ځکه چې مالیات د خانانو په واسطه راټولېدل او همدا راز له متنفذینو او ملایانو څخه مالیه نه اخېستل کېده. مګر دا ځل امیر مستقیم مالیات درې کوت د کاریزي ځمکو په اړه، ذکات، د واده او د میراث مالیات یې وضع کړل چې همدې امر د لویو پاڅونونو لپاره زمینه برابره کړه.

امیر خپله توره د ملایانو پر خلاف چې هغوی یې په هېواد کې د دین دروغجنو رهبرانو او د مسلمان ملتونو د افت اصلي عاملین بلل را پورته کړه. دوی ته امیر دوه لارې وټاکلې، چې یا به تسلیمیزي او یا به هم هېواد پرېږدي :.هغه ملایانو چې د امیر اطاعت یې منلی وو او په سیمو کې یې وعظ او تبلیغ کولو، د هغوی لپاره یې معاش وټاکلو او دیني مدرسو لپاره یې دولتي لګښتونه وټاکل.

د امیر عبدالرحمن خان له کوښښونو سره د :ملت جوړونې: پروسه په اساس د یو ګډ هېواد، زموږ افغانستان – ګډ دین زموږ اسلام، او زموږ ملي ژبې پښتو او فارسي (دري) پیاوړې شي.د بارفیلداز په قول د ۱۸۸۱ زکال څخه تر ۱۸۸۸ ز کال پورې عبدالرحمن خان خپل اکثر عملیات د سرکښه پښتنو خواته، په ځانګړې توګه غلجیو ته متوجه کړي وو. له هغې څخه وروسته یې خپل عملیات د غیرې پښتنو د هېواد په شمال او لوېدیځو سیمو کې او د هېواد د مرکز لوري ته متوجه کړل. تاج التواریخ یا د افغانستان په سیاسي فرهنګ کتاب کې، چې افغان دولت یې ښکاره کړی او د افغاني ټولنې په اړه، ډېر غني معلومات ورکوي. په دې برخه کې؛ د یو کور جوړولو؛ څخه یې کار اخیستی، د هغې په خبره، اړینه ده، چې یاد کور له هغه مضره او خطرناکو شیانو څخه پاک شي، چې په دغه کور کې یې ځای نیولی دی.. چې دا ټول په سلهاو لوی او واړه مشران، چورکوونکي، غله او انسان وژونکي، هغه کسان چې د هغوی شتون د افغانستان د تل پاتې زحمت او ځورونې سبب ګرځېدلی وو:.

د امیر د حکومتدارۍ لومړیتوب دا وو، چې سرکښه خلک له حکومت سره یو ځای او په ترڅ کې یې یو پیاوړي مرکزي حکومت رامنځ ته کړي. د دوه لسیزو په اوږدو کې یې د هېواد په بیلا بېلو برخو لکه زابل، او قلات تر بدخشان،

هزاره جات او نورستان پورې د ملوک الطوایفی واکدارۍ د ختمولو په موخه او د مرکزي حکومت د تحکیم په موخه ځو جګړې تر سره کړې.

په دې وخت کې پاشیدلی نظام د ملوک الطوایفۍ په متمرکز فیوډالي دولت بدل شو، او د هېواد د شمال مېشت امیران (بدخشان، قطغن او بلخ) او هزاره خلک چې د مرکزي حکومت تابعیت یې نه منلو، د دولت اطاعت ته تابع کړل. د کافرستان خلک د مسلمانولو په نوم او د لښکري لاریونونو او د مرکزي حکومت څخه د تابعیت په موخه په دې مجبور شول، چې د هېواد نوم یې د ؛کافرستان؛څخه ؛نورستان؛ ته بدل شو.

امیر عبدالرحمن خان د خپل هېواد ځمکنۍ بشپړتیا په دریو لارو پیاوړې کړه: نوموړي د اعتبار ورکولو د قدرت د بیا اجباري هستوګنې له لارې، د سختې سزا د تطبیق له لارې،حتی اعدام، وکولی شول چې ټول یاغي قوتونه، تیت او پرک او له مرکز څخه تښتېدونکي له منځه یوسي. امیر عبدالرحمن د ناقلینو د پالیسۍ له لارې د ټولو څخه د غښتلي پښتنو مرکزي قومونو ملا ماته کړه. غلجیان د امیر د رقیبانو او سرسخته دښمنانو څخه وو، امیر د اجباري انتقال له لارې دوی سوېل او مرکزي سیمو ته، سوېلي، شمال د هندوکش غرونو ته، چې ډېری یې غیر پښتون مېشته سیمې وې، و توانېد چې دا پیاوړی حالت کمزوری کړي. بلاخره امیر وتوانېد، چې د قومي یووالي کیلي ماته کړي او د هغوی ځای نوي ولایتي سیستم ته ورکړي. والیان، د سیمه ییز نظامي ځواک لرونکي وو، چې له مرکز څخه اداره کېدل او د مالیاتو د راټولولو په برخه کې او د یاغیانو د لمنځه وړلو په برخه کې د مرکزي دولت لپاره یې کوښښونه کول. امیر عبدالرحمن خان د هېواد ټول والیان د استخباراتي سیستم له لارې ډېر په ښه او موثر شکل سره له نیږدې تر خپل کنټرول لاندې راوستلي وو.

د امیر عبدالرحمن خان په وخت کې د محلي حکومتونو پخوانی سیستم – قومي سیستم ډېر کم رنګه کړی شو او په واقعیت کې د همدې سیستم په اساس قومونه د سرحدونو د قومي ادارې څخه ووتل او تر نوي ولایتي سیستم لاندې د دولت په اډانه کې یې راکړې ورکړې پیل کړې.

امیر عبدالرحمن خان په هېواد کې د یوه مدرن او پرمختللي منظم عسکري نظام په جوړولو کار پیل کړ. امیر عبدالرحمن خان سره له دې، چې یو اتوکراتیک شخصیت یې درلود، لویه جرګه یې راوغوښته او په هغه کې شهزاده ګانو، خاص متنفذ شخصیتونو او روحانیونو ګډون وکړ.د امیر عبدالرحمن خان د ژوند لیک د کرښو په اساس، چې دری لوی نظریات پکې نغښتي وو: یاغي قومونو له منځه وړل، د مرکزي دولت پراخه او پیاوړي کول د یوې ځواکمنې اردو له لارې او د سلطنتی کورنیو او حکامو پیاوړي کول.

امیر عبدالرحمن خان ټکنالوژۍ او پراختیایي برخو ته ځانګړې پاملرنه وکړه، او هېواد ته یې له بهرنیو هېوادونو څخه ډاکټران، انجنیران (په ځانګړې توګه د معدن پېژندنې)، څمکپوهان دعوت کړل. امیر له اروپایي هېوادونو څخه ماشینونه افغانستان ته وارد کړل او د صابون جوړولو وړې کارخانې یې جوړې کړې. همدا راز په هېواد کې د شمعو جوړلو، د چرمي تولیداتو جوړولو او د وسلو جوړولو فابریکو په کار پیل وکړ. امیر د کارپوهانو او صنعتي سلاکارانو راجلبولو، اړیکو نیولو، مواصلات، په اروپایي سیستم سره د اوبو لګونې برخې ته ځانګړې پاملرنه وکړه.

د تاريخ له نظره، يوازې په دوو پېښو کې پښتانه د نورو قومونو پر وړاندې درېدلي دي. له دغه پېښو څخه يو د امير عبدالرحمن خان له لوري پر هزاره جاتو باندی يرغل او دوهم د امير عبدالرحمن خان لخوا پر کافرستان باندی يرغل وو، چې هغه ځای نن د نورستان په نوم پېژندل کېږي. له دې سره سره چې دواړه بريدونه عبدالرحمن خان له نورو عملياتو سره په ګډه د هېواد نورې برخې د مرکزي دولت تر خپل کنټرول لاندې راوستو او په هېواد کې د يوې ملکي ادارې جوړولو په موخه تر سره کړي وو.

سربېره پر دې د دغه دوو بريدونو، په ځانګړې ډول بيا په هزاره جات باندې د يرغل په ترڅ کې د پښتنو سيمه ييزو ځواکونو له خوا د هزار خلکو پر وړاندې لوی جنايتونه تر سره کړل او هزاره قوم ته يې نه جبرانېدونکي زيانونه واړول. تر دې، چې امير حبيب الله خان قدرت ته له رسېدو وروسته، په يوه ليک کې له هزاره قوم نه ښښنه وغوښته او دوی ته يې بلنه ورکړه، څو خپلو کورنو ته بېرته راستانه شي.

په نيږدې تېرو کلونو کې، که د طالبانو بريدونه او په يکاولنګ، باميانو او مزار شريف کې د هزاره ګانو قتلول د يوه قومي تعصب پر بنسټ وبولو، دوی چې د شيعه ضد مذهبي تعصب درلود هغه کولی شو د دې سره کلک ارتباط ورکړو. همدا راز په شمالي کې د باغونو او کرنيزو ځمکو سوځول د طالبانو د جنايتونو يو بل جنايت دی، چې د دوی پر مخ يې تل پاتی ننګينه ټاپه لګولې ده او تر ابده به پاتې وي. د امير عبدالرحمن خان په وخت کې او له هغې څخه وروسته د امير حبيب الله خان په وخت کې انګرېزانو د سرحدي کرښو په ټاکلو کې د افغانستان او د ګاونډيانو سره په قضاوت پيل وکړ؛ مګر په داخلي چارو کې يې هېڅ رول نه درلود.

## د تزاري روسانو په واسطه د پنجده نيول:

د انګلستان او د تزاري روسيې په ترتيب (لورد ګرينويل) (Lard Granville) او (پرنس ګروچکوف) د بهرنيو چارو وزيران د افغانستان او د روسيې د سرحدونو د معلوملو په موخه وټاکل شول، او په ۱۸۷۳ ز کال چې د ۱۲۹۰ هـ س کال سره سمون خوري، دې پريکړې ته ورسېدل او د افغانستان شمالي سرحدونه يې د کاغذپر مخ له تزاري روسيې سره معلوم کړل.

کله چې امير عبدالرحمن خان په (۱۸۸۰ ز - ۱۲۹۷هـ ل ) کې واک ته ورسېد، د ده د حکومتداری په وخت کې د افغانستان سرحدونه وټاکل شول او په دې ترتيب د انګليس او تزاري روسيې سره خبرې پيل شوې او يوه داسې پرېکړه وشوه، چې د (۱۸۸۴ز) کال په نومبر مياشت کې د پورته دريو ذکر شويو هېوادنو تر منځ يو ګډ استازی په سرخس کې حاضر شي. مګر تزاري عسکرو خپل پرمختګ ته په منځنی اسيا کې دوام ورکړ تر دې چې پنجده ته نيږدې ورسېدل او د خاتون د پله څخه چې د هريرود د سيند پر سر و د يوه نظامي تمځای په توګه ورنه ګټه وکړه.

په (۱۸۸۵ ز ) کال کې پنجده او اقتيپه د روسي عسکرو لخوا ونيول شوې. له دې څخه وروسته په لندن کې د دوهم ځل لپاره د برېټانيا او تزاري روسيې استازو ترمنځ خبرې اترې پيل شوې او د شمالي افغانستان د سرحد د ټاکلو په موخه د يادو استازو تر منځ څو ځله خبرې وشوې. څو چې بلاخره په (۱۸۸۷ز) کا ل کې يو شپږ فقره يي پروتوکول

لاسلیک شو، چې د هغې په اساس شمال لوېدیځ سرحدات د ریجوي کرښې(RIDGE WAY) په نوم شول، چې د تزاري روسيې او انگلیس د استازي (کاپیتان کامروف او چارلس یت) لخوا د څلورو کلونو په ترڅ کې د ذالفقار له درې څخه تر خماب پورې د (۵٦۰) کیلو متره په اوږدوالي، د یوې لنډې کرښې په واسطه د بېلرونو په اېښودلو سره تثبیت او وټاکال شول.

## د ډېورنډ کرښې تړون[7]

د ډېورنډ تړون د ۱۸۹۳ ز کال د نومبر میاشتې په دولسمه نېټه د امیر عبدالرحمن خان او په کابل کې د برېټانوي هند حکومت د بهرنیو چارو وزیر سر هنري مورتمر ډیورند تر منځ لاسلیک شوه. په هغه وخت کې د گندمک د تحمیلي او استعماري تړون (۱۸۷۹ ز ) د لاسلیک په وخت کې افغانستان د خپلو بهرنیو سیاسي چارو په برخه کې په برېټانوي هند پورې تړلی وو. د ډېورنډ تړون ۷ مادې لرلې او د دوو دولتونو د نفوذ ناحیې یې پر قبایلي قومونو، چې د سند د سیند لوېدیځ خواته مېشت وو او تر بلوچستان پورې یې هلته ژوند کولو، ټاکلې دي. له دې سره سره چې دا سیمې لا پخوا د رنجیت سنگ او د انگرېزانو تر بریدونو لاندې راغلې وې او د افغانستان د دولت له اداري څخه بهر وې، مگر په هغه وخت کې دا سیمې له اداري اړخه په برېټانوي هند پورې تړلې وې.

د ۱۹۲۱ز کال تړون، چې په کابل کې له سیاسي استقلال څخه وروسته د برېټانیا او افغانستان دولتونو تر منځ لاسیلک شوه. ډېورنډ تایید وي، مگر دا تړون یوازې د دریو کلونو لپاره د باور وړ و او د دریو کلونو په ترڅ کې هر لوری کولی شول، چې د خبراوي په ترڅ کې دا تړون له منځه یوسي. افغانستان په ۱۹۴۹ ز کال د جولای په ۲٦نېټه د لویې جرگې له لارې دا یو اړخیزه تړون له منځه تللی اعلان کړ. دا ادعا چې افغانستان د جینیوا د کنوانسیون د بین المللي تړونونو په اساس د یو طرفه ملغي کولو حق په ۱۹۲۱ ز کال کې د کابل د تړون د ملغي کولو حق نه لري، او همدا راز سمه نه ده. په دې خاطر چې د جینیوا د کنوانسیون په اساس ۱۹٦۹ز کال منعقد شوی او پر هغه تړون چې د هغې څخه وروسته لاسلیک شوی اثر کولی شي او له دې څخه مخکني مسایلو ته نه ورگرځي. په دې اساس افغانستان هېڅ کله خپل حق د پښتنو له لاس څخه تللیو سیمو د بیا نیولو د سند د سیند په لوېدیځ کې له لاسه نه دي ورکړې.

د عبدالرحمن خان وخت په حقیقت کې له زور زیاتي سره د ثبات گډ وخت وو. د ډېورنډ د تړون لاسلیک کېدل. د واکمنی په داخلي چارو کې یې پرته له کوم تشویش څخه انگرېزانو ته د لاسوهنې زمینه برابره کړه. د افغانستان د بهرنی ازادی له منځه تلو سره کورنی ثبات د هر اړخیزه ثبات د تامین کولو شرایط مساعد شول. د سرکوب کوونکي سیاست موجودیت، د ملوک الطوایفی د نظم له منځه تلل، د فیوډالي نظم کم رنگه کېدل، د روحانیت د نقش کمرنگه کېدل د قضا اساس( د اوقافو په لاس کې اخیستل) دجوړښت په اساس وو. قوي پنجه امیر وتوانېدو د قدرت په متمرکز

---

[7] د ډېورنډ هوکړه د تاریخي ارزښت له کبله، او د هغې د اثراتو لپاره د پاکستان سره د افغانستان د اړیکو په هکله، د دې کتاب په دولسمه برخه کې،په تفصیل سره تر څېړنې لاندې نیول شوې ده.

کولو، د مستحکمې ادارې به جوړولو، پاینښت لرونکې اردو او دولتي نظم د افغانستان د تشکیل شویو قومونو ترمنځ په ټولنه کې د یوه یادګار په توګه پرېیښودل.

## امیر حبیب الله خان



امیر حبیب الله خان (چې لقب یې سراج الملة والدین وو)، د امیر عبدالرحمن خان زوی وو. د افغانستان امیر، په ۱۲۸۸ ه.س کال کې چې د ۱۸۷۲ز د جون له دریمې سره سمون خوري په سمرقند کې زېږېدلی دی، او په ۱۳۱۹ ه.س کې چې د ۱۹۰۱ز کال د اکتوبر میاشتې سره سمون خوري د پلار پر ځای د امارت پر چوکۍ کښېناست.حبیب الله د خپلې پادشاهۍ په وخت کې، په (۱۹۱۲ -۱۳) ز کال کې پکتیا او په (۱۹۱۲) ز کال کې د کندهار په بیلا بیلو سیموکې ل ډېرو شورشونو او سرکښیو سره مخ شو.

په ۱۹۱۸ ز کال کې د امیر حبیب الله خان پر خلاف کابل ښار کې به یوه پلان شوې توطیه کې، مستوفي ممالک محمد حسن خان د امیر حبیب الله خان د پاچاهۍ په پای کې پاچاه ته یو محرم راپور ورکړ او د امیر حبیب الله خان پر وړاندې جوړ شوی پلان یې ورته تشرېح کړ. داسې پلان چې شهزاده امان الله خان او علیا حضرت د امان الله خان مور دواړه پکې شامل وو. امیر دغه راپور ته چندان پاملرنه ونه کړه او بلاخره د ۱۹۱۹ز کال د فبروري میاشتې په ۱۹ نېټه، د ښکار کولو په وخت د لغمان په کله ګوش کې ووژل شو.

اګر چې زوی یې امان الله خان د کلنل علیزضا خان په نوم یو کس د خپل پلار حبیب الله خان د وژل کېدو په جرم په اعدام محکوم کړ، اما ځینې تاریخ لیکونکي شجاع الدوله خان فراشباشي او سردار نادر خان دواړه د ده د وژلو عاملین بولي او دا دوه کسان د حبیب الله د ترور څخه وروسته د ریاست چوکۍ ته د کابل د امنیت ریاست او د دفاع وزارت مقامونو ته ورسېدل.

امیر حبیب الله خان د ۱۸ کلونو په ترڅ کې د افغانستان پاچاهۍ ته ورسېد. نوموړي د خپل پلار برعکس نرم خویه، حلیم تر او لا پوه انسان وو او د میر محمد صدیق فرهنګ په قول (( د ده شخصي پوهې له نظره د امیر دوست محمد خان نه بیا تر د امیر امان خان دورې پورې، د بارکزیو پاچایانو له ډلې څخه امیر حبیب الله خان یو باسواده او د زیاتې مطالعې لرونکی پاچاه وو.

د امیر حبیب الله خان د یادونې وړ کارونو څخه د زندانیانو ښښنه وه، چې د پخواني امیر د استبداد قربانیان وو. نوموړي د یوه فرمان په ترڅ کې داسې وویل: ((هغه کسان چې د پخواني امیر په دوره کې په داخل او یا هم له هېواد څخه

بهر ته تبعید شوي او یا له ډاره تبنتېدلي، خپل هېواد ته د راستانه شي، او نه یوازی به هېڅ څوک په دوی د تېرو لګېدلو تورونو پوښتنه ونکړي، د دوی ملک او جایدادونه هم بېرته ورکول کېږي.

د هزاره خلکو په اړه، چې تر ټولو یې ډېر زجر او ستم لیدلی وو،د ۱۳۲۲ه س کال د روژې میاشتې په دولسمه نېټه یې یو بل فرمان ورکړ ـ۱۹۰۴ ز) چې په هغې کې راغلي وو:(( تر دې مهاله، چې ستاسې ځمکې او ملکیت ناقلینو خلکو ته ورکول کېدلې، حکم مې کړی، چې له دې وروسته ستاسو په خپل واک کې وي، او هر څومره ځمکې چې له دې څخه د مخه افغانانو ته ورکړل شوې وې...د هغې په بدل کې به نوې ابادې شوې خالصې دولتي ځمکې درکول کېږي)).

هغه داسې یو کس وو، چې د کورنیو او بهرنیو مسایلو په هکله یې یو پراخه نظر درلود، ولې له بده مرغه په شخصي ژوند کې عیاش، او خوشګزران وو.

د امیر حبیب الله خان د لویو تر سره شویو کارونو څخه په لاندې خلاصه ډول یادونه کولی شوو، چې د هغوی اثرات په کلونو حتی تر نننی افغانستان پورې پاتي دي:

۱. په ۱۹۰۳ ز کال کې یې د حبیبیې په نامه لومړی رسمي دولتي ښوونځی په کابل کې پرانیست، په دې ښوونځي کې د کورنیو ښوونکو تر څنګ یو شمېر بهرني ښوونکي( له برېټانوي هند څخه) هم د ښوونکو په توګه په دنده بوخت وو. د وخت په تېرېدو سره د حبیبیې دا ښوونځی د روڼ اندو او خپلواکۍ غوښتونکو پاملرنه ځان ته واړوله او له ۱۹۰۶ ز کال څخه تر ۱۹۰۸ ز کال پورې د سیاسي فعالیتونو د مرکز به نوم یاد او د افغانستان د مشروطیبت په غورځنګ بدل شو.

۲.همدا راز دغه پاچاه د ۱۹۱۲-۱۹۱۵ ز کلونو په اوږدو کې د لومړي ځل لپاره له اوبو څخه د برېښنا د تولید فابریکې او د نساجۍ فابریکې ((جبل السراج)) د بنسټ ډبره کېښوده، او په عملي ډول سره په هېواد کې د انرژیکي بریښنا او د نساجی د کارخانو څخه ګټه اخیستل پیل شول.

۳.افغانستان تر ۱۹۰٦ ز کال پورې د رسنیو په برخه کې هېڅ لاسته راوړنه نه درلوده ( د امیر شیر علیخان د سلطنت په دوران کې پرته د شمس النهار د څو د شمېرو څخه)، دولتي اطلاعات او خبرونه به په بېلابېلو فرمانونو او یا به په شفاهي ډول سره (د جارچیانو لخوا) تر خلکو پورې رسول کېدل. مګر د امیر حبیب الله خان په اجازه د ۱۹۰٦ ز کال په جنوري میاشت کې لومړی رسمي جریده (سراج الاخبار) خپره شوه، اما یوازې یوه ګڼه یې خپره شوه، په دې خاطر چې چاپ شوي مواد یې د پاچاه د خوښې وړ نه وو او بیا تر ۱۹۱۱ ز کال پورې یې د بیا خپراوي او چاپ اجازه ورنکړه.

۴.په ۱۹۰۹ ز کال کې یې د لومړي ځل لپاره سراجیه دولت د عسکري زده کړو مرکز د جوړېدو پرېکړه وکړه، او په همدې کال د امیر حبیب الله خان لخوا د حربي ښوونځي بنسټ کېښودل شو. په دې ښوونځي کې د هندوستان او ترکیې هېواد ښوونکو درس ورکولو، او په افغانستان کې د یاد نظامي زده کړو مرکز د بنسټ ایښودنه د یوې منظمې اردو په پیاوړتیا کې لوی رول درلود.

۵. د شلمې پېړۍ په لومړیو کلونو کې امیر حبیب الله د لومړي ځل لپاره موټر له برېټانوي هند څخه د دربار د ګټې اخیستنې په موخه هېواد ته رواڼ. او همدا راز د مواصلاتي لارو د لا ښه کولو په خاطر یې پاملرنه وکړه او د دې لارې یې خامه (خاورین) سړک کابل – جلال اباد(د لته بند له لارې)، کابل – پروان (تر غوربند) او همدا راز کابل – غزني تر کندهار پورې تول د موټرو د ګټې اخیستنې په موخه جوړ کړل. دا کار په واقعي توګه په افغانستان کې د ترانسپورټي کارونو پیل وو.

٦.امیر عبدالرحمن خان د خپل سلطنت په وروستیو کې، هغه وخت، چې د دربار او حکومت صلاحیتونه یې خپلو زامنو ته ورکړل. په لومړي ګام کې یې واک امیر حبیب الله خان ته ورکړ. خپلو مخالفینو او تبعید شویو محمد زیو سردارانو ته یې د بېرته راتګ لاره برابره کړه، چې په سر کې یې غلام محمد خان (طرزالدوله) او محمود بیک طرزی وو، د دمشق او عثماني دولت له نورو سیمو څخه یې کابل ته د بېرته راتګ شرایط ورته برابر کړل. سردار محمد بیګ طرزي کابل ته تر راتګ وروسته تکیه پر خپله کاري تجربه او پوهه وکړه، چې په منځني ختیځ او په ځانګړي ډول په ترکیې هېواد کې یې زده کړي وو (د ده ښځه ترکۍ – د شام څخه وه او د نړۍ لید یې د ترکیې د لیدلوري څخه متاثر وو ).

د امیر حبیب الله خان په دربار کې سراج الملة والدین په ډېره چټکۍ سره نفوذ وکړ. د پرمختګ له عواملو څخه یې یو د دوی د امیر سره ډېرې نیږدې اړیکې وې، د شخصي پوهې او علم څخه پرته د دربار له چارواکو سره یې د خپلوی اړیکې هم درلودې، لکه محمود بیګ طرزي خپلې دوې لونې د امیر دوو زامنو، شهزاده عنایت الله خان او شهزاده امان الله خان ته په نکاح کړې وې. نوموړي وروسته بیا د خپلو زومانو په مرسته شهزاده عنایت الله خان، چې د فرهنګي او معارف سرپرستي یې په غاړه وه د با ارزښت او روشنفکره کارونو پیل یې د سراج الاخبار جریدې له لارې پیل کړ.

محمود بیګ طرزی یو ډېر ښه لیکوال او په ادبیاتو او ژباړه کې ډېر غښتلی وو. د امیر حبیب الله لا زیات باور یې تر لاسه کړ او شاه نوموړی په ۱۹۱۱ ز کال کې د سراج الاخبار د مدیر په توګه په کار و ګماره. نوموړي په خپلو لیکنو، ویناو او په شعرونو کې د استقلال، پرمختګ او پوهې تبلیغ کولو او په هغه وخت کې د ډېرو لوړو جذبو څخه ډک وو، چې حتی په برېټانوي هند کې د انګرېزانو د وېرې او ډار سبب ګرځېدو. د انګرېزانو په ضد د طرزي د هرې کرښې ازادۍ غوښتونکې لیکنې او اثارو څخه په څرګند ډول سره ښکاري.

دا بې ځایه نه ده، چې په افغانستان د هغه وخت په نویو جوړو شویو مطبوعاتو کې(په ځانګړې ډول په سراج الاخبار کې دده فعالانه رول درلودل) د ده د ارزښتناکه رول لرلو په اساس، محمود طرزی د افغانستان د ژورنالیزم پلار بلل شوی دی.

محمود طرزی له دې سره چې د نورو محمدزیو په شان، شخصا په پښتو برلاسي نه درلوده، لومړی مهم با ارزښته اقدامات یې د پښتو ژبې د پیاوړتیا په موخه تر لاس لاندې و نیول(چې هغه ته یې د هغه وخت د دري ژبو په اصطلاح، افغاني ژبه ویله). ده خپله د سراج الاخبار په څو مقالو کې په کتبي او رسمي ډول پښتو ترویج کړه او داسې یې لیکلي وو:((د افغانیه د دولت د جوړېدو پیل څخه، زموږ دولتي ژبه فارسي شوې او پاتې ده. له دې څخه وروسته هم د ځینو بهرنیو

عواملو او کورنیو اختلافاتو په اساس، د افغاني ژبې د ترقۍ او پرمختګ په خاطر او د دولتي رسمیاتو د بدلولو په موخه د فارسي ژبې څخه، افغاني او د هغې ژبې د رسمي کولو په برخه کې چا کار نه دی کړی...طرزي خپله په یوه بله مقاله کې د ((افغان ملت)) په هکله داسې لیکي:

((موږ تل افغان ملت، او زموږ پاکې خاورې ته افغانستان ویل کېږي. په کوم ډول سره چې خاص عادتونه، خویونه او ځانګړتیاوې لرو، خپل ځان ته ژبه هم لرو چې هغې ته ؛ افغاني ژبه) ویل کېږي. د یادې ژبې څخه باید د خپل وجود په توګه ساتنه وکړو. د سمونې او پرمختګ لپاره یې باید کوښښ وکړو. یوازې افغاني ژبې وېیونکي نه، بلکې د افغانستان د ملت په ټولو قومونو او خلکو دا واجب ده، چې د خپل ملت او هېواد افغاني ژبه زده کړي.

په ښوونځیو کې زده کړه او همدا راز مهمې زده کړې باید په افغاني ژبه وشي. په انګرېزي، ترکي او حتی په فارسي ژبه باندې د لوړو زدکړو کولو څخه افغاني ژبه بهتره وشمېرل شي.

له بده مرغه، چې له څو کلونو څخه را پدېخوا او په ځانګړي ډول سره د جمعیت اسلامي او شورای نظار قدرت ته له رسېدو څخه وروسته په ۱۹۹۲ز کال کې یو څو کسانو د تعصب له مخې د پښتو ژبې په مقابل کې داسې فکر کولو، چې د پښتو ژبې په ابتدایي پراختیا کې د محمود طرزي ابتدایي اقدامات نا سم وو، هغه یې په دې تورن کړی، چې ګني ؛ تبعیضي او فارسي سیاستونه – د افغانستان په ورستنیو حکومتونو کې په دري ژبه یرغل کوونکي)) علت نوموړی وو. په داسې حال کې چې په حقیقت کې دري/فارسي ژبه هم د خط او کتابت رسمي ژبې په صفت د افغانستان د دولت او د تعلیمي مؤسساتو او عالي تعلیماتو رسمي ژبې په ډول تر نن ورځ پورې پر خپل ځای پاتې ده.

۷. د طرزي په کورنۍ سربېره، امیر حبیب الله خان، یو بلې محمدزي کورنۍ سراج الملته والدین ته هم، هېواد ته د بېرته راستنېدو اجازه ورکړه، چې د ال یحیی په نوم مشهوره وه. دا کورنۍ چې د هغې په سر کې سردار یحیی خان وو، د خپلو زامنو او کورنۍ سره یو ځای بېرته د برېټانوي هند د دون دیري څخه راستانه شول او د دوی تر ټولو مهم سردار نادر خان وو، چې کابل ته د بیا راتګ څخه وروسته یې په خپله وړتیا او پوهې تکیه کوله او د ورونو په مرسته یې د حبیب الله خان په دربار کې نفوذ او رېښې وغځولې.

نادر خان او ورونو یې (چې سردار محمد عزیز خان، سردار محمد هاشم خان، سردار محمود خان او سردار شاه ولیخان وو) ټول په هند کې زېږېدلي وو، په چټکۍ سره یې د دربار ښه کارونه په خپل لاسونو کې واخیستل او د امیر د ځانګړو رازدارانو او د اعتبار وړ کسانو څخه شول. په همدې اساس دوی د امیر په (خاصو مصاحبانو) مشهور شول. امیر ته له حد نه زیات د ( مصاحبانو) نیږدېوالی د امیر حبیب الله کورنۍ یا د ودونو اړیکې وې، چې د دوی خور د امیر حبیب الله(چې په علیاجانب مشهوره وه او همدا راز د هند د دون په دېره کې زېږېدلې او ډېره ښایسته او پوهې لرونکې ښځه وه، امیر حبیب الله خان له انګرېزانو سره د ډېورنډ تړون تایید کړ.

**امیر امان الله خان**



امیر امان الله خان چې په غازي امان الله مشهور دی او د امیر حبیب الله خان دریم زوی، د امیر عبدالرحمن خان لمسی او همدا راز د امیر دوست محمد خان کړوسی او د بارکزیو له سلسلې څخه وو. نوموړی د ۱۸۹۲ ز کال په جون میاشت کې د کابل په پغمان کې زیږیدلی. امان الله په حربي ښوونځي کې زده کړې کړې او له اردو مسلک سره یې نیږدې اړیکې درلودې. د خپل پلار حبیب الله له وژل کیدو څخه وروسته په ۱۹۱۹ ز کال کې د فبروري په ۲۷ نیټه واک ته ورسید.

نوموړي په ۱۹۱۹ ز کال کې د خپلواکۍ یا د افغان انګلیس دریمه جګړه پیل کړه، چې د راولپنډۍ له تړون سره ختمه شوه او د هغې په اساس بریتانیا، افغانستان د یو خپلواک هیواد په توګه په رسمیت وپیژاند.

د شاه امان الله سلطنت د ۱۹۲۹ ز څخه له شوروي سره او وروسته له ایتالیا، ترکیې او ایران سره د دوستۍ په تړون لاسلیک شو. شاه امان الله له هغې وروسته په ۱۹۲۱ ز کال کې له شوروي دولت سره تړون وکړ او د هرات کندهار او کابل د کشک تلګرافي کرښې امتیازی یې روسیې ته ورکړ.

نوموړي د ۱۹۲۷ کال د ډسمبر په ۱۰ نیټه د ٦ میاشتو په موخه خپل سفر اسیایي، اروپایي او افریقایي هیوادنو ته پیل کړ او په ۱۳۰۷ ه ل کال کې د ایران له لارې بیرته افغانستان ته راستون او په اصلاحي کارونو یې پیل وکړ.

اما الله خان په ۱۹۲٦ کال کې مشروطه سلطنت او خپل ځان یې شاه اعلان کړ.

د لویې جرګې جوړېدل او په لومړي ځل د اساسي قانون تصویبېدل، د غلامۍ له منځه وړل، د شاهي مشروطه نظام استقرار، د دولتي ځواکونو تر منځ توپیر، د زده کړې اجباري کېدل، په مالي نظام کې اصلاحات راوستل، د جبر کار څخه مخنیوی کول. د زده کړو په موخه بهرینو هېوادونو ته د محصیلنو لېږل، په کابل کې لومړنی عامه کتابتون تاسیسول، په خپرونو او رسنیو کې د ښکاره زیاتوالي راتګ او همدا راز دې ته ورته نور ټول بدلونونه او تحولات د ده له دورې څخه بلل کېږی او په ټوله کې د شاه امان الله خان دوره په هېواد کې یوه روښانه دوره یادېږي.

له هغه ځایه چې د ده اصلاحي اقدامات له تُندروی سره یو ځای وو او د ټولنې د ځینو قشرونو د روحیې سره یې جوړښت نه درلود، دا دې سبب شول چې دده د سلطنت په پر وړاندې د ځینو کسانو لپاره د شورش او پاڅون لاره هواره کړي، او حبیب الله کلکاني پر ده باندې پاڅون وکړ چې نوموړي اداره پرېښوده او ایټالیا ته ولاړ.

باید یادونه وکړو چې د حبیب الله کلکاني څخه مخکې، په( ۱۳۰۳هـ ل- ۱۹۲۴ز) کال کې ځینې ملایانو او افراطي روحانیونو د ګوډملا په مشرۍ د امان الله خان د دولت په خلاف تبلیغ پیل کړ او خلک یې په خوځښت راوستل. دوی د اماني دورې ټول اصلاحات د دین خلاف وګڼل. دا د پرمختګ خوښوونکی او په هېواد مین پاچا یې کافر او پر وړاندې یې د جهاد فرضیت اعلان کړ. یادو ملایانو په یوه لاس کې قران او په بل لاس کې د امان الله خان د جزا قانون

نیولی وو او د بې سواده او بې علمه قومونو ترمنځ یې دا چېغې وهلې: چې له دې دواړو څخه کوم یو قبلوئ؟ معلومه ده چې خلکو به ویل: قران.

باید په یاد ولرو چې په دې توطیه کي انګرېزانو ځانونه اتلان ګڼل او په مستقیم ډول یې په داخلي چارو کې مداخله پیل کړه، او یو هندو یې د عبدلکریم په او د امیر یعقوب خان د زوی په نوم د پکتیا ځدرانو قوم ته داخل کړ، چې د پاڅون کوونکو مشري په لاس کې واخلي. د جګړې په پیل کې یې د پاڅون کوونکو په ګټه کار کولو، کله چې د دولت پانګه ختمه شوه او بلخوا د دولت ۸۰۰ عسکر په یو وار ووژل شول، دا د اماني نوي پیدا شوي رژیم ته یوه یوه کلکه ضربه وه. په همدغه دوره کې وو، چې عبدالکریم د انګرېزانو په ملاتړ په پکتیا کې د امارت دعوه وکړه. ځکه اکثره د افغانستان خلک د اماني دولت د کړنو څخه خوښمن وو، د سلو کسانو یوه لویه ډله ناپوهه پاڅون کوونکي یې مخ ته ودرېدل او دا پاڅون د دوی د سرکوبه کېدو سبب شو.

میر غلام محمد غبار په ((افغانستان په تاریخي بهیر کې )) (لومړی ټوک، ۸۰۹ ص) کې لیکي:(( کله، چې پوه شول چې د پکتیا پاڅون مذهبي خرنګوالی نه بلکې سیاسي ماهیت لري او هغه هم د انګلیس د دولت په لاس لرلو سره، ټولو د دولت په پلوی باندې پیل وکړ او د بهرني نفوذ پر ضد یې کار پیل کړ او له یو بل سره یوځای شول. په داسې وخت کې د داسې یوه پاڅون مخه نیول، چې له یوه کال څخه یې زیات وخت ونیولو، د اماني دولت لپاره ډېر ستوزمن کار وو.

نیږدې د یوه کال مالیات په دې وخت کې ضایع شول او له هغې څخه وروسته د پغمان په لویه جرګه کې شاه امان الله مجبور شو، چې د روحانیونو سره هم لاس یو کړي او خپلې ځینې اصلاحاتي برنامې بندې کړي. په پایله کې یې د ډېرو خلکو پراخه ملاتړ او د باغي مشرانو د پاڅون د له منځه وړلو او د هغو د تېښتې سبب شو. په دې کې ګوډ ملا او ملا عبدالرشید، چې غرونو ته ختلي وو د خلکو لخوا ونیول شول او دولت ته تسلیم شول.د ۱۳۰۴ ه س کال د جوزا په ۴ نېټه ګوډ ملا او ملاعبدالرشید د ۱۵ همکارانو سره، چې د اعدام حکم پرې شوی وو،د مرنجان په تپه کې اعدام شول او څو سوه نور کسان شمالي ولایتونونو ته تبعید شول.

د ۱۹۲۷ ز کال د جون په ۲۲ نېټه شاه امان الله یو یادګاري څلی ؛ د علم او جهل څلي؛ په نوم چې د کابل په دهمزنګ د کابل سیند تر څنګ دی، د ګوډ ملا د پاڅون د پای ته رسېدو په موخه بنسټ کېښود، چې د دې منار په یوه خوا د دې پاڅون په اړه تشریح ورکړل شوې او په دریو نورو خواوو یې د هغه دری سوه افسرانو نومونه لیکل شوي دي، چې په جګړه کې شهیدان شوي وو.

د شاه امان الله څخه، د یو روشنفکره او پرمختګ غوښتونکي پاچا په توګه یادونه کېږي، او افغانستان د ده په دوره کې د اصلاحاتو او لویو بدلونون شاهد وو. نوموړی په ۱۹٦۰ ز کال د اپرېل په ۲۵ نېټه په زوریخ سویس کې مړ شو، وروسته یې جنازه جلال اباد ته انتقال او د خپل پلار تر څنګ خاورو ته وسپارل شو.

کله چې په ۱۹۱۹ ز کال کې امان الله خان پاچاهی ته ورسېد. برېټانوي هند دولت حتی په کابل کې سفارت هم نه درلود، یو کس د حافظ سیف الله په نوم د ؛ واقعه نگار؛ تر نامه لاندې په کابل کې وو او هغه هم د نظربندۍ په حالت کې وو. په داسې حال کې چې بل کس د سردار عبدالرحمن په نوم د افغانستان د رسمي سفیر په توگه په ډهلي کې دنده ترسره کوله.

افغانستان څنگه مستعمره وو، چې استعمار گرانو یې په دې هېواد کې حتی استازی هم نه درلود او حتی کوم عسکر او هېڅ اداره یې هم موجوده نه وه؟ په داسې حال کې چې په هندوستان کې د مالیې مامور، د گمرک مدیر، د امنیې قومندان او حتی د پوسته خانې تر مامور پورې ټول انگرېزان وو!

د دې پوښتنې ځواب باید د افغان انگلیس د دوهمې جگړې پای او د گندمک په تړون کې ولټوو.

## د سیاسي خپلواکۍ تر لاسه کول

د افغان انگلیس دربیمه جگړه، چې د ۱۹۱۹ز کال د مې میاشتې په دوهمه نېټه پیل شوه، د اوربند د توافقتنامې په اساس د ۱۹۱۹ ز کال په اگست کې د راولپنډۍ د د تړون د لاسلیک څخه وروسته په رسمي ډول پای سرته ورسېده.

سر هملټن گرانت د انگلیس د هیئت رییس، چې د برېټانوي هندي حکومت د بهرنیو چارو وزیر هم وو، د یوه لیکل شوي مکتوب پر اساس د علي احمد خان په ادرس، چې د کورنیو چارو وزیر او د افغاني پلاوي رییس هم وو. دا تاییدوي، چې د انگلستان حکومت د افغانستان خپلواکي په کورنیو او بهرنیو چارو کې په رسمیت پیژني. هغه په دې لیک کې په دې هم تاکید کوي چې د دواړو خواو لخوا ټول پخواني تړونونه د دې جگړې او د یادې موافقتنامې په صورت کې، له منځه وړل شوي گڼل کېږي.

په دې اساس امان الله خان هغه ژمنه، چې د ۱۹۱۹ ز کال د مارچ په ۳ دربیمه یې د افغانستان خلکو ته د تاج په سر اېښودلو په وخت کې ورکړې وه، عملي کړه. امان الله خان داسې ویلي وو:؛ په دې شرط دا تاج او تخت قبلوم، چې تاسو زما د فکر او نظر سره همکار اوسئ. د افغانستان حکومت په کورنیو او بهرنیو چارو کې باید په بشپړه توگه خپلواکي او ازادي ولري.

د افغانستان خلک هر کال د اسد ۲۸ د خپلواکۍ د ورځې په نوم لمانځي او د جشن مراسم یې د وږي میاشتې په پای کې جوړوي.

له دې سره، چې د افغانستان د خپلواکۍ مسایل او د انگلیس – افغان د دربیمې جگړې موضوع د برېټانیا لخوا کم ارزښت لري او ډېره وړوکې ښکاره کېږي. په داسې حال کې، چې دا جگړه د ډېرو لویو جگړو څخه گڼل کېږي، چې په هغه کې برېټانوي هند ته د ۱٦ میلیونو پاونډ په اندازه مالي زیانونه ورسېدل، او په دغه جگړه کې یې شاخوا ۲۰۰۰ نظامي کسان ووژل شول.

ځینې د افغانستان د خپلواکۍ تاریخ فتنه پیدا کوونکې معرفي کوي او ډېر کوښښ کوي، چې په دې اړه شک رامنځ ته کړي، او د هېواد ځوانانو ته فرېب ورکړي. خو حقیقت دا دی، چې د راولپنډۍ تړون او د هغې ضمایم د ۱۹۱۹ ز کال د اگست په ۸ نېټه د افغانستان خپلواکۍ تایید کړی، کله چې د ۱۲۹۸ هـ ل کال د اسد ۱٦نېټه د لندن په ورځپاڼه کې له دغه ورځې څخه یادونه وشوه. نو له هغې څخه ۱۲ ورځې وروسته امان الله خان د ۱۲۹۸ ز کال د اسد ۲۸ نېټه د خپلواکۍ رسمي ورځې او عمومي رخصتي اعلان کړه.

د راولپنډۍ په ټوله توافق پاڼه کې د خپلواکۍ څخه یادونه نه ده شوې. د هرملتن گرانت، چې د انگلیس د هیئت رییس او د برېټانوي هند د بهرنیو چارو وزیر وو، په یوه رسمي مکتوب کې، د افغاني هیئت رییس علي احمد خان ته د خپلواکۍ لیکلی وو. په هغه کې د خپلواکۍ تایید شوی، چې د یوې رسمي ضمیمې په شکل سره د ۱۹۱۹ کال د اگست ۸ نېټه په راولپنډۍ تړون کې شته. د کابل د ۱۹۲۱ ز کال تړون یو د دوستۍ تړون و او د راولپنډۍ تړون او ضمیمې یې ټول تاییدي.

د ۱۹۱۹ز کال د اگست ۸ نېټه چې د ۱۲۹۸ ه ل کال د اسد میاشتې له ١٦ نیټې سر سمونه خوري، د انگلیسانو لخوا د استقلال د رسمیت پېژندنې تاریخ دی. د امان الله خان لخوا ۱۲۹۸ ه ل کال د اسد میاشتې په ۲۸ نېټه د راولپنډۍ د سولې د تړون تاییدي د افغانستان د خپلواکۍ تصدیق دی. په دې خاطر چې امان الله خان دا تړون د ۱۹۱۹ ز کال د اگست په ۱۹ چې د ۱۲۹۸ ل کال د اسد له ۲۸ نېټې سره سمون خوري تایید کړ.

په دې دلیل چې د انگلیس استازی د لومړي ځل لپاره په سند کې د دې تړون سره یوځای شو، اود افغانستان خپلواکي یې منلې وه. په همدې اساس د ټاکنو پر بنسټ د اسد ۲۸ نېټه د خپلواکۍ له ورځې سره برابره ده. د اگست څخه د مخه د امان الله خان خبرې په حوت او حمل کې د انگلیسانو له لوري د استقلال له تاییدولو څخه د مخه وو، نو په دې اساس په منطقي ډول سره استقلال نشي کېدی. دا خبرې د استقلال د با اعتباره کولو په خاطر وې.

په حقیقت کې له ۱۲۳ کلونو څخه وروسته د اسد میاشتې ۲۸ نېټه، له برېټانوي استعمارگرو څخه د افغانستان ملت د خلاصون له نیټې څخه ده.

د بهرنۍ خپلواکۍ لاسته راوړو له امله، د خپلواکۍ اتل شاه امان الله خان دا اجازه تر لاسه کړه، چې په لویو ساختماني، فرهنگي، ټولنیز- سیاسي، پرمختیایي او ډیپلوماتیکي کارونو باندې پیل وکړي، ترڅو افغانستان وکولی شي د پر مخ تللو هېوادونو په قطار کې ځای ولري.

بلاخره دا ورځ د نړۍ تر ټولو لوی استعماري قدرت ومنله، چې د نورو په شان نشي کولی، افغانستان خپله مستعمره وگرځوي!

د اسد د میاشتې ۲۸نېټه د یوه قوم نېشنلېزم نه دی، په گډه سره د خپل وطن څخه د دفاع په لاره کې د یوه ملت د اتلولۍ او د بریالیتوب نښه او سمبول دی. د افغانستان ملت نېشنلېزم سمبول دی. د طبعي، سیاسي، او سلیقوي محلي

اختلافاتو له منځه وړلو په پار يې تر یوه بيرغ لاندې د افغانستان د استقلال ورځې او همدا راز د افغانستان ملي ورځې نمانځلې دي.

ملي استقلال، ځمکنی بشپړتیا، اساسي قانون او د ملي بيرغ درناوی کول، د افغانستان د هر اوسېدونکي وجيبه ده. هرکله چې موږ د تضمين شوې ډیموکراسی له نعمت څخه، او په اساسي قانون کې د هېوادوالو د مساوي حقوقو په برخه کې د ټولو وګړو لپاره غوښتنه کوو، مګر په همدې حال کې نشو کولی خپل وجايب د اساسي قانون پر وړاندې، د هېواد د استقلال،د هېواد د اساسي قانون، د افغانستان ملت او د هېواد ملي بيرغ ته د درناوی په لرلو سره په پام کې ونيسو!

د خپلواکی ونه د دې هېواد د پښتون، تاجک، هزاره، اوزبیک او د نورو قومونو ورونو په پاکه وينه باندې خړوبه شوې. په همدې خاطر د دې هېواد په وياړونو کې ټول برخه لري. دا د وياړ ځای دی، چې په دغه ملي ورځ د افغانستان د خپلواکی د شهيدانو تر څنګ پرته له سياسي، مذهبي او تنظيمي عقايدو، د افغانستان د ټولو شهيدانو ( هغه که عسکر دی او که پوليس، مجاهد دی او که هغه پردی چې په سهوه سره شهيد شوی، له کوم تعصب او تفاوت څخه پرته يادوو.

حتی تر دې چې امير حبيب الله کلکاني، د امان الله خان دولت له منځه هم یوړو او د امان الله د دولت او رامنځ ته شویو اصلاحاتو سره مخالف وو، مګر قدرت ته تر رسېدو وروسته، نوموړي په خپلو ويناوو کې د افغانستان د استقلال د لاسته راوړلو په اړوند د پخواني پاچا تر سره شوې هڅې په ډېر ښه انداز سره يادې کړې او داسې يې وويل:؛استقلال نه زما دی او نه د امان الله خان،مګر دا د تاسو دی.

نن ورځ موږ د خپلواکی تر لاسه کولو څخه سل کاله وروسته له همغه څه او مسايلو سره مخ يو، چې د شاه امان الله خان د اصلاحاتو د ماتې سبب شوي وو. د يادونې وړ ده، چې دا مطلب بايد په پوره دقت سره وڅېړو، چې ولې په افغانستان کې وخت منجمد او ځای پر ځای ولاړ دی؟

سربېره پر دې، چې د افغانستان د خپلواکی او د افغان- انګليس درېيمه جګړه د برېتانيا له خوا ډېره کم ارزښت لرونکې او وړه بلل شوې ده. په داسې حال کې، چې دا جګړه د لويو جګړو څخه شمېرل کېږي، چې په ترڅ کې يې برېتانوي هند ته د ۱٦ ميليونو پاونډ په اندازه مالي زيانونه رسېدلي دي، او په دې جګړه کې يې تر ۲۰۰۰ پورې نظامي ځواکونه وژل شوي.

هغه پوښتنه چې د ډېرو کسانو په فکر کې را ګرځي او په ځانګړې توګه په وروستيو کلونو کې ډېره تر بحث لاندې نيول شوې ده، هغه دا ده چې ايا افغانستان کله هم مستعمره پاتې شوی دی او کنه؟ حتی په هغه وخت کې د جواهر لعل نهرو په کچه شخصيتونو تعجب کړی وو، چې ولې افغانستان پر برېتانوي هند باندې يرغل کړی وو (نهرو، د نړی تاريخ ته کتنه).

کله چې په ۱۹۱۹ ز کال کې امان الله خان پاچاهی ته ورسېد. د برېتانوي هند دولت په کابل کې سفارت نه درلود، يوازې يو کس د حافظ سيف الله په نوم د ؛واقعه نګار؛ تر نوم لاندې په کابل کې د انګلستان د ګټو ساتونکي وو او

هغه هم د نظر بندۍ په حالت کې وو. په داسې حال کې چې یو کس د سردار عبدالرحمان په نوم د افغانستان د رسمي سفیر په توګه په ډهلي کې دنده تر سره کوله.

نو بیا افغانستان څه ډول مستعمره وو، چې په دې هېواد کې استعمارګرو نه یو استازی، نه کوم عسکر او نه هم کومه اداره درلوده؟په داسې حال کې چې په هندوستان کې د مالیې مامور، د ګمرک مدیر، د امنیې قومندان او حتی د پوسته خانې ټول مامورین انګرېزان وو!

نو تېر وخت ته په کتو کولی شو، په څرګند ډول سره ووایو، چې افغانستان هېڅکله هم د کلاسیک تعریف په اساس تر استعمار لاندې نه دی پاتې شوی.

عصري غوښتنې، یا د موډرنېزم غورځنګ

په ټوله نړۍ کې له علمي او تخنیکي پرمختګونو سره یو ځای د عصري کېدو او پرمختګ غوښتنې پروسې په تېرو دریو پېړیو کې ډېره چټکتیا او ارزښت ځان ته غوره کړې.

کله چې شاه امان الله خان، په کال ۱۹۱۹ ز کال کې د خپلواکۍ تر لاسه کولو څخه وروسته وغوښتل، په هېواد کې د عصري کېدو غورځنګ ته پراختیا ورکړي، نو افغانستان له دغه خوځښت څخه دوه پېړۍ شاته پاتې شو. په پرمختلليو هېوادونو کې، چې اکثرا د امریکا په ګډون لوېدیځ هېوادنه دي، د موډرن کېدو د غورځنګ لاسته راوړنې په لاندې ډول وې:

- د محصولاتو، موادو او ترانسپورټ په تولید، د انرژۍ په تولید او لګښت او مواصلاتو کې په پراخه کچه له ټکنالوژۍ څخه ګټه اخیستل.
- د خلکو په ورځني ژوند کې له ټکنالوژۍ څخه پراخه ګټه اخیستل.
- د غلامۍ له منځه وړل، د نژادي تبعیض پر وړاندې مبارزه کول.
- ټولنې ته د ښځو ننوتل او ښځو او نرانو ته مساوي حقوق ورکول.
- د ډیموکراسۍ او د هېواد د اوسېدونکو حقوق پلي کول، په دولت کې خلکو ته زیاته ونډه ورکول، د دولت له خوا، نور دولتونه او سازمانونه په دې مکلف ګرځول، څو بشري حقوقو څخه ساتنې، انفرادي ازادۍ، لوی عامه او روغتیایي خدمتونه رامنځ ته کړي.
- له دولت څخه د دین بېلول او په ټولنه کې د مدني قوانینو حاکمیت عصر ته رسېدل.

د موډرن کېدو د خوځښت پایلې ددې سبب شوې، چې د لوېدیځ هېوادونو خلکو د ژوند په سطحه کې ښه والی راشي او وروسته د دوی د دولتونو د بډایه کېدو سبب وګرځېدل. او دغه هېواد ته یې له ټکنالوژۍ څخه د ګټې اخیستنې په برخه کې دا وړتیا او قوت ورکړ، چې په خپل نظامي قدرت کار وکړي او په نړۍ کې لوی هېوادونه تر خپل استعمار لاندې راولي، چې دا بیا ددوی د ثروت د زیاتېدو سبب وګرځېدل.

د ختیځو هېوادونو له ډلی څخه، یوازېنی‌هېواد، چې د عصري کېدو د غورځنګ یا مدرنیت د خوځښت ارزښت باندې پوه شو او کوښښ یې وکړ، چې له هغې لارې د لوېدیځ د پر مختللو هېوادونو سره یو ځای مخته لاړ شي، هغه د جاپان هېواد وو.

د عصري کېدو غوښتنه یوازې د لوېدیځ تر تمدن پورې تړلې نه ده بلکې دا زموږ په سوچه ټولنه کې رېښې او پایې لري، او هېڅکله هم باید دا د لوېدیځ تر تمدن پورې انحصاره نه کړو. دا باید له یاده و نه باسو، چې اسلام هغه وخت خپل اوج او قدرت ته ورسېد، چې د عربي هېوادونو څخه ختیځ، چې له هغې ډلې څخه افغانستان او منځنی اسیا هېوادونو ته ورسېد او د ددې هېوادونو د سوداګری له تمدن سره اشنا شو، او د عباسیانو د خلافت ځلانده دوره یې رامنځ ته کړه، او نړی ته یې د ساینس او معرفت په ډګر کې ډېر عالمان وړاندې کړل، چې په دې کې د اسلام ډېر لوی مفسرین وو. دا بې ځایه نه دي، چې ددې وخت سر سخته مخالفین د سلفي عربو تکفیري ډلې دي.

دا موضوع باید په یاد ولرو، چې د اسلامېزم او طالبانو عقاید د بشر د تمدن د راښکاره کېدو پر وړاندې د دې هېواد د خلکو د سنتي دودنو څخه استازیتوب نه کوي. د میر عبدالواحد سادات په قول؛ د افغانستان سنتي اسلام له زرو کلونو څخه ډېر، د استعمار تر راتګ او د دیوبندي مدرسو تر جوړېدو پورې، له پوهې او عرفان سره غاړه غړی وو، او د تاریخ تر ټولو لوی فرهنګ پالونکو په شهادت، چې په همدې حال کې لوی اسلامپاله مشران هم وو، لکه حضرت سنایي، مولانا، جامي او ... رحمن بابا، امیر علي شیر نوايي او ... داسې فرهنګي زانګو یې رامنځ ته کړه، چې د منلو او د تحمل وړ، او .... د دې اعلی ښکارندوی نښې وې، په هغه ټولنو کې چې کثیر القومي نفوس یې ډېر دی، د یو بل د منلو سبب شو. په وروستیو سلو کلونو کې د سیاسي اسلام د منځ ته راتلو سره او په خاص ډول سره د افغانستان د سرې جګړې په اوج کې د جګړې د ډګر په شکل تر اوسه استعمال شوی دی. موږ د سنتي افغانستان په شاوخوا سیمو کې د اصلي اسلام د بدلېدو شاهدان یو او ضروري ده، چې باید دا موضوع زموږ د پوهانو تر پراخه نیوکو لاندې راشي او دې پوښتنې ته ځواب ورکړل شي چې ایا سیاسي اسلام هم هغه د اسلام دین دی؟او یا یوه سیاسي ایډیالوژي ده؟

سر ببره پر دې، چې د افغانستان خلک د اسلام په مبارک دین باندې مشرف شول، مګر د عربو د سلطنتونو د غوښتنې او فرهنګ منلو څخه یې ډډه وکړه او د هغې پر وړاندې یې مقاومت وکړ او د دې اجازه یې ورنکړه، چې د مورنی ژبې پر ځای دې، عربي ژبه رسمیت ومومي. په هرات، بلخ او غزني کې ډېر مهم علمي، فرهنګي اثار ولیکل شول، او پوهانو لکه ابوریحان البیروني، ابو علي سینا بلخي او په سلګونه نور ادب پال او لوی شاعران په دې ځای کې مېشت وو، چې د دوی عملي او فرهنګي لاسته راوړنې، د بشر په ټول اړخیزه تمدن کې د درک وړ دي او تر نن ورځې کولی شي، چې موږ د تمدون او عصري کېدو خواته وکاږي.

همدا راز په دغه هېواد کې د جرګې او مشورې ټولنیز کېدل د بلخ د تمدن له وخت څخه شته. جرګو د محکمو په تر سره کولو کې رول لوبولی دی، د سولې، جګړې او د پاچاهانو د ټاکلو مسایل یې له صلاحیتونو څخه وو. په بل عبارت، جرګه د خلکو د استازیتوب یو ډول دی، چې د دوی د ژوند اړوند مسایل هواروي. لکه چې موږ پوهېږو جرګې چې په خپله د قومي ډیموکراسی ښکارندوې دي او لویه جرګه په ملي کچه د ډیموکراسی شتون ښکاره کوي. د پښتنولی په

فرهنگ کې او په عمومي ډول سره بیا د افغانستان د خلکو په فرهنگ کې ډېر لوړ ځای او مقام لري، او د هېواد د ولسمشر او د دولت د کړنو لپاره د مشروعيت د ثابتولو لاره هواروي.

همدا راز د پښتنو قومونو له عنعنوي سيستم سره د طالبانو د غورځنگ داخلي تضاد درلودل بايد له پامه ونه غورځوي. هغه کسانو چې د طالبانو گوند ته يې د يو پښتون قومي غورځنگ يا حزب نوم ورکړی دی. په دې پوهېږي چې د ؛پښتنولی؛د ارزښتونو او د طالبانو د مذهبي جنبش په داخل کې تضادونه موجود دي او د طالبانو د حزب د ژورو مذهبي عقايدو څخه بی خبره دي. يو هزاره محقق د صاحب نظر مرادي په نوم د احمد شاه ابدالي لخوا د وضع شويو مقرراتو په اړه ليکلي چې: احمد خان ...خپل د قبايلو د مشرانو د لارښوونې په خاطر د دا ډول ديني، سياسي او نظامي اساسامې څخه استفاده وکړه. د دې ډول مقرراتو څخه په ښکاره توگه جوته ده، چې احمد خان يوازې او يوازې په فقهي او اسلامي شرعي احکامو اکتفا ونکړه، بلکې د خپل قبلوي نظام د تنظيمولو په موخه يې د قبايلو ځانگړو وضع شويو مقرراتو رامنځته کولو ته يې اړتيا احساس کړه. ؛ (د احمد شاه ابدالي لخوا د مقرراتو او قوانينو د وضع کېدو علت دا وو، چې د ؛پښتنولی؛ اصول لکه چې پورته مو د اوليور روی له قوله ولوستل، چې له يوه اړخه يوه نظريه وه او له بل اړخه د مدني حقوقو يوه ټولگه تشکيلوي.دا په خپل ذات کې يو غيرې مذهبي وو او د قانون په کچه له ؛شريعت؛ سره په تضاد کې دي. اليور روي داسې ليکي، چې د غيرې پښتنو په ټولنو کې د جزايي اصولو چوکاټ له شريعت څخه جوړ دی اما دا په داسې حال کې دي، چې يوازې د يوه شعار په توگه له شريعت څخه پيروي کوي او بل هېڅ داسې سيستم شتون نه لري، چې د هغې ځای دې ونيسي) نو په حقيقت کې د دا ډول حالت پايله پرته له دې، چې د غيرې پښتنو په سيمو کې د مطلق حاکميت منځ ته راتگ د د سيمه ييزو زورواکانو او ديني مشرانو په واسطه راغلی وي. چې ددې افراطي حالت بڼه د هزاره جات په هزاره گانو کې ليدل کېږي. د افغانستان د پښتنو په کليوالي سنتي ټولنو کې، د ملا مقام په هغه کچه نه دی، کوم چې د غيرې پښتنو په کليو او باندو کې دی، په ځانگړې توگه د هزاره قوم په منځ کې د ملا شتون. چې ښه بېلگه يې هره ورځ په تلويزون او نورو پاڼو کې گورو، چې د محمد محقق د لاس د ده د پلويانو لخوا مچې کېږي. په هزاره جات کې د ملا او روحاني مقام د شيعيانو تر منځ حتی تر پيشوا او مرجع پورې يې تقليد کېږي، مگر په پښتني ټولنه کې ملا بيا دا ډول مقام نه لري او اکثره وخت دا ملايان قومي جرگې ته نه بلل کېږي. د پښتنو په سنتي ټولنو کې د ملا نقش د مشورې ورکول دي اما دوی په تصميم نيولو کې هېڅ رول نه لر. نو په دې اساس د طالبانو د غورځنگ او د عنعنوي پښتنو قومونو تر منځ يو تضاد شته. دا بايد له ياده ونه باسو چې طالبان د پاکستان په قبايلو پښتون مېشته سيمو کې د ديوبندي ديني مدرسو لاسته راوړنه ده

دغه کسان اکثر په پاکستان کې د مهاجرينو په کمپونو کې زېږېدلي دي، هلته لوی شوي په وهابيت او د هغې په اساساتو د ؛محمدي شريعت؛ له لارښوونو څخه لرې تربيه او روزنه ورکړل شوې ده. د سعودي عربستان په پيسو او د سعودي او وهابي پاکستاني امامانو لخوا ورته درسونه ورکړل شوي دي. د دوی د اکثرو کسانو په فکر او خيال کې له افغانستان سره د دوی تاريخي تعلق، د افغانستان ملي شتمنۍ او ارزښتونه، د پښتنولۍ اصول او د افغانستان نېشنلېزم احساس شتون نه لري. د دې يو ښه مثال د باميانو بودايي مجسمې تخريبول دي. د پښتنو دولتونو د دری سوه کاله راپدېخو چې د پښتنولۍ د دود او دستور سره سم دولتونه وو، دا مجسمه د ملي شتمنۍ په نوم پرته له لاس وهلو همداسې په خپل حال

پاتې وه، په داسې حال کې چې طالبانو د مذهبي تعصب له رویه بالخصوص د ای ایس ای د همکارۍ په واسطه د هندوستان هېواد پر ضد یې د دې مجسمې د ورانولو ځخه خوند واخیست. له دې سره سره د طالبانو د حکومت په وخت کې هغه دودونه او عنعنات، چې په پښتون مېشتو سیمو کې یې رواج پلي کېدل، دوی ونشوای کړی چې مخه یې ونیسي او هېڅ غرض یې پرې ونه کړ.

په دې اساس د تاریخي مخینې په نظر کې نیولو سره، د عصري کېدو غوښتنه او د ټولنې اصلاح باید د لوېديځ ټولنو د تمدن انحصار و نه بلل شي.

د امان الله خان په وخت کې د اسلامي هېوادونو له منځه، دوو هېوادونو زموږ په سیمه کې د عصري کېدو په برخه کې گامونه اوچت کړي دي: ترکیه د کمال اتاتورک تر رهبرۍ لاندې او فارس د رضا شاه تر رهبرۍ لاندې .

شاه امان الله خان د ترکیې او د فارس د عصري کېدو یا موډرن کېدو د غورځنگونو د ارزښتونو ځخه ډېر ښه خبر وو. د ده ښځه ملکه ثریا په سوریه کې زېږېدلې وه، چې د خپلې روشنفکرې کورنۍ سره (د طرزي کورنۍ) د عصري کېدو د غوښتنی په شکل گیرۍ سره یې په اماني دور کې ډېر مهم او د پاملرنې وړ رول ولوبولو. د سید جمال الدین افغان د لاربښوونو له برکته، د محمود طرزي د پلار او له خلکو سره دده خپله پېژندنې او اړیکو لرلو په اساس د استعمار له ماهیت ځخه د کمال درجې ته رسېدلی وو. د ملکه ثریا مور د هېواد لومړۍ ښځینه خپرونه (سراج النسوان) کې امانی دوره څارله.

د اماني دورې د عصري کېدو یا موډرن سازی پروگرامونو کې دا لاندې برخې شاملې وې، چې موږ د هغې ځخه یادونه کولی شو:

د ښځو په گډون د ټولو لپاره زده کړې او روزنې ته پراختیا ورکول.

د عصري زده کړو د حاصلولو په موخه، په ځانگړي ډول د طب په برخه کې اروپایي هېوادونو ته د نجونو په گډون د افغان زدکوونکو لېږل.

په ټولنیزو او د حجاب د رفع کولو په چارو کې ښځو ته ونډه ورکول.

د مطبوعاتو پرمختگ

مالیاتي اصلاحات

د دولتي ادارو د ودانیو جوړول

د اوسپنې د پټلۍ جوړول

د نوي اساسي قانون جوړول

د مدني جزایي قوانینو معرفي کول

د اروپایي کالیو اغوستل رواجول، په ځانګړې توګه د دولتي مامورینو لپاره

د امان الله خان د موډرن کېدو یا عصري کېدو غوښتل شوي پروګرامونه له دریو پاڅونونو سره مخ شول:

په ۱۹۲۴ ز کال کې د افغانستان په سوېل کې د ګوډ ملا پاڅون

په کال ۱۹۲۸ ز کې د هېواد په ختیځه برخه کې د شینوارو قوم پاڅون

په کال ۱۹۲۹ز کې د حبیب الله کلکاني پاڅون

د حبیب الله کلکاني له پاڅون سره په شمالي کې د مذهبي دودیزو مشرانو او د کابل په شور بازار کې د نقشبندیه فرقې نیږدې پلوي درلودل، په دې وتوانېدل، چې امان الله خان له حکومتدارۍ څخه تېر او کندهار ته لاړ شي. سر بېره پر دې په کندهار کې یې کوښښونه وکړل او قواوې یې سره راټولې کړې او بیا یې د کابل د نیولو کوښښ وکړ اما په غزني کې یې ماته وخوړله او د هېواد پرېښودو لپاره مجبور شو.

دې ټولو شورشونو او پاڅونونو له یو بل سره یو مشترک ټکی درلود، د اصلاحي اقداماتو سره مخالفت او د شریعت د حاکمیت بیا ځای پر ځای کېدل! په دې ټولو قیامونو کې یې پاچا ته کافر او د اسلام له دینه منحرف ویل. هېڅ کوم طبقاتي غورځنګ، د استبداد او استعمار پر وړاندې او د برترۍ غوښتنې او قومي حاکمیت لرونکی نه وو.د دوی په قطارونو کې خلک د بېلا بیلو قومونو څخه ولاړ وو او د دوی لویان ملایان او مذهبي دودیزه مشرانو وو. د مبارزې په نوم د پښتنو د اکثرو قبیلو مشرانو د کافر پاچا په مقابل کې، له تاجک حبیب الله کلکاني سره یې همکاري وکړه. په داسې حال کې چې شورشونه په سوېل او ختیځ کې ځپل شوي وو، د حبیب الله کلکاني شورش، چې په شمالي او د کابل په شور بازار کې د مېشتو نقشبندیه ډلې مذهبي دودیزو رهبرانو ملاتړ یې له ځان سره درلود، بریالی شو.

د شینوارو د خلکو شورش د دوو کسانو په مشرتابه د محمد علم او محمد افضل په نوم پیل شو. د کابل نظامي قواوې هغې لور ته ولېږل شوې. او کله چې کابل د نظامي ځواکونو څخه خالي شو، په دې وخت کې حبیب الله کلکاني (د سقاو زوی) له خپل لوري په پاڅون لاس پورې کړ او له خپلو ځواکونو سره یې پر کابل یرغل وکړ. د فیص محمد کاتب د کتاب په اساس د ۱۹۲۸ ز کال د ډسمبر په ۱۲ نېټه کله، چې د سقاو زوی پر کابل یرغل وکړ، محمد ولي خان وکیل د سلطنت مقام او عبدالعزیز د دفاع وزیر، د وسلو د ډیپوګانو یوازې ۸۰ ساتونکي را ټول کړل، څو د سقاوي راټول شوي لښکر د ۲۰۰۰ کسانو په مقابل کې، چې له دې ډلې یوازې ۲۰۰ کسانو یې وسله درلوده او پاتې نورو یې له تبرونو او لرګیو سره مقاومت وکړ.

## سقوي پاڅون

د شاه امان الله اصلاحي اقدامات له تندرویو سره یو ځای وو او د افغانستان د کلیوالي او سنتي سیمو اوسېدونکو سره یې جوړښت نه لرولو. د قبایلو پاڅون، د روحانیونو او خلکو مخالفت، بلاخره له سقوط سره مخ شو او د عامه خلکو

ترمنځ د ؛سقوي گډوډي؛ په نوم مشهوره ده. حبیب الله کلکانی، چې د خپل پلار د سقاوې د کار او کسب پر اساس د سقاو زوی او یا په عامیانه ډول ؛د سقاوي زوی؛ په نوم مشهور وو، په لومړیو کې یو عادي عسکر وو. د شاه امان الله په اردو کې یې د امان الله خان کړنې د خلکو د سنتونو او ارزښتونو خلاف گڼلې او د عالمانو او نقشبندیه مشرانو پلوي یې ډېر درلوده، قیام یې وکړ او په کلکان کې یې خپل ځان د افغانستان واکمن بللو او له خپلو قوتونو سره کابل خواته راغی. په دې اساس امان الله خان له خپلې مواضع څخه لاس واخیست او اصلاحات یې ودرول. د هېواد په تاریخ کې امان الله خان د لومړي ځل لپاره، خپله ښځه د اروپايي سبک کالیو په اغوستلو سره صحنې ته راوسته او له خلکو یې وغوښتل، چې ددې دا لاره د یوه مثال په توگه ومني او دا ډول کالي واغوندي، مگر د خلکو له پاڅون او مقاومت سره مخ شو.

شورشیانو پر کابل خپل وروستی یرغل د شپې لخوا (۱۹۲۹ ز د جنوری په ۱۴) پیل کړ. پاچا سلطنت خپل ورور عنایت الله ته وسپارلو او خپله کندهار ته لاړ. عنایت الله خان هم په وروستیو کې له دریو ورځو پاچاهۍ څخه وروسته له خپلې کورنۍ سره کابل پرېښود. له بلې خوا حبیب الله د سلطنت مانۍ ونیوله او په ۲۸ د جدیې ۱۳۰۷ هـ ل(۱۹۲۹ د جنوري ۱۸) کال کې پر تخت کښېناست او خپل ځان یې د امیر حبیب الله په نوم یاد کړ.امان الله کوښښ وکړ څو بېرته ځان کابل ته ورسوي، مگر ماتې یې وخوړه. حضرت نورالمشایخ مجددي په پکتیا کې له خپلو څو زره مسلحو مریدانو سره د غزني خواته د مارش ورکولو په امر سره حرکت وکړ او د امان الله نظامي قوتونو ته، چې کابل خواته په حرکت کې وو، پر خلاف یې یرغل وکړ او دوی ته یې ماتې ورکړه. د نور المشایخ (سلیمان خېل) لېږل شوی لښکر په غزني کې د امان الله خان پر تعروضي ځواکونو ډزې وکړې او د دربار داخلي سبوتاژ کوونکو په مرسته یې، کابل خواته د پاچا د اردو د پرمختگ مخه ونیوله، تبلیغات یې پیل کړل او په پایله کې شاه امان الله خان ته وفادار قوتونه له یو بل څخه وپاشل شول او خپله شاتگ ته مجبور او بلاخره د هند له لارې ایتالیا ته لاړ.

## د اماني خوځښت د ماتې عوامل

اکثره وگړي د اماني غورځنگ د سقوط اصلي علت د انگرېزي استعمارگرو په دسیسو پورې تړلی گڼي. د یو هېواد د ټولو بدبختیو علت د یو بهرني ځواک په غاړه اچول، د افغان او نورو هېوادونو د لیکوالانو په منځ کې یو دود شانته گرځېدلی دی. د یادونې وړه ده چې عبدالرحمن خان انگرېزانو راوست، انگرېزانو امان الله خان سقوط کړ، انگرېزانو نادر خان قدرت ورساوه، شوریانو د داود خان په کودتا کې لاس درلود، شورویانو د ثور د اتمې کودتا طرحه کړې وه، روسي پیلوټانو پر ارگ یرغل وکړ، امریکایانو طالبان او داعش را منځ ته کړل او همدا راز دې ته ورته نور مسایل. په اکثرو لیکنو کې په ډېر زیات ډول سره دا راز برداشتونه د دوی څخه د داخلی پېښو د علت په شکل یادېږي. په دې باید ټینگار وکړم، چې د دا ډول برداشتونو په لړۍ کې موږ افغانان یوازې نه یو، نور په ځانگړي ډول ایرانیان، هم له موږ څخه کم نه دي.

په دې کې هېڅ شک نشته چې استعمار او امپریالیزم د پر مخ تللیو هېوادونو په چارو کې تل گوتې وهلې او وهي یې او په پورته خبرو کې هم تاسې گورئ، چې د حقایقو ډېر مثالونه پکې شته دي. تر سل کاله پخوا پورې د پخواني

استعمار د استعمار د ګټو په نظر کې نیولو سره د مذهبي بنسټ پالنې څخه وروسته د دوه اړخیزه مخالفت او حمایت څخه کار اخیست. له یوې خوا یې له دیوبندي مدرسو سره مخالفت کولو اما په افغانستان کې یې د همدې فکري مدرسې د روحانیونو یا پرمختګ غوښتونکي غورځنګ سره مخالفت کولو. مګر د یو هېواد ټولو بدبختیو ګناه د خارجیانو په غاړه، یوه ډېره ساده لوحه او نامعلومه حالت دی. د محرکات او د داخلي ډینامیکونو وقایعو عوامل په نظر کې نه نیول او هغه کمرنګه ښکاره کوي.

د امان الله خان د پرمختګ غوښتونکي غورځنګ د ماتې عوامل په داخل کې د همدې ډول خلکو دعیني برداشتونو په لرلو سره کمرنګه ښکاره شوي، د فکري انحراف او بلاخره خپل ځان ته د فرېب ورکولو سبب ګرځېدلي دي.

حقیقت دا دی، چې له بده مرغه د اماني دورې عصري کېدونکي Modernism هدفونه او مفاهیمې موضوعاتو سره ګډول له Western-ism یا د برنامو په پلي کولو کې، د نورو ښکاره دسیسو یا پټو دسیسو سره ښکاره کوي، چې د انګرېزانو استعمار کوونکو چې د یو خپلواک افغانستان پر مختګ یې د خپل او د هند د استعمار د تسلط لپاره یو خطر بللو،ګڼل کېدو.د امان الله خان د ترقی غوښتنې او عصري کېدو د غوښتنو د نهضت د ماتې عوامل یې برابر کړل. جاپان هېواد د موډرن کېدو او عصري کېدو په برخه کې لوی اقدامات تر سره کړل، پرته له دې چې خپل هېواد ته د لوېدیځ دودونه او مظاهرې معرفي کړي او له همدې کبله بریالی شو.

په داسې حال کې چې په ترکیه کې د عصري کېدو غوښتنې پروسه په بریالیتوب سره پلې شوه. هغه څه چې امان الله خان او همکارانو یې تشخیص نشوای کړی، دا وو، چې په ترکیه کې، ټولنیز بدلونونه له پخوا څخه موجود وو او یوه منځنی طبقه د خلکو د یو ټاکلي قدرت خاوندان وو. په همدې ډول سره چې د دولت لپاره یوه منظمه اردو موجود وه. په داسې حال کې چې شاه امان الله په خپل څنګ کې نه یو پ ُر قدرته ښاري طبقه او نه هم یوه پیاوړې اردو درلوده چې تکیه پرې وکړي.

د فیض محمد کاتب په قول د تذکر الانقلاب په کتاب کې د هغه وخت د پېښو څخه یو څرګند مثال دا دی، چې د اماني دورې له عصري غوښتونو Modernism او مفاهیمو موخې له لوېدیځ ځپلو Western-ism څخه یې نا سمه ترجمه ده او داسې لولو: ؛احمد علي خان (د کابل ښار د بلدیه رییس) د ښار ښځینه او نارینه ټول اوسېدونکي، د ښار ټول زور واکه، کمزوري خلک، دکانداران او حرفه کاران یې د دوو اونیو په اوږدو کې تر ډول ډول فشارونو لاندې او د رسمي کالیو د اغوستلو او د خولیو د په سرولو څخه په کرکه لاسونه په دعا وو او د امیر امان الله خان د سلطنت د زوال کېدو او لمنځه تللو دعاوې به یې د څښتن تعالی په دربار کې کولې ((فیص محمد کاتب، تذکر الانقلاب، علی امیری کلن المان).

دا د تعجب ځای نه دی، چې په داسې حالت کې چې د عامو خلکو دودیز فرهنګ تر سپکاوي لاندې راځي. بنسټ پالو روحانیونو ته یوه موقع پیدا کېږي، څو د اماني اصلاحاتو پر وړاندې ډګر ته داخل شي او د خلکو د ذهنیتونو د تحریک کولو په واسطه، سرتاسري ګډوډیو حالت رامنځ ته کړي. په یقین سره چې د انګرېز استعماري کړنو هم د دا ډول شرایطو څخه غلطه ګټه پورته کړه. د خلکو د پاڅونونو اور ته یې لا نور د سوند لرګي ور واچول.

### د سراج د کورنۍ امیران

| شمېره | د امیر نوم | د پخواني امیر سره خپلوي | پلازمېنه | د حکومت دوره (زېږدیز) |
|---|---|---|---|---|
| ۱۱ | امیر عبدالرحمن خان | د محمد افضل خان زوی | کابل | ۱۸۸۰-۱۹۰۱ |
| ۱۲ | امیر حبیب الله خان لقب یې سراج الملة و الدین وو | د عبدالرحمن خان زوی | کابل | ۱۹۰۱-۱۹۱۹ |
| ۱۳ | امیر نصر الله خان | د عبدالرحمن خان زوی | جلال اباد | ۱۹۱۹ څو ورځو لپاره |
| ۱۴ | امیر امان الله شاه | د حبیب الله خان زوی | کابل | ۹۱۹۱۹-۱۹۲ |
| ۱۵ | سردار عنایت الله خان | د حبیب الله خان زوی | کابل | ۹۱۹۲ (دری ورځې) |

## امیر حبیب الله کلکاني



حبیب الله کلکانی (د خپل پلار د کار و بار په اساس، د سقاو د زوی په نوم مشهور)، په ۱۳۰۸ هـ.ل (۱۹۲۹ز) کال کې د امیر امان الله خان دولت، چې تر نن ورځې پورې د افغانستان د عامو خلکو په ذهن کې د ازادۍ، د عصري کېدونکي او پرمختګ غوښتونکي شاه په نوم شهرت لري. د ؛کفر؛ او ؛لاتي؛ شعارونو په ورکولو سره یې دده سلطنت له منځه یوړ.

امیر حبیب الله کلکاني د افغانستان تاجک تېر پاچا وو. نوموړي په ۱۹۲۰ ز کال کې، د امان الله خان د حکومت پر خلاف پاڅون وکړ، امان الله خان یې بې وسلې کړ، او د ۹ میاشتو لپاره په افغانستان کې واک ته ورسېد. مګر د نادر شاه قدرت ته تر رسېدو وروسته، سربېره پر دې، چې له ده سره یې د نه وژل کېدو ژمنه کړې وه، له قران سره د مینې په اساس یې د خپلو یو شمېرو نورو ملګرو سره یو ځای اعدام کړ، او په دې ډول نادرخان د حبیب الله کلکاني د پیروانو تر منځ د غدار لقب خپل کړ.

د افغانستان په معاصر تاریخ کې امیر حبیب الله کلکانی د تاجکانو یوازېنی پاچاه دی، چې له اوه سوه کلو څخه وروسته یې یو ځل بیا تاجکان سیاسي واک ته ورسول.

حبیب الله کلکانی قدرت تر رسېدو وروسته، د افغانستان د وخت اساسي قانون لغوه کړ او د اسلامي شریعت د قوانینو د پلي کېدو غوښتنه یې وکړه. څرنګه، چې امان الله خان غوښتل په افغانستان کې لوېدیځ کلتور رواج کړي، نو پر وړاندې یې ده پاڅون وکړ او دا اعمال یې د اسلامي ارزښتونو او افغاني فرهنګ خلاف وګڼل.

امیر حبیب الله کلکاني چې خپل ځان یې د ((د رسول الله د دین خادم)) بللو، د امان الله خان لوېدیځ پلوه اصلاحاتو ته یې د پای ټکی کېښود. نور رامنځته شوي قوانین او په ځانګړې توګه اساسي قانون یې لغوه اعلان کړ. مالیات یې غیرې شرعي اعلان کړل او ټول یې له منځه یوړل. د کار په پیل کې یې اکثرو خلکو په دې هیله، چې په هېواد کې د یوې غوره اسلامي ادارې په راتګ، له حبیب الله څخه پلوي وکړه. مګر په هېواد کې د اقتصادي او امنیتي ستونزو شتوالی ددې باعث شو، چې په تدریجي ډول سره وضیعت خراب شي.

د مذهبي افراطیت عصر ته بېرته تګ

د امیر حبیب الله خان د ۹ میاشتني حکومت په اوږدو کې، نوموړي ځان ته د ؛رسول الله د دین خادم؛ د لقب تر نوم لاندې، د امان الله خان د وخت ټول اصلاحي او پراختیایي پرګرامونه ودرېدل. نور وضع شوي قوانین او په ځانګړې توګه اساسي قانون لغوه اعلان کړ. مالیات یې غیرې شرعي اعلان کړل او ټول یې له منځه یوړل. د کار په پیل کې یې اکثرو خلکو په دې هیله، چې په هېواد کې د یوې لاښې اسلامي ادارې په راتګ له حبیب الله څخه پلوي وکړه. مګر په هېواد کې د اقتصادي او امنیتي ستونزو شتوالي ددې باعث شوې، چې په تدریجي ډول سره وضیعت خراب شي. پوهنه، عصري ښوونه او روزنه او ښوونځي یې ټول ممنوع اعلان کړل. د افغانستان د تاریخ په اوږدو کې دده د حکومت په شان هېڅ کوم بل داسې رسمي سیاسي حاکم نه وو تېر شوی، یوازې د طالبانو د پنځه کلن (۱۹۹۶-۲۰۰۱ ز)، استبدادي حاکمیت یادونه کولی شو، خو له دې سره سره، چې د طالبانو د حکومت په دوران کې حد اقل د هلکانو او نجونو پر زده کړه بندیز نه وو لګېدلی او له زده کړو څخه نه وو منع شوي.

د افغانستان د ټولو قومونو د اکثریت وګړو، له امیر امان الله خان سره محبت او مینې لرلو اساسي علت د ده د خپلواکۍ غوښتنې، عصري کیدنې او پرمختګ خوښوونې پالیسي وه، نه د هغې قومي څرنګوالی، حتی هغه په پښتو ژبه خبرې هم نشوای کولی. بلخوا د افغانستان د اکثریت قومونو د خلکو له طالبانو څخه کرکه او نفرت د دوی د ارتجاعي خصلت، چې د پرمختګ او عصري کېدو خلاف وو، نه یې خوښوي. په نسبي ډول د دوی د ارتباط ورکولو پورې، چې د سنتي پښتنو قومونو پورې یې تړلي بلل، په هم هغه ډول چې ځینې محدود کسان د ؛سقاوی؛د ارتجاعي پاڅون د حبیب الله کلکاني او نورو مشرانو څخه د دوی د تاجک قوم له امله، له دوی څخه ملا تړ کوي، په همدې ډول ډېر داسې کسان شته، چې د پښتنولی په موخه له طالبانو څخه ملاتړ کوي.

ځینې بیا د حبیب الله کلکاني حکومتولي، چې د ؛سقاو د زوی؛په نوم مشهوره وه. د ؛ تاریخ د حذف ؛ په خاطر، پای ته د ټکي اېښودلو لپاره د تاجکانو د قدرت څخه د زرګونو کلونو لپاره، د لرېوالي په موخه قدرداني کوي ( رزاق مامون ۱۳۹۵). دامسئله د ماورالنهر سامانیانو له حاکمیت څخه وروسته په سیاسي قدرت کې د تاجک قوم د بیا د ظهور خواته، اګر چې نهه میاشتې لنډ مهاله وو بولي.

زراق مامون په ۱۳۹۵ ل کال د سنبلې میاشتې په ۱۳ نېټه او د شنبې په ورځ په خپله وېبپاڼه ؛د افغانستان گزارش نامه؛ کې، د ( حیبب الله ته تقدیم، له زرگونه کلونو څخه وروسته د ماتې لومړی کرښه) تر عنوان لاندې مقاله کې د ؛سقاوي؛ اصطلاح د یو سیاسي غورځنگ په عنوان ؛ په تاریخ کې یې د سیاسي مبارزې له فرصت څخه د گټې اخیستنې په اساس د غدر او حذف په مانا ؛ تحلیل کړې.

نوموړی داسې لیکي چې ؛په اوسني حالت کې د، سقاوي؛ نوی نسل ؛ د څلوېښتو کلونو څخه راپدېخوا د هر اړخیزه سیاسي مقاومتونو په اوږدو کې چیغو او نارې وهلو څخه سرچینه اخلي او په دې ترتیب سره ترمینولوژي یې تر یوې لویې اندازې د دې لغت په استعمال بیانېدلی شي. د ؛سقاوي؛ د کلمی اختراع،پر اساس د کم شمېرنې، د دښمن د حسابولو، او د نادر خان په دوران کې د مخالفینو نجس بلل، او بیا د طالبانو دورې په ادبیاتو کې د هغې ساتنه او بیا پیاوړي کول، د دې پر ځای چې د بغض او د لسگونه کلونو لپاره د خلکو د منځه تللو د ذخیرې په مقابل کې، بیا یې تر بحث لاندې ونیول، اجرا کولو ته نظر ساتل او عزم خبرو کولو قدرت ته،د تاریخ بیا کتنه،د جعلي تاریخ پر پښو درول، چې پر سر ولاړ وو، د ؛تاج او تخت؛ په ډگر کې لوبه کول او تر ابده د سیاسي یوازې فکر کولو سنت ته خاتمه ورکولو باندې بدله شوه.دا کلمه په اوسنیو شرایطو کې او د ؛عصري عدالت لپاره؛ په مطالبو کې د هر ډول ډار او وېرې څخه لرې کړی شوې او استعمالېږي. ؛ رزاق مامون ؛ د ډار څخه پرته ؛زهر طعن؛ خپل نسل ؛د سقاوی څخه ورسته نسل؛ بولي چې وظیفه لري؛سقاوي؛ اصلاحات ؛به؛ د سیاسي هویت د شفري کوډ په شکل په تاریخي خبرو کې رېښه داره کړي او د طرف او جهت په ضد یې ؛ بدل کړي.

پوښتنه دا ده چې، د رزاق مامون په خبره، د تاریخ حذف کول؛ او یا تر دې یې که ښه ووایم، چې په دغه هېواد کې د تاجکانو زرکلن تاریخ کمرنگه کېدو اصلي عامل څه وو ؟ ایا دا د دوی د نسبي نفوس د کموالي له امله وو؟ دا واضح ده، چې د تاجکانو نفوس د پښتنو د نفوس په نسبت په څو ځله لږ دی. مگر د تاجکانو نفوس بیا د تُرک تېرو د نفوس څخه په کراتو ډېر دی. په داسې حال کې، چې د دې هېواد په تاریخ کې تُرک تېرو ډېر مهم رول لوبولی دی. په دې اساس په نورو سیمو کې باید پلټنه وکړو، چې دا په خپله یو جدي او مهم بحث ته اړتیا لري او باید د کره تاریخي او ټولنیزو پېښو څېړنه وکړو او د دې عواملو له مخې یې وپېژنو. مگر هغه څه چې د سیمې د زر کلن تاریخ له مطالعې څخه ښکاره ده، او ښکاره کوي، چې دا کمرنگي د پښتون قوم لخوا د سیستماتیک وېرې، زور او شدت له وجهې هم نه ده.

د رازق مامون د لیکنې په اساس کولی شو ؛سقاوي؛ غورځنگ په لاندې ډول په څلورو پړاوونو ووېشو:

اول سقاوي (جدې ۱۳۰۷ – میزان ۱۳۰۸ ه ل) یا د حبیب الله کلکاني د حاکمیت وخت.

دوهم سقاوي (۱۳۷۱-۱۳۷۵ ه ل) د رباني – مسعود حکومت

دریم سقاوي(۱۳۸۰-۱۳۹۳ ه ل ) د طالبانو پر وړاندې د شورای نظار د مقاومت وخت.

څلورم سقاوي (۱۳۸۱ ه ل) د شورای نظار بیا راتگ او په سیاسي قدرت کې یې برخه اخیستل

د رزاق مامون د ویلو په اساس؛((اول سقاوي)) پیداکېدل په ځانګړو سیاسي او ټولنیزو شرایطو کې د ۱۳۰۰ هـ ل کال په لومړی لسیزه کې، داسې کوم نظر په لومړنۍ نیمه پخه او د توان سوزونکې تاریخي (لږ خبر داری) د عدالت غوښتنې د موجودیت د اثبات او په قدرت کې د اوسېدو لپاره په مقیاس کې نه وو. اوله سقاوي، د خپل قهر او غوصې د پاشلو او د خپلې راتلونکې د ټاکلو په خاطر د پخولو نغری نه درلود، او اوس چې شاوخوا له هغې وخت څخه نوي کلونه تېرېږي،هم د داسې یوه نغري په لرلو چې د ارزونې نیوکه او طبقه بندۍ په اساس وي، ترې بې برخې دي. په هغه ورځو کې د وضیعت د بیانولو وسایل او د تګ لارې مقابله، د مذهبي قوانینو د یوې رشتې سره او په ډېر عامیانه ډول سره سرته رسېدو.؛

ایا دا تیوري جوړول سم دي؟ ایا د ؛اولې سقاوی؛ پاڅون په رښتیا ؛د عدالت غوښتنې جګړه په قدرت کې د سهم د لاسته راوړنې په موخه وه؛ که د پرمختګ او عصري کېدو پر وړاندې تور مذهبي او ارتجاعي خوځښت وو. د زمان او د وخت د څرخ د بدلولو په خاطر او د پوهنې، ښوونې او روزنې د څرخ، د څرخېدو راوستلو په خاطر چې د منځنیو تورو پېړیو ته یې بېرته سوق کولو؟ دا پاڅون په ۱۹۲۴ز کال، په پکتیا کې د ګوډ ملا له پاڅون څخه توپیر درلود؟ اوس که موږ د ؛اولې سقاوی؛ پاڅون ته ؛د عدالت غوښتنې د جګړې؛نوم ورکړو، نو ایا د سلف او د ګوډ ملا پاڅون هم د عدالت غوښتنې لپاره دی او کنه؟ یا دا چې ؛د عدالت غوښتنې؛ ویاړ یوازې یو تاجک کولی شي ولري او نور قومونه دا نشي کولی چې ولري؟

## د حبیب الله کلکاني د حاکمیت سقوط

د امان الله خان پر وړاندې د سقوي پاڅون په وخت کې، جنرال محمد نادر خان، پخوانی د دفاع وزیر، چې له وزیر مختارۍ څخه یې په فرانسه کې استعفا ورکړې وه او د نیس په ښار کې یې ژوند کولو، د ورونو په مرسته یې د کابل په لوري د سفر قصد وکړ او بلاخره د دوو قومونو په ځانګړې توګه د ځاځیو او وزیرو په مرسته د ۱۳۰۸ ل کال د میزان میاشتې په ۲۱ نېټه (۱۳ –اکتوبر-۱۹۲۹ ز) خپل ځان هلته ورسولو او ښار یې تر خپل واک لاندې راوست. حبیب الله کلکانی او ملګري یې شمال ته وتښتېدل او له دې سره سره چې نادر خان دوی ته د تسلیمی په شرط د بښنې ژمنه ورکړې وه، مګر د نادر خان په امر ټول په دار و ځړول شول. په همدې خاطر د کلکاني پلویانو نادرشاه ته د غدار نوم ورکړی دی.

له دې سره سره، چې د حبیب الله کلکاني نهه میاشتني حکومت دوره ډېره لنډه وه او د طبیعي سیاسي مسیر د اختلال او د افغانستان د زعامت، دودیز شکله دولت په حساب کې راځي، مګر په افغانستان کې د یو لوی بنسټ شتون په ګوته کوي. په شمالي او د هېواد په نورو ډېرو سیمو کې د سقاو زوی، د عالمانو پلوي (ملایان)، په خاصه توګه د نقشبندیې فرقې له نفوذ څخه برخمن وو. همدا راز په مرکزي اسیا کې د اسمچي غورځنګ مشر ابراهیم بتګ چې افغانستان ته تښتېدلی وو، په ۱۹۲۹ ز کال کې یې د سقاو د زوی له پاڅون څخه ملاتړ وکړ.د تګاو پیر چې د سقاو زوی امیر حبیب الله ځان د رسول الله د دین خادم اعلان کړی وو د سید جان پاچا زوی وو، او په ۱۹۱۹ ز کال کې یې د امان الله خان تره نصر الله خان په ننګرهار کې پاچا اعلان کړ.

د سقاو زوی خپله د گلبهار د پیر  شمس الحق مجددي مرید وو. کابل ته د هغې راتگ د مجددي د کورنۍ د تایید سره مخامخ شو او په شوربازار کې مېشت شو.

مذهبي  بنسټ غوښتونکو په کابل کې د سلطنت پر څوکۍ داسې کس غوښت، چې حاکم شریعت  بیا  رامنځته کړي او د امان الله خان ټول اصلاحات لغوه کړي.

د سقاو له زوی څخه ملاتړ کول فرهنگي دلایل درلودل. دا پاڅون هېڅ سیاسي، طبقاتي، استبداد ضد، استعمار ضد، برترۍ ضد او  د قومي حاکمیت پر اساس کوم بنسټ نه درلود.

د حبیب الله کلکاني د نهه میاشتني حکومت په اوږدو کې د امان الله خان ټول اصلاحي پروگرامونه  ودرېدل. جزا او اساسي قوانین لغوه شول. ښوونځي و تړل شول، مالیاتي اصلاحات او قضایي اصلاحات ټول ودرېدل، ساختماني پروگرامونه لغوه شول.

هېواد مو یو ځل بیا د هندوستان د  دیوبندي  مدرسو د شاگردانو په تفسیر،  بنسټ پال اصولو او د شریعت حاکیمت دور ته ستون شو. دا بې ځایه نه وو، چې امان الله خان  یادو مدرسو ته د افغان طالبانو لېږل لغوه کړي وو  او  د هغه ملایانو راتگ یې بند کړی وو،  چې  په دا ډول مدرسو کې یې زده کړې کړې وې.

 په پیل کې د حبیب الله کلکاني دولت قانوني مالیات هم ښښلي وو،خو  وروسته یې څو برابره مالیات له خلکو څخه راټولول، د افغانستان څخه د باندې د تجارت لارې یې وتړلې او اقتصادي وضیعت  د هر بل وخت څخه زیات د خرابۍ خواته روان وو.

د امان الله خان لخوا په افغانستان کې د هزاره گانو د غلامۍ د قوانیو لغوه کولو  له امله، د هېواد هزارگان ده ته وفادار پاتې شول او د حبیب الله کلکاني د حکومت پر وړاندې یې مخالفت پیل کړ.

سربېر پر دې، د سقاو زوی  له ځان سره د روحانیونو پراخه پلوي درلوده، چې په هغې کې  د نقشبندیه ډلې او د مجددي کورنۍ هم شاملې وې (نور المشایخ، شمس المشایخ) قدرت ته ورسېد. مگر  له  نهو میاشتو څخه زیات یې و نشوای  کولی په واک کې پاتې شي او د نادر خان او ورونو په ملاتړ او همدا راز  د سرحدي، سوېلي او نور پښتنو قومونو په ملاتړ یې سقوط ورکړ او د ۱۹۱۹ ز کال د  اکتوبر میاشتې په  ۱۵ نېټه د قومونو د مشرانو او سرانو لخوا  نادر خان د پاچا په توگه  اعلان شو.

کېدای شي، چې دا به تاسې ته د تعجب وړ خبره وي، چې د روحانیو له ملاتړ سره سره د حبیب الله کلکاني حکومت ولې ونشوای کړی، چې له نهه میاشتو څخه زیات دې  په واک کې پاتې شي؟

د حبیب الله کلکاني د حکومت د سقوط دوه مهم لوی عوامل دا دي:ــ په افغانستان کې  د  بیا ځلې دودیز اریستوکراتیک دولت رامنځته کېدو پر وړاندې د پښتنو قومونو عکس العمل ښودل، او په کابل کې  د  مجددي د کورنۍ د موقف تغیرول. په داسې حال کې چې  د ځینې عصري کېدونکو  پروگرامونو په منځ ته راتگ سره  د پښتنو  یو شمېر قومونه

پاڅون ته وهڅول. مګر موږ نشو کولی داسې ووایو، چې ټول پښتانه قومونه دې د زیات وخت لپاره د اریستوکراټي دراني/ بارکزي څخه د دولتي قدرت د لاسه تللو ننداره وکړي. د دې پر بنسټ سمدلاسه څنګه، چې یو نوم لرونکي ارستوکرات د جنرال محمد نادر خان بارکزي په نوم ډګر ته راځي او د سرحد د دواړو خوا قومونه له ده سره همکاري کوي او نوموړی یې سلطنت ته ورسولو.

سربېره پر دې، کله چې د مجددي با نفوذه کورنۍ په کابل کې اوسېده. د افغانستان د دودیز دولتي اشرافیت سره یې ډېرې نیږدې اړیکې درلودې، نو دې ته ځیر شول، چې د حبیب الله کلکاني د حکومت د وخت حاکمه انارشي د زیات وخت لپاره د دوی د ګټو ضامنه نه ده. نو د دوی له ملاتړ څخه یې لاس واخیست. د مارشال شاه ولي خان په وینا ؛زما یاداښتونه؛په نوم کتاب کې، د کابل د تدارکاتو د برید په اوږدو کې، نور المشایخ مجددي یې د لیدو لپاره اورګون ته ورځي او همدا راز د نادرخان لیدو ته پکتیا ته ورځي.

## د محمد نادر خان پاچاهي



د سقویانو د ګډوډۍ په وخت کې پخوانی د دفاع وزیر جنرال محمد نادر خان، چې په فرانسه کې یې له وزیر مختارۍ څخه استعفا ورکړې وه او د نیس په ښار کې یې ژوند کولو، د ورونو په مرسته یې کابل لور ته د سفر قصد وکړ او بلاخره د ځانګړو قبایلو د دوو قومونو ځاځي او وزیرو په مرسته یې د ۱۳۰۸ ل کال د میزان میاشتې په ۲۱ نېټه (۱۳ اکتوبر ۱۹۲۹ ز ) خپل ځان هلته ورسولو او ښار یې تر خپل واک لاندې راوستلو. حبیب الله او ملګري یې شمالي ته وتښتېدل او له دې سره سره چې نادر خان دوی ته د تسلیمی په شرط د ښښنې ژمنه ورکړې وه، مګر د نادر خان په امر ټول په دار وځړول شول. په همدې خاطر د کلکاني پلویانو نادرشاه ته د غدار نوم ورکړی دی.

محمد نادر خان د ۱۳۰۸ هـ ل کال د میزان میاشتې په ۲۳ نېټه د کابل د ارګ په سلام خانې ماڼۍ کې د قومونو د مشرانو په مخ کې اعلان وکړ، چې د نوي پاچاه د ټاکنې لپاره، باید لویه جرګه جوړه شي، مګر د قبایلو مشرانو د لویې جرګې جوړول ضرور و نه بلل او د ده پاچاهي یې ومنله. نادرخان د دې ډلې رایې قبولې کړې او د ۱۹۲۹ز کال د اکتوبر په ۱۵ نېټه، نادرشاه د افغانستان د پاچاهۍ پر تخت کښېناست. د نادر خان د ا اقدام د امان الله خان د پلویانو خوښ نه شو، ځکه دوی دا تمه لرله، چې نادر خان به پاچاهي امان الله خان ته ورپرېږدي.

نادرشاه د محمد یوسف خان زوی او د سردار یحیی خان لمسی دی. د دې کورنۍ مشر نیکه سردار سلطان محمد خان طلایي د پېښور حکمران او د امیر دوست محمد خان ورور وو. سردار یحیی د امیر محمد یعقوب خان خسر وو. په

داسې حال کې چې امیر محمد یعقوب اسیر او هندوستان ته ولېږل شو. په دې وخت کې سردار یحیی خان او ورور یې سردار زکریا هم دهندوستان؛دون دیره؛ ته تبعید شول، او هلته شاوخوا دوه نیمو لسیزو (۱۸۷۹-۱۹۰۱) پورې، له خپلو زامنو سردار محمد یوسف او سردار محمد اصف او لمسیانو سره اوسېدل.

یحیی خان دوه زامن درلودل، چې نومونه یې سردار محمد یوسف خان او سردار محمد اصف خان وو. سردار محمد یوسف خان له دریو ښځو سره واده وکړ. لومړۍ مېرمن یې یوه نجلۍ (محبوب سلطان، د امیر حبیب الله خان د ښځو ښځه یوه وه) او د هغې ښځه یې درې زامن وزېږېدل. محمد نادر، شاه محمود او شاولي.

محمد نادر خان د (د ۱۳٦۲ هـ.ل کال د حمل میاشتې په ۲۱)،چې له ۱۸۸۳ز کال سر سمون خوري د هند په دون دیره کې وزېږید. محمد نادر د خپل عمر ۱۸ کاله په هند کې تېر کړل. هلته یې زده کړې وکړې او په هندي، انګلیسي او دري / فارسي ژبو پوره پوهېده. سردار یحیی خان په اونۍ کې دوه ځله د کورنۍ ځوانان راټولول او هغوی ته یې د افغانستان په هکله معلومات ورکول.

د دوی د کورنۍ غړي په ۱۹۰۱ زکال کې، د امیر عبدالرحمن خان لخوا د یوه اجازه لیک له تر لاسه کولو ځخه وروسته، بېرته افغانستان ته راستانه او د هغوی له هرکلي سره مخ شول. د بېرته راستنېدو په لومړیو اونیو کې یې، په باغ علیمردان کې ژوند کولو. له امیرانو سره د پرله پسې لیدونو له امله د هغوی کورنۍ د ؛مصاحبانو کورنۍ؛ او یا د ځانګړو مصاحبانو یا ویاندویانو په نوم شهرت وموند. او د امیر عبدالرحمن خان په هڅونه، سردار محمد یوسف او سردار محمد اصف خان د امیر زوی سردار حبیب الله خان ته ورتلل او د هغه سره یې خبرې کولې. چې د عبدالرحمن خان له مړینې ځخه وروسته، له سردار حبیب الله خان سره د سردار محمد یوسف او سردار محمد اصف تګ راتګ او ناستې، ددې سبب شوې، چې هغوی ګزارشګر او ویاندویان وبولي. سربېره پر دې، چې سردار محمد یحیی خان د سلطان محمد خان زوی مشهور په طلایي وو،دا کورنۍ یې د طلایي کورنۍ په نوم هم یاده کړې ده.

نادر خان په نهه ویشت کلنۍ کې د اُردو په خدمت بوخت شو او په ۱۹۰۷ ز کال کې د نایب سالارۍ رتبی ته، چې له هغې ځخه وروسته د سپه سالارۍ مقام ته ورسېد. سپه سالار محمد نادر یو مستعدد انسان وو او د پاچاهۍ هوس یې د خپل نیکه سردار سلطان محمد طلایي ځخه په ارث درلود. نوموړی د شاه امان الله خان واک ته تر رسېدو وروسته،د ده د سلطنت په لومړیو وختونو کې وضیعت ته انتظار وو، چې وروسته یې بیا د هغه له دولت سره همکاري پیل کړه. څرنګه چې نوموړي د افغانستان د بشپړې سیاسي خپلواکۍ په پار په ملي پاڅون کې ګډون وکړ او په پکتیا کې یې د هېوادوالو ترځنګ،له خپلو ورونو سره په یوه جبهه کې برخه واخیسته او د شاه امان الله د ستاینې وړ وګرځېد او د خپلواکۍ منار یې دده په نوم جوړ کړ.

د هغه توطیو په ترڅ کې، چې وروسته بیا رامنځ ته شوې. شاه امان الله پر سپه سالار نادر باندې شکمن شو او د ده شک هغه وخت په یقین بدل شو، چې د حربیې وزیر په توګه د منګلو پاڅونوالو د ځپلو په موخه پکتیا ته له تګ ځخه یې انکار وکړ او د هغې پر ځای یې سیاسي رقیب جنرال محمد ولي خان دروازي په کار وګمارل شو. د سرهمفریز د وینا په اساس«سر بېره پر دې چې د امیر او د محمد نادر تر منځ فعالیت، د دغه سپه سالار خپګان، د امیر لپاره سخت و،

محمد نادر چې د سلطان محمد طلايي د کورنۍ د لویو استازو څخه وو، له کوم تکلیف څخه پرته یوازې پرېږدي او همدا وو، چې په پاریس کې د افغانستان د وزیر مختار په توګه وټاکل شو.

د انګلیس افغان په درېیمه جګړه کې یې په هند باندې یرغل وکړ او په ترڅ کې یې ټل او وانه دواړه ونیول او کله چې سوله وشوه، نو بیا دفاع وزارت ته ورسېد. د امیر حبیب الله خان د وژل کېدو په وخت کې د ځواک قومندان او د امیر رکاب په جلال اباد کې وو. په ۱۹۲۴ز کال کې، په پاریس کې د افغانستان وزیر مختار شو. په ۱۹۲۶ز کال کې نادر خان خپل سیاسي کار پرېښود او د څه وخت لپاره نیس کې یې ژوند پیل کړ.

**د افغانستان دوهم اساسي قانون**

کله چې محمد نادرشاه قدرت تر لاسه کړ، د امان الله خان د دورې اصلاحات او نظامنامې یې یوې خواته کېښودې او محکمې یې یو ځل بیا دیني علماوو ته وسپارلې، ښځو ته یې هم د اسلامي حجاب د رعایت اعلان وکړ. د ده په دوره کې، یوه منظمه اردو جوړه شوه او د هستوي طب د فاکولتې په جوړولو سره، په هېواد کې لومړنی د طب پوهنتون جوړ شو.

سربېره پر دې، چې نوموړی د برېټانیا پر وړاندې د جنګونو یو غړی وو، او د خپلواکۍ په جګړه کې یې په خپل موجودیت ویاړ کاوه. مشروطه غوښتونکو او د امان الله خان یا معزول پاچا پلویانو، د برېټانیا یو پلوی ګڼلو او د امان الله خان پر ځای د ده د سلطنت پر اصل یې اعتراض کولو. کله چې نادر د مخالفتونو په له منځه وړلو کې بریالی شو. په ۱۳۱۰هـ ل / ۱۹۳۱ ز کال کې، د لویې جرګې په واسطه نوی اساسي قانون (د افغانستان د عالیه دولت اساسي اصول)، تصویب شو. د دې اساسي قانون لوی توپیر، د یوې لسیزې پخواني اساسي قانون سره د کابینې د حساب ورکولو په برخه کې وو ( د لومړي وزیر څخه استثنا)، چې د ملي شورا منتخب مجلس ته او د اعیان مجلس ته، به غړي د پاچا لخوا ټاکل کېدل او په دې ډول دي: په عمل کې، د ټاکنو د مجلس لپاره استازي هم د حکومت لخوا ټاکل کېدل. بل انحراف، د حنفي فقهې مکتب ته برتري ورکول او د شریعتي محکمي د خپلواکۍتضمینول (ګرګوریان،۳۰۵ ص). د لومړي ځل لپاره، مذهبي رهبر د وزارت په بست کې په کار وټاکل شو. په دې اساس،حکومتي قدرت د سلطنتي کورنۍ په انحصار کې وو او افغانستان د سلطنت مشروطه په نوم وو.

محمد نادر شاه د مطبوعات لپاره په یو خاص ارزښت قایل وو. په ۱۳۰۸ ه ل / ۱۹۲۹ز کال یې په کابل کې د اصلاح ورځپاڼې بنسټ کېښود او انیس ورځپاڼه یې دولتي وګڼله. نور دولتي رسنیو ته یې هم پیاوړتیا ورکړه. د کابل ادبي ټولنه هم په دې دوره کې جوړه شوې اوهمدا راز د کابل میاشتنۍ مجله هم په چاپي بڼه خپرېده. په ۱۳۱۱ ل کال کې د افغانستان سالنامې یا کالنۍ خپرېدل هم پیل شول. زاړه سړکونه، تعمیرونه او نوي سړکونه جوړ شول او په ۱۳۱۰ ل / ۱۹۳۱ ز کال کې د هېواد لومړی بانک جوړ او په فعالیت یې پیل وکړ.

بلاخره محمد نادر شاه د ۱۳۱۲هـ ل کال د عقرب میاشې په ۱۷ نېټه، چې د ۱۹۳۳ز کال د نوامبر له ۸ نیټې سره سمون خوري، د اماني( نجات) لیسې د یوه زده کوونکي عبدالخالق په نوم د شهادتنامو د ورکړې په مراسمو کې د غلام نبي خان څرخي د وینې په بدل کې ووژل شوو. عبدالخالق په قوم هزاره وو او د غلام نبي خان څرخي د نوکرانو له ډلې څخه وو. غلام نبي خان څرخي د امان الله خان د پلویانو له ډلې څخه وو او د محمد نادر شاه واک ته تر رسېدو، دده د ښکاره مخالفت له نادر شاه سره ددې سبب شو، چې د نارد خان لخوا ووژل شو.

په ۱۹۲۹ ز کال کې مو ولیدل، چې اماني دولت د مرتجع، په شاه کېدونکي او استعمار د ملاتړو ځواکونو په اثر له منځه لاړ او د امیر حبیب الله کلکاني نهه میاشتنۍ د امارت دوره د وینو بهېدو سره پای ته ورسېده. خپلواکۍ غوښتونکې قواوې، مشروطه غوښتونکي ملي گرا او د عصري کېدو غوښتونکي چارواکي د سیاست له ډگر څخه وشړل شول او د هغوی پر ځای محافظه کاره مذهبي مشران، د قبایلو رییسان، د ډېرو ځمکو خاوندان، د شاه امان الله د دربار څنګ نه راغلل او د سپه سالار نادر خان کورنۍ تر څنگ راټول شول.

د افغان تاریخ لیکونکي میر محمد صدیق فرهنگ په قول، نادر خان، په اماني دوره کې د محافظه کاره ډلې یو تکړه او پیاوړی شخصیت وو، او همدا راز د شاه امان الله شاوخوا مذهبي، قومي او درباري کسان دده د اصلاحاتي، حقوقي او فرهنگي مخالیفین وو او د ډېرو اساسي خپلواکیو مخالفت، چې د دولت په اساسي نظامنامه کې درج شوي وو، په ځانگړې ډول د مطبوعاتو له خپلواکۍ سره د دوی مخالفت ډېر ښکاره وه.

د نادر خان په وخت کې ډېر روڼ اندي بندي شول او په ځانگړي ډول سره د هاشم خان د صدارت په وخت کې هر روشنفکر به چې وموندل شو، یا به یې وواژه او یا به یې زنداني کړ.

میر محمد غبار په دې برخه کې یوې ډېرې جالبې مسلې ته اشاره کوي او وایي، چې د افغانستان حکومت داسې امر وکړ: ؛په راتلونکي وخت کې د افغانستان په مطبوعاتو کې باید د هېڅ افغان انځور په لوڅ سر چاپ نه شي.او د ناچارۍ په حال کې د ښاغلي برشنا په واسطه چې دولتي انځورگر وو، سر لوڅو انځورونو ته د خولیو رنگونه ورکړل شي. په دې خاطر چې ټول ارتجایي او خرافاتي مراسم راژوندي او وه هڅول شي.

په دې دوره کې شخصي جریدو ته خپلواکي او د کار اجازه ور نکړل شوه. د ورځپاڼو او مجلو ځینې ازاد فکره لیکونکي زنداني او اعدام شول. حبیب الله رفیع افغاني د ورځپاڼو او مجلو لیکونکی او کار پوه وایي؛ سربېره پر دې چې په هغه وخت کې د نشر اجازه هر چا ته نه ورکول کېده، ولې داسې مبارزین وو، لکه عبدالرحمن لودین چې د نادر خان پر وړاندې ودرېد او مقاومت یې وکړ، چې په پایله کې بیا ووژل شو او همدا راز یو شمېر نور په زندانونو کې وو. ؛ د نادر خان په دوره کې ډېر روڼ اندي زنداني شول او په خاص ډول سره د هاشم خان په دوره کې هر روشنفکر به چې وموندل شو، یا به وژل کېدو او یا به زنداني کېدو.

مگر له دې ټولو سره سره ځینې تاریخ پوهان، څېړونکي او هغه کسان چې د هغې زمانې د پېښو شاهدان دي، د نادر شاه د عصر څخه په بشپړه توگه بل ډول تصویر لري او کیسې یې کوي. دوی په دې فکر دي، چې د دوی خط مشي، د

هغه وخت په پرتله او وضیعت ډېر پرمختللی وو. د سید قاسم رښتیا افغان کارپوه او د نظر خاوند په سیاسي یادښتونو کې داسې لولو:

؛په دې کې شک نشته، چې د نادر شاه خط مشي داسې ترتیب شوې وه، چې د محافظه کارو خلکو د فکر سره په ټکر کې نه وه. مگر په اساس کې یې یو پرمختللی لورى درلود او لوی بنسټونه لکه پوهنې ته پاملرنه او د هېواد عمومي وضیعت ته پراختیا ورکول ټول پکې داخل وو. مگر د هغه ځوانانو چې د امان الله خان د زمانې ښې خاطرې یې په یاد وې او په طبعي شکل محیطي ملاحظاتو او د وخت په غوښتنه باندې ډېر ښه نه پوهېدل، د دې خط مشي په نسبت یې د هرې امکان لرونکې وسیلې له لارې، په مجلسونو او محفلونو کې او همدا راز د لیکنو او بعضو شبنامو په خپرولو د موافقې نه کولو اظهار کولو.

د بي بي سي راډیو د ویاند عبدالله شادان په قول« د نادر شاه وراره عزیز نعیم، چې په کابل پوهنتون کې د تاریخ او سیاسي څانگې استاد وو. هغه په دې باور درلود، چې د دې دورې د مطبوعاتو د وضیعت په یادونه کې باید، تاریخي تغیراتو، تحولاتو او د ثبات او سیاسي استقرار اهمیت په نظر کې وساتو. مگر بیا نور خلک هغه د یو غچ اخیستونکي، قهرجن او بې رحمه انسان په نوم معرفي کوي، چې د خپلو مخالفینو له وژلو څخه نه ډارېده.

د نومیالیو کسانو وژل، لکه غلام نبي خان څرخي، عبدالرحمن خان لودین او نور ازادي غوښتونکي او همدا راز مشروطه غوښتونکي او د هغې دورې په پټو زندانونو کې د سلگونه نورو کسانو زنداني کېدل، ددې باعث شول، چې سیاسي نا ارامي زیاته شي او بلاخره خپله نادر خان د ۱۳۱۲ هـ کال د عقرب په ۱٦ نېټه، چې د ۱۹۳۳ ز کال د نومبر سره سمون خوري د نجات لېسې د یوه زده کوونکي لخوا د مرمۍ په ډز سره ووژل شول. او زوی یې محمد ظاهر شاه پر تخت کښېناست او نوې دوره پیل شوه.

## د محمد ظاهر شاه سلطنت



محمد ظاهر شاه د ۱۹۱۴ کال د اکتوبر میاشتې ۱۵ نېټه په کابل کې زېږېدلی دی. نوموړی د خپل د پلار د ترور کېدو څخه وروسته (نادر شاه) په ۱۹۳۳ کال کې د ۱۹ کلنو په عمر سلطنت ته ورسېد. د نادر شاه له وژل کېدو څخه څو ساعته وروسته، دده د ورور سپه سالار سردار شاه محمود خان لخوا، چې د حربيې وزير وو، د وژل شوي شاه( نادر خان) يوازېنی زوی محمد ظاهر يې د ۱۳۱۲ هـ ل کال د عقرب ۱۶ نېټه د پاچا په توگه معرفي کړ. د محمد ظاهر د ټاکنې په وخت کې، د دربار قدرتمند شخص لومړی وزير سردار محمد هاشم خان د هېواد شمالي سيمو مزرا شريف ته په سفر تللی وو.

د نادر شاه له مرگ څخه وروسته بيا د محمد يوسف خان تر صدارت پورې، د حکومت اصلي قدرت د لومړي وزير په لاس کې وو. د محمد ظاهر د ۴۰ کلنې واکمنۍ په وخت کې درې خانداني لومړي وزيران او شپږ غيرې خانداني لومړي وزيران، چې په ټولېز ډول سره نهو لومړي وزيرانو، د صدارت په کارونو پيل وکړ.

محمد ظاهر د نادر شاه دويم زوی،د ۱۲۹۳ کال د ميزان مياشتې په ۲۲ نيټه دوشنبې په ورځ په کابل کې زېږېدلی دی. په شپږ کلنۍ کې يې ښوونځی پيل کړ. لومړي درې کلونه يې د حبيبې په ښوونځۍ کې زده کړې وکړې (۱۲۹۹-۱۳۰۱). وروسته بيا د استقلال ښوونځي د بنسټ له اېښودو سره سم يې تر ۱۳۰۳ کال په همغه ښوونځي کې زده کړې وکړې. کله يې چې پلار محمد نادر په پاريس کې د افغانستان د سفير په توگه وټاکل شو، د هغه سره فرانسې ته لاړ (د ۱۳۰۳ کال د چنگاښ تر ۱۹ نيټې پورې ) دفرانسې هېواد په څو ښوونځيو کې يې زده کړې وکړې. دوه کاله د اينه ژانسون ده سالی؛ په ښوونځي کې زده کوونکی وو. له هغې څخه وروسته، کله چې محمد نادر خان په فرانسه/ پاريس کې د افغانستان د سفارت له کاره څخه لرې شو او د فرانسې سوېل ته لاړ، نو په دې وخت کې يو کال او شپږ مياشتې له خپل پلار سره هلته اوسېدو. وروسته بيا بېرته پاريس ته راغی، او د ؛باستور؛ په نوم په يوه ښوونځي کې يې بيا په زده کړو پيل وکړ. همدا راز د يو څه وخت لپاره په ؛کوليژ دومون پی نی؛ ښوونځي کې يې هم زده کړې وکړې. په دغه وخت کې محمد نادر خان او ورونه يې لا د فرانسې په سوېل کې اوسېدل. محمد ظاهر د ؛دانيه لو؛ په نوم له يوې فرانسوی کورنۍ سره ژوند کولو.

محمد ظاهر واک ته تر رسېدو يو څه وخت وروسته د نادر خان په واسطه، په داسې حال کې چې ۱۶ کلن وو، د ۱۳۰۹ کال د ميزان مياشتې په ۲۰ نېټه بېرته افغانستان ته راستون شو، او د پياده عسکر په نوي جوړ شوي ښوونځي کې يې يو کال زده کړې وکړې. د دې ښوونځي څخه تر فارغېدو وروسته په اووه لس کلنۍ کې د حربيې وزارت د چارو

مسؤلیت ور وسپارل شو. په دغه وخت کې د حربیې وزیر د ده کاکا محمود خان وو. سربېره پر دې د افغانستان د پوهنې وزارت کارونه یې هم په غاړه واخیستل.

شهزاده محمد ظاهر ۱۷ کلن وو، چې د سردار احمد شاه خان د دربار د وخت د وزیر له لور حمیرا سره یې واده وکړ. یو ورور او دوه خویندې یې درلودې. ورور یې محمد طاهر چې د امیر حبیب الله کلکاني د امارت په وخت کې په کابل کې ووژل شو او دوه خویندو یې د سردار محمد عزیز خان له زامنو، سردار داوود خان او سردار محمد نعیم خان سره ودونه وکړل.

د یادونې وړ ده، چې محمد ظاهر له دري ژبې څخه ډېر په فرانسوي ژبه حاکمیت درلود، په پښتو ژبه هېڅ نه پوهېده. ځوان شهزاده داسې وخت په تخت کېنول شو، چې د حکومتدارۍ په موخه یې لازمې زده کړې او پرکټس نه وو کړې. همدا وو چې یو ځل بیا هغه پخوانۍ دود، د کوچنیانو او ځوانانو قدرت ته رسول، په داسې حال کې چې قدرت د بل سړي په لاس کې وو، ننداري ته کېښودل شو.

په افغانستان کې د ملګرو ملتونو سیاسي استازي، د ظاهر شاه د پاچاهۍ ۴۰ کلنه دوره ؛د افغانستان د سولې او ارامۍ دورې؛ په نوم یاده کړې ده. په افغانستان کې د ملګرو ملتونو سیاسي استازی ادرین ادوارزد داسې وایي:(( د افغانستان په معاصر تاریخ کې د محمد ظاهر دوره له ثبات او امن څخه ډکه دوره وه او نوموړي په خپلو وروستیو کلونو کې دا مثبت رول ته دوام ورکړ او په افغانستان کې د ملګرو ملتونو د سیاسي سازمان په استازولی یې د بُن په پروسه کې د ظاهر شاه د رول لوبول ډېر ښه یاد کړي دي.

پر افغانستان د ظاهر شاه د حکمرانۍ دوره، یوه د ارامۍ دوره وه، او په دې وخت کې برخلاف د پخوانیو دورو او د ظاهر شاه له دورې څخه وروسته په افغانستان کې هېڅ جګړه نه ده رامنځته شوې او همدا راز په دویمه نړیواله جګړه کې یې (۱۹۳۹-۱۹۴۵ ) بې طرفي اعلان کړه.

ظاهر شاه په ۱۹۶۳ز کال کې د افغانستان نوی اساسي قانون خپور کړ.دا قانون بیا وروسته په ۲۰۰۱م کال کې د طالبانو په سقوط او د موقت اساسي قانون په نوم (د سلطنت پورې اړوند مادو په لرې کولو) و منل شو. د ؛افغان؛ کلمه د لومړي ځل لپاره په ۱۹۶۴ز کال کې د محمد ظاهر لخوا په تصویب شوي اساسي قانون کی په نوي تعریف او د افغانستان د ټولو خلکو په مانا وکارول شوه.

نوموړی د موډرن او پرمختللي افغانستان په موخه، د سیاسي او اقتصادي اصلاحاتو، د مواصلاتي زیربنایي جوړښتونو، د برېښنا بندونو، دمواکراتیک قانون گذاری سیستم را منځ ته کولو، د زده کړې د نظام رواجولو او موډرن روزولو په پار یې د پوهنتونونو د جوړېدو او د ښځو د پوهې په برخه کې عملي کړنې تر سره کړې.

محمد ظاهر تر ۱۹۷۳ ز کال پورې د افغانستان پاچا وو. نوموړي د خپل ۴۰ کلن سلطنت په اوږدو کې د افغانستان د موکراتیک اساسي قانون تصویب کړ. یو خپلواک ولسي جرگه یې جوړ کړ او د ښځو د حقوقو د برابرولو د کړنو د مشرۍ مسولیت یې په غاړه درلود. په ۱۹۷۳ ز کال کې، هغه وخت چې محمد ظاهر شاه په ایټالیا کې ژوند کولو، او

سردار محمد داود خان چې د افغانستان یو پخوانی لومړی وزیر او د شاه د تره زوی وو، د یوې نظامي کودتا په ترڅ کې یې شاه لرې کړ او د افغانستان د شاهي دوران په ختمولو یې د جمهوري نظام اعلان وکړ. له کودتا څخه وروسته د افغانستان پخوانی پاچا په ایټالیا کې د تبعید شپې او ورځې تېرولې، چې بیا د ده د ژوند دې دورې ۲۹ کاله دوام وکړ.

ظاهر شاه ته د طالبانو له سقوط وروسته؛د ملت د بابا؛ لقب ورکړل شو.

د افغانستان وروستی پاچا محمد ظاهر شاه د ۲۰۰۷ز کال د جولای په ۲۳ په ۵:۴۵ بجو (۱۳۸۷ ه. ل) په کابل کې د یوې اوږد مهالې ناروغۍ له امله ومړ.

## د محمد ظاهر شاه د حکومتولۍ ځانګړتیاوې

د محمد ظاهر شاه د پاچاهۍ په پیل کې د هېواد لومړی وزیر تر ټولو قدرتمند کس محمد هاشم خان وو. په ټولیز او مطلق العناني ډول سره د کارونو تر سره کېدل ده په لاس کې وو. د ظاهر شاه د سلطنت په لومړیو دیارلس کلونو کې، محمد هاشم خان، لومړي وزیر او تره یې، اصلي قدرت په لاس کې درلود. له قانون څخه پیروي کول په یوه لوی مشکل باندې بدل شول او په اساسي قانون کې د وګړو تضمین شوي حقوق تر پښو لاندې شول او ډېر د بلې سیاسي مفکورې لرونکي کسان زندانیان شول، چې اکثره یې بیا له یوې لسیزې څخه زیات، په زندان کې پرته د محکمې له پروسې څخه وخت تیر کړ... په همدې وخت کې، په نویو او تدریجي بڼه سره روزنیز نظام ته پراختیا ورکولو طرحې تر کار لاندې ونیول شوې. (دوپری، ۱۹۸۰، ص ۴۶۴-۴۹۸:ګریګوریان، ص ۳۴۲-۳۷۴).

لومړی مشروطیت: د شاه محمود خان صدارت (۱۹۴٦-۱۹۵۳)، او په افغانستان کې د ازادو رسنیو دوهمه تجربه.

په ۱۳۲۵ هـ / ۱۹۴٦م کال کې، محمد هاشم خان خپل ځای، د لومړي وزیر په رتبه کې خپل ورور شاه محمود خان ته ورکړ، او ده د قدرت په وخت کې نیمه دموکراسي رامنځ ته شوه. په ۱۳۲٦ ه ل / ۱۹۴۷ د ښاروالانو ټاکنې وشوې. دوه کاله وروسته، په همدې ډول د ملي شورا لپاره هم ټاکنې وشوې. غونډه کې اکثره لیبرال دیموکراتان وو او د مشروطه سلطنت لپاره ولاړ وو. په اغلب ګمان په ۱۳۲۹ ه ل / ۱۹۵۰ ز کال کې د ازادو رسنیو قانون تصویب شو او د سیاسي جوش څخه ډکه دوره منځ ته راغله. چې ځینو خصوصي چاپي اونیزو خپرونو (هفته نامو) کوښښ وکړ د لیبرالو روشنفکرو خیالونو تصویر وړاندې کړي. په دې حال کې دا خپرېدونکې، په یوه لویه کچه د نویو ټولنو په نوم جوړه شوه، لږ او ډېر سیاسي ګوندونه جوړ شول د تبلیغاتي وسایلو په پرتله د هغه ډلو تر منځ چې اکثریت یې بې سواده وو.د شورا اصلاح غوښتونکو غړي د رسنیو له لوري د ټولنې د واقعیتونو ښودلو له امله د ازادو مبلغانو په حیث تبدیل شول، چې پاچا او لومړی وزیر داسې احساس وکړ، چې په دې حالت سره د حکومت مخته وړل، پوره ازاد نه دي. (دوپری، ۱۹۸۰،ص ۴۹۴-۴۹۸).

د مطبوعاتو دویم قانون په ۱۹۵۰ کال په افغانستان کې په داسې شرایطو کې نافذ شو، چې هېواد یو وار بیا د سیاسي – ټولنیزو بدلونونو سره مخ شوی وو.د دې قانون انفاذ نه یوازې د یو شمېر غیرې دولتي خپرونو د خپراوي لپاره لاره

هواره کړه، مگر له بلې خوا څخه روڼ اندي او د هېواد باعلمه طبقه په عملي ډول سره دې ته چمتو شوې وه، څو د خپلو سیاسي سازمانونو هستي ځای پر ځای کړي.

ددې دورې د ازادو او غیرې دولتي مطبوعاتو څخه د انگار،ندای خلق، وطن، نیلاب، ولس، او د ابینه خپرونې دي، چې په کابل ښار کې خپرېدې. په همدې ډول په میمنه د فاریاب ولایت په مرکز کې غیرې دولتي اتوم خپرونه خپرېده. بله خوا په همدې وخت کې د هېواد په مرکز او ولایتونو کې د پامیر، صدای ملت، پیام افغان، الفبا او ژوندون دولتي خپرونو، خپلې خپرونې پیل کړې او د دولت د اجتماعي – سیاسي غوښتنو ښکارندویي یې کوله. د افغانستان په دغه دوره کې د سیاسي گوندونو او سازمانونو د جوړښت لپاره هم کوښښونه شوي وو. لکه څنگه چې((ویښ زلمیان)) لومړی سیاسي حلقه وه، چې په کابل کې یې بنسټ کېښودل شو. د انگار خپرونه د فیض محمد انگار په مدیریت او ولس د گل پاچا الفت په مسول مدیریت، د ویښ زلمیانو خپرېدونکي ارگانونه وو.

د وطن گوند یا سیاسي حلقه د وطن خپرېدونکې خپرونه د میر غلام محمد غُبار په مسول مدیریت کې خپرېده او همدا شان د ندایې خلق خپرونه د خلق د حزب نشراتي ارگان وو، چې د ډاکټر محمودي په امتیاز یې په خپراوي پیل وکړ.

## د شاه محمود خان د صدارت د رسنیو ځانگړتیاوې:

په هېواد کې د لومړي ځل لپاره د شاه محمود خان په وخت کې حزبي خپرونې منځ ته راغلې. میر محمد صدیق فرهنگ د افغانستان په پنځو وروستیو پېړیو کتاب کې داسې لیکي: په داسې حال کې دا درې گوندونه [ویښ زلمیان، د وطن حزب او د خلق حزب] د ډیموکراسۍ د اصولو له اړخه د شاهي مشروطه دولت په شکل پلوي کوي، مگر د تبلیغاتو د څرنگوالي له نظره څخه ډېر لوی توپیرونه لري. په دې مانا چې د ؛وطن؛، او ؛ولس؛ معتدله مضامین وو او د استدلال څخه ډک او د ؛ندای خلق؛ د بیان طرز او شیوه بیا تُنده او جذباتي وه، په داسې حال کې چې د ؛انگار؛ مضامین بیا په خپله منځپانگه کې کوم خاص طرز نه درلود.))

دا خپرونې په هېواد کې د یوه فکري سیاسي روزنیز مرکز په شکل په دې باندې وتوانیدې، چې یو سیاسي نسل وروزي. ددې خپرونو په واسطه یو روزل شوی سیاسي نسل، چې وروسته یې بیا د ډیموکراسۍ په لسیزه (۱۹۶۳-۱۹۷۳) کې په سیاسي – ټولنیزو پېښنو کې هم یو ډېر مهم رول ولوبوي. تر دې حده چې کولی شو ووایو چې د ډیموکراسۍ لسیزې مطبوعاتي او سیاسي مبارزې د شاه محمود خان د وخت د سیاست د تجربو دوام وو.

د سیاسي گوندونو او سازمانونو د سیاسې مبارزې په مفهوم د افغانستان د خلکو او ځوان نسل پوهول او معلومات ورکول، په هېواد کې د همدي خپرونو له لارې د تحصیلي کړیو په واسطه تر سره شول.

له بده مرغه، چې په دغه دوره کې تجربه شویو خپلواکو مطبوعاتو ډېر دوام ونه کړ او نه یوازې دا چې په ۱۹۵۱ ز کال کې پرته له کوم قانوني دلایلو ددې خپرونو پرمخ دروازې بندې شوې، بلکې گوندونه او سیاسي سازمانونه هم منحل او له منځه لاړل. دولت په دې هم بسنه ونکړه، او د یو شمېر سازمانونو او سیاسي گوندونو لکه، وطن، خلق او ویښ زلمیانو

د رهبری غړي اومشران یې ونیول او زنداني یې کړل. په دې شکل سره د لسو راتلونکو کلونو لپاره د داوود خان د صدارت تر دوارن پورې، افغانستان د ازادو مطبوعاتو، سیاسي گوندونو او سازمانونو څخه بلکل لرې پاتې شو.

محمد ظاهرشاه په ۱۳۳۲ ه ل / ۱۹۵۳ کال کې خپل د تره زوی سردار محمد داوود د لومړي وزیر په توگه معرفي کړ. داوود خان د نویوالي (عصریتوب) او نویو جوړښتونو پلوي وو، مگر هغه د ډیموکراسی او فردي خپلواکیو په قېمت، داخلي واک ته د رسېدو او نظم راوستو ته لومړیتوب ورکړ. کله چې نوموړی قدرت ته ورسېد، د نویو خپرېدونکو اونیزو( هفته نامې) خپرېدل ودرېدل او سیاسي گوندونو خپل عمومي فعالیتونه ودرول. له دې سره سره،چې تر دا مهاله د ملي شورا ټاکنو په پایلو کې د لاسوهنې تر سره کیدې. په ۱۳۳٦هـ/ ۱۹۵۷ کال کې پولیسو د بې بنسټه تورونو په اوږدو کې، لومړی عبدالمالک عبدالرحیم زی او له هغه څخه وروسته بیا نور د بل ډول افکارو لرونکي کسان ونیول. په دې پایله کې د دوی د ډیموکراسی په لنډ مهاله وخت کې د امنیت راغلی احساس له منځه لاړ.

په دې اساس د داوود خان د صدارت په وخت کې نه یوازې پخوانیو دولتي خپرېدونکو خپرونو خپل فعالیت ته دوام ورکړ، بلکې یو شمېر نورې دولتي چاپیدونکې خپرونې لکه ټایمز، هېواد، ستوری، سره میاشت، افغانستان، د پیمان حق، تعلیم او تربیه، الفلاح، اریانا،کانونو او صنایعو او مهر خپرېدونکې خپرونې په کابل کې او د هېواد په یو شمېر ولایتونو کې رامنځ ته شوې. د یادونې وړ ده، چې داوود خان هم د هاشم خان په شان د مطبوعاتو او د بیان په خپلواکی باور نه درلود. په دې خاطر دده په وخت کې مطبوعات پر استبدادي نظام باندی تکیه وو او د روڼ اندو نظریات او د خلکو مفکورې په هغوی کې ښکاره نه شوې.

د داوود خان حکومت، چې د تبلیغ او ډیموکراتیکو ترویجي فکرونو سره مخالف وو، په دې اساس یې، ډیموکراتان غلي او له منځه یوړل. او د ټولنې یوې زیاتې برخې خلکو له ده سره په نا اشنایی کې ژوند کولو. دغه بې علاقه گي او نا اشنایي د ټاکنو او د ډیموکراسی په اصل کې مهم رکن دی، چې د مخکني دردونو او زغمونو څخه پیدا سیاستونو محصول او یا هم دا یې یو مهم عامل وو.

له دې سره د یوه پنځه کلن پراختیایي اقتصادي او ټولنیز پلان له لارې د دولتي داخلي نظام په داخل کې اقتصادي پرمختگونه رامنځ ته شول. په همدې وخت کې، د زده کړې د نظام پراخه کېدل او د حجاب تدریجي کشف د نا امیدو روڼ اندو له لیکو سره مرسته کوله.

## په افغانستان کې د ډیموکراسی لسیزه (۱۳۴۳ څخه تر ۱۳۵۲ ه. ل)

د هاشم خان، شاه محمود خان او محمد داوود خان د ډیکتاتوري حکومتونو له کلونو څخه وروسته، د افغانستان خلک د لومړي ځل لپاره په کال ۱۹٦۴ ز (۱۳۴۳هـ ل) کې د اساسي قانون د جوړېدو او پلي کېدو په صورت کې، یوه شاهي مشروطه دولتي سیستم ته لاس رسی پیدا کړ، چې په دې اساس به سیاسي خپلواکي، د بیان حق، د فکر حق او د مطبوعاتو خپلواکي تضمن کړل شي. شاه د غیرې مسول موقف په اختیارولو او واجب الاحترام د دولت په مشرتابه کې

يې اجرايه، مقننه او قضاييه قدرت خلکو ته ورپرېښود  او د سلطنتي کورنيو غړي يې د شاهي ډموکراتيک اروپايي هېوادونو د تعامل په شان د صدارت د چوکيو او د وزارتخونو  د چارو څخه منع کړل. په راتلونکي لسو کلونو کې، چې د ډيموکراسۍ د لسيزې په نوم مشهوره  ده، د هر بل هېواد په شان د يوه نوي منځ ته راغلې ډيموکراسۍ سيستم، په هېواد کې د سياسي فعاليتونو اوج ته د رسېدو کلونه ګڼل کېږي. په سياسي او ټولنيز ډګرونو کې په لسګونو سياسي حزبونه، ازاد او غيرې دولتي رسنۍ  منځ ته راتلل، د قومونو د افکارو او د سياسي جرياناتو د دواړه خواوو چپ افراطي (دې کې  دخيل خلق، پرچم، شعله، جاويد) او ښي افراطي (چې دې کې د مسلمان ځوانانو سازمان، يا اخوان المسلمين شامل وو، چې وروسته بيا په حزب اسلامي او جمعيت اسلامي باندې بدل شول) او منځني جريانات (لکه افغان ملت، مساوات) شامل وو، زمينه ورته مساعده شوه. په دې دوران کې ډېر لومړي وزيران راغلل او ولاړل (ډاکټر يوسف، محمد هاشم ميوندوال، ډاکټر عبدالظاهر، نور احمد اعتمادي او محمد موسی شفيق). دا دوره په مطبوعاتو کې د سياسي او ټولنيزو افکارو  د بيان د ازادۍ سره يو ځای د محصلينو، ښوونکو، زده کوونکو او د صنعتي موسساتو د مامورينو د مظاهرو او اعتصابونو سره تړلې دوره وه.

 له بده مرغه چې د ۱۳۵۲ ل کال د چنګاښ مياشتې په ۲۶ نېټه د ناوړې کودتا په ترڅ کې سردار داوود خان د محمد ظاهر شاه مشروطه شاهي دولت سقوط کړ، او د ډيموکراتيک اساسي قانون د انحلال  او د ډيموکراسۍ د لسيزې د ختمېدو سبب وګرځېد. دا کودتا په هېواد کې د بې ثباتۍ او سياسي کش مکشونو پيل دی، چې تر نن ورځې پورې دوام لري. دغه کودتا  په  هېواد د بدل شويو شرايطو په نظر کې  نه نيولو سره، د ولسي جرګې ډيموکراسۍ، د سياسي او ټولنيزو ازاديو او د ازادو مطبوعاتو د بشپړاوي مخه ونيوله او يو کسيز ديکتاتوري دولت رامنځ ته شو.

 په وروستيو کې داوودخان د ايران د شاه، د مصر او عربستان د واکمنو په ژمنو سره دا کوښښ وکړ، چې چپي افسران او عناصر چې قدرت ته د ده د  رسېدو عاملين هم وو، له دولت څخه بهر کړي او خپل حساب د خلق ډيموکراتيک ګوند سره تصفيه کړي. دا عمل د ده  د سقوط سبب شو او  په ۱۳۵۷ ه ل کال د ثور په اوومه د حزب ډيموکراتيک خلق افغانستان ح.د.خ.ا قدرت ته د رسېدو علت  شو.

## رسنۍ د ډيموکراسۍ په لسيزه کې

### غيرې دولتي رسنۍ

خپلواکي، ملي يوالی – د خپرېدو ځای کابل، اونيزه،  د خپرېدو نېټه ۱۳۴۸-۱۳۵۱ ه.ل، د امتياز څښتن عبدالحکيم مژده، ژبه: دري او پښتو

افغان - د خپرېدو ځای کابل، اونيزه،  د خپرېدو نېټه ۱۳۴۹-۱۳۵۲ ه ل کال پورې خپره او چاپ شوه، د امتياز څښتن محمد حسن ولسمل، ژبه: دري او پښتو

افغان ملت – د خپرېدو ځای کابل، اونيزه،  د خپرېدو نېټه ۱۳۴۵-۱۳۵۲، ه ل کال د امتياز څښتن انجينير غلام محمد فرهاد، ژبه: دري او پښتو

افغان ولس – د خپرېدو ځای کابل، اونیزه، د خپرېدو نېټه ۱۳۴۸-۱۳۴۸، د امتیاز څښتن قیام الدین خادم، ژبه: پښتو

افکار نو: د خپرېدو ځای کابل، اونیزه، د خپرېدو نېټه ۱۳۵۰-۱۳۵۲، د امتیازڅښتن نور الله، ژبه: دري او پښتو

برید –

پرچم: د خپرېدو ځای کابل، اونیزه، د خپرېدو نېټه ۱۳۴۶-۱۳۵۲ ه ل کال د امتیاز څښتن او مسوول مدیر: سلمیان لایق، مگر د ۱۳۴۸ د اسد له ٦ د دوشنبی څخه تر ۷۱ مې گڼې پورې د امتیاز څښتن: د پخوا په څېر سلیمان لایق او مسوول مدیر یې میر اکبر خیبر وو، ژبه: دري او پښتو

پروانه: د خپرېدو ځای کابل، اونیزه، د خپرېدو نېټه ۱۳۴۷ ه.ل، د امتیاز څښتن امان الله پروانه، ژبه: دري او پښتو

پکتیکا: د خپرېدو ځای کابل، اونیزه، د خپرېدو نېټه ۱۳۴۸-۱۳۵۲، د امتیاز څښتن شاه زمان وریځ ستانیزی، ژبه: دري او پښتو

پیام امروز: د خپرېدو ځای کابل، اونیزه، د خپرېدو نېټه ۱۳۴۴-۱۳۴۷، د امتیاز څښتن غلام نبي خاطر، ژبه: دري او پښتو

پیام وجدان: د خپرېدو ځای کابل، اونیزه، د خپرېدو نېټه ۱۳۴۵-۱۳۵۲، د امتیاز څښتن عبدالرووف ترکمني، ژبه: دري او پښتو

پیکار: د خپرېدو ځای کابل، اونیزه، د خپرېدو نېټه ۱۳۵۰-۱۳۵۲، د امتیاز څښتن غلام محمد الماسک، ژبه: دري او پښتو

ترجمان: د خپرېدو ځای کابل، اونیزه، د خپرېدو نېټه ۱۳۴۷-۱۳۵۲، د امتیاز څښتن ډاکتر عبدالرحیم نوین، مسول مدیر: علي اصغر بشیر هروي

جبهه ملي: د خپرېدو ځای کابل، اونیزه، د خپرېدو نېټه ۱۳۴۷-۱۳۵۲، د امتیاز څښتن عبدالرب اخلاق، ژبه: دري او پښتو، کلنی گډون:په داخل کې۱٦۰ افغانۍ او بهر کې ۸ ډالر.

خلق: د خپرېدو ځای کابل، اونیزه، د خپرېدو نېټه -۱۳۴۵ هـ ل، د امتیاز څښتن نور محمد تره کی، مسول مدیر: بارق شفیعي،، ژبه: دري او پښتو

خیبر: د خپرېدو ځای کابل، اونیزه، د خپرېدو نېټه ۱۳۴۷-۱۳۵۲، د امتیاز څښتن محب الرحمن هوسا، ژبه: پښتو

روزگار: کابل، اونیزه، د خپرېدو نېټه ۱۳۵۰-۱۳۵۲، د امتیاز څښتن محمد یوسف فرند، ژبه: دري او پښتو

سپیده دم: کابل، اونیزه، ۱۳۴۸، د امتیاز څښتن سید محمد بامداد، ژبه: دري او پښتو

شعله جاوید: کابل، اونیزه، ۱۳۴۷-۱۳۵۲، د امتیاز څښتن رحیم محمودي، ژبه: دري او پښتو

شوخک: کابل، اونیزه،۱۳۵۰-۱۳۵۲، د امتیاز څښتن عبدالعزیز مختار، ژبه: دري او پښتو

صدای عوام: کابل، اونیزه، -۱۳۴۷، د امتیازڅښتن عبدالکریم فرزان

کمک: کابل، اونیزه، ۱۳۴۷-۱۳۴۷، د امتیاز څښتن یعقوب کمک، ژبه: دري او پښتو

ګهیځ: کابل، اونیزه، ۱۳۴۷-۱۳۵۱، د امتیاز څښتن منهاج الدین ګهیځ او عبدالسلیم فرقاني

مردم: کابل، اونیزه،۱۳۵۴-، د امتیاز څښتن سید مقدس نګاه، ژبه: دري او پښتو

معرفت: کابل، اونیزه،  -۱۳۵۲، د امتیاز څښتن غلام معصوم اخلاص، ژبه: دري او پښتو

ملت: کابل، اونیزه،۱۳۵۰-۱۳۵۲، د امتیاز صاحب فدا محمد فدایي، ژبه: دري او پښتو

ندای حق: کابل، اونیزه،۱۳۵۰-۱۳۵۲، د امتیازڅښتن عبدالستار صدیقي، ژبه: دري او پښتو

وحدت: کابل، اونیزه، ۱۳۴۴-۱۳۵۲، د امتیاز څښتن خال محمد خسته، ژبه: دري او پښتو

موخه: کابل، اونیزه،۱۳۴۷-۱۳۵۲، د امتیازڅښتن غلام محمد اورمړ، ژبه: دري او پښتو

سبا:  کابل، ورځپاڼه، ۱۳۴۷-۱۳۴۷، د امتیاز څښتن غلام نبي خاطر، ژبه: دري او پښتو

کاروان:  کابل، ورځپاڼه، ۱۳۴۷-۱۳۵۲، د امتیاز څښتن صباح الدین کشککي، مسوول مدیر: عبدالحق واله، ژبه: دري او پښتو

مساوات:  کابل، ورځپاڼه، ۱۳۴۵-۱۳۵۲، د امتیاز صاحب محمد شریق ایوبي، مسوول مدیر:پوهاند رحیم الهام، ژبه: دري او پښتو

دولتي جریدې

انیس، هېواد، اصلاح او ادغام دولتي ورځپاڼې

کابل ټایمز (په انګلیسي ژبه)

د مصور مجله د کورنۍ لپاره ؛ژوندون؛ چې په دې دوره کې یې د چاپېدونکو ګڼو شمېر له  ۲۰۰۰ څخه ۶۰۰۰ شمېرو ته پورته شوی وو.

سر بېره پر دې پیام حق، پښتون ږغ، انیس اطفال، ننګرهار، کندهار، اریانا او افغانستان،  په هرات او کابل کې د کمکیانو انیس، یوه مجله په هرات کې  او اتلس دولتي جریدې د افغانستان په ولایتونو  کې خپرې شوې.

## د ډیموکراسۍ د لسیزې مخالفین:

په دې وروستیو کې ډاکټر سید عبدالله کاظم د ډیموکراسۍ د شرایطو د پرمختګ او ودې په هکله یوه مقاله په افغان جرمن انلاین وېبپاڼه کې، په ځانګړې توګه زما د مقالې په ځواب کې د ؛ د ۱۳۰۵ کال د چنګاښ میاشتې د ۲۶ نیټې د کودتا د عواقبو په اړه د توضیحاتو ورکولو؛ تر نوم لاندې خپره کړې. ښاغلی ډاکټر کاظم په خپله دغه مقاله کې د داوود خان د پخوانیو شرایطو د بشپړولو او د یوې سالمې دیموکراسۍ منځ ته راوستو د هیله مندۍ وضاحت ورکړی، چې د لوستونکو لپاره د داوود خان فکري پروسې د پوهېدو لپاره ډېره ګټوره ده. هغه په ۱۳۵۵ ه ل کال کې د جوړې شوې لویې جرګې په ترڅ کې د یوه واحد ملي ګرا ګوند د جوړېدو لپاره د دواد خان د هڅو او کوښښونو یادونه کوي.

له دې څخه مخکې د ؛ډیموکراسۍ څخه دوه برداشتونو؛ په یوه مقاله کې مې کوښښ کړی، چې په خلاصه ډول په دې هکله تبصره وکړم، څو د ډیموکراسۍ په اړه خپله اخیستنه او نظریات توضیح کړم. او فکر کوم، چې دا موضوعات به د فېسبوک د ډېرو دوستانو لپاره جالب وي، نو دا نظریات او تبادلات دلته له تاسې سره شریکوم.

کاشکې چې داسې یو قدرت موجود وی، چې سیاسي او ټولنیز بدلونونه ټول د یوه ماسټر پلان له مخې حساب شي. د ښاغلي کاظم په وینا،د حقیقي ډیموکراسۍ تحقق او پر ځای کېدل د شرایطو اړتیا ده، چې باید مخکې او یا په تدریجي ډول سره سالم جهت ته یوړل شي. په داسې یوه هېواد کې چې د ډیموکراسۍ تحقق لازم وي، د دا ډول تحولاتو راوستل، څه ساده کار نه دی او د یوې شبهې په لړ کې سرته رسېدی نشي. ښاغلی کاظم داسې لیکي:؛ شهید محمد داوود په خپله یوه بیانیه کې ذکر کړی، چې اقتصادي او ټولنیز پرمختګ او فرهنګي بدلون، د بنسټیزو اصلاحاتو تر سره کول او د واقعي ډیموکراسۍ رامنځ ته کېدو کې له یو بل سره نیږدې اړیکې لري؛.

د ښاغلي کاظم د لیکنې په اساس زما انګېرنه دا ده، چې داوود خان په ډېر ساده شکل سره دا هیله لرله، چې د ده د صدارت وخت به حد اقل د شلو کلونو لپاره بیا وغځېږي، څو همګاني زده کړې، فرهنګي امادګي، اقتصادي پرمختګ او ډیموکراسي په تدریجي ډول سره معرفي کړي. د دې ستراتیژۍ ستونزه دا وه، چې هغه وخت او زمان داوود خان ته دد په زړه او خوښه سره ددې ستراتیژۍ پېژندلو وخت نه ورکولو. راځئ چې د ایران تجربې ته وګورو، محمد رضا شاه غوښتل چې په عمل کې د داوود شاه وړاندیز شوی موډل پلی کړي: لومړی اقتصادي او ټولنیز پرمختګ او وروسته بیا ډیموکراسي پلې کول وو. پایله یې دا شوه، چې په ډېره کمه پانګه اچولو سره، نفتي عوایدو د خلکو د ژوند سطحې، ارامي، سواد او د روغتیا په برخو کې لوړو درجو ته ورسېدل. په همدې وخت کې یې د ساواک له سیاسي فشار څخه چېغې وهلې. خلک دې ته منتظر نه شول چې رضا شاه موعوده ډیموکراسي معرفي کړي او اسلامي انقلاب یې د ډیموکراسۍ پر ځای د دیکتاتورۍ تر ټولو بدترینه ډول او عکس العمل ځای پر ځای کړی. که خمیني د مذهبي اختناق رامنځ ته کول نه غوښتل، د دوهم الترناتف کمونیستي ځای پر ځای شوی نظام د خلکو د داخلي انقلاب څخه وو.

که د تدریجي ډیموکراسۍ معرفي کولو موډل یا په ایران کې د داوودخاني موډل د مذهبي فشارونو د رامنځ ته کېدو سبب شو، د دې تجربې تکرارېدل په افغانستان کې او یا د یوه کمونیستي نظام ځای په ځای کېدل تر څه حده وو؟ ایا کولی شو د معارف د عمومي کولو نقش د خپلواکۍ د غوښتنې په شدت کې او ډیموکراسۍ غوښتنه په ایران کې له نظره وغورځوو؟ همدغه اصل په افغانستان کې هم صدق کوي.

پر ډیموکراسۍ د عقیدې لرلو اساسي اصول، د ډیموکراسۍ معرفي کول او د هغې د نتایجو او عواقبو منل دي.د ډیموکراسۍ د سلطنت دستګاه د اساسي قانون پر اساس په کال ۱۳۴۳ ه ل کال (۱۹۶۴ز کال ) معرفي شوه. مګر د هغه د عواقبو څخه ډارېدل او د هغې د نتایجو د منلو تعهد یې نه درلود. د ښاغلي کاظم په لیکنه کې د داوود خان تشویش د چپیانو قدرت رسېدل او یا د ښي اړخو یا راستیانو چپ افراطیان وو، د ولسي جرګهي ټاکنو له لارې د یو منځمهاله ملي حزب په شاه کې توضیح شوی. دا هم هغه وېره وه، چې د ظاهرشاه لخوا یې هم د سیاسي احزابو د قانون د انفاذ مخه ونیول شوه. پایله یې موږ هم ولیده، چې له تکلیفونو څخه ډکه وه. ومو لیدل چې، نه تولنه اماده ډیموکراسي او نه هم مطلق العناني داوود خاني چې بلاخره د داوود په کودتا پای ته ورسېده.

راځئ چې وګورو که د ظاهر شاه د ډیموکراسۍ تجربې بشپړېدو ته یې اجازه ورکړې وی، نو څه به رامنځ ته شوي وو؟ زه بشپړ باور لرم، هر کله چې دولت د یوې خوا څخه دولتي جوړښتونه، د دولت د اداري سیستم،(Public Service) اردو، پولیس، مقننه قوه، د دې بنسټونو د مسلکي کولو له لارې (غیرې سیاسي کول) د دوی، بهتره تعلمات، ښه تجهیزات او د بهتر خبر ورکولو او د لازمه قوانینو په وضع کولو تقویت کولو او د بلې خوا څخه د احزابو قوانین یې نافذ کولو او ډیموکراتیک بنسټونو څخه یې ملاتړ کولو او د ډیموکراسۍ له نتایجو څخه یې وېره نه درلوده، په یقین سره چې ډیموکراسي په استواره ګامونو د وخت په تېرېدو سره په ټولنه کې لازمي پوخوالي حد ته رسېدو او په ډېر احتمال سره په وروستیو دورو کې په ولسي جرګهي ټاکنو کې، لکه د بېلګې په توګه ۱۳۵٦ ه ل کال یو متحده افراطي اسلامي حزب او یا د ډیموکراتیک خلق حزب کېدی شوی، چې بریالی شي.ایا دا بریالیتوب د قیامت د ورځې نښه وه؟نه! د دې حزبونو بریالیتوب د حزبونو د قوانینو په چوکاټ کې او د اساسي قانون په چوکاټ کې د دې حزبونو د کړنو په معدل کېدو او د دوی اتکا پر ډیموکراتیکو لارو د قدرت د اخیستو په خاطر خپرېدو، بلوغ او د ټولنې سیاسي پوخوالي ته رسیدی شو او مرسته به یې کړې وی. د خلکو عیني تجربې د دې حزبونو د حکومتدارۍ د لاسته راوړنو خپله په طبعي شکل سره د منځلارو احزابو د نفوذ د اضافه کېدو، مساوات، افغان ملت، د عوامو رږغ، ملي غورځنګ او نورو سره مرسته وکړه، او ممکن یوه ورځ دغه حزبونه حکومتي قدرت د ولسي جرګهي ټاکنو له لارې لاسته راوړي. هندوستان، تر یوه حده هم پاکستان،دغه لاره یې غوره کړه او دې ته انتظار نه شول چې خلک یې ټول ارام او با سواده شي، څو ډیموکراسي معرفي کړي او د هغې ثمره نن د ډیموکراسۍ موجودیت د دې هېوادونو په رګونو کې په خپلو سترګو وینو. دا هغه لاره وه چې ډیموکراتیکو هېوادونو لکه برېتانیا، فرانسې، او امریکا تجربه کړه، دوی منتظر نشول چې خلک یې ټول ارام او باسواده شي، څو ډیموکراسي معرفي کړي او د هغې په عوض کې دولتي بنسټونه او ډیموکراتیک ګوندونو ته یې تقویت ورکړ او د ډیموکراسۍ نتایج او لاسته راوړنو ته یې احترام وکړ.

په دې اساس زما لپاره یوه داسې ډیموکراسي چې په ختیځ او خاورو کې غرقه وي، مګر د بیان خپلواکي، او د ډیموکراتیک قدرت اخیستو په برخه کې د خلکو د ګډون ازادي تضمین شوې وي. په زرګونه ځله راته د یوه داسې دیکتاتورۍ څخه زیات ارزښت لري، چې په هغې کې د خلکو لپاره پلونه او تونلونه جوړ کړي.

## په افغانستان کې د ډیموکراسۍ د پراخوالي د پروسې څخه دوې مختلفې اخیستنې

ځینې کسان په دې عقیده دي، چې داوود خان داسې ارزو درلوده، چې د ده د صدارت وخت به حد اقل د شلو کلونو لپاره بیا اوږد شي، څو همګاني زده کړې، فرهنګي امادګي، اقتصادي پرمختګ او ډیموکراسي په تدریجي ډول سره معرفي کړي. د دې ستراتیژۍ ستونزه دا وه، چې هغه وخت او زمان داوود خان ته د ده په زړه او خوښه ددې ستراتیژۍ پیژندلو وخت نه ورکولو. راځئ چې د ایران تجربې ته وګورو، محمد رضا شاه غوښتل چې په عمل کې د د داوود خان وړاندیز شوی موډل پلی کړي: لومړی اقتصادي او ټولنیز پرمختګ او وروسته بیا ډیموکراسي پلې کول وو. پایله یې دا شوه، چې په ډېره کمه پانګه اچولو سره، نفتي عوایدو د خلکو د ژوند سطحې، ارامي، سواد او روغتیا په برخو کې لوړو درجو ته ورسېدل. په همدې وخت کې د ساواک د سیاسي فشار څخه یې چېغې وهلې. خلک دی ته منتظر نه شول چې شاه دې نا معلومه ډیموکراسي معرفي کړي او اسلامي انقلاب یې د ډیموکراسۍ پر ځای د دیکتاتورۍ تر ټولو بدترینه ډول او عکس العمل ځای پر ځای کړی. که خمیني د مذهبي اختناق رامنځ ته کول نه غوښتل، دوهم الترناتف د یو کمونیستي نظام ځای پر ځای کول د خلکو د انقلاب د داخل څخه وو.

که د تدریجي ډیموکراسۍ معرفي کولو موډل یا د داوودخانی موډل په ایران کې د مذهبي فشارونو د رامنځ ته کېدو سبب شو، په افغانستان کې د دې تجربې تکرارېدل او یا د یو کمونیستي نظام ځای په ځای کېدل تر څه حده وو؟ ایا کولی شو د معارف د عمومي کولو نقش د خپلواکۍ د غوښتنې په شدت کې او د ډیموکراسۍ غوښتنه په ایران کې له نظره وغورځوو؟ همدغه اصل په افغانستان کې هم صدق کوي.

ډیموکراسي د ټولنې د ذهني او سیاسي تکامل لپاره یو فرصت دی. د افغانستان د وروستیو پنځوسو کلونو سیاستمداران د ډ یموکراسۍ په لسیزه کې د ۱۳۴۳ څخه تر ۱۳۵۲ کال پورې روزل شوي وو. که د ظاهر شاه د ډیموکراسۍ تجربې بشپړېدو ته اجازه ورکړل شوې وی، هر کله چې دولت د یوې خوا څخه دولتي جوړښتونه، د دولت د اداري سیستم، (Public Service) اردو، پولیس، مقننه قوه، د دې بنسټونو د مسلکي کولو له لارې (غیرې سیاسي کول) د دوی، بهتره تعلمات، ښه تجهیزات او د بهتر خبر ورکولو او د لازمه قوانینو په وضع او پیاوړي کولو او همدا راز د بلېخوا څخه د احزابو قوانینو نافذه ولو او ډیموکراتیک بنسټونو څخه یې ملاتړ کولو او د ډیموکراسۍ له نتایجو څخه یې وېره نه درلوده، په یقین سره چې ډیموکراسي په استواره ګامونو د وخت په تېرېدو سره په ټولنه کې لازمي پراخوالي حد ته رسیده او د ټولنې په یوه بنسټېزه اخلاقي نهاد باندې بدلیدی شوی.

هندوستان او همدا راز  تر یوه حده پاکستان دغه لاره وټاکله او دې ته منتظر نشول، چې خلک یې ټول مرفه او با سواده شي او دوی ډیموکراسی ور  معرفي کړي. دا دي نن ورځ  ددې بینستیزې ډیموکراسۍ ثمره ددې هېوادونو په خلکو او ژوند کې ګورو. دا هغه لاره وه  چې ډیموکراتیکو هېوادونو لکه بریټانیا، فرانسې، او امریکا تجربه کړه، دوی منتظر نشول چې خلک یې ټول ارام او باسواده شي څو ډیموکراسي معرفي کړي او د هغې په عوض کې دولتي نهادونو اوډیموکراتیک ګوندونو ته یې تقویت ورکړ او د ډیموکراسۍ نتایج او لاسته راوړنو ته یې احترام وکړ.

د دې په اساس زما لپاره یوه داسې ډیموکراسي چې په ختیځو او خاورو کې  غرق وي، مګر د بیان خپلواکي، او د خلکو په ډیموکراتیکو پروسو کې  د دولتي قدرت د اخیستو په برخه کې د  خپلواکۍ  تضمین شوی وي. په زرګونه ځله راته د یوه داسې  دیکتاتورۍ څخه زیات ارزښت لري، چې په هغې کې د خلکو لپاره پلونه او تونلونه جوړ کړي. باید  دا هیر نه کړو، چې یوه ماته او ګوډه ډیموکراسي هم کولی شي، د خلکو امنیت تامیین کړي، لکه څرنګه چې د ظاهرخان د واک په لسیزو کې د ډیموکراسی  د امنیت او مصؤنیت څخه خلک برخمن شوی وو!

**د معاصر افغانستان د بنسټ ایښودل**

د کتاب د دې فصل په پای کې دا ځای لري، چې د معاصر افغانستان د پنځو بنسټ ایښودونکو نومونه، چې له هغوی څخه په دې او تېرو فصلونو کې یې نومونه ذکر شوي یادونه وکړو.

هر یوه په ډېر لویه ونډه سره، په معاصره نړۍ کې ددې هېواد په رامنځ ته راتگ کې د صفوي او مغولي امپراتوریو د خرابیو پر سر او د هغوی تحکیم او د هویت د مشخصولو په برخه کې مهم او ارزښتناکه رول لوبولی دی.

لومړی – میرویس خان هوتکي: میرویس خان په حقیقت کې د افغانستان جورج واشنگټن دی، چې د مغولي او صفوي دوه سوه کلنه امپراتوري یې په هغه هېواد کې چې نن په نړۍ کې د افغانستان په نوم یادېږي ختمه کړه او د افغانانو تر مشرۍ لاندې یې یو سیاسي قدرت رامنځ ته کړ.

دوهم – احمد شاه ابدالي: د صفوي او مغولي دولتونو د ضعف څخه په استفادې د ابدالي د امپراتورۍ د یوه مشخص افغاني او حنفي اسلامي هویت سره یې پیل کړ، چې نننی افغانستان د هغه وارث دی او له نن څخه شاوخوا دری سوه کلونو را پدیخوا په خپل ځای دی.

دریم – امیر دوست محمد خان: افغانستان چې د انگرېزانو، ایرانیانو او روسانو په دسیسو، په کندهار، مزار شریف او هرات کې په خودمختاره حکومتونو باندې وېشل شوی وو، او په کابل کې مرکزي حکومت ته وفاداره نه وو، دوی یې یو ځل بیا سره متحد کړل او د هېواد ځمکنۍ بشپړتیا او وحدت یې بېرته ځای پر ځای کړ.

څلورم – امیر عبدالرحمن خان: پر افغانستان د انگرېزانو د دویمې جگړې په ترڅ کې د هېواد پراختیا او یووالی سره پاشل شوی وو، بېرته یې سره یو ځای کړه او د ملوک الطوایفي سیستم یې له منځه یوړ او یو مرکزي دولت یې د ملکي او عسکري نظامي اداري نظام سره د وخت د غوښتنې مطابق رامنځ ته کړ.

پنځم – امیر امان الله خان: کله چې امارت ته ورسېد، هېواد مو د لویې برېټانیا تر حمایت لاندې حسابېده او ټولې بهرنۍ اړیکې او د سرحدونو چارې د برېټانوي هند دولت لخوا اداره کېدې. امان الله خان د هېواد د بشپړ سیاسي خپلواکۍ په اعلان سره او د برتانویانو لخوا په رسمیت پېژندلو سره د تل لپاره دغه حالت ته د پای ټکی کېښود.

## اتم چارت: د معاصر افغانستان بنسټ ایښودونکو




## د دې برخې اخذلیکونه او سرچینې:

1. محمد صدیق فرهنگ ؛افغانستان په پنځو وروستیو پیړیو کې؛،عرفان،تهران، پسرلی ۱۳۵۸
2. لودویک ادامک، دایره المعارف ایرانیکا
3. اولیور روی، اسلام او مقاومت په افغانستان کې، ۱۹۹۰
4. رفیعه ذکریا، انټرنیټي ورځپاڼه ؛اوون؛، ۱۶ د جولای ۲۰۱۶،
5. د هندوستان ملي ارشیف، د کابل د تړون متن ۱۹۲۱،
6. لودیک ادامک، افغانستان ۱۹۰۰-۱۹۲۳، د ډیپلوماسی تاریخ
7. بریل اورمانی، وف لدویک، ۲۰۰۶، د افغانستان سیاسي او ډیپلوماتیک تاریخ، ۱۸۶۳-۱۹۰۱، لندن
8. شاه ولي خان، زما یادښتونه
9. میر عبدالواحد سادات، د تکفیر ذهنیت او د وژنو دوام،د مدني ارزښتونو سلاخي کول او .... هود انټرنیټي ویب پاڼه)
10. صاحبنظر مرادي، د احمد شاه ابدالي څخه تر عبدالرحمن خان پورې، د خراسان زمین ویب پاڼه، د قوس - ۲۸ -۱۳۹۰.
11. محمود محمود، د ایران او انگلیس سیاسي تاریخي اړیکې، تهران.

# څلورمه برخه: افغانستان د ایراني نیشنلېزم تر هدفونو لاندې

## د ایراني نیشنلېزم بنسټ څه دی؟

د ایراني فارس نیشنلېزم د اثنی عشره شیعه مذهب پر بنسټ، د شپاړسمې پېړۍ په لومړیو کلونو یا د صوفیانو په وخت کې رامنځ ته شو. او د اریایي نژاد په غلط باور لرلو او په ځانګړې ډول سره ایرانیانو په ۱۹۳۰ز کال د رضاشاه په وخت کې د هټلري المان په پیروی، د دوهم یزد ګرد ساساني شاه څخه زرګونه کاله مخکې په نننی ایران کې لومړی فارس ټبره پاچاه وو، بشپړ شو.په همدغه بنسټ په ۱۹۳۵ز کال کې د ایران نوم د فارس پر ځای د دولت د رسمي نوم په حیث وټاکل شو او د نړۍ له ټولو هېوادونو څخه یې دا غوښتنه وکړه، چې هېواد ته یې فارس نه بلکې ایران خطاب وکړي.

د لومړي ځل لپاره د اریایي او لوی ایرن اصطلاحات، هغه وخت په رسنیو او د ایرانیانو په لیکنو کې ښکاره شول او په لویه کچه د تاریخي او تیوریتیک نیشنلېزم له پاره د تاریخي زمینې برابرولو په پار کوښښونه وشول، چې د ځینو کړیو لخوا لا تر اوسه دوام لري. د دې کوښښونو په دوام د هخامنشي جعلي کتیبو پر جوړېدو اقدام کېږي، او د کوروش د جعلي قبر په پیدا کولو،د کوروش منشور چې په حقیقت کې د ودانیو د بنسټ په ایښودلو کې یوه استوانه او معمولي لیکنه وه ایښودل کېږي.

په ایراني نیشنلېزم کې د فردوسي شاهنامه او حماسي شعرونه، چې له فارس سره هېڅ اړیکې نه لري. د تاریخي حماسي زمینې په صفت د دې لوی جعل لپاره استعمالېږي. په داسې حال کې چې ایران شاهنامه، قصې، حماسې او افسانې ټولې تر افغانستان او ددې هېواد تر خلکو اړوند دي.

د عربو، تُرکانو او افغانانو پر وړاندې د ایراني ملت د برترۍ فرهنګ اعتقاد لرل، د ایراني نیشنلیزم عناصرو څخه دي او له عربو، افغانانو او ترکتبارو خلکو سره د ایرانیانو بې دریغه دښمني باید له همدې زاویې څخه وګورو. په سیمه کې پخوانی ټولې ادبي، علمي، فرهنګي، هنري، سیاسي او نظامي څېرو اړیکې له ایران هېواد سره د همدې نیشنلېزم لاسته راوړنو څخه حسابېږي. بې ځایه به نه وي، چې د فارسي ژبې څخه په استفادې، هغه هم په لهجه او د لغاتو په سټندرد په ایران کې د لا ښې ژبې په حیث او د سیمې د یوازېنی ملي ژبې په مثابې کوښښونه شوي، چې فارسي ژبه خالصه شي د عربي، ترکي، پښتو او نورو کلمات او اصطلاحات یې کم کړي، او د هغوی د عوض کولو لپاره د عتیقه ژبې د کلماتو او اصطلاحاتو څخه استفاده کېږي.

د دې نیشنلېزم د طبقې په عناصر کې، پر لوی ایران اعتقاد، په لوېدیځ کې له ترکیې، دجلې او فرات تر سیند پورې، په ختیځ کې د ارال تر بحیرې پورې او په شمال کې تر عرب او فارس خلیج پورې پر دې اعتقاد لرل، چې لوی ایران د استعمار په واسطه له یو بل څخه تیت شوو او نوي هېوادونه ترې منځ ته راغلي دي. نه ددې هېوادونو د خلکو د پاځونونو په پایله کې. د دې اعتقاد فساد او د هغې زمانې منځ خالي اوسېدل ښکاره کوي، چې د معاصر ایران په

تاریخ کې د افغانانو حاکمیت د شاه محمود هوتکي او شاه اشرف هوتکي په وخت کې جنگیز خان مغول، د غیرې ایراني اشغالگرو په توگه معرفي شوي . کله چې نادر افشار په دې توانېد، چې حاکمیت ته د پای ټکی کېږدي، نو د ایران د ملي قهرمان په توگه حساب شو.

په همدې اساس د اریانا د نوم څخه په استفادې د افغانستان لرغوني اوسنی سیمې ته له اشارې سره مخالفت کېږي. او په عوض کې یې د لوی ایران د نوم څخه د استفادې تبلیغ کېږي، د سیمې د تېر تاریخ تشریح او تفسیر د لوی ایران له دیدگاه څخه او د ایراني نیشنلېزم او په منطقوي مسایل کې د فکري خط او د ایران اژمونیزم یې تبلغ کاوه.

په دې برخه کې ډېری پیسې د ایران د فرهنگي بریدگرې پروژې له لارې په ځانگړې توگه په تاجکستان او افغانستان کې د تبلیغاتي جوړو شویو دستگاوو لکه تلویزیونونو، راډیوگانو، چاپي رسنیو او انټرنیټي رسنیو له لارې په مصرف ورسېدې. په تاجکستان هېواد کې د دې فرهنگي حملې پر وړاندې په رسمي ډول سره مقاومت پیل شو، اما په افغانستان کې دا یرغل په بشپړ ځواک سره دوام لري.

**د ایران د فرهنگي برید موخې**

د ایران د فرهنگي برید له موخو څخه په دوامداره توگه د افغانستان د خپلواک فرهنگ له منځه وړل او پر ځای یې د دوامداره ایراني فرهنگ ځای پر ځای کول او په سیمه کې د فارسي – ایراني شوونیزم پر اساس د افغانستان د تاریخ بیا لیکل دي.

د افغاني خپلواک هویت لرونکي افغانستان د دولت جوړېدل، کوم چې په عمده ډول سره پر حنفي اسلام اتکا لري او افغاني فرهنگ چې له پښتونولۍ او خراساني دري څخه جوړ دی، نه یوازې دا چې د ایران د لویو نیشنلېزمو موخو سره متضاد دي، مگر د دوی د سیاسي هدفونو د سرته رسولو په لار کې هم خنډ گڼل کېږي.

که د افغانستان د دولت تغیري موجودیت د ایرانیانو لپاره د معاصرې نړۍ په شرایطو کې متمرکز نه دی، هغوی د خپلو اعمالو په مستقیمه مرسته او د ستمیانو، شورای نظاریانو، او د جهادي شیعه تنظیمونو غیر مستقیم ملاتړ لري،کوم چې له ایران څخه مالي، نظامي، تعلیمي او تبلیغاتي مرستې ورسره کېږي او د افغانستان د دولت د هویت په بدلولو کې د خپلو ستراتیژیکو منافعو په خاطر په کار بوخت دي. دا کار د یوه پراخه فرهنگي برید له لارې تر سره کېږي.

دا یرغل د هېواد په رسنیو کې په پانگه اچولو، د تلویزیونو،ټولنیزو رسنیو، راډیوگانو، ورځپاڼو او مجلو، انټرنیټي پاڼو او سایټونو، د جعلي فېسبوکي حسابونو په فعالولو، د کتابونو او مطالبو په پورته کښته کولو او د تېرو ۱۸ کلونو رسنیزې پلټنو سره پیل شوې او جریان لري.زموږ د زرگونو مهاجرو وطنوالو بېرته راتگ، په خاصه توگه د هزاره قوم ځوانان، چې په ایران کې له اوږده وخته اوسېدو څخه یې ماغزه مینځل شوي دي او د ژبې او د فرهنگ له نظره هم،د دوی څخه ځینې د هېواد په تعلیمي موسساتو کې دې پروسې ته لا نور شرایط هوسا کوي. داسې وایي چې طلوع تلویزیون د خپلې کارموندنې او په کاري تبلیغاتو کې د ایران څخه فارغ شویو محصیلونو پسې گرځي، چې په ایران کې یې زده کړې کړې وي.

د هویت د تغیر ورکولو په خاطر،په دی ورستیو کې د ؛زه افغان نه یم؛ تر شعار لاندې یوه طرحه په ډېره تېزۍ سره مخته روانه ده او خراسان ته د افغانستان د نوم د تغیرولو کمپاین د لطیف پدرام لخوا چې پخوا په ولسي جرگه کې د بدخشان د خلکو استازی وو، په علني او رسمي توگه پیل شوې.

څو کاله وړاندې له ما سره د نظریاتو په تبادله کې، د همدې یو ایران پالونکي لخوا له طالباني تروریزم سره د مقابله د فارسي ژبې لپاره یوه ماته نه منونکې تعریف کړې ده! داسې فکر کوم، چې همدا تر ټولو ښه د افغان ایران پرستانو د موخو او هدفونو تعریف دی!

دوه کاله وړاندې د همدې ډلې څخه یو بل کس، بیا هم د نظریاتو په تبادله کې،ماته داسې وویل، چې دوی نشي کولی چې له ایران څخه د دوی خپلې پیل شوې رېښې له پامه وغورځوي!

موږ د دا ډول اخیستنو ناسموالی او تېروتنه هغه وخت ولیده، چې د مازیار په نوم یوه ایراني جینیتیک د علم پوه د انگلستان په پورت سموث پوهنتون کې دا ثابته کړه، چې د افغانستان تاجکان د وینې او د ډي ان اې له اړخه په څو ځله ډېر نیږدې مشابهتونه د افغانستان له پښتنو قومونو او د هند د شمالي ساحې له خلکو سره لري، نظر د اوسني ایران له خلکو سره (د پلوس مجله وان د ۲۰۱۲ کال).

راځئ چې وگورو چې د فارسي دا نه ماتېدونکی مانع په څه ډول سره کولی شي جوړ شي. ؟

په طبیعي ډول سره دا د فارسي مانع یوازې د تیوریکو زیربیناوو او فکري اساساتو په منلو سره، او همدا راز د ایران د نیشنلېزم د موازینو په اساس کولی شي جوړ شي!

**دغه ایراني نیشنلېزم زېربناوې کومې دي ؟**

- په لوی ایران باندی عقیده لرل، چې په لوېدیځه برخه کې د سند تر رود پورې(ترکیې، دجلې او فرات) پورې او په ختیځ کې له ارال سمندر څخه، په شمال کې د عرب او فارس خلیج تر سمندر پورې یې اوږدوالی درلود.
- پر دې عقیده لرل چې دا لوی ایران د استعمار په واسطه له یو بله جدا او نوي هېوادونه د یاد هېواد د خلکو د پاځونونو په واسطه جوړ شول.
- په دې باور لرل، چې دا لوی ایران به بیا د تاجکستان، افغانستان او ایران هېوادونو په یووالي سره راژوندی شي
- د هېواد لرغوني تاریخ ته په کتو د اریانا د نوم له کارونې سره مخالفت کول، او د هغې پر ځای د لوی ایران د نوم د استعمال غوښتنه کول.
- عقیده لرل، چې د ایران فرهنگ د عربو،ترکانو او افغانانو له فرهنگ څخه، غوره فرهنگ دی
- عقیده په منلو او په رسمیت پېژندنې او استفاده له فارسي ژبې څخه او هغه هم په ایراني ستندرد لهجه کې او د ځانگړو ایراني لغاتو څخه په استفادې، د یوازېنی ملي ژبې په حیثیت

- له ایران هېواد سره د سیمې د پخوانیو ټولو ادبي، علمي، فرهنګي، هنري، سیاسي او نظامي څېرو نسبت ورکول.
- د عربي، ترکي، پښتو او داسې نور ژبو د اصطلاحاتو په زیاتونه سره د فارسي ژبې سوچه کول او د هغې پر ځای د عتیقه پهلوي ژبې د اصطلاحاتو څخه کار اخیستل.
- د لوی ایران او ایراني نیشنلېزم له لارې د سیمې د تېر تاریخ تفسیر او تشریح کول.
- په سیمه ییزو مسایلو کې د ایران هژمونیزم او فکري خط څخه پیروي کول.

کله چې دا ډول یو فکري او سیاسي چوکاټ په نظر کې ونیسو، د یوه خپلواک افغانستان د دولت جوړېدل د یو افغاني نیشنلیستي مفکورې سره نه یوازې دا چې د لوی ایران د نیشنلېزم ارمانونو سره په تضاد کې دي، بلکې د دوی د سیاسي اهدافو او ارمانونو د سرته رسولو په لار کې هم لوی خنډ واقع کېږي.

د لوی ایران فکري-سیاسي نیشنلېزم چوکاټ ته په پاملرنې سره دا واضیح کېږي، چې ولې د افغانستان ایران پرستانو:

- د افغانستان په نوم جوړ شوي هېواد د انګرېزانو تر استعمار لاندې بولي؛
- د امیر عبدالرحمن خان څخه مخکې د ابدالي امپراتوري، د معاصر افغانستان سره بی ارتباطه ګڼی.
- د افغانستان تاریخ بې اعتباره کوي
- د دې هېواد د تاریخي او سیاسي څېرو سپکاوی او توهین کوي، لکه میرویس نیکه، احمد شاه بابا، امیر عبدالرحمن خان، امیر امان الله خان او نورو.
- د ؛افغان؛ د ملیت سره مخالفت لري
- د افغانستان د ملت له شتون څخه انکار کوي.
- د پښتون قوم د سپکاوي سره، د دې هېواد دقومونو تر منځ د وروروليـ ننبه بولي.
- پښتون قوم ته، د یوه بې فرهنګه او قبیلوي قوم خطاب کوي.
- طالبان له پښتون قوم سره په یوه قطار کې برابر بولي، هر پښتون طالب پرسته او طالب بولي.
- دپښتنو د تاریخي، سیاسي او فرهنګي څېرو د بې اعتباره کولو کار یې پیل کړی.
- د دې هېواد د نفوس پېژندل شوي قومي جوړښت تر پوښتنې لاندې راولي.
- د دې هېواد ځمکنیـ بشپړتیا یې تر هدف لاندې نیولی.
- د غیرې پښتنو قومونو مشران ترغیب کوي، څو د موجوده امکاناتو څخه د ګټې اخستنې په صورت کې د بین المللي قوتونو په موجودیت او مرستې سره، په خپلو سیمو کې خود مختاري اعلان کړي.
- د ملي سمبولونو د بدلولو خبرې کوي
- د دري ژبې د نوم له استفادې څخه کرکه کوي، او غواړي فارسي ورته وویل شي.
- د افغانستان د ملي او اداري مروجو اصطلاحاتو د نومونو پر ځای غواړي، چې د ایران مروج اصطلاحات ترویج کړي
- هڅه کوي، چې د هېواد اساسي قانون بې اعتباره کړي.

- دا خاوره د ایران د ځمکې ختیځه برخه، او خپل ځانونه ایراني بولي.

وطني ایران پرستان په افغانستان کې د دې هېواد د تاریخ د نړولو د هڅو په سلسله کې، زموږ معاصر تاریخ یې په دوه دورو د احمد شاه ابدالي څخه بیا د امیر عبدالرحمن خان د امارت تر پیله پورې او له هغې څخه ورسته یې وېشلی دی.

ولې؟ که چېرته د افغانستان تاریخ د احمد شاه ابدالي له زمانې څخه قبول کړي، په هغه وخت کې بیا نشي کولی چې ووایي، د افغانستان دولت او هېواد د انګلستان د استعمار له وجهی د ایران له وجوده بېل شو! د دې لپاره چې په ۱۷۴۷ز کال کې کله چې احمد شاه ابدالي په دغه هېواد کې یو خپلواک دولت اعلان کړ، نو په دې وخت کې په هندوستان کې د انګلستان استعمار بشپړ شکل نه وو نیولی.

په دې وروستیو کې د افغانستان د هېواد، د افغانستان د دولت او د افغانستان د ملت په خاص ډول بیا د دښمنانو او د افغانستان د دولت د مخالفینو لخوا له غرض نه ډکې پوښتنې وړاندې کېږي. په دې برخه کې کوښښ کېږي څو دا ډول پوښتنو ته له استدلال سره سم، ځوابونه ورکړل شي.

- ایا دا ادعا چې د افغانستان سیاسي هویت له استعمار څخه شکل اخیستی او د انګلستان او روسیی د امپراتوریو ترمنځ د رقابت له امله د افغانستان دولت رامنځ ته شوی. واقعیت دی؟
- ایا د افغانستان جغرافیایي موقعیت، د تزاري او برېتانوي هند د امپراتوریو تر منځ د دې هېواد د طبیعي حایل ګرځېدو سبب شو. او یا هم ددې دوه قدرتونو سیاستونه؟
- ایا د افغانستان نوم، د جز نوم په کل اېښودل دي، که د انګلستان د استعمار ګرو لخوا د دې هېواد او د افغانستان پر دولت اېښودل شوی دی. ؟

له څو کلونو راپدېخوا یو څو نوي سیاسي ډکتورین ( د سیاسي تفکر تګلاره)، په خاص ډول سره د تاجک او هزاره قومونو د سیاسي مشرانو او فعالینو په منځ کې، منځ ته راغلي. دا د سیاسي تفکر لاره د ۲۰۱۴ز کال د جمهوري ریاست په ټاکنو په شاه لید کې، په خاص ډول سره د هغې څخه یې وروسته د هېواد د راجستر شویو رسنیو او انټرنیټي رسنیو یا سوشیل میډیا لخوا چې سیاسي ډلو پورې تړلې او یا یې پلوي وو، چې د شورای نظار شاوخواته راټول شوي، په پراخه توګه لیدل کیده او شایع شوي دي. په دې ډلو کې اسلامي جمعیت، د پرچم د ډلې حزب ډیموکراتیک خلق،کسان، غړي او پلویان د افغانستان د زیارکښو د سیاسي انقلابي سازمان (سازا) دي، چې په ټولنه کې د ؛ستم ملي د ګوند؛په نوم پېژندل کېدل، په غیرې پښتنو سیمو کې یې د خود مختاری تبلیغ کولو او د هزاره د سیاسي فعالینو له ډلې څخه دي. په حقیقت کې د دې تبلیغاتو څخه موخه، هغه ادعاګانو ته دې چې هغه سیاسي او پښتون نسشنلیزم هویت ته یې چړې نیولې دي، د تاریخي، ټولنیزو او سیاسي ستنو ورکول دي، کوم چې دوی یې د افغانستان د دولت په وجود کې سمبولونهویني، دي.

د کندوز ښار له سقوط څخه وروسته د طالبانو لاسته لوېدل، لطیف پدرام په یو ټلویزیوني مرکه کې داسې ښکاره کړه، چې افغانستان باید په راډیکال ډول سره بدل کړو او د نړیوالو یا بین المللي قوتونو له موجودیت څخه په استفادې، ملي سمبولونه مات کړو. د افغانستان د دولت جوړښتونه مات کړو، محلي ځواکونوې منځ ته راوړو او په غیرې پښتون سیمو کې د خود مختاری اعلان وکړو. پدرام داسې وایې چې په دې هېواد کې ؛ملي ستم ؛ موجود دی، د ملي انحصار غوښتنه موجوده ده او ملي نسل وژنه یا جینوساید موجود دی، او د یو خاص قوم د نفوس د راوستلو په واسطه، غواړي د غیرې پښتون ولایتونو د نفوس جوړښت ته تغیر ورکړي او نسل یې له منځه یوسي. احمد شاه مسعود هم ویلي وو، چې قدرت په افغانستان کې په تېرو دوه یا درې سوه کاله کې قبیلوي، کورنی او ظالمانه دی او اوس خلک مسلح دي او موږ هېڅ وخت نه غواړو چې لکه د تېر په څېر ژوند وکړو. ده وویل د انګرېزانو او د روسیې د امپراتوریو رقابت د حایل دولت د جوړېدو سبب شو، چې نوم یې افغانستان کېښود.

د مبلغینو له نظر، د تفکر دا سیاسي طرز، د افغانستان موجوده جګړه یوه خوا د پښتنو قومونو ترمنځ، او بله خوا د تاجک او هزاره ګانو لخوا تر سره کېږي. دا هغه نظر دی، چې د پاکستان پخواني جمهور رییس پرویز مشرف به تبلیغ کاوه، او د هغې په اساس یې امریکا او انګلستان دواړه پر دې قانع کړل، چې طالبان دښمن و نه بولي. د مبلغینو لپاره دا سیاسي تفکر چې ټول پښتانه د طالبانو پلویان دي،په دولت کې ټول پښتانه رهبران طالب پرسته دي. له پښتنو څخه حمایت کول د طالبانو د حمایت سره مساوي دي. مبلغینو دا سیاسي تفکر او لیدلوری د ؛افغان؛ ملیت په تعریف د هېواد په اساسي قانون کې، چې د هېواد ټولو قومونو ورونه پکې دخیل دي، عقیده نه لري. د افغانستان د ملت له شتون څخه انکار کوي او خپل ځان افغان نه بولي.

هغه څه چې دا تبلیغ کوونکي یې له یاده باسي، هغه دا دي، چې د طالب له لاسه پښتنو ډېره زیات زیان لیدلی دی. که چېرته پښتون قومونو له طالبانو څخه ملاتړ کولی، په افغانستان کې به جګړې له یوې میاشتې څخه زیات وخت نه وو نیولی، لکه په ۱۹۹۶ز کال کې، مګر له نېکمرغه پښتون قوم د یوې واحدې کتلې په توګه له طالبانو څخه ملاتړ نه کوي. د افغانستان امنیتي نقشې ته په کتو سره داسې ښکاري، چې د طالبانو نفوذ د پښتون مېشتو په ختیځ او جنوب ختیځ ولایتونو کې، پرته له هلمند څخه چې د تریاکو د تولید او د نظامي عملیاتو د تمویل یو عمده فکتور یادېږي، د هېواد د نورو نقطو سره داسې خاص اختلاف نه لري.

**د افغانستان د اوسېدونکو د ملي هویت د بې اعتباره کولو هڅې**

دا ادعاوې کېږي چې د افغانستان د قومونو خپلواک هویتونه، د پښتون په هویت کې مدغم شوي. دا یو دروغ او هسې ادعا ده. په ټولو دورو کې د افغانستان د تابعیت په تذکره کې د هر شخص قومي هویت په څرګند او مشخصه توګه لیکل شوی. پښتون پښتون،هزاره هزاره او تاجک تاجک وو.دا چې په اساسي قانون کې د افغانستان د ټولو خلکو ملي هویت یا اوسېدونکی (سیتیزنشپ) ؛افغان؛ کوي، چې دا کاملا د ټولې نړی له هغه هېوادونو سره چې نوم یې قومي دود لري، یو طبیعي امر دی. د ترکیې یوه تابعیت لرونکي ته ؛تُرک یا تورکش؛ خطاب کېږي، یوه روسي ته ؛روسی؛.تبعه، تاجکستان ؛تاجک؛ دي او یوه جرمني تبعه ته ؛جرمن؛ ویل کېږي. که د چا له ؛افغان؛ کلمې څخه بد راځي او نه یې

خوښېږي، هغه به د ده بده مرغي ده، چې په افغانستان کې زېږېدلی دی. دا هېڅ چاره نه لري او بله هېڅ کلمه نشي کولی د دې ځای ونیسي. د نامانوس، نامناسب او غلط ؛افغانستاني؛ اصطلاح چې د افغانستان ځینې هزاره ګان یې کاروي، د فرهنګي هجوم او جګړې په مثابه د هویت د غلا په توګه د لومړي ځل لپاره د یوه ایراني چنګېز پهلوان لخوا؛د افغانستان معاصر شاعران؛ په نوم کتاب کې یې کارولې ده.

په دې وروستیو کې، په خاص ډول ځینې هزاره ګان چې له ایران څخه بېرته راغلي دي، د ناسمې ترکیبي اصطلاح ؛افغانستاني؛ څخه د افغان پر ځای کارول کېږي. په دې اړه سیف الله فاضل په ټولنیزو رسنیو کې یوه مقاله خپره کړې، چې د هغې دلته راوړل کټور تمامېږي. نوموړی لیکي: ؛ د (نسبي ی) د افغان کلیمې سره د ویلو اطلاق ورکول، د ژبې د قوانینو او دستوراتو تابع دي ؛افغاني؛ یانې هر هغه شی چې د ؛افغان؛ سره نسبت ولري. مګر د ؛اشخاصو؛ نسبت ورکول د افغان له کلمې سره، ناسمه ده، ځکه پخوا یو خاص اسم وو او فاعلي صفت لري. د (نسبتي ی)له پیوند څخه د ؛افغانستان؛ له کلمې سره ؛افغانستاني؛ لغت لاسته راځي، چې هغه هم د ؛ځېزونو؛ په مانا دی او افغانستان ته نسبت لري. له هغه ځایه چې (افغان +استان) کلمه د افغانستان هېواد په مانا ده او د افغانانو هېواد ته د دریم شخص نسبت ورکول هغه ته؛مهاجر؛ویل کېږي. په بل عبارت:افغانستاني هغه څوک دي چې له ؛ بهر څخه؛ د افغانستان له داخلي خاورې سره نسبت ولري. یانې دا هېواد په اصل کې د افغانانو دی،مګر زه ؛افغانستاني؛یم، ځکه افغان نه یم، بله چاره نشته، نو د دې خلکو سره نسبت لري او د دوی د هېواد سره په نسبت لرلو اعتراف او اکتفا کوم.؛

نوموړی دوام ورکوي او لیکي: ؛د هویت په اړوند... د مثال په توګه:۱- شخصي یا فردي هویت:حمید ۲- کورنی هویت: عیار ۳- سیمه ییز هویت: مثلا نوی ښار ۴- ښاري هویت:مثلا کابلی ۵- سمتي هویت:مثلا شمالي – قومي هویت:تاجک ۷- ملي هویت:افغان (جغرافیه یو محور دی، چې د بېلابېلو دینونو، مذهبونو او قومونو څخه جوړ دی او په یوه جغرافیایي سیمه کې یو له بل سره یو ځای ګډ ژوند کوي) ۱۰- نژادي هویت: ؛سپین پوستي؛، ۱۱- طبیعي هویت:انسان.؛

په دی اړه ښاغلي جالل بایاني چې یو څېړونکی دی، په لراوبر وېبپاڼه کې د ۲۰۱۵کال د اګست میاشتې په ۲۵ نېټه داسې لیکي:؛د افغان نوم ډېر لرغونی څو زره کلن نوم دی، چې په تاریخي معتبرو او مهمو منابعو کې لکه الکامل ابن اثیر،بیهقي تاریخ، یمني تاریخ او حدود العالم او د بطلیموس په لیکنو کې راغلی او په خاص ډول سره د ابن بطوطه په سفرنامه کې په کراتو ذکر شوی، دا په داسې حال کې ده چې په همدې منابعو کې هېڅ د ایران په نوم د کوم هېواد نوم نه دی ذکر شوی.؛

په دې اساس، لکه څرنګه چې ګورو دا کاملا یو طبیعي امر دی، چې د ابدالي د امپراتورۍ د جوړېدو څخه وروسته، په خراسان، سیستان،کابلستان، ترکستان، غرجستان، او نورو هېوادونو کې، چې اکثره یې د افغان امپراتورۍ اوسېدونکي افغانان بولي، په تدریجي ډول سره د افغانستان له نوم څخه ګټه اخیستل ددې سبب شول، چې د عامو خلکو تر منځ دا نوم ډېر عام شو او په رسمي نوم باندې بدل شو. په داسې حال کې ددې خاورې هېڅ یوه واکمن دا ډول نوم د خپل هېواد لپاره نه وو ټاکلی

## له نورو سره د افغانستان ملي وحدت پرتله کول

راځئ چې په تېرو درې سوه کلونو کې افغانستان د ایران له هېواد سره مقایسه کړو:

د تېرو درې سوه کلونو په اوږدو کې په ایران کې صفویانو، افشاریانو، زندیانو، قاجاریانو، بختیاریانو سلطنت کړی او د هر یو په کار راتلو سره سم ټول د پخوانی سلطنتي کورنی غړي له تیغه تېر کړي دي!

په داسې حال کې، چې په افغانستان کې بیا تر نن ورځې پورې په معکوس ډول سره پرته له څو محدودو کلونو څخه د دولت واک د میرویس خان او احمد شاه ابدالي له وارثینو سره وو او پرته له څو محدودو کسانو څخه یې د تېرو رهبري کورنیو غړي یې ووژل.

په ایران کې د تېرو درې سوه کلونو په اوږدو کې غیرې ؛فارسي؛ هویتونه له فرهنګي اړخه په چټکۍ سره ځپل شوي دي. نن ورځ په ایران کې قومي هویتونه لکه تُرکي، عرب، کُرد او داسې نور قومونو هېڅ رسمي او فرهنګي جنبه او موجودیت نه لري.

په داسې حال کې چې په افغانستان کې په تېرو درې سوه کلونو کې سربېره پر دې چې پښتنو قومونو په رسمي ډول سره واک او حاکمیت درلود، خو دري ژبه په هېواد کې د قومونو د رانیږدې کېدو په توګه په رسمي ډول حاکمه وه او پښتو په نور قومونو باندې نه ده تحمیل شوې.

ځینې وايي په افغانستان کې اتنیکي یا اصلی هویت د هغې په اروپایي مفهوم سره موجود نه دي. یانې د دې مانا څه ده؟ د اروپا په هر هېواد کې اتنیکونه یا مختلف قومونه ژوند کوي. په انګلستان کې انګلیسان، سکاټلنډیان، ویلش او اریش خلګ ژوند کوي، چې هر یو یې د فرهنګ له لحاظه خپله تېره تاریخچه لري او په افغانستان د فرهنګي تنوع له نظره له پښتون،تاجک،هزاره او اوزبیک سره هېڅ توپیر نه لري. په همدې ډول سره بلجیم، سویس، هسپانیه او نور ....

جالبه ده چې په افغانستان کې د دریو سوو کلونو په ترڅ کې کوم جدي جدایي غوښتونکی غورځنګ نه و موجود، په داسې حال کې چې د تېر کال په اوږدو کې په انګلستان کې، سکاټلند د جدا کېدو په خاطر ریفورندوم وکړ او همدا راز په هسپانیه کې باسک او کاتالونیا خپله خپلواکي غواړي.

اوس ځینې داسې وايي چې په افغانستان کې ملت نه دی جوړ شوی، په داسې حال کې چې جوړ شوی او د زمان او وخت ازموینه یې هم ورکړې او بریالی ترې را وتلي دي. له بده مرغه چې دا شان خلک خبر نه دي او یا هم نشي کولی چې ویې مني.

د دې هېواد د قومونو ګټې له موجوده ټولو اختلافاتو سره سره د دوی په ملي یوالي کې دي او درې سوه کاله وروسته به هم افغانستان وي او هم به همدا قومونه.

تاريخ د دې شاهد دی، چې پر دغه هېواد د پردیو یرغل په ترخ کې، د دې هېواد ټول ملیتونه که هغه پښتانه او غیر پښتانه دي سره یو زړه او یو موټی کړي او له یو بل سره یو ځای یې د خپل کډ کور افغانستان د خپلواکۍ څخه دفاع کړې ده. له بده مرغه چې نفاق اچونکي سیاستونه په خاص ډول سره بیا د جهادیانو او طالبانو په وخت کې، د هېواد د قومونو د یووالي څخه یې مخنیوی وکړ او اجازه یې ورنکړه چې د د قومونو د تکامل په برخه کې په ګډو ګټو سره یو واحد ملت رامنځ ته کړي.

د فېسبوکي ملګرو څخه یو، ښاغلی فرید بهمن داسې لیکي:؛ ډېر مبارزین او پیاوړي نارینه / ښځې د دولت د شکل اخیستو له دوران څخه دولت – افغانستان ملت - او مډرن سیاسي جوړښتونه تر نن ورځې په دې خاوره او سرحدونو کې چې نوم یې په نړیواله کچه پېژندل شوی دی. – ښه او که بد ـ تېر شوي دي اما هېڅ یوه هم نه دي ویلي چې ؛زه افغان نه یم؛ : لومړی او دویم مشروطه غوښتونکو، د عصري کېدو د غوښتنې د دوران مبارزه کوونکي د اماني، د نادري استبداد پر وړاندې مبارزه کوونکي، د هاشم خاني د استبداد ضد مبارزه کوونکي، فرهنګیان،هنرمندان، پوه او پېژندل شوي کسان، بیروکراتانو، دحزبونو مشران او د کودتا کوونکي تنظیمونو مشران، جهادي مبارزه کوونکي: ببرک، سلطان علي کشتمند، فرید مزدک، دستګیر پنجشیري، رباني، مسعود، دوستم، بدخشي، باعث، مزاري، اکبري، خلیلي، محقق، عبدالله، فهیم او داسې نور هېڅ یوه نه دي ویلي چې ؛زه افغان نه یم.

یوازې لطیف پدرام او د ده په څېر عناصر او د جمهوریت ټبره، نفرت لرونکي هزاره ګان د ؛زه افغان نه یم؛ پر کلمې ازغي وهي.او پاتې احساساتي او د کمې مطالعې لرونکي ځوانان، چې له تاریخي دینامیزم څخه نا خبره دي، صرف په مجازي رسنیو کې د خپل ؛حضور؛ په ښکاره کولو باندې ؛زه افغان نه یم؛ استعمالوي.د دې فاجعه جوړونکو تورو په منځ کې هغه پښتانه، هزاره ګان او تاجکان، چې د مافیایي قدرت او د طالبانیزم په خدمت کې دي د دوی د تبر لاستی پیدا کوي.؛

## د افغانستان د تاریخ د بیا کتنې هڅه

ایرانیان تر دا مهاله له ایران څخه د افغانستان بېلېدل په ډېر حسرت سره یادوي. او هېڅ ایراني مې نه یادېږي، چې افغانستان یې د ایران د وجود څخه یو بېل شوی غړی بللی وي. زموږ د وطني ایران پرستو خصومت له میرویس نیکه او احمد شاه ابدالي د افغانستان له بنسټ اېښودونکو سره هم په همدغه حسرت کې نغښتی دی. وطني ایران پالونکي زموږ د ملي شخصیتونو، چې یوه برخه ملي سمبولونو تشکیلوي په توهین او تحقیر لاس پورې کوي. په دې وروستیو کې یې داسې دروغ خپاره کړي، چې میرویس خان پښتون نه وو او پرله پسې یې په هندوستان او فارس کې د هوتکي او ابدالي دولتونو څخه د نړۍ د خلاصون په موخه نیوکې کولې.

ایراني نیشنلېسته ژورنالیستان، اوسنی افغانستان د ختیځ لوی ایران په قلمرو کې بولي او په نولسمه پېړۍ کې د افغانستان خپلواک دولت او هېواد موجودیت د انګلیسانو د استعماري بازیو څخه رامنځ ته شوی ګڼي او باور پرې لري چې افغانستان په ۱۸۵۷ز کال کې د پاریس د تړون له لاسلیک څخه وروسته چې د انګلستان او د فارس د قاجاریانو

د دولت په منځ کې وه، د ایران له وجوده بېل شو، نو ځکه انګلیسانو د دې تړون په لاسلیک سره د فارس له دولت څخه تعهد واخیست چې دافغانسان په ارضي تمامیت باندې به له هر ډول دعوې څخه تیرېږی او خپلواکي به یې په رسمیت پېژني.

حقیقت دا دی چې ۱۱۰ کاله پخوا د فارس دولت په ۱۸۵۷ ز کال کې خپل واک د افغانستان په سیمو کې له لاسه ورکړی وو او په خپلواک ډول سره دا هېواد د خپلو بومي دولتونو لخوا اداره کیده. پر دې هېواد د انګلستان استعماری دولت هېڅ نفوذ نه درلود او په حقیقت کې د انګرېزانو لومړنی اقدام د دې هېواد تر واک لاندې راوستولو په موخه په ۱۸۳۸-۱۸۴۲ز کال کې چې د لومړۍ افغان او انګلیس جګړې په نوم مشهوره ده، له شرمونکي ماتی سره مخ شو او یوازې یو انګلیسي افسر د ډاکټر برایډن په نوم له هېواد څخه ژوندی لاړ.

دا چې انګرېزانو هڅه کوله ۲۰ کاله وروسته د ایرانیانو لاس له افغانستان څخه لرې وساتي. دا په نړۍ کې د تزاري روسیې د څرګندو پلانونو په اساس د نګرانیو څخه دي، چې د فارس د دولت سره یې په همکارۍ هڅه وکړه، څو د هرات ښار اشغال کړي او خپل ځان د برتانیوي هند سرحداتو نېږدې سیمو ته ورسوي. فارسیانو له یوې کلنۍ کلابندی څخه وروسته ونشوای کړی، چې د هرات ښار فتحه کړي او شا تګ ته مجبور شول. او په دې ترڅ کې یې د بوشهر په ښار باندې د انګرېزانو د دریو کښتیو لخوا تر سره شوی یرغل یې د خپلې ماتې بهانه جوړه کړه. انګلیسانو په هغه وخت کې د افغانستان پر دولت هېڅ نفوذ نه درلود.

په افغانستان کې ایران پرسته عناصر هڅې کوي، چې د افغانستان تاریخ په ایراني اخځ پلی کړي. په دې خاطر د افغانستان دولت د انګلیس د استعمار څخه جوړ او د هغې پایله بولي.او د هغې جوړېدل په نولسمه پېړۍ کې د سرحدونو په تثبیت، چې د انګلیسانو په حاکمیت کې د امیر عبدالرحمن خان د دولت په وخت کې شوي دي. ارتباط ورکړي. په دې ترتیب سره افغان ایران پرستو لخوا هوتکي او ابدالي امپراتورۍ او دولتونه ټول له پامه غورځوي، ځکه چې د افغانستان د تاریخ پیل ۱۷۰۹ یا ۱۷۴۷ دی. په هغه صورت کې د استعمار تیوري او د استعمار نقش د خپلواک افغانستان د دولت په جوړېدو کې باطل ګرځوي، ځکه په هغه کلونو کې تر هغې د برېټانیا استعمار پر هندوستان بشپړ شکل نه وو نیولی.

یو له هغه کسانو څخه چې د افغانستان د تاریخ په څېړنه کې، دایراني نیشنلېزم څخه د شاه لید په توګه عمل کوي،د مجیب الرحمن رحیمي په نوم دی، چې د ۲۰۱۳ ز کال څخه راپدیخو د عبدالله عبدالله د ویاند په توګه کار کوي. مجیب رحیمي ادعا کوي، چې د انګلستان او روسیې امپراتوریو ترمنځ رقابت ددې سبب کېږیو چې یو حایل دولت جوړ شي، چې نوم یې پرې افغانستان کېښود. ایا دا سم اخځ دی؟ نه، په هېڅ وجه سم نه دی. دغه انځور ته پاملرنه وکړئ:

**نهم چارټ: د سمرقند د ښار بالاحصار باندی په ۱۸۷۸ز کال کې د تزاري روسیې د عسکرو لخوا تر برید**



Защита Самаркандской цитадели. Рис. Н. Каразина, грав. Л. Матюшина.

په دغه انځور کې د سمرقند د ښار بالاحصار ښکاره شوی دی، چې په ۱۸۷۸ز کال کې د تزاري روسیې د عسکرو لخوا تر برید لاندې راغی او ښار د روسانو لاسته ولوېد. ۱۸۶۷ز کال یانې پوره ۵۹ کاله وروسته افغانستان ته د مونت ستوارت الفنستون سفر کول. افغانستان ته د الفنستون د سفر په وخت کې، تر هغې روسانو په منځنۍ اسیا باندې یرغل نه و کړی. تر هغې د بخارا حکومت په قدرت کې وو او د افغان دولتونو سره یې دوستانه اړیکې درلودې. باید یادونه وکړو، چې په هغه وخت کې دا روسیه نه وه، چې د انګلیسانو د نفوذ لپاره په هند کې خطر رامنځ ته کړی شي، مګر د انګلستان اصلی رقیب هغه وخت،فرانسه وه.

ښاغلی رحیمي په ډېره ارامۍ سره دا هېروي، چې په کال ۱۸۰۹ ز کې د مونت سورات الفنستون سفر کابل ته، په حقیقت کې د یوه مقتدر پاچا دربار ته سفر وو، چې د قلمرو په توابعو کې یې په شمال کې ترکستان، په لوېدیځ کې فارس او هندوستان شامل وو. د الفنستون د کتاب نوم ته په دې برخه کې پاملرنه وکړئ (د کابل سلطنت بیان او په فارس کې یې توابع، تاتاري او هندوستان،د لندن چاپ، ۱۸۴۲م). دا پاچاهي، چې په هر نوم او رسم سره یادېده، له اقتدار څخه یو ډک دولت وو، او انګرېزانو غوښتل، چې د هغې ملاتړ د ایران او افغانستان له لارې د فرانسې د احتمالي برید د خطر پاملرنه هند ته واړوي. دا ډول تړون، لکه دمخه مو چې ولیدل اته کاله وړاندې له دې قاجاري ایران پاچا هم لاسلیک کړی وو. د الفنستون د سفر یو بله موخه دا وه، چې په دقیق ډول سره ددې پاچاهی تر قلمرو لاندې د

سرحدونو او حدودو نقشه واخلي. تر قومیت لاندې د دې قومي پاچاهۍ تر قلمرو لاندې د دقیقو حدودو او سرحدونه نقشه وباسي.

باید په یاد ولرو چې په هغه وخت کې لا د مغولو د امپراتورۍ نښې او نښانې د هند په شمال کې ځای پر ځای وې، د انگلیستان دولت لا په رسمي توگه د هند د واکدارۍ کارونه په خپل اختیار کې نه وو نیولي. یوازې د ختیځ هند په بنگال، مدراس او بمبي کې یې د انگلستان گټو ته پراختیا ورکوله. کابل ته د الفنستون د سفر څخه پوره پنځوس کاله وروسته، ډهلی (د مغولو د امپراتورۍ مرکز) د انگرېزانو لاسته لوېږي.

الفنستون د اروپایي تعامل په اساس، چې دولتونه یې د پلازمېنې په نوم یادوي، په مثال د لندن چې داسې یې وویل او واشنگټن داسې اقدام وکړ، خپل د کتاب نوم یې (د کابل د حکومت گذارش او په فارس کې د توابع، تارتاري او هندوستان؛ ایږدي، په داسې حال کې چې د کتاب په هر پاڼه کې د افغانستان نوم په څو ځله ذکر شویدی، لکه د افغانستان سیند، د افغانستان غرونه، د افغانستان نفوس او قومونه، د افغانستان څلور اړخیزه حدود او داسې نور ....

مگر ښاغلی رحیمي یوازې د کتاب عنوان د خپلې ادعا د ثابتولو په موخه کافي گڼي. د انگلستان حکومت الفنسټون د افغان پاچا دربار ته ؛چې د کشمېر او پنجاب څخه تر نیشاپور او د امو له سیند یا جیحون څخه د عُمان تر سمندر پورې سیمې یې تر خپل قلمرو او نفوذ لاندې وې، له درې سوه تشریفاتي عسکرو او د درناوي گارد او په لسگونو تاریخ لیکونکي، د جغرافیې عالمان، نقشه ایستونکي، د بوټو کارپوهان،د کرنې کارپوهان، خلک پېژندونکي او نورو سره لېږلی وو.

دې دولت شته و او په هر هغه نوم چې په هغه وخت کې یادېدو، هغه هېڅ عملي ارزښت نه درلود. انگرېزانو د خپل نفوذ د توسعې پر وړاندې په هندوستان کې دغه دولت خطرناک بللو او دا ارزو یې درلوده څو د دې دولت له قدرت څخه پر هندوستان د فرانسویانو د احتمالي برید په صورت کې د خپلې نفعې په توگه ترې گټه واخلي. په دې خاطر شاه شجاع ته د لازم احترام په ښودلو سره، یې غوښتل چې د هغه له دولت سره ښې او دوستانه اړیکې ټینگې کړي.

ښاغلی رحیمي د الفنسټون کتاب د شاه شجاع د تړون په نوم قبلوي. دا په بشپړ توگه اشتباه ده. د الفنسټون کتاب، کابل ته د هغه له سفر څخه ۳٦ کاله وروسته چاپ شو (۱۸۴۲م) او یو علمي تحقیقي کتاب دی او د انتروپولوژي یا د خلکو د پېژندنې پر بنسټ ولاړ دی، چې په هغې کې خلک، قومونه، دولت، د اب او هوا څرنگوالی، کرنیز پیداوار، نفوس، جغرافیه، غرونه، لارې او د هېواد نور مشخصات پکې شامل دي او ضروري معلومات په دې برخه کې د تحقیقي استازو د غړو په واسطه په مفصل ډول سره په ټول هېواد کې د یوه کال په موده کې سره راټول شول او د ډېرو لومړیو رفرینسونو یا موخذو څخه هم استفاده پکې شوې ده.

له شاه شجاع سره د الفنسټون تړون بل سند دی، چې د فرانسویانو لخوا د احتمالي خطر د مخنیوي په هکله دی، مگر دا تړون د اجراتو څخه د مخه، د خپل ورور په واسطه د کابل له دربار څخه د شاه شجاع په لرې کولو سره له منځه لاړ.

کله چې د کابل د حکومت گزارش او د هغه د توابع په فارس،تارتاري او هندوستان، د لندن چاپ، ۱۸۴۲م) په کتاب کې لولئ، تعجب کوئ چې ایا ښاغلی مجیب رحیمي دا کتاب لوستی او که نه او یا صرف د کتاب د پوښ د عنوان یا نوم څخه یې د افغان امپراتورۍ د ذلیل کولو په خاطر خوښ شوی او په هغه یې اکتفا کړې؟

ښاغلی مجیب رحیمي داسې ادعا کوي چې الفنسټون په خپل دا سفر کې یوازې او یوازې د افغانانو د مطالعې علاقمندي درلوده، په دې مانا چې د دې په پوهه پښتنانه دي او هغوی یې تر مطالعې لاندې نیولي دی. دا یوه کاملا ناسمه ادعا ده. الفنسټون د کتاب په دولسم فصل کې له ۱۳ پاڼو څخه زیات د افغانستان د تاجکانو د مفصلې مطالعې لپاره ځانگړې کړې، چې په هغه کې د کوهستان تاجکان، بره گي او فرمولیانو په تفصیل سره معرفي شوي. په همدې توگه په دې کتاب کې د افغانستان هزاره گان او اوزبیکان معرفي شوي دي. .

مجیب رحمي وایي: ؛الفنسټون ولیدل چې افغانان د خپل هېواد لپاره خاص نوم نه لري او بعضې خلک هغه ته خراسان وایي.دا خلک د کابل له سوېل څخه د سند سیند پورې مېشته وو او زه یې هېواد ته د افغانستان نوم ورکوم؛. دا د الفنسټون څخه یو غلط نقل قول دی. الفنسټون په خپل کتاب کې لیکي ؛افغانان د خپل هېواد لپاره مشخص نوم نه لري. ځینې ورته خراسان وایي، ځینې افغانستان او بیا ځینې پښتونخوا. خراسان درست نوم نه دی، ځکه چې ډېر کمه برخه یې ددې هېواد په قلمرو کې راځي. پښتونخوا هم ما پخپلو غوږونو نه د اورېدلی.؛ الفنسټون د هېڅ کوم نوم پیشنهاد نه کوي، مگر په ټول کتاب کې د کابل د شاه تر حاکمیت لاندې ټولو سیمو ته د جورج فورسټر له قوله چې ۲۶ کاله د مخه په( ۱۷۸۲-۱۷۸۳م )کلونو کې یې دې هېواد ته سفر کړی وو ؛افغانستان؛ وایي. الفنسټون د خپل کتاب په هر فصل کې، د افغانستان له نوم څخه کار اخلي.

مجیب الرحمن وایي:؛د افغانستان نوم د سیمې څخه اخیستل شوی چې اوس د نننی افغانستان د سیاسي هویت له سرحداتو څخه دباندې دی. نوموړی وایي چې دا د جز نوم اېښودل پر کل باندی دی. ؛ ایا دا ادعاگانې حقیقت لري؟ نه! جورج فورسټر چې انگرېزی وو او د تیمورشاه په وخت کې کابل، کندهار او هرات ته یې سفر وکړ. په خپل کتاب کې د افغانستان د دولت سیمو پورې هغه سیمې شاملوي چې په هغوی کې د جمعې د لمانځه په وخت کې د تیموشاه په نوم خطبه ویل کیده.

انگلیسي جورج فورسټر د ۱۷۸۲-۱۷۸۳ز کال یانې ۲۶ کاله د الفنسټون څخه د مخه د تیمورشاه د پاچاهی په وخت کې د کشمېر-کابل-کندهار-هرات-مشهد له لارې روسیې او لندن ته سفر وکړ. د دې د کتاب عنوان دی ؛ د شمالي هند، کشمېر، افغانستان،فارس او روسیې له لارې له بنگال څخه انگلستان ته سفر ؛.

نه یوازې دا چې د افغانستان نوم د جورج فورسټر د سفر نامې د کتاب په عنوان کې مشخص دی، مگر د کتاب په دننه کې په کراتو د افغانستان نوم لیکل شوي دی. جورج فوسټر لیکي ؛افغانان د هېواد بومي خلک دي، چې د تاتاري له غرونو څخه تر کامباي خلیج پورې (په هند کې د گجرات سره نیږدې دی)، د سند رود او فارس پورې اوږدوالی لري (جورج فورسټر،۷۴ ص، دویم جلد).؛ پام وکړئ چې فورسټر په دې ځای کې د دې هېواد ټول قومونه ؛افغانان؛ بولي او په بل ځای کې فورسټر داسې لیکي:؛نادر افشار د افغانانو د واکمنۍ څخه وروسته پر فارس شاه طهماسب صفوي بې

وسلې کوي او افغانستان ته له لوی لښکر سره داخل شو (جورج فورسټر، ۹۲ ص،دویم جلد)؛. دا نقل قول په دې خاطر مهم دی چې فورسټر د ؛افغانستان؛په نوم سیمه، د افغاني خراسان برخه حسابوي.

ایراني تاریخ لیکونکی محمود محمود په خپل کتاب(د ایران او انګرېزانو د سیاسي اړیکو تاریخ) کې د ایران د شاه قاجاري اعلامیه نشروي چې قاجاري شاه د هرات د محاصرې څخه د نه بریالی کېدو په صورت کې او د هرات د ابدالیانو څخه د نیولو په ترڅ کې یې د خپلو خلکو لپاره خپاره کړل او په هغې کې په واضح ډول سره د افغانستان له هېواد څخه نوم اخلي (د محمود محمود،د ایران او انګرېزانو ترمنځ د سیاسي اړیکو تاریخ کتاب ته پاملرنه وکړئ). اوس کولی شو دا ادعا وکړو، چې د ایران شاه ته انګلیسانو ویلي وو، چې د افغانانو ساحې ته ؛افغنستان وایه؟؛ واضیح دي چې داسې نه وو.

د توزک په بابرنامه کتاب کې لیکلي دي، چې د مغولي هند لومړي پاچاه ظهیر الدین محمد بابر هغه سیمې، چې هلته پښتانه ژوند کوي افغانستان نوملې او د هغه سیمې حدود د کابل له سوېل څخه د سند سیند پورې بولي. دا کتاب په ۱۵۳۰ز کال کې لیکل شوی او په هغه وخت کې لا انګلیسان پر هند حاکم شوي نه وو.

مهم مطلب دا دی، چې په اوسني شکل سره د هېوادونو نوم اېښودنه، د اروپایانو تعامل دی. ایا څوک کولی شي چې د سلطان محمود غزنوي هېواد په کوم نوم یادېدو؟ څوک کولی شي چې د غوریانو د هېواد نوم ووايي چې څه وو؟ تیموریانو ترخپل حاکمیت لاندې سیمو ته کوم نوم ورکړی وو؟ موږ تر نن پورې د بخارا له هېواد څخه یادونه کوو، په داسې حال کې چې بخارا د فرغانه او سمرقند په داخل کې یانې د قرغزستان، تاجکستان، ازبکستان او په اوسني ترکمنستان کې شامل دي.

کله چې بابر په کابل کې حکومت کولو د ده د حاکمیت سیمه له هرات څخه تر سند درې پورې او د امو د سیند څخه تر بلوچستان پورې وه. بابر دا هېواد ته کوم نوم ورکړی وو؟ په دې اساس له میرویس خان هوتک او له هغه څخه وروسته احمد شاه ابدالي د یو رسمي نوم اېښودل دده تر تسلط لاندې سیمو کې پرته له یوې غلطی څخه ډېر څه نه دي. د اروپایانو په مفهوم،دولت هغه دی، چې معلومه سیمه پکې وي، جغرافیایي محدودیت ولري د مشخص نوم او ملت لرونکی وي، په ختیځ کې دا یو ناشناخته اصل وو.

د احمد شاه ابدالي د واک سیمې، د نیشاپور په لوېدیځ کې تر پنجاب پورې، په ختیځ او د امو د سیند څخه تر عمان سمندر پورې پراخوالی درلود. په دې سیمو کې د خراسان سوېل ختیځ سیمې شاملې وې. شمالي برخې یې د ازبکانو د سیمو اړوند وې او لوېدیځ څانګې یې په افشاري ایران پورې تړلې وې او له هغې څخه وروسته په قاجاري ایران پوري. د افغانستان شمال، چې له فاریاب څخه تر بدخشان پورې اوږد وو،د تُرکستان په نوم مشهور وو، چې د افغانستان د دولت داستحکام څخه په وروسته کلونو کې د نړۍ په نقشو کې د افغاني تُرکستان په نوم موجود دی.

بابر په خپلو خاطراتو کې کابلستان له پنجشیر څخه تر لغمان،ننګرهار، پېښور او سوات یادوي. بابري افغانستان هم چې مخکې مو یادونه وکړه، چې د هندوکش له سوېل څخه تر سند سیند پورې د اوسني افغانستان ټولې غرنۍ ختیځ

ساحې او د اوسني پاکستان قبايلي سيمې وې. البته کشمېريان، پنجابيان، او سنديان هم د احمد شاه ابدالي د سيمو په دننه کې مېشت وو، مگر دا سيمې، له نفوس څخه ډکې حوزې وې.

پښتانه چې فارسيانو او عربو هغوی ته افغان نوم ورکړی وو او له هغوی څخه په تقليد به ترکانو، ازبکانو او مغولانو دوی ته افغان خطاب کولو او د دوی سيمو ته يې ؛افغانستان؛ نوم ورکولو، دوی د خپلو سيمو لپاره کوم خاص نوم نه درلود.د الفنستون د څېړنو پر بنسټ، چې دوی په لومړيو کې د غور په غرونو کې مېشت وو چې بيا ورو ورو نورو سيمو ته کډه شول او د افغانستان د دولت د جوړېدو په وخت کې د ميرويس خان هوتک او احمد شاه ابدالي په واسطه، د پښتنو ډېر نفوس په خراسان، سيستان«اوسنی فراه ولايت» او د هېواد په شمال د هندوکش په سوېل ختيځ سيمو کې هم مېشت وو. د صفويانو په وخت کې د هرات ابداليان او د دوی د حکومت قدرت په خراسان کې ټولو ته ښکاره دی. د ابداليانو ډېر شمېر په ملتان کې چې اوسنی پاکستان دی هم مېشت وو. د دې پراخوالي څخه پښتانه يا په بل قول افغانان د هېواد په څنډو مجيب رحيمي لکه چې اوريدلي مو دي،تاييدوي. الفنستون په خپل کتاب کې د شاه شجاع تر حاکميت لاندې سيمو کې په ۱۸۰۸ز کال کې د نفوس د متوسط شمېر پر بنسټ په يوه کيلو متر مربع کې اټکل کوي، چې د الفنستون په جدول کې ليدل کېږي (الفنستون، د کابل سلطنت بيان...، د لندن چاپ،۱۹۴۲م ۱۱۴ص). که اوس موږ کشمېريان، هنديان او سنديان چې د افغانانو د حاکميت څخه د باندې سيمو کې وو په نظر کې ونيسو، گورو چې د افغان پښتنو نفوس د نورو قومونو په پرتله په کراتو ډېر دی.

دا طبيعي ده، چې دولتونه د هغه قوم په نوم وي چې نفوس يې تر ټولو ډېر او حاکم قوم وي، نومول کېږي. درسته ده چې د ابدالي پاچاهانو سيمې په اول کې افغانستان نومېږي، اما دا نوم په طبيعي ډول سره په هغه سيمو کې چې د دوی تر قيموميت لاندې په رسميت پېژندل شوې او په رسمي اسنادو کې ښکاره کېږي.

د ؛ايران انگليس د سياسي اړيکو تاريخ ؛ په کتاب کې، محمود محمود ليکي چې تر ټولو لوی خطر د برېټانوي هند لپاره د ډهلي له نيولو څخه وروسته؛ افغانستان وو. د دې لپاره چې د هندوستان مهاراجاوي په کراتو د افغانستان له پاچاه څخه تقاضا کړې وه، چې د انگليسانو د تښتولو په خاطر پر دوی يرغل وکړي. د هندوستان مهاراجاگان دې ته حاضر وو چې د افغان اردو ټول مصارف د انگليس په مقابل کې په خپله غاړه واخلي. پر دې اساس د هنديانو دعوت وو چې شاه زمان افغان پر هند باندې لښکرې ويستې او په دولسو ورځو کې يې تر ډهلي ځان ورسوو، مگر انگليسانو د قاجار شاه دربار ته د يوه استازي په ليږلو سره، هغه يې په دې وادار کړ څو له لوېديځ څخه پر افغانستان باندی يرغل وکړي. شاه زمان مجبور شو چې بيا کندهار ته راستون شي.

دا چې افغانستان بيا وروسته په نولسمه پېړۍ کې د بخارا له اشغال څخه وروسته د تزاري روسيې په واسطه د برېټانوي هند تر سند سينده پورې پرمختگ او د اوسني افغانستان سرحدونه يې وروسته د ډېورنډ له تړون څخه، عملا د جغرافيوي جوړښت له اړخه د هغه وخت د انگليس امپراتوری او د ترازي روسيې ترمنځ په يوه حايل هېواد باندې بدل شوی دی. دا يوه بېله موضوع ده. په دا وخت کې د افغانستان دولت په تدريجي ډول سره ضعيف کېدو او

جغرافیوي حدود یې وړوکي او لانور وړوکي شوي دي. پنجده اخرینه سیمه وه چې له افغانستان څخه بېله کړل شوه او د تزاري روسیې په واسطه په ۱۸۸۵ ز کال کې اشغال شوه.

مهمه موضوع دا ده چې د افغانستان مقتدر دولت، په هر نوم چې یادېدو، د انګلیستان او تزاري روسیې ترمنځه The Greed of Gameد ؛لویې لوبی؛د پیل څخه وړاندې شته و او هغه افغانستان د برتانیوي هند لپاره خطر ګاڼه. افغانستان د دې لویې لوبې په اوږدو کې او په عملي ډول سره تر نن ورځې پورې د یو حایل هېواد تر عنوان لاندې پاتې دی. نن ورځ افغانستان د یو حایل هېواد د افراطي مذهبي نړیوالو ډلو تر منځ (جیش محمدي/ لښکر طیبه/طالبان/ د حقاني ډله/القاعده) چې په پاکستان کې شته، له یوې خوا څخه، او بلې خواته مو منځنۍ اسیا دي. له طالبانو سره د توافق په اړه د روسیې هڅو اړوند باید د همدې حایل اوسېدو موقف په نظر کې ونیسو.

## د یوه جعلي هویت پنځونه

په دې وروستیو وختونو کې ایراني مقاماتو قصد درلود، چې د پاچاهانو او پاچاهانو تاریخ د زده کړې له کتابونو څخه لرې کړي. چې دا یو ډېر با سنجشه اقدام دی.د سید محمد رضا علوي د لیکنو پر اساس (د سادات افغانستان انترنیتي سایټ):

د دې تیوري جوړونکي، په ډېر سم ډول سره متوجه شوي دي، چې د پاچاهانو لړۍ چې د ایران په تاریخ کې ثبت شوې ده همهغه ساساني، صفاري، ساماني، غزنوي، غوري، سلجوقي، تیموري، خوارزمشاهي، مغولي...دي. چې د دوی د یوه واکمني هم د اوسني ایران په جغرافیه کې نه وه او د ایران تاریخ نشي کولی دا ادعا وکړي، چې دا سلطان او هغه شاه او امیر، د تهران زوی،یا د یزد او اصفهان او کرمان وو. په دې اساس له دوی څخه صفت کول نه یوازې د دې هېواد لپاره د افتخار وړ نه دی، برعکس د احساس منځ ته راتګ هم کېدی شي. د اوسني ایران د تاریخ په اډانه کې دوه سلسلې خودنمایي کوي: یو، ارباب شوش او د جمشید تخت (چې دواړه یو دي) دوهم،د صفویه سلسله، چې دوی هم د قفقاز له لارې راغلي دي او د اوسني ایران په سیمه کې یې د دوو سلسلو په منځ کې حکومت جوړ کړی دی، ډېر اوږد مهاله بیلتون (۲۰۰۰ کاله) موجود دی چې د ؛دوه زره او پنځه سوه کاله شاهنشاهي؛ کیسه یې بې اعتباره کړې ده.

بیا هم وروسته له صفویه، نادر شاه افشار هم د اوسني ایران له قلمرو څخه نه دی، نادرافشار په ابیورد کې زېږېدلی، چې اوس مهال هغه په ازبکستان هېواد پورې اړوند دی. په فرهنګي چارو کې هم اوضاع همدې شکل ته ده. اکثریت، د هغه اشخاصو په اړوند، کوم چې ایران هغوی د خپلې خاورې بولي، هغوی د اوسني ایران له سرحداتو څخه د باندې کسان دي...د مثال په ډول مولوي بلخي، فارابي جوزجاني، ناصر خسرو بلخي قبادیاني، ابو علی سینا بلخي، رودکي سمرقندي،جامي هروي، ابومسلم انباري خراساني .....

په دې خاطر د فردوسي شاهنامه،د ایراني هویت سند چې په غزني کې وویل شو! د دې منظره، ایرانیان د افغانانو لسمیان دي. دا هېڅ تعارف او پرده پوښۍ ته ضرورت نه لري، له پخوا او اوس څخه، له زردښت بلخي څخه یې حساب کړی،

تر علامه طباطبايي او مرتضي مطهري... که دوی له اوسني ايران څخه واخلو، څه ورته پاتې کېږي؟ ووايی، يوازې حافظ او سعدي پاتې کېږي!؛

د ښاغلي خليل ولي د پوښتنی په ځواب کې په ايراني رسينو کې  لولو چې:؛هغه هېواد چې وروسته بيا د افغانستان په نوم شو، د لوی خراسان د ايالت يوه برخه وه چې افغاني قومونو پکې ژوند کولو او د ايران د تاريخ او فرهنگ يوه څانگه وه. د ۱۸۵۷ز کال د مارچ په ۴ د تړون په لاسليک سره په پاريس کې، ايران د افغانستان خپلواکي په رسميت وپېژنده او په دې ترتيب د انگليسانو اندېښنه د هندوستان له دفاع کولو څخه ختمه شوه(ليکونکی:محمود رضا جعفري، د پاريس تړون، له ايران څخه د افغانستان بشپړه جدايي،د ۱۸۵۷ز کال د مارچ ۴، د اسلامي انقلاب اسناد، د حوت  ۱۲ ۱۳۹۱)؛. افغانستان د هغه سيمو برخه بلل کېږي چې د تاريخ او د فرهنگ له نظره د ايران په سيمو کې شامل بلل کېږي او په ۱۸ او ۱۹ ز پېړيو کې،په تدريج سره د انگلستان حايل کوونکو سياستو په ترڅ کې د هند او گاونډيو ځمکو ترمنځ له ايران څخه تجزيه شول (يکشنبه د مېزان ۱۸ ۱۳۹۵، د فارس خبري رسنۍ)؛.

له بده مرغه پورتني د واقعيت څخه لرې اخيستنې د فارس د نيشنليستانو پواسطه، هغه افغانان چې په اوسني ايران کې يې زده کړې کړې دي، يا په قومي، ژبني، فرهنگي، سياسي يا مذهبي  دلايلو، خپل ځانونه د فارس تاريخ ته نيږدې بولي، هم تکرارېږي. دا کسان په ناپوهۍ  سره د خپلو خلکو  ټول تاريخي، فرهنگي  او ژبني وياړونه په دواړه لاسونو پرديو ته  وړاندې کوي. په دې مقاله کې  دا موضوع د تاريخي معتبرو منابعو څخه په استفاده تر کتنې لاندې  نيول کېږي. په تاريخ کې داسې ولولو چې:

محمود محمود د ايران او انگليس د سياسي اړيکو د تاريخ په کتاب کې ليکي چې : ؛زمانشاه د تيمورشاه زوی د احمد خان دراني لمسی او ځای ناستی، چې يو جگړه مار او نرۍ نيونکی پاچا بلل کېږي په دې وخت کې  ۱۷۹۸-۱۷۹۹ په ډېر جدي ډول سره په دی هڅه کې وو چې  د خپلې پاچاهۍ سرحدونه تر گنگا رود پورې ورسوي، د هند د راجه گانو د نارضايتۍ په خاطر په هندوستان باندې د انگليسانو د تيري څخه د خلاصون لپاره يې زمانشاه هندوستان ته دعوت کړ او دې ته حاضر وو، چې له هغې ورځې څخه چې زمانشاه هندوستان ته داخل شي د ورځې يو لک روپۍ د ده د جنگ مصارف ورکړي. زمانشاه هم د ډگر سړی وو، او له پياوړي لښکر سره يې د هندوستان خواته يرغل وکړ، تر لاهوره لاړ.د افغانستان پاچا په دغه تاريخ کې د انگليسانو د ملگرو لپاره، تر ټولو لوی خطر بلل کېدو او هندوستان ته د دوی نيږدې کېدولو سره  انگليسان ډېر وارخطا کړی وو. هغه لاره چې دوی ته په ذهن کې ورتله، هغه دا وه، چې د ډېر مالي ځواک سره د ايران د شاهنشاه دربار ته يو فوق العاده استازی يې ولېږلو،... مطلب يې دا وو چې د ايران واکمن د زمانشاه په مقابل کې   راپورته کړي.  له دوی سره يې دوستۍ او ملگرتيا اظهار وکړ. د هغې په اوږدو کې  يې غوښتنه وکړه چې د ايران په مقابل د انگليس دولت سره يو روښانه او واضيح موافقت موجود دی، څو افغانان د هندوستان د لاسته راوړلو قصد و نکړي او د ايران لښکر د دې طايفې پاچا ارام او اسوده پرېنږدي، چې د هندوستان خواته د حرکت فکر يې هم سرته رانشي. خپله مهد علي خان ليکي:؛که چېرې د ايران پاچا د افغانستان د پاچا د حملې مخنيوی وکړي  او که لوی الله او د انسانيت عالم ته يې خدمت کړی وي؛. شاه زمان د هندوستان د دروازې شاته رسېدلی وو، چې د عليشاه قاجاري

د حملې خبر ورته راورسېد، (محمود محمود په نولسمه پېړۍ کې د ایران او انگلیس سیاسي اړیکې، په کتاب کې،د انتاارات اقبال چاپ، تهران، اول جلد څلورمه پاڼې ۱۱-۱۴).؛

محمود محمود د ایران د سیاسي اړیکو د تاریخ د کتاب په بل ځای کې داسې لیکي:؛ باید دا مسلم حقیقت په یاد ولرو چې د انگلیسانو په عقیده ایران او افغانستان دواړه د هندوستان لپاره خطرناک وو.د هند د تمې سترگې د ایران او افغانستان خواته وې چې ممکن یوه ورځ افغانان یا ایرانیان د دوی د خلاصون په خاطر اقدام وکړي او په همدې اساس د دواړو ایران او افغان قدرتونو له منځه وړل او زوال کېدل لازم وو (۳۷۵ ص)؛. یوازې د دوه پورتنیو یاداښتونو له کتنې سره، خپله د ایران له منابعو څخه کولی شو په وضاحت سره وگورو، چې یوازې یو ناروغ مغز کولی شي چې ووایي افغانستان د انگلستان د حایل کوونکي سیاستونو په قبال کې د هند او د گاونډیو هېوادونو تر منځ، له ایران څخه جدا شو.

ولی فارسیان په دا راز جعل لاس وهي. د دې پوښتنې د ځواب د موندلو لپاره لازمه ده، چې څېړونکي د مستقلو منابعو له لیدلوري څخه د ایران تاریخ ته وگوري. دا دقیقه کتنه د تعجب څخه ډک نتایج لرلی شي، چې د هغوی څخه صرف یو څو دلته د مثال په ډول ذکر کوو:

- د ؛ایران؛ نوم اېښودل چې نن ورځ ؛ایران؛ ورته ویل کېږي، جعلي دی. ایران د تاریخ، کیسو او داستانونو څخه د مخه، موجود نه وو، د شاهنامه د شعرونو په شهادت (ایراني معاصر دانشمند علي میر فطروس) په لویه کچه د اوسني افغانستان هېواد دی.
- د اوسني ایران نوم د عربو د دوه سوه کلونو سلطنت له وخته د صفویانو ؛د عراق عجم؛ قدرت ته تر رسېدو پورې وو، او دا هېواد د هغه پاچاهانو په واسطه چې د دوی د سلطنت مرکز د اوسني ایران له سرحد څخه د باندې په بغداد، مرو، سمرقند،بخارا، هرات، بلخ، زرنج، غزني او خوارزم کې وو، اداره کېدو.
- په نړۍ کې اوسني ایران هېواد ته تر ۱۹۳۲ز کال پورې ؛فارس؛ ویل کېدو، په هغه کال کې د رضا شاه د نړۍ له هېوادونو غوښتنه وکړه، چې د ؛ایران؛ له نوم څخه کار واخلي.
- فارسیان ؛اریایي؛ نه دي. د تاریخ او جینیتیک ایراني عالم په شاهدۍ (رضا ابراهیمي، مازیار، ډاکټر مرادي غیاث ابادي) ؛اریایانو؛د اوسني ایران له سرحداتو څخه بهر کوم بل هېواد ته هېڅ مهاجرت نه دی کړی.
- کوروش د هخامنشي وروستی شهنشاه او نور هخامنشیان ؛اریایي؛ نه وو.
- هغه مقبره، چې نن په فارس کې د کوروش د مقبرې نوم پرې اېښودل شوی، د هغه مقبره نه ده، کوروش په بلخ کې د بلخ د پاچا په واسطه ووژل شو.
- هغه جملې چې دوی یې کوروش ته ارتباط ورکوي، د پخوانیو پوهانو څخه کاپي او تصرف شوې دي: ؛هغه لاسونه چې مرسته کوي د هغه لاسونو څخه چې دعا لپاره پورته کېږی، ډېر پاک دي ؛ (د رابرت گرین اینرسول څخه (۱۸۳۳-۱۸۹۹) امریکایي وکیل او خطیب)،؛فرمان مې ورکړ چې بدن مې د تابوت او مومیایي

کولو څخه پرته خاورو ته وسپاري، څو زما وجود د ايران د خاورې زرې جوړې کړي.؛ ( د معروف فيلسوف برتراند راسل له وصيتونو څخه).

- ؛د کوروش د بشري حقوق منشور؛ چې په خټينه استوانه د ميخي خط په واسطه حکاکي شوې وه، د لرغون پېژندونکو په نظر، نه يو چارټر، نه قانون او نه فرمان دی، دا اکثر هغه متنونه دي، چې رواج جملې د بنياد يا اساس څخه يې استعمال کړي.
- د کوروش وصيت نامه هم جعلي ده، وصيت نامه په دې جمله ختمېږي:((اوس لاړ شئ او ما يوازې پرېږدئ، ځکه دا احساسوم، چې مرګ رانيږدې شوی.)) (انسان بايد د مولانا بلخي دا مشهور شعر ياد ته راولي، چې ليکلي يې وو: ((رو سر بنه به بالين،تنها مرا رها کن...)).
- د داريوش وصيت نامه هم جعلی ده، د لوی داريوش لپاره هم لکه د کوروش وصيت نامې جوړې شوې دي، چې د هېڅ يوې متن يې دده په خپلو کتيبو او يا هم پخوانيو منابعو کې نشته.
- د ساسانيانو له ماتې څخه وروسته، هېڅ امر او يا پاچاه تر نيږدې ۱۳۰۰ کاله پورې په فارس ؛اوسني ايران؛کې چې د رضاه خان تر وخت يې حکومت کړی،د فارس يا فارسي نه دی.
- د ايران چارواکو له قدرت ته تر رسېدو، د تېر سلطنت ټول غړي يې له تيغ تېر کړل، څو داوطلبي منځ ته رانشي.
- د افغانستان پاچا زمانشاه د هند د مهاراجاوو په دعوت د انګليسانو د يرغل د ختمولو په خاطر په هندوستان لښکرې ويستې (۱۷۷۹م). د زمانشاه لښکرې د لاهور دروازې ته ورسېدې، چې د فتح عليشاه قاجاري د حملې خبر ورته راغی، چې د انګليس تر مستقيم تحريک لاندې پر افغانستان يرغل وکړو، نوموړی ناچاره بېر ته کندهار ته راستون شو.
- د فارسي پخواني اصطلاحات ؛پخواني فارسي؛، منځنۍ فارسي؛ او ؛نوې فارسي؛ ټول جعلي او لاس وهل شوې ده او د تخيلي دورانونو شانتې واقعيت نه لري.
- د کوروش او د هخامنشيانو په عصر کې (۳۳۰-۵۵۰ق.م)د فارس د خلکو ژبه عيلامي وه ؛فارسي؛ نه وه او د ساسانيانو ژبه )۲۲۴-٦٥١م ) هم ؛پهلوي؛ وه، فارسي نه وه.
- پر ايران د عربو تر حملې وروسته، د ايران خلکو خپله پهلوي ژبه له لاسه ورکړه. عربو د پهلوي ژبو سره چې اوستا او ګبري ژبې وې يوه خاصه دښمني درلوده. د عربو لخوا ډېر کتابونه وسوځول شول او په جبري ډول سره له پهلوي ژبې څخه ګټه اخيستنه کمه شوه. د سعدي او حافظ اصلي ژبه پهلوي وه. پر عوض يې د ايران خلکو دري ژبه، چې د بلخ او خراسان د خلکو ژبه وه، قبوله کړه، او هغې ته يې ؛فارسي؛ نوم ورکړ او دري هم د پيدا کېدلو د چاپيريال او هم د بشپړوالي محيط له اړخه نا بشپړه ژبه ده .دري ژبه په اصل کې د پخوانۍ تخاري ژبې (د بغلان او باطک د سور کوتل کتابونه)، سغدي او پارتي شکلونو څخه يې تکامل پيدا کړی دی او د د هرات د طاهريانو په وخت کې (۸۲۱-۸۷۳ ز) ايران خط او کتابت يې قبول کړ او د صفاريانو په وخت کې د نيمروز ولايت زرنج (٨٦١-۱۰۰۲م) په اړه د لومړي ځل لپاره په هغه ژبه شعر ليکل شوی دی.

پوښتنه دلته ده، چې اکثره هېوادونه او قومونه چې نوی هویت او لنډ تاریخ لري، خپل ځان لپاره تاریخ او فرهنګي مخینه جوړوي او د لغاتو او سندونو په جعلي کولو لاس پورې کوي او د نورو د افتخاراتو څخه د خپل ځان په ګټه کار اخلي، مګر ولې فارسان، یا بهتره یې ووایو فارسي نیشنلیستان، له خپل هېواد سره سربېره د یوه ۲۵۰۰ کاله تاریخي قدامت په لرلو سره، دا کار کوي. ؟ په ځواب کې باید ووایو چې فارسي نېشنلیستان له عقدوي او تاریخي حقارتونو څخه ډېر رنځ وړي او خپل ځان ته د قناعت ورکولو په خاطر ډېرو پخوانیو تاریخي، افسانوي او شاهانه اساطیرو ته پناه وروړي...د هویتي حقارت د ژورو عقدو اصلي لاعمل دا دی، چې په تېرو یو زر او درې سوه کلونو کې خراسانیانو، سیستانیانو،د سمرقند ترکانو، د ماورالنهر سامانیانو، غزنویان، غوریانو،ترکانو، سلجوقیانو، خوارزمي ترکانو، هلاکو خان او مغول ایلخانانو، د سمر قند او هرات تیموریانو، صفوي ترکانو، افغانانو، د افشاریان ترکمنو، قاجاري ترکانو، زندي ترکانو او نورو د عربو تر توره لاندې ژوند کړی دی. د عربو د مستقیم حاکمیت په وخت کې ایراني پیغلې او ځوانان د دوه سوه کلونو لپاره د بغداد، بصرې او دمشق په بازارونو کې د غلام او کنیزو په نوم خرڅېدل.

د رضا شاه پهلوي قدرت ته رسېدو سره سم (۱۹۲۵-۱۹۴۱م) د لومړي ځل لپاره د ساساني یزدګردو څخه یو فارسي ژبي کس د فارس پاچاهۍ ته ورسېد. په دې اخرو کې دا خبره د شهبانو فرح پهلوي د دفتر رییس شخصا په قاهره کې د رضا شاه د قبر پر سر د تصادفي ملاقات په وخت لیکوال ته تاکید کړی (دی د شهبانو دیبا فرح د سفر د مقدماتو د سمولو په موخه قاهرې ته د خپل میړه قبر ته راغلې وه او د لیکوال د تیلیفوني مختصر فرصت د شهبانو فرح سره په پاریس هم هغلته پیدا شو).د فارس د نیولو څخه ورسته په ۱۹۴۱ز کال کې د روسیې او انګلیسي ځواکونو په واسطه، رضا شاه معزور او زوی یې رضا شاه (۱۹۴۱-۱۹۸۰م) پاچاهۍ ته ورسېد. دغه کلونه وو، چې د دربار په حمایت، ایراني نېشنلیستان یو شمېر تاریخ لیکونکو او لرغون پېژندونکو ته د رشوت ورکولو له لارې چې لوېدیځ ته یې ځانونه خرڅ کړي وو. د یوه نوي هویت د جعلي کولو په پلټنه کې شول.تاریخي جعل کاریو باندې یې لاس پورې کړ. په دې وخت کې، چې د لومړي ځل لپاره ده ؛ارین؛ اصطلاح او ؛اریایي؛ په ایران کې اختراع شول څو د ارایي هیټلري فاشیستي غورځنګ سره یو ځای شي. په هغه وخت کې په اروپا کې فاشیست نژاد پرستان د هند او اروپایي ژبو تر منځ د مشابهتونو د کشف څخه وروسته، د ویدي او اوستا د متنونو د لړیو څخه یې یوه بهتره یا برتره نژاد هم منځ ته راوړ او نوم یې پرې ؛اریایي؛کېښود او د المان ملت یې په دې نوم مشهور کړ. کله چې محمد رضا شاه پهلوي ویلي وو : ؛موږ هم له هغه الماني اریایي نژاد څخه یو، صرف د جغرافیې جبر موږ د نړۍ په بله سیمه کې ساتلي یو؛. د دې برتره اریایي نژاد لپاره یو برتره هېواد هم په کار وو، او هغه هم هغه افسانوي او د کیسو ؛ایران؛ د شاهنامه وو، چې افسانوي قهرمان یې رستم، سهراب، فریدون، جمشید وو.د دې کار په خاطر د ایران دولت په ۱۹۳۲ز کال کې د نړۍ څخه وغوښتل چې فارس نه بلکې ؛ایران؛ د ورته وویل شي.

فارسي نېشنلیستان په دې کار کولو سره خپلې رېښې په تېرونو ووهلې، ځکه چې لوېدیځه نړۍ د هغې له لارې تولې متمدنې نړۍ ایران په رسمیت نه پېژنده. مګر د پرژن امپایر او فارسي تمدن سره چې د یونانیانو له وخت څخه وو د

رومیانو د لرغوني تاریخ سره یې ښه اشنایي لرله. نن د نړۍ په ورځپاڼو، راډیوګانو او تلویزیونو کې د ایران د مسخ شوي نوم څخه ایران ته په اشاره کې اورو.

فارسي نېشنلیستان، اوسني ایرانیان، د یوه جعلي هویت د پیدا کولو په لټنه کې دي او یو ځلې بیا د لوی کوروش د مقبرې د کشف نظر ته رارسېږي،د کوروش وصیتنامه د بابل څخه پیدا کوي، چې بلاخره ؛د بشر د حقوقو منشور!؛ کتیبه کشف کېږي، ډېرینې لیکنې کشف کېږي او دا چې کوروش اعلان کوي چې دا ؛اریایي؛ دي او په دغه ډېرینو لیکنو کې د ؛اهورامزدا؛ انځور یا د اور پرستو زردشتیانو د خدای تصویر، د کوروش د سر سره اړېنودل شوي! اوس دا ټول جعل کارۍ کفایت نه کولو، چې په پاسارګاد کې یو نیمګړی قصر د فیل پایو په لرولو او د پخواني روم او یونان په سبک سره جوړ شوي تاقونو په لرلو سره د جمشید تخت په نوم کشف کېږي (یا جوړېږی)! د دې لپاره چې ننداره خپل نهایي اوج ته ورسېږي د ۲۵۰۰ کلونو جشنونه د ایران د شاهنشاه په رسمي نوم ؛۲۵۰۰ کال د ایران د شاهنشاهۍ د بنسټ اېښودلو د لوی کوروش په لاس) تر نوم؛ د رضا شاه پهلوی د سطنت په دوران کې د ۱۲ څخه تر ۱۶ د اکتوبر د ۱۹۷۱ کال چې ۲۰ څخه تر ۲۴ د مېزان د میاشتې د ۱۳۵۰ سره سمون خوري د جمشید تخت په سیمه کې ونمانځل شو. په دې جشنونو کې، حکومتي مشران او د ۶۹ هېوادونو پاچاهان رابلل شوي وو.په یاد مې دي چې اعلیحضرت محمد ظاهر دافغانستان پاچا دې جشن ته له ورتګ څخه انکار وکړ او په عوض کې یې خپله لور شاهدخت بلقیس ور ولېږه.دا هم هغه وخت وو،چې د تهران مصور مجله چې په هغه کې د یوې جعلي امپراتورۍ یوه نقشه چاپ شوې وه او په نقشه کې افغانستان د ایران د قلمرو یوه برخه ګڼل شوې وه افغانستان ته راوړل منع کړل.

## ایران او فردوسي شاهنامه

فردوسي د خراسان د سیمې تر ټولو لوی کیسه او داستان لیکونکی دی. د هغې لویوالی په همدې حماسي افسانه لیکلو کې دی، مګر د افسانو شرحه یې د خراسان د تاریخ شرحه نه ده، نوموړی تاریخ لیکونکی نه بلکې یو داستان او کیسه لیکونکی وو، او کومې کیسې چې ده لیکلې دي، له نورو څخه یې اخیستې،تاریخي اهمیت نه لري. فردوسي لکه د سادوانو په شان د افغانستان په بازارونو کې حماسي قیصه لیکونکی وو. د عطار، فرخي او معزي په برداشت چې دې ته یې بدعت ګر، دروغجن او کیسه لیکونکي ویل دقت وکړئ. ؛ایران؛ د ایران شاهنامه افسانوي او قیصه ده، حقیقي شتون نه لري. دا بې دلیله نه دي چې د ده له مرګ څخه وروسته تر دوه سوه کلونو پورې چا یې نوم هم وانخسیت.که د فردوسي خبرې ومنو، د ایران لوېدیځ سرحد په مصر کې د نیل سیند او شمالي سرحد یې د جیحون رود دی (علي میر فطروس)!

د فردوسي یا د سلطان محمود په عصر او دوران کې، اوسنی ایران د عراق په نوم وو، نظامي کتابونه ولولئ، چې تل یې په حسرت سره عراق یادوي او د ایران نوم نه اخلي. ځینې د وښو له تار څخه غر جوړوي. د ساسانیانو په عصر کې د اران نوم یاد شوی دی او په اوستا کې د اریاویجه او د کوشانیانو عصر کې د اریوا. ټول هغه څه چې په اصطلاح چې ؛لرغوني ایران؛ یې بولو، بس همدا دي او نور معلوم نه دي چې دا اشارې کوم قوم، سیمې، اجتماعي قشر ته وو یا بل کوم شي ته. د ؛اریایي؛ فارسي شوې کلمې د منځ ته راوړلو څخه وروسته په شلمه پېړۍ کې د ښاغلي رضا شفق په واسطه په

ایران کې او له هغې څخه وروسته بیا د هټلر په وخت کې  د فارس د نوم بدلیدل په ایران باندې، چې د فارسیانو د اریایي اوسېدو جعلیتونه، د کوروش مقبره، د جمشید د تخت جعلي کتیبې تولو رواج وموند او د فردوسي افسانې او کیسې د دې جعلي تاریخ لپاره یو ښه او مناسب بستر د ایراني نیشنلېزم لپاره جوړ کړ.

## ایرانیان زموږ لپاره د فارسي معادل، بهرني لغتونه جوړوي!

د ایران فرهنګي یرغل  ارامه او غیرې مستقیم ډول سره  نه دی، مګر ډېر په مستقیم ډول، او په حاکمانه توګه سره یې دستور ورکړی او عمل پرې کېږي. د دې د مثالونو څخه یو یې په تیر وخت کې زموږ  پر زلمیو او نوي زلمیو زده کوونکو او زده کړیالانو د ایران د دولت د فرهنګستان د ژبې او فارسې ادبیاتو د رییس  لاربښونې دي،.بلې هو، ایرانیان په بیړه کې   دي څو د دې هېواد بنسټ ځوانی ته د رسېدو  په مرحله کې  تغییر ورکړي.

د بي بي سي فارسي د راپور په اساس په دې  وروستیو کې غلامعلي حداد عادل،د ایران د دولت د فرهنګستان د ژبې او ادبیاتو رییس ویلي دي، چې دا فرهنګستان دې ته حاضر دی چې د افغانستان دولت ته د فارسي کلمو او تورو په ذخیره کولو کې له دولت سره مرسته وکړي. د بي بي سي په قول ښاغلي حداد عادل چې په تهران کې یې  د ایران او افغانستان په لومړني فرهنګي غونډې خبرو اترو کې خبرې کولې،وویل:؛د ایران د فرهنګستان د ژبې او ادبیاتو د خپل فعالیت په اوږدو کې په دې توانېدلي چې د ۵۵ زره څخه ډېر، ورته د فارسي لغات د بهرني لغاتو لپاره وموندي او موږ دې ته اماده یو چې دا کلمات د افغانستان د دولت په اختیار کې ورکړو، څو د فارسي ژبې زده کړه د دې هېواد په ښوونځیو کې لا زیاته اسانه شي.؛

اساسي پوښتنه دا ده چې ایا د دري ورته لغتونه موندل د بهرني لغتونو لپاره ضروري دي؟ ایا دا کار زموږ د ځوانې طبقې د ښوونې او روزنې په ډګر کې یو ښه او با ارزښته کار دی، چې ورځ په ورځ د معلوماتو د شریکولو او د اړیکو له نظره څخه تنګېږي او تنګېږي پسې؟ ایا دا به بهتره نه وي چې صنعتي پدیدې، کوم چې په نورو هېوادونو کې اختراع شوې او مروجه شوې ته په همغه بین المللي نوم چې اصل نوم یې دی یادونه ورڅخه وکړو؟ ایا دا زموږ د ځوانانو په ښه تماميږي چې د ایران څخه د ژبې او د فارسي ادبیاتو د فرهنګستان په واسطه په جوړ شوي لغتونو باندې عوض کړو او کمپیوټر ته ؛رایانه؛ ووایي،د انټرنیټ پر ځای ؛تارنما؛ نوم ورته ورکړي او فېسبوک پر ځای ؛رخنما؛ ورته ووایي؟ دا ډول په سلګونو مثالونه شته.ایا د دې پر ځای چې نړۍ ته نیږدې شو، د پورته ذکر شویو لغتونو په واسطه خپل د همقطارانو څخه زموږ زلمیان د بهرني هېوادونو څخه ببرته پاتې کېږي او که نه؟ پر دې سربېره بیا ایرانیان د عربي کلیمو د فارسي له ژبې څخه د حذف کولو په برخه کې کوښښونه کړي،ولې؟

ژبه یو ژوندی طبیعي شی دی او د ودې کولو په حال کې ده، چې د اړیکې په اضافه کېدو سره د سیمې په کچه او د نړۍ او هېوادونو تر منځ د فرهنګ د نیږدېوالي په وجهه، ورځ په ورځ غني کېږي. د علم او د صنعت د پر مختګ یو عامل په هغه هېوادونو کې لکه بنګله دیش، سریلانکا، هندوستان او پاکستان کې او په بین المللي سطحه د پوهانو، سیاستمدارانو، اداره کوونکو او مشاروینو  لوی موجودیت،دا دی چې د افغانستان او د ایران په کچه، په تعلیمي مؤسساتو

کې له انګلیسي ژبې څخه استفاده ډېره ده. د بهرني هېوادونو سره د اړیکو د پراخولو په پایله کې  دري ژبه د نورو ژبو څخه په استفادې،لا نوره غني شوې ده. هغه کلمات لکه محصل، معلم، تحصیل، متعلم، مکتب، کتاب، کتابچه، حساب، هندسه، الجبر، والی، ولایت، نجوم، منجم او زرهاوو نورې کلمې په دې شکل سره عربي ریښې لري مګر د یو زر او درې سوه کلونو په اوږدو کې دري ژبې ته داخل شوې دي او د دري  ژبې نه بېلېدونکې برخې جوړوي. همدا ډول په زرګونه، فرانسوي، عربي، هندي، سانسګریت، الماني او نور په انګلیسي ژبه کې دخیل دي او نن له هېڅ کوم تبعض څخه پرته د انګلیسي ژبو په واسطه استفاده کېږي او دوی د انګلیسي ژبې څخه د لرې کولو هېڅ کوم کوښښ نه دی کړی. یوازې متعصبین او ملي  ګرایان د شونیستی ډلې، ړانده ذهنه او بې مغزه په دې کوښښ کې دي چې بهرني کلمات له خپلې ژبې څخه حذف کړي،  د خپلې ژبې په ریښو تبر پورته کړي او د ناپوهۍ له درکه خپل خلک په خاصه بیا د خپلو ځوانانو چې د علم او معرفت تږي دي د نړۍ د بهرني ملکونو څخه لا لرې کوي او لرې یې ساتي.

په افغانستان کې مروجه خوږه دري ژبه، د افغانستان د ملي  هویت یو نه بېلېدونکی جز دی. د دري څخه دفاع کول په هغه شکل سره، چې د افغانستان مروج اصطلاحات په هغه اصطلاحاتو عوض کول چې د ایران له فرهنګستان څخه راغلي دي او د دوی په واسطه جوړ شوي، او د هغه فارسي اصطلاحاتو چې په ایران کې رواج دي او  په افغانستان کې د خلکو تر منځ یې رواج نشته، د هغه استعمال کول او معرفي، په حقیقت کې یو ملي  خیانت دی. په فېسبوک کې د یوه  ملګري په خبره ؛د ایران جاسوس او چاپلوس د افغان کلمې سره د حساسیت په لرلو او په افغانستان کې مروجه دري ژبې ښایسته دري کلیماتو پر ځای د ایراني مرجه کلیمو له کارولو څخه  په اسانۍ سره کولی شو وپېژنو.

## د افغانستان مروجه دري ژبه تر خطر لاندې  ده!

فارسیستانو د افغانستان مروجه دري ژبه  تر خپلې هدف لاندې  نیولې ده. یو سړی د عبدالحی خراساني په نوم، د ؛مورنۍ ژبې؛ د ورځې په مناسبت، په فېسبوک کې لیکي:؛  پارسي ژبه د سامانیانو له عصر څخه تر ابدالیانو پورې د ټول کل بلاد خراسان د امپراتورۍ د کورنۍ لپاره  تل یوه رسمي، ملي  او فرهنګي  ژبه وه او دا رسمیت او عظمت د امان الله خان د سلطنت تر پایه پورې د ټولو مشکلاتو او کړاونو سره سره همداشانتې پاتې شوی وه او هېڅ باد او باران، توفان او رنځ دې ته تکلیف نه وو رسولی...له بده مرغه په دې وروستۍ یوه پېړۍ کې، قسم خوړلي د فارسي ژبې دغه دښمنانو له هېڅ ظلم څخه ډډه نه ده کړې، څو د دې زړې ونۍ شاخونه له بیخه او له ریښوو څخه مات کړي او هویت یې له منځه یوسي؛.

ښاغلی خراساني د کوم ظلم څخه د فارسي ژبې (دري) په هکله خبرې کوي او دا د فارسي ژبې (دري) قسم خوړلي دښمنان څوک دي؟ ایا د څو مؤسسو او د څو سړکونو نومونه په پښتو کېښودل او د دولتي کارکوونکو لپاره د پښتو ژبې د کورسونو پیلول د امتیازي حقوقو د مشکل نه کولو داسې یو ظلم دی، چې د ؛پارسي؛ د زرغون تاریخ لرونکي ژبې ریښې او شاخونه یې له بیخه وباسي؟ایا پښتو ژبې ته تقویت ورکول، زده کړه او د پښتو د ژبې ظرفیت لوړول د افغانستان د پښتو ژبو مسلم حق دی او کنه؟ ایا په موازي ډول دا ډول کوښښونه د دري ژبې لپاره سرته رسېدلي او که نه او یا دا چې د هغې سره د ضدیت او مخالفت په پایله کې دي؟ ایا محمود طرزی، عبدالحی حبیبي، ډاکټر احمد جاوید،

نادرخان، محمد ظاهر شاه، محمد داود خان او د کورنۍ غړي يې د فارسي ژبې (دري) قسم خوړلي دښمنان دي؟ايا د دوی د اکثريتو مورنۍ ژبه دري نه وه؟ايا د افغانستان رسمي او اداري ژبه تر اوس وخته پورې دري ژبه نه ده؟ ايا د ؛دري؛ ژبې نوم د هغې ژبې لومړنی او تاريخي نوم نه دی، چې په تاجکستان کې ورته ؛تاجکي؛ ويل کېږي او په ايران کې د ؛فارسي په نوم مشهور نه دي؟ ايا د دې دريو ژبو نومونه په مترادف ډول سره د ؛پارسي؛ د اوږد تاريخ پر ربښو د تبر وهل نه بلل کېږي؟

تر دې چې ځينې ايراني پوهان د دري او فارسي څخه مترادفو په شکل يادونه کوي. ابراهيم پور داود، د تهران پوهنتون استاد داسې ليکي، چې د ابو منصور د شاهنامې کتابونه (۳۴٦هجري)، طبري ترجمه او تفسير (۳٦٥ هجري)، د رودکي سمرقندي اشعار (۳۲۹ هجري)، شهيد بلخي(۳۲۵ هجري)، دقيقي طوسي (۳۷۰ هجري)، د فردوسي شاهنامه (۴۰۰ هجري) ؛ټول د دري يا پارسي په فصيحه، مستحکمه او پخه ژبه ليکل شويدي 8. دري ژبه له اسلام څخه په مخکينيو دورونو کې له پهلوي سره يو ځای شته و. هغه پېړۍ چې د دې عقيدې حمايت کوي د کتبی اثارو موجوديت (منثور او منظوم) د نوح ساماني له زمانې څخه (۳۵۰ -۳٦٥ ه س) او داسې نور دي او د دې استازيتوب کوي چې د دوه يا درې پېړيو په اوږدو کې، لرې خبره ده، چې يوه ژبه دومره فصاحت او بلاغت ته رسېدلې وي. ابراهيم پور داوود ليکي چې ؛ د دې ژبې پايې او بنستونه بايد د اسلام څخه په مخکينيو پېړيو کې ايښودل شوي دي او د مزبور ژبه د پهلوي ژبې سره متوازی ډول باندې پيل شوې ده. 9. همدا ليکوال د کتاب په ورستيو پاڼو کې ليکي چې ؛دومره وه چې پهلوي ژبه رسمي ژبه وه، کتابونه او رسنۍ په همغه ژبه پاتې شوي او دري ژبه د اسلام څخه د مخه – له دې سره سره چې مکتوبي اثار وجود نه لري – موږ ته هېڅ څه نه دي رسېدلي؛. په همدې اساس استاد ملاير وايي چې د پخوانی فارسي اصطلاحاتو څخه کار اخيستل،د منځنۍاو د نوي فارسي څخه کار اخيستل د متاخرينو کار دی، چې هېڅ تاريخي ربښې نه لري.

ابن النديم د عبداله بن المقنع له قوله داسې وايي، چې دري د مداين،دپاچاه دربار او په ختيځ کې د بلخ د خلکو ژبه ده (الفهرست د قاهرې چاپ ۱۹ ص). په دې اساس کله چې په ۱۹٦۴ ز کال کې د افغانستان حکومت په هېواد کې د ؛دري؛ ژبې استفاده د ؛فارسي؛ په عوض په رسمي توګه مروج کړه، دا يې د هويت د لرې کولو عمل نه وو، مګر د هغې بر عکس د دې ژبې د تاريخي او اصلی نوم څخه استفاده وه.

د افغان محققينو لخوا د دري ژبې د ربښې په معرفي کولو او د تکامل د لا ښه پوهېدو په اړه نه سترې کېدونکي کارونه، چې د سيمه ييزو هېوادونو افغانستان، ايران او تاجکستان خلک په کې شامل دي، د دې ژبې په اړوند سرته رسېدلي. د افغانستان پوهان وايي چې د خراسان او د ماورالنهر د خلکو اصلی ژبه ؛دري؛ ده چې په دې هېوادونو کې د پارتي ژبې په څنګ کې ؛پهلوي اشکاني؛ موجوده وه، پر مخ لاړه، او دوه سوه کاله وروسته فارس ته چې د دوی مورنۍ ژبه وه ؛ساساني پهلوي؛ باندې مشهوره شوه. د يادونې وړ ده، چې د هخامنشيانو ژبه هم عيلامي وه. دا دې ؛فارسي؛ ژبې د هويت

---

[8] محمد معين ؛قاطع برهان؛، د ديباچې اوو ويشتمه پاڼه. اول جلد – ۱۳۳۰ تهران

[9] همغلته

د له منځه وړلو اخیستنه نه ده، بلکې د هغې بر عکس د هغې ژبې د رېښې پېژندنه ده، چې نن په ایران کې د فارسي او په تاجکستان کې د تاجکي په نوم او په افغانستان کې هغې ته دري ویل کېږي.

اکثره ایرانیان په دې عقیده لري چې په افغانستان کې مروجه دري او د افغانستان مروجه لهجه د دې ژبې د هغه ځه په پرتله چې په ایران کې مروجه ده، ډېر اصالت لري او یوه معیاري ژبه حسابېږي. د افغانستان د دري ژبو کوښښ د ژبې د ویلو او لیکلو په برخه کې د هېواد د مروجې ژبې نه د ایران ستیزانو او نه د پارسي ستیزانو دی، مگر د دوی حق د مورنۍ ژبې په ساتلو او پرمخ وړلو کې دی.

د بي بي سي خبریال محمد حیدري لیکي ؛موږ چې ژبه زده کوو،یوازې د هغو غږونو زده کول نه دي چې د مفهوم د افادې لپاره کارول کېږي. د ژبې ؛فرهنگ؛ هم زموږ په وجود کې په پیدا کېدو پیل کوي. دا ژبه ده چې د هغې په واسطه تفکر کوو او هره ژبه د خپل لرغوني تېر تاریخ او د فرهنگ په سرمایه کولو کې،د فکر کولو لپاره لارې هواروي. ژبه یوازې له نورو سره د اړیکو په خاطر نه ده، ژبې د تېر وخت د لارې د وهلو وسیله هم ده. تاریخ پکې بهېږي. ژبه د کلماتو څخه ډېره لویه او پراخه ده.ژبه زموږ د فرهنگ سرچینه ده.؛

دا سمه ده،چې له ایران سره موږ ډېر مشترک فرهنگي مشترکات لرو. مگر د تاریخ په لړۍ کې په سلگونو کلونه د حاکمیتونو په مختلفو حالاتو کې او د ژوند په تکامل کې مو سره بېل ژوند کړی او اوس هم نیږدې دری سوه کاله کېږي چې د سیاسي، فرهنگي او اجتماعي بېلا بېلې لارې لرو او او خپل ځان ته مشخصې او منحصرې متفاوتې لاسته راوړنې لرو. سربېره پر هغې د افغانستان د مروجې دري ژبې د ویلو او لیکلو د ساتنې پر لاره د افغانستان د خلکو حق دی، چې د خپلې مورنۍ ژبې په ساتلو، پراخولو، پرمختګ او د فرهنگ په مشخصولو کې یې وکاروي.

## د افغانستان مروجه دري ژبه د ایران د فارسي ژبې مور ده؟

دري ژبه د اوسني افغانستان د خلکو پخوانۍ ژبه ده او د دې هېواد د قومونو د یو ځای کولو ژبه ده. د الیور روي او د بلخ، خراسان او منځنۍ اسیا د نورو عالمانو په وینا، د اوسنۍ دري ژبې د پیدایښت ځای افغانستان دی او په دې کې د ایران فارسي هم شامله ده. دا ژبه د پخوانیو پهلوي اشکاني، تخاري، سغدي او نورو ژبو له ترکیب څخه رامنځ ته شوې ده. دري ژبه د پهلوي یا پارتي ژبې له دوام څخه نه ده جوړه شوې، له هغې سره یو ځای او موازي موجوده وه او د هغې څخه متاثر شوې وه او د پېړیو په اوږدو کې د نورو ژبو څخه په استفادې لکه سانسگرت، هندي، پښتو، تکري او عربي څخه لا نوره غني شوې ده. د اسلام د معرفت څخه وروسته په باختر، خراسان او ماورالنهر کې، دري ژبې د هرات د طاهریانو په عصر کې عربي رسم الخط قبول کړ.

کله چې د عربو مسلمان لښکر پر عجم عراق باندې (اوسني ایران) باندې یرغل وکړ د هغې هېواد خلکو په ساساني پهلوي ژبه باندې خبرې کولې، په داسې حال کې، چې د خراسان، تخارستان،کابلستان، سیستان، ماورالنهر او غرجستان خلکو په دري ژبه خبرې کولې. د حافظ او د سعدي مورنۍ ژبه ساساني پهلوي وه. د عربو په راتگ سره د اوسني ایران هېواد خلکو خپله یا پهلوي ژبه یې په تدریج سره له لاسه ورکړه. د استاد ملایري په قول، عربو د پهلوي ژبې سره خاص

خصومت درلود ځکه پهلوي ژبه د ساساني امپراتورۍ ژبه وه او د ګبرییانو یا د اورپرستانو مذهبي ژبه وه. عربو ډېر کتابونه و سوځول او په دې باندې قادر شول چې د ۲۰۰ کلونو په اوږدو کې پهلوي ژبه له استفادې څخه وغورځوي. بې ځایه به نه وي چې نن ایرانیان د عربو سره خاصه دښمني لري  او د عربي د ژبې د اثارو کموالی د اوسنی فارسي دري ژبې څخه دی او دا کوښښ کوي چې افغانان هم په دې نامقدسه مبارزه کې او د هېڅ لزوم څخه پرته،د دوی سره هم سنګر شي.

پورته مو ذکر کړه، کله چې د مسلمان عربو لښکریانو پر عجم عراق (اوسني ایران) یرغل وکړ،د هغې هېواد خلک په پهلوي ژبه غږېدل په داسې حال کې چې د خراسان،تخارستان، کابلستان، سیستان، ماورالنهر او غرجستان خلک په دري ژبه تکلم کولو.د زمان او وخت په تېرېدو سره، دري ژبه، د خراسانیانو او د غیرې عربو د عربو پر ځای په ځانګړي ډول بیا د نیمروز د صفاریانو له زمانې څخه وروسته، واک ته تر رسېدلو سره، عربی ژبې ددې هېواد د پاچاهانو په دربار کې په رسمي ډول سره د لیکنې ژبې ځای ونیولو. په تدریج سره د سلجوقیانو او د خوارزم شاهانو په نړۍ خلاصولو د ماورالنهر څخه هغه سیمو ته چې نن ایران نومېږي، دري ژبې دې سیمو ته پرمختګ وکړ او د ایران خلکو دري ژبه یا د بلخ، ماورالنهر او خراسان  د خلکو ژبه یې د پهلوي ژبې پر ځای ومنله او هغه ته یې ؛پارسي؛ نوم ورکړ. ځکه د پارتي / پارثي  ژبې له نوم سره د اشکانیان د حکومت په وخت کې   اشنا وو او ځکه عربان د (پ) تکی نه لري. هغه ته یې ؛فارسي؛ وویل.

ولې غیرې فارس په سیمو کې د فارسي په نوم مشهور شوې؟ استاد ملایري د فارسې ژبې دلیل،د هخامنشي او د فارسیانو ساساني حکومتونو سابقه په ختیځو سیمو کې یا د بلخ، ماورالنهر او خراسان خلکو فرهنګي اثرات بیانوي. د صفویانو او افشاریانو فرهنګي سلطه او سیاسي او نظامي قدرت د اوسني افغانستان پر سیمو باندې په خاص ډول د خپلواک افغانستان پر مشرتابه یا رهبرانو باندی باید له یاده و نه باسو.  پر دې سربېره د صفویانو، قاجاریانو او له دې څخه وروسته د فارس عالمانو او ادیبانو ته به توجه لږ وه او د دوی اکثریت د هند سیمو ته د هندوستان د بابري پاچاهانو غبېږې ته پناه یوړله او دا په هند کې   د فارسي د اصطلاحاتو څخه د کار اخیستلو بې اثره نه وو، په داسې حال کې چې د هند خپله پارسیان چې د عربو له حملې څخه په سلګونو کلونه دمخه، دې ادیبانو او عالمانو هندوستان ته مهاجرت کړی وو. د بمبیي په سیمو کې خپله ژبه یا دري تر نن ورځې پورې وایي. زما یو استاد په بمبیي کې د بین المللي نفوسو په انستیتیوت کې، مېرمن شیرین جي جي وو، چې د هند د پارسیانو د اولادې څخه وو، دا مطلب یې په ۱۹۸۰ز کال کې ماته واضح کړ. هر دلیل چې وي، دا یوازېنۍ ژبه ده چې  یوه فېسبوکي ملګري به ویل، د زوی نوم ؛فارسي؛، د پلار په نوم ؛دري؛، باندې اثر اچولی دی.

باید په یاد ولرو، چې د استاد ملایري په وینا دري ژبه (یا هغه څه ته چې په ایران کې   فارسي ویل کېږي) د پهلوي ژبې سره په یوه وخت کې موجوده وه او د ؛پخوانۍ فارسي؛ اصطلاحات،؛منځنۍ فارسي؛ او ؛نوې فارسي؛ د دوی په قول په دې اخرو کلونو کې جوړ او ترتیب شوي او کوم علمي او تاریخي اساس نه لري. دې ته په پاملرنه سره، چې د فارس د خلکو ژبه د هخامنشیانو ؛ایلامي یا عیلامي ژبه؛ وه او پهلوي اشکاني نه وه. په حقیقت کې د دې دروغو اصطلاحاتو

څخه کار اخیستل د دې لپاره دي، چې په یو شکل د شکلونو او په یو ډول سره پر اوسنۍ دري / فارسي ژبې باندې خپل وراثتي مالکیت ټینګ کړي.

دري ژبه د اوسني افغانستان او نني تاجکستان په هېوادونو کې او همدا راز د ماوراالنهر په نورو سیمو لکه بخارا، سمرقند، ترمذ او خراسان (مرو،نیشاپور، بادغیس او هرات) او داسې نورو کې بلوغ ته ورسېده. لومړني ادیبان او شاعران چې له هغې جملې څخه حنظله بادغیسي، رودکي سمرقندي په خراسان، بلخ او باختر کې ژوند کولو. د نظم او نثر دري ژبې لومړني اثار د خراسان په سیمه کې ومونډل شول. بې ځایه به نه وي چې دا سبک خراساني ونومول شي. نو په دې خاطر خراساني سبک یانې د لومړنیو او پخوانیو دري اثارو سبک چې په هغه کې اوسنی افغانستان او ماوراالنهر یا منځنۍ اسیا شامل دي، شکل یې اخیستی دی. د تاریخ له نظره دا سبک د طاهري، صفاري، ساماني او غزنوي سلسلو په خپل ساختار کې درلودې، چې دریمې تر شپږمې هجري پېړۍ نیسي.

د سلجوقیانو او د خوارزم شاهانو د سلطنت په پراخېدو سره په لوېدیځ او سوېل لوېدیځ،ترکیه اوسني اذربایجان او عجم عراق (نني ایران) پورې، د هغه وخت دري ادبیاتو په دې سیمو کې پراختیا ومونډله او دری سوه کاله وروسته د خراساني سبک له پیل څخه، د عراق شعري سبک منځ ته راغی. عراقي سبک د۷۸ او ۹ پېړیو وخت نیسي او د ۷ پېړۍ په پیل کې هغه وخت چې مغولانو په منځنۍ اسیا (ماوراالنهر)، باختر او خراسان باندې حملې وکړې، هغه عالمان او ادیبان چې ژوندي پاتې شول، قونیه،تبریز، اصفهان، شیراز، بغداد او نورو سیمو ته له ناچارۍ چې د دوی مادي رفاه او معنوي ذخیرې د مغولانو د غلا او غارت څخه په امن کې پاتی وي، ور وتښتېدل.

**فارسي د فارس د خلکو اصلی ژبه نه ده**

د ایران د چاپ شویو معتبرو فرهنګونو په اساس لکه د دهخدا فرهنګ،معیین فرهنګ، او نور فرهنګونه، د دری ژبې هغه فرهنګونه دي، چې د اسلام د معرفي په پیل کې په خراسان او ماوراالنهر کې مروجه وه او په لږ اندازه تغییر سره اوسنۍ مروجه فارسي ورڅخه تکامل وکړ.

هغه څه چې نن د دري یا فارسي دري ژبې په نوم یا په یوازې د فارسي په نوم پېژنو د فارس د خلکو اصلی ژبه نه وه مګر زموږ د خلکو اصلی ژبه ده، چې د اسلام څخه د مخه موجوده وه. د اسلام څخه وروسته عربي رسم الخط یې ومنلو، رشد یې وکړ او له دې څخه وروسته په سلګونه کلونه وروسته فارس ته یې لاره وکړه او د ایران د خلکو په ژبو باندې لکه د سعدي او حافظ په ژبو بدله شوې ده.نو ولې د فارسي ژبې په نوم پېژندل شوې ده ؟

په یوه ویډیویي کلپ کې، چې په یوټیوپ کې شته دی، یوه ایراني پېژندل شوي ژبپوه، محمد حیدري د ملایري، ایلامی، پارتي،پهلوي او دري ژبو په هکله خبری کوي.د استاد ملایري د توضیحاتو او نورو منابعو څخه کولی شو داسې خلاصه لاسته راوړو:

- د هخامنشیانو د امپراتورۍ رسمي ژبه (۳۳۰ څخه تر ۵۵۰ د زېږدیز څخه د مخه) دیلمي یا ایلامي وه؛
- د اشکانیانو رسمي ژبه (۲۲۴ مخکې زېږدیز څخه تر ۲۴۷ د مخکې زېږدیز پورې) پارتي یا (اشکاني پهلوي) وه، دوی له پارت څخه (د اسلام څخه وروسته خراسان) په ختیځ کې د کسپین د بحیرې څخه پورته شوي دي
- د ساسانیانو رسمي ژبه چې بیا وروسته اشکانیانو (۲۲۴ څخه تر پیل د ٦٥١ زېږدیز پورې) پر فارس حکومت وکړ پهلوي وه.
- پارتی د پارت د خلکو ژبه د اوسني ایران په ختیځ کې او د اوسني افغانستان په شمال لوېدیځ کې او پهلوي د هغه خلکو ژبه چې په لوېدیځ کې یا نورو د اوسني ایران په سیمو کې مېشت وو (فارس، اذربایجان) وه.
- ساسانیانو په تدریجي ډول د پارتي ژبې پر ځای پهلوي ځای پر ځای کړه
- پارتي او پهلوي ژبې سره متفاوتې دي.
- کله چې د عرب مسلمان لښکرو په عجم عراق (نني ایران په استثنا د خراسان) باندې یرغل وکړ، د دې هېواد خلک په پهلوي ژبه غږېدل.
- دري ژبې د پهلوي ژبې څخه سرچینه نه ده اخیستې او د هغه سره په یو وخت کې موجود وه او د هغه څخه متاثره شوې ده.
- د عربو د حملې په وخت کې د تخارستان، بلخ، ماورالنهر او خراسان ټول خلک دري ژبي وو
- د عربو په راتگ سره اوسني ایران خپله ژبه یا پهلوی ژبه په تدریج سره له لاسه ورکړه او په تدریجي ډول سره دري ژبه یا د بلخ، ماورالنهر او خراسان خلکو ژبه یې ومنله.
- د الیور روي په وینا بلخ، خراسان او منځنی اسیا د فارسي دري ژبې د پیدایښت ځای دی.
- دري ژبه د اوسني افغانستان د ځینو خلکو پخوانۍ ژبه او د دې هېواد د قومونو تر منځ نښلوونکې ژبه ده، چې د پخوانی اشکاني پهلوي، تخاري، سغدي او نورو ژبو څخه جوړه شوې ده او د پېړیو په تېرېدو سره د سانسگریټ، ترکي او عربي ژبو څخه غني شوې ده. .
- په باختر کې د اسلام له پېژندنې وروسته، خراسان او ماورالنهر، دري ژبې د عربي رسم الخط قبول کړ او د وخت په تېرېدو سره،په خاص ډول سره د طاهریانو په وخت کې او د هغې څخه وروسته، عربی ژبې د پاچاهانو په دربار کې د یوې رسمي او لکنیزې ژبې ځای ونیولو.
- دري ژبه زموږ په سیمو کې بلوغ ته ورسېده، ړومبني ادیبان او شاعران لکه حنظله بادغیسي، رودکي سمرقندي په خراسان، بلخ او باختر کې مېشت وو. د خراسان شعري سبک د دری سوه څخه تر شپږ سوه هجري پېړۍ په سیمو کې په سر ورسېد. لومړی نظمي او نثري اثار د اسلام له راتگ څخه وروسته د خراسان په سیمو کې پیدا شول، د دې اثارو سبک ته یې خراساني ویل. نو په دې خاطر خراساني سبک یانې د ړومبني دري ژبې اثار او لومړۍ او پخوانی دري ژبه چې د اوسني افغانستان په ختیځ کې او ماورالنهر یا منځنۍ

اسیا کې یې جوړه شوې. د تاریخ له نظره دا سبک د طاهري، صفاري، ساماني او غزنوي سبکونه په بر کې نیسي او درېیمه او شپږمه پیړۍ پکې دخیلې دي.

- د سلجوقیانو او خوارزمشاهانو د نړۍ نیولو سره لوېدیځ او سوېل لوېدیځ ته، ترکیه او نننی اذربایجان او عجم عراق (نننی ایران) د وخت په تېرېدو سره د دري ادبیات په دې سیمو کې پر مخ ولاړ او درې سوه کاله وروسته د خراساني سبک د پیل څخه، عراقي شعري سبک منځ ته راغی. عراقي سبک رماني محدوده لري چې د ۷،۸ او ۹ پېړیو کې دخیل دي او د ۷ پېړۍ پیل کې وو چې مغولانو منځنۍ اسیا (ماوروالنهر)، باختر او خراسان باندې حملې وکړې هغه پوهان او ادیبان چې ژوندي پاتې شول، له ناچارۍ اصفهان،شیراز، بغداد او نورو سیمو ته د مادي رفاه او معنوي ذخایرو لپاره چې دوی هلته خوندي وو،د مغولانو د غلا او غارت څخه په امن کې وو، وتښتېدل.
- هغه څه چې نن ورځ د دري یا فارسي ژبې په نوم او یا یوازې د فارسي په نوم پېژنو، د فارس د خلکو اصلي ژبه نه وه، مګر زموږ د خلکو اصلي ژبه ده. نو بیا ولې د فارس په نوم معرفي شي؟
- استاد ملایري د فارسي ژبې دلیل د هخامنشي او د فارس د ساسانیانو د حکومتونو سابقه پر ختیځ یا د بلخ ماورالنهر او خراسان پر خلکو باندې بولي او د دوی فرهنګي اثرات بیانوي.
- د صفوي او افشاري حکومتونو د سلطنت اثرات یې هم د هغې سره سره باید د دې عامل وپېژنو.

## د دري (فارسي) ژبې د پیدایښت تاتوبی

کله چې عرب مسلمان لښکر پر عجم عراق (اوسني ایران په استثنا د خراسان) باندې یرغل وکړ، د دې هېواد خلک په پهلوي ژبه غږېدل. عرب تاریخ لیکونکو د اسلام په لومړیو پېړیو کې د دري ژبې څخه د بلخ او خراسان د خلکو د ژبې په عنوان او د پهلوي ژبې څخه د عراق د عجمو خلکو د ژبې په عنوان یادونه کړې ده. د الیور روي په قول بلخ، ابوسعید عبدالحی بن محمود ګردېزي، د زین الاخبار په تاریخ کې چې زر کاله پخوا تالیف شوی، داسې لیکي:؛بهرام ګور په هره ژبه چې خبرې کولې، د چوګان ویلو په وخت کې، پهلوي غږېدو او د جګړې په ډګر کې یې ترکي او په مجلسونو کې یې په عامه دري خبرې کولې...؛.

په دې اساس په همدې شان چې یې ګورو، نورو خلکو دري ژبه موږ ته نه ده راوړې، مګر زموږ د خپلو خلکو پخوانۍ ژبه ده، چې د پخوانۍ اشکاني پهلوي،تخاري، سغدي او نورو څخه جوړه شوې او د پېړیو په تېرېدو د سانسګریټ،ترکي او عربي ژبو څخه غني شوې ده. دا د ژبې لا نور غني کېدل تر اوسه دوام لري. د اسلام له راتګ څخه وروسته په باختر، خراسان او ماورالنهر کې، د دري ژبې عربی رسم الخط ومنلو او د وخت په تېرېدو سره لومړني ادیبان او شاعران چې د هغې جملې څخه حنظله بادغیسي، رودکي سمرقندي په خراسان کې، بلخ او باختر کې یې ژوند کولو. خراساني شعري سبک په درې سوه – شپږ سوه هجري پېړیو کې په دغه سیمو کې سرته ورسېدو.

د دري ژبي لومړني د نظم او نثر اثار په خراسان کې د اسلام له راتګ څخه وروسته رامنځ ته شول. دې سبک ته یې خراسانی سبک ویلو. نو په دې خاطر خراساني سبک یانې د پخوانۍ دري ژبې سبک د لومړیو اثارو د اوسني افغانستان

په ختيځ او ماورالنهر يا منځنی اسيا کې جوړ شو. د تاريخ له نظره دا سبک د طاهري، صفاري، ساماني او غزنوي سبکونه په بر کې لري او دربيمه او شپږمه پيړۍ پکې دخيلې دي. د سلجوقيانو او خوارزمشاهانو د نړۍ نيولو سره لوېديځ او سوېل لوېديځ ته، ترکيه او نني اذربايجان او عجم عراق ( اوسنی ايران) د وخت په تېرېدو سره د دري ادبيات په دې سيمو کې پر مخ لاړل او درې سوه کاله وروسته د خراساني سبک د پيل ځخه، عراقي شعري سبک منځ ته راغی. عراقي سبک رماني محدوده لري چې د ۷،۸ او ۹ پيړۍ پکې دخيل دي او د ۷ پيړۍ پيل کې وو، چې مغولو منځنی اسيا (ماوروالنهر)، باختر او خراسان باندې حملې وکړې. هغه پوهان او اديبان چې ژوندي پاتې شول، ناچارۍ اصفهان، شيراز، بغداد او نورو سيمو ته د مادي رفاه او معنوي ذخايرو لپاره چې دوی هلته خوندي وو،د مغولو د غلا او غارت څخه په امن کې وو، وتښتېدل.

هېڅ دليل وجود نه لري، چې افغانان په دري او فارسي ډلو ووېشل شي، دري فارسي يا دري زموږ د ټولو وياړ دی. دا چې دري، فارسي او تاجکي ټولې يوه ژبه ده او که دوه يا درې ژبې دي،يا لهجې يې سره توپير لري، يو اکاډميک بحث دی. زموږ په ورځني ژوند کې هېڅ عملي اهميت نه لري. په افغانستان کې د دري مروجه ژبه، چې په عوامو کې ورته فارسي ويل کېږي، زموږ د ملي ژبو څخه يوه ده، د بلخ او د خراسان پخوانۍ ژبه ده. په باختر کې زېږيدلې، هلته لويه شوې او پرمختګ ته رسېدلې ده. د دري ژبې افتخارات د رودکي سمرقندي، مولانا او فردوسي او تر نن ورځې پورې زموږ د خلکو د افتخاراتو څخه دي. دا چې عوام ورته فارسي ژبه وايي دا هم د صفويانو حکومت له وجهې دي، چې پر دې سيمو يې په ۱۷ پيړۍ او د ۱۸ م پيړۍ په پيل کې درلود او دا د هغوی فرهنګي اثرات دي، چې پاتې دي. درست نوم يې پارتي دی چې دا يې رښتيا ده او فارسي نه، او د بلخ او خراسان د خلکو اصلي ژبه ده او نه د فارس د خلکو ژبه چې د هغوی ژبه ارامي وه. يوازې د لږ زده کړې لرونکي کسان او ايران پرستان،خپله ژبه او وياړونه د هغه په دوه برخو ويشي او ايران ته يې وړاندې کوي.

اصلي موضوع دا ده چې هرکله افغانستان د يوه خپلواک هېواد په صفت منو. په دې اساس دا هېواد خپل ملي هويت هم لري چې موږ له ګاونډيانو څخه بېلوي او ځانګړې کوي مو. په هېواد کې مروجه درې ژبه، د خبرو کولو طريقه او د هغه د ليکنو شکل، په هېواد کې د دري اصطلاحات چې مروج دي دا ټول زموږ د ملي هويت نه بېلېدونکې برخې جوړوي. د دې ژبې او لهجې ساتنه او پياوړي کول په افغانستان کې د ايراني نيشنليست او شوونيستانو په مقابل کې چې د دې د له منځه وړلو فکر په سر کې لري. زموږ او ستاسو د هر يوه دنده ده. پر دې سربېره، چې موږ د ايرانيانو سره د دوی د ژبې په اړوند هېڅ مشکل نه لرو، مګر د بې ځايه عربي پلوۍ، ترکي پلوۍ، اردو پلوۍ، انګليسي پلوۍ او نورو په برخه کې له دوی سره شريک نه يو او نه بايد چې ورسره شريک شو. د ايرانيانو مشکل د عربو او ترکانو سره د ژبې له دايرې څخه ډېر لوړ دی، چې هغه د افغانستان د خلکو سره هېڅ اړه نه لري. په افغانستان کې د فارسي دري مروجه ژبه د پېړيو په اوږدو کې د هندي، اردو، ترکي، عربي، پښتو او اروپايي ژبو څخه په استفادې لا نوره غني شوې او د نړۍ د نورو ژونديو ژبو په شان ورځ په ورځ د عملي، ترانسپورتي، اداري، نظامي، فرهنګي او نورو تورو په داخلېدو سره چې زموږ په ژبه کې موجود نه دي، لا نوره غني کېږي. داسې اصطلاحات لکه کمپيوټر، انترنيټ، فېسبوک، ګوګل، لپ ټاپ، نوټ بوک، ټابليټ، راکټ، لارۍ، موټر، راډيو، کسټ، تلويزيون، اس يو وي، جيپ، دا ډول نور په نړيوال

اصطلاحاتو بدل شویدي او زموږ په ژبه کې ورته نوم نه لري. د دا ډول کلماتو لپاره د نویو تورو جوړول د یوې خوا څخه یو اضافه کار دی او له بلې خوا څخه موږ د نړیوالو ټولنو څخه لرې ساتي. موږ غواړو د خپلې دري ژبې ځانګړتیاوې، د خبرو کولو ډول او د ښکلي لیکنو طریقه، فصیح او روان ډول یې وساتو او پیاوړتیا ورکړو.

سنایي غزنوي داسې فرمایي: د خدای شکر دی د سخا سینده، چې ته مې ومونډلې ستا صفت کول او زما شعرونه په دري لفظونو عنصري بلخي وایي: ایا ستا په فضل بهتره شوې دي معاني خیر او یا ستا په لفظ خوږه شوې ده د دري ژبه، لوی سعدي شیرازي فرمایي:په سلهاوو مین داستان ویونکي بلبلانو ته ضرورت دی، چې ستا څخه دري ویل زده کړي، خوږ ژبې حافظ شیراز وایي: د حافظ په زړه پورې شعر څخه هغه کس خبربږي، چې د دري د ژبې په لطف او خبرو کولو سره اشنا وي، د علامه اقبال لاهوري څخه اورو چې وایي: اګر چې اردو شکر دی د دري د خبرو کولو طرز لانور خوږتر دی.

## د صفویانو د دو پېړیو حاکمیت پر وخت کې د دري(فارسي) ژبې برخلیک

ایا دا پوښتنه نه پیدا کېږي، چې د ترکمن غزنویانو د حاکمیت په وخت کې (د ترکمن د اوغوز له قوم څخه) موږ په سلګونه دري ژبي شاعران، ادیبان او پوهان درلودل، مګر د میرویس خان هوتکي له پاڅون څخه مخکې د فارسیانو د ۲۰۰ کلونو حاکمیت په موده کې هېڅ خراساني دري / فارسي ژبی، موږ نه پېژنو چې دلته یې نوم واخلو. بر عکس ډول سره په هغه وخت کې د پیر روښان او خوشحال خان غورځنګونه رامنځ ته شول، چې د هند د مغولو استعمار پلوي، پر پښتون مېشتو سیمو ته یې پام وو او په همدې وخت کې میرویس خان، شاه محمود هوتکي او د هرات ابدالیانو د صفویانو حاکمیت ته د پای ټکی کېښود.

په صادقانه ډول د خراسان په روښانه او غني فرهنګ کې د ددې تیاره عصر د علتونو د راسپړلو په لټه کې یم، چې د ترک ټبره تیموریانو د حاکمیت په وخت کې یې تل پاتې اثار رامنځ ته کړل، اما د فارس د پارسي ژبې د حاکمیت په وخت کې د تاریخ د تیارو په ژورو کې د ننه کړی شو! د خپل هېواد د دوو پېړیو د تاریخ په هکله د معلوماتو غوښتونکی یم!

ښاغلی فرید بهمن د دې تور فرهنګي وخت په اړه داسې لیکي: ؛ د صفویانو وخت له تیارو څخه ډک وخت وو. دا هغه دوره وه چې په دې کې ؛دهلوي؛ کېدل رواج پیدا کوي او فارسي ژبي شاعران مغلي هند ته مخه کوي او هلته د عزت خاوندان کېږي چې په دې کې صاحب تبریزي هم شامل وو. په دې مانا چې افغان او د افغان ضد ډېر هم ؛خبر؛ لکه چې د ؛د قبیلوي سلطنت څخه مخکې، ۳۰۰ کاله پخوا؛ وایي، چې داسې به ګڼي چې د فارس او خراسان عصر په ادبي،علمي او سیاسي برخو کې د پرمختګ خپل اوج او ارتفاع ته رسېدلی وو، او د افاغنه؛ د سلطې سره دا پر مختګ او اوج له خاورو سره یو شو چې تر نن ورځې بیا دوام لري. هغه تېروتنه چې ګوښه ګیر، ټنبل ځوانان یې کوي هغه دا دی چې ګڼي ۳۰۰ کاله د مخه، ممکن پر مخ تللي فرهنګ او اوج ته رسېدلي رواجونه وو!!!!؟ تاجک او هزاره قدرت درلود او لاسته راوړنې یې درلودې.؛

د وخت عجیب حالت یو دا دی، چې نن دوه مخي خراسان غوښتونکي، اصلي دري ژبې څخه دفاع کول چې په خراسان، بلخ او بدخشان کې زېږېدلې او بیا په سلګونه کاله وروسته ایران ته تللې دي او ایراني فارسي یې منځ ته راوړې او بیا یې د پښتون قوم دري ژبو ته پرېښې ده. خراسان غوښتونکي په ناځوانه ډول سره د ایرانیانو سره په لفظي یرغل او د تورو چې د تهران په نامنوس کې دي په واسطه او د هغه تورو په واسطه چې د ایران په فرهنګستان کې جوړ شوي د بدخشان، بلخ، کابل او د هرات د خلکو د دري ژبې په مخالفت او مقابل کې د یو موټي پیسو په مقابل یا بدله کې ورسره مرسته او همکاري کوي. د بدخشان وکیل لطیف پدرام په ولسي جرګه کې چېغې وهلې، چې زما هېواد خراسان او زما ژبه فارسي ده. په داسې حال کې چې بدخشان د اصیل دري ژبې د زېږېدو ټاټوبی دی، چې څو سوه کاله وروسته له هغې هم په ایران کې چا په فارسي خبرې نه کولې. دا ننګینه خیانت به په تاریخ کې ثبت کېږي.

# پنځمه برخه: په افغانستان کې د سیاسي بې ثباتۍ پيل

ننني سياسي پېښې زموږ د نيږدې او د لرې تاريخونو انعکاس دی. د دې له لارې د ننيو حوادثو تفسير کول د تاريخي حادثو په بنسټ د حادثو د لا ښه پوهېدلو او د ورځخه د تېرېدو د لارو د ايستلو لپاره په اوسني وخت کې مرسته کوي. زموږ ځوانان دا حق لري چې خپل تاريخ د هېڅ ډول تعصب او د کومې مداحې څخه د وخت د حکمرانانو لخوا، پوه شي.

**د ۱۳۵۲ ه ل کال د چنگاښ د ۲٦ نېټې کودتا**

د دې کودتا په پايله کې مشروطه شاهي نظام د ټوپک په زور د حزب ډيموکراتيک خلق او د هغه د پلويانو او افسرانو پواسطه او د داوود خان د نيږدې کسانو له لوري خپله داوود خان په پلانگذارۍ او قومانده، له منځه يوړل شوه او په دې ډول سره د نظامي کودتا نا مناسب عمل زموږ په هېواد کې مروج شو.

## د محمد داوود خان جمهوريت



سردار محمد داوود خان د جمهوري نظام بنسټ اېښودونکی او لومړنی جمهور رييس (د دولت رييس) د افغانستان وو.هغه په همدې شان د افغانستان د قدرتمندو واکمنو څخه په اخيرو څو لسيزو کې شمېرل کېږي. داوود خان د يوې نظامي کودتا له لارې د چنگاښ په ۲٦ د ۱۳۵۲ ل کال کې چې د ۱۹۷۳ز سره سمون خوري قدرت ته ورسېد او خپلې بريالی کودتا ته يې د ؛انقلاب؛ نوم ورکړ. داوود خان د محمد ظاهر شاه د شاهي نظام د ړنگولو سره، چې د کاکا زوی يې وو، د افغانستان د سلطنتي نظام ته د پای ټکی کېښود او په خپل لومړني راديويي پيغام کې، د کودتا د برياليتوب څخه وروسته،د جمهوري نظام د راتگ اعلان وکړ.

سردار محمد داوود خان د سردار محمد عزيز خان زوی چې هغه د محمد يوسف خان او هغه د سردار يحيی خان او هغه بيا د سلطان محمد خان طلايي زوی او د سردار پاينده محمد خان محمد زي د اولادوو څخه وو، دی.

داوود خان په ۱۲۸۸ ه ل کال کې چې د ۱۹۰۹ ز کال د جولای د ۱۸ سره سمون خوري په کابل ښار کې نړۍ ته سترگې پرانیستلې خپل ابتدایي تحصیلات یې د حبیبیه په لیسه کې تمام کړل، خپلې لوړې زده کړې یې بیا په فرانسه کې سرته ورسولې او نظامي زده کړې یې بیا په حربیه لیسه کې بشپړې کړې.

داوود خان د دې څخه وروسته چې د لومړي وزیر رتبې ته غوره شو، په مختلفو نظامي، امنیتي سیمو کې کار کړی،چې په دې کې دخیل د کندهار ولایت او د حربیه د وزیر دنده هم سرته رسولې ده. نوموړی د یو څو وخت لپاره د کورنیو چارو وزارت په چوکۍ هم کار وکړ. مگر دی په دې باندې قانع نه وو او په ۱۹۵۳ز کال کې د لومړي وزیر څوکۍ ته وټاکل شو او په دی مقام کې یې لس کاله کار وکړ.داوود خان هغه نسبي ازادي چې د شاه محمود خان د صدارت په وخت کې منځته راغلې وه محدوده کړه او یو ؛پولیسي حکومت؛ یې په هېواد کې ټینگ کړ.

مگر داوود خان په هېواد کې د بنسټیزو اقتصادي کارونو په برخه کې کوښښونه وکړل، پنځه کلن اقتصادي او ټولنیز اول او دوهم پلانونه یې طرح او تطبیق کړل چې په ښارونو کې د عمده او مهمو لارو او د برق د بندونو پلان او د ابیارۍ پلانونو باندې ختم شول. همدا راز د شاهي نظام د ختمولو څخه وروسته د اووه کلن پلان په طرح او تطبیق باندې په ۱۳۵۵ ه ل کال کې اقدام وکړ مگر د دوه کلونو څخه وروسته د غوایي د میاشتې په اوومه نېټه د ۱۳۵۷ کال (د ۱۹۷۸ ز د اپریل په ۲۷) د ده رژیم نسکور شو.

د سردار محمد داوود خان دولت د سیاسي قدرت د لاسته راوړلو څخه وروسته په خپل لومړنۍ رادیویي وینا کې د سیاسي نظام د شکل په اړوند داسې وویل:؛زه د خپل هېواد د راتلونکې نېکمرغۍ په خاطر د دیموکراسۍ د ټینگولو په واقعي او معقول ډول چې د هغې اساس د افغانستان د اکثرو خلکو لپاره د خدماتو برابرول دي، بله لار مې نه لټوله او په فکر کې یې هم نه یم زما په نظر د دې شان یو ټولنیز وضع تامینول،د خلکو د حقوقو تامینول او د ملي حاکمیت په اصل باندی اعتراف کول دي، چې باید پورته ذکر شوي دوه اصلونو ته په واضیح او یا په پټه، خلل وارد نه کړي؛.

پورتنی څرگندونې چې د محمد داوود خان د پاک نیت او د هېواد سره د مینې ښکارندوي کوي، دا هېڅکله هم باید د پوښتنې لاندې رانشي، مگر د ځانگړو عواملو له وجهې چې شاید ممکن د ټولنې د بیسوادۍ او د سیاسي رشد د نشتوالي له وجهې او یا هم د زمانې مصلحت وي، سردار محمد داود خان هر هغه څه یې چې د دیموکراسی او د ملي حاکمیت په هکله په اول کې تعهد کړی وو، د اساسي قانون د تدوین په جریان کې بلې خواته ولاړ. د موادو په ارزیابی او مطالعه د موادو پر بنسټ د جمهور رییس په صلاحیتونو او وظایفو کې د جمهوري ریاست په مقام کې چې دی په خپله په هغه پوست کې وو، د ۱۳۵۵ ل کال د حوت د میاشتې په اساسي قانون کې د افغانستان د جمهوري دا ښایي چې دا ټول د ده په شاو خوا متمرکزه وو. دا واضیح ده چې د خلکو او ملت استازو پارلمان له لارې یانې د ولسي جرگې او ولسي جرگې له لارې د هېواد په حاکمیت کې ونډه درلوده مگر په اساسي قانون ۱۳۵۵ حوت کې د محمد داوود جمهوري حکومت دې ته اړ نه وو چې د ولسي جرگې څخه د اعتماد رایه تر لاسه کړي، ولسي جرگه یا ملي شورا نشو کولی چې د حکومت یا د کابینې د غړو څخه اعتماد سلب کړي، په دې اساس خلکو نشو کولی چې د خپلو استازو له لارې د هېواد په اداره کې برخه واخلي او خپله اراده په دولتي حاکمیت کې تمثیل کړي. تعینول، برطرف کول او د

مامورینو د استعفا قبلول رییس جمهور او د کابینې غړي د (۸۷) مادې په اساس او د اساسي قانون د یوولسمی مادې د برخې په اساس ټول د جمهور رییس د وظایفو او مسوولیتونو څخه شمېرل کېده.له همدې کبله د افغانستان د جمهوري اساسي قانون ۲۱ ماده چې حکم یې کولو؛په افغانستان کې ملي حاکمیت خلکو پورې اړه لري؛ دا په عملي برخه کې د پوښتنې لاندې راځي.

د محمد داوود خان په اساسي قانون کې د حزب انقلاب ملي پرته،چې سردار محمد داود خان پورې مربوط وو، بل هېڅ گوند د فعالیت اجازه نه درلوده. دا موضوع د اساسي قانون په څلوېښتمه ماده کې داسې توضیح شوې ده.

؛د افغانستان د خلکو د غوښتنو د روښانولو او د ټولنیز او سیاسي تربیې په خاطر تر هغه چې دغه ارزو سرته ورسېږي او خپل طبیعي حالت ته ورسېږي د حزب انقلاب ملي تر رهبرۍ لاندې چې د ملي او مترقي پیش اهنگۍ بنسټ اېښودونکی دی د چنگاښ د ۲۶ د افغانستان د خلکو لپاره، په دې هېواد کې یوازې یو حزبي سیستم موجود او مستقر دی.؛ په دی ترتیب سره د سردار داوود خان له نظره تر هغه چې د افغانستان ټولنه معین سیاسي پوخوالي ته ونه رسېږي، د افغانستان د دولت لپاره یې د یو حزبي حکومتي شکل غوره کړی وو.

د احترام وړ او د تقوا له نظره د تحسین وړ د سردار محمد داوود خان د شخصیت څخه پرته او د ده د ارزوگانو څخه سربېره د هېواد د اقتصادي پرمختگ په لار کې، د دې کودتا نتایج د سیاسي او امنیتي او ټولنیز او اقتصادي پرمختگ له نظر څخه ډېر د فاجعو څخه ډک وو. د داوود خان د کودتا فاجعه لرونکي عواقب، چې د افغانستان د سیاسي نقطې د څرخېدو وخت د افغانستان په تاریخ کې دی.

باید د دې کودتا نتایج او عواقب په خلاصه توگه سره جمعبندي کړو:

1 - د دې کودتا په پایله کې مشروطه شاهي نظام د ټوپک په زور د حرب ډیموکراتیک خلق او د هغه د پلویانو او افسرانو پواسطه او د داوود خان د نیږدې کسانو له طرفه خپله داوود خان په پلانگذارۍ او قومانده، له منځه یوړل شو او په دې ډول سره د نظامي کودتا نا سم عمل زموږ په هېواد کې مروج شو

2 - مشروطه ولسي جرگې شاهي نظام چې په اساسي قانون باندی متکي و دیموکراسي ساقطه شوه او د هغې پر ځای یو دیکتاتوري یو کسیزه نظام چې اتکا یې پر یو کس باندی وه د دولت د رییس په امر کودتا په هېواد کې حاکم شو او نوم یې جمهوریت پرې کېښود.

3 - نه یوازې دا چې د هېواد د خلکو په سیاسي ژوند، اقتصادي او ټولنیز برخو کې هېڅ مثبت تحول را نغی، مگر بر عکس د افغانستان خلک یې د ټولو هغو لاسته راوړنو څخه چې په ټولنیز او سیاسي مبارزاتو کې درلودل، هم محروم کړل

4 - د صدارت مقام چې د ولسي جرگې په مقابل کې ځواب ورکوونکی وو، لغو اعلان شو

5 - ولسي جرگه لغوه شوه

6 - د قضایه قوې استقلالیت لغوه شو

7 - د رسنيو خپلواکي لغو شوه

8 - د لومړي وزير د مقام په لغوه کېدو، ولسي جرگه، د قضايه قوې د استقلاليت لغوه او د رسنيو د ازادۍ لغوه، د دولت د ټولو ارگانونو اداره د يو کس په لاس کې شوه

9 - د پوهنتونونو استقلاليت خپله د رييس په ټاکلو کې او د پوهنځيو د رييسانو، د ازادانه ټاکلو له لارې د علمي کدرونو او د پوهنتونونو او پوهنځيو لغوه شول

10 - د استادانو اتحاديه لغوه شوه،د محصيلنو اتحاديه لغوه شوه، د بيان د ازادۍ حق لغو شو، د غونډو او جلسو د ازادۍ حق لغوه شوه

11 - د چنگاښ ۲۶ کودتا د افغانستان د دولت بنسټ ويجاړ کړ او د دې نظام ټول مخالفين له يوې خوا څخه د دې د له منځه وړلو شرايط برابر کړ او له بلې خوا يې د برياليتوب او د د برياليتوب د اميد لارې هوارې کړې

12 - د کودتا رژيم د مخالفينو په بالقوه او بالفعل سرکوب کولو لاس پورې کړ چې ډېر خلک د دې پروسی قربانيان شول

13 - په دې له منځه وړلو کې ښي طرفه مذهبي ډلې او منځمهاله ډيموکراتيک روڼ اندي د موخه لاندې راغلل.د دې څخه محمد هاشم ميوند وال يو ديموکرات روشنفکر لومړی وزير د رژيم د جلادانو د کړاونو لاندې ساه وخته او يو نور شمېر اعدام شول

14 - د دې کودتا په پايله کې، مذهبي افراطي ډلې ښي طرفه ډلې لکه رباني، گلبدين او مسعود د هېواد څخه وتښتېدل او د پاکستان د نظامي استخباراتو غېږې ته يې پناه يوړله چې د هغې د مشکلاتو څخه ډکه پايله تر نن ورځې موږ وينو او ادامه لري

15 - د دې فرصت څخه په استفادې کمونيستي ډلې پرچم او خلق خپل ځان يې د کودتا منطقي ځای ناستي بلل، يو ځل بيا سره يو شول او د قدرت د لاسته راوړلو هلې ځلې يې وکړې او اماده گي يې ونيولې او په پايله کې يې د رژيم د سقوط کولو پر کار بريالي شول

16 - که د داوود خان د صدارت د دوران ټولې لاسته راوړنې د اول او دوهم پنځه کلن پلانونو تطبيق کول وو په ديموکراسی دوره کې د دې څخه وروسته، هم درېيم او څلورم پنځه کلن پلانونه تطبيق شول

17 - د کودتا رژيم د اولني کودتاچيانو د ملگرو پواسطه سقوط کړی شو

18 - هغه کسانو چې د کمونيستي دوران د رسنيو خپلواکي،د اجراييه قوې استقلاليت، د مقننه او قضايه قوو او د مشروطه سيستم ولسي جرگې قدرت د دولت يې د دولت محکوم کړ د ننني بحرانی حالات د هغو خپلواکيو له وجهی بولي، بايد پوه شي چې د طبيعي سياسي روند د حکم په اساس او د ملتونو سياسي او ټولنيز او اقتصادي د بشري ټولنو

ژر یا وروسته دا ډول ازادۍ غواړي او لاسته یې راوړي او هغه کسان چې دا ډول خپلواکی له خلکو څخه اخلي په هر سیاسي فرهنگ او قاموس کې د دیکتاتور په نامه پېژندل کېږي!

19 - د ۱۳۵۲ د چنگاښ ۲٦ کودتا په عمل کې شاهي مشروطه نظام چې په ولسي جرگې دیموکراسۍ باندې متکي وو سقوط کړ او د هغې پر ځای یې یو نظام حاکم کړ چې مطلق سیاسي حاکمیت یې درلود او نوم یې پرې جمهوریت کېښود تر دې حده چې سیاسي لرلید یو حربه دیکتاتوری (د ملي غورځنگ حزب) د مطبوعاتو د ازادۍ نه موجودیت او دیموکراسۍ زیری یې ورکولو.

د دې سره سره چې ډېر خلک په دې معتقد دي چې داوود خان د مخکنی شوری په پلوی او حمایت او د افغانستان د خلق ډیموکراتیک حزب په مرسته قدرت ته ورسېد، مگر د حزب ډیموکراتیک خلق د رهبرانو هره ورځ لا نور قدرت واگو ته رسېدلي د داوود خان د حکومت په اخیرو کې د دې لپاره خوشحاله نه وو. **داوود خان** د ۱۳۵۷ کال په پیل کې د دې گوند اکثر مشران بندیان کړل. مگر د حزب ډیموکراتیک خلق پلویان د ډېر نفوذ له لارې چې په دولت کې دننه یې درلود، په خاص ډول سره اردو او پولیس کې، په کودتا یې لاس پورې کړل. د داوود خان په خلاف کودتا د ثور په اوومه د سهار له خوا د حزب ډیموکراتیک خلق د رهبرۍ لاندې پیل او د ورځې تر اخره پورې تمامه شوه او هر څه تغیر وکړ. داوود خان د خپلې کورنۍ د ۱۸ غړو سره یو ځای د ریاست جمهوري د ماڼۍ په داخل کې په قتل ورسېدل او قدرت حزب ډیموکراتیک خلق لاسته ورغی.

**د بارکزیو سلسله – د سردار یحیی خان کورنۍ**

| شمېره | د پاچا نوم/د دولت رییس | د مخکني امیر سره نسبت | پلازمېنه | د حکومت دوره (زېږدیز) |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | محمد نادر شاه | محمد نادر خان د محمد یوسف خان زوی، د سردار یحیی خان لمسی او د سردار سلطان محمد خان طلایي د پېښور حکمران اولاده سردار پاینده محمد خان محمد زی د امیر دوست محمد خان ورور وو. | کابل | ۱۹۲۹-۱۹۳۳ |
| ۲ | محمد ظاهر شاه | د محمد نادر خان زوی | کابل | ۱۹۳۳-۱۹۷۳ |
| ۳ | محمد داوود خان (د دولت رییس) | د نادر خان وراره د سردار محمد عزیز خان زوی د محمد یوسف خان زوی | کابل | ۱۹۷۳-۱۹۷۸ |

**د دې برخې د ماخذونو فهرست**


۱. میر محمد صدیق فرهنگ، افغانستان په پنځو وروستیو پېړیو کې، ۱۳۸۵ ه ل، عرفان،تهران

۲. جواهر لعل نهرو،د نړۍ تاریخ ته کتنه

۳.د افغانستان وقایع او سوانح، د میر هاشم محدث په تصحیح، تهران، د امیر کبیر انتشارات.-

۴. فکرت هروي، محمد اصف (په کوښښ)، ۱۳۶۹، عین الوقایع، د افغانستان تاریخ په ۱۲۰۷-۱۳۲۴ ه س کې، محمد یوسف ریاضی هروي، تهران، د ادبي او تاریخي انتشاراتو مجموعه د ډاکټر محمود افشار یزدي موقوفات

۵.محمد حسن خان اعتمادالسلطنه، د ناصري منتظم تاریخ، تهران: د کتاب نړۍ، ۱۳۶۷، ج۳، ۲ ۱۴۵۴

۶. افغانستان په تاریخي بهیر کې، میر غلام محمد غبار، لومړی ټوک د کابل چاپ

۷. سیدال یوسفزی، نادر ځنګه پاچاهۍ ته ورسېد، د میوند نشراتي مرکز، سبا کتابتون،پېښور، ۱۳۷۸

۸.شهرت ننګیال، پخوانی شاه محمد ظاهر شاه، د نصیر احمد نشاط ترجمه، د میوند نشراتي مرکز، سبا کتابتون، پېښور، ۱۳۷۹

۹.محمد نجیم اریا، محمد هاشم میوندوال، د میوند نشراتي مرکز، سبا کتابتون، پېښور، ۱۳۷۸

## د ثور د اوومې کودتا: د ډیموکراتیک جمهوري دولت (۱۹۷۸ – ۱۹۹۲م)

## خلاصه

د افغانستان د ډیموکراتیک جمهوریت د څوارلس کلونو لپاره، د ثور د اوومې ۱۳۵۷ ه ل څخه چې د اپریل ۲۷ د ۱۹۷۸ سره سمون خوري تر اتم د ثور ۱۳۷۱ پورې چې د اپرېل ۲۸ د ۱۹۹۲م سره سمون خوري پورې په قدرت کې وو. په دې دوران کې څلور رهبران د حزب ډیموکراتیک خلق څخه د دولت د رییس په مقام کې او د ډیموکراتیک خلق د حزب د عمومي منشي په صفت دولت یې رهبري کړ چې دوی دا کسان وو:نور محمد تره کی،حفیظ الله امین، ببرک کارمل او ډاکټر نجیب الله.

کمونیستي پرچم او خلق ډلې، چې د دوی اړوند صاحب منصبان د سردار محمد داوود خان د کودتا په بریالیتوب کې مهم رول درلود خپل ځان یې د داوود خان د کودتایي رژیم منطقي وارثان بلل. د پرچم او د خلق د بیا متحد کېدو څخه وروسته، چې د حزب ډیموکراتیک خلق افغانستان په تحکیم او د دوی په صفوفو ختم شو،د قدرت د واگې د لاسته راوړلو لپاره یې تیاری ونیولې. په پایله کې یې د لومړي ځل لپاره داوود خان د دې گوندونو د مشرانو په بندي کولو د ثور په شپږمه، زمینه مساعده کړه، هغه افسران چې حزب د جمهوري دولت پورې تړلي وو د ثور په اوومه نېټه د ۱۳۵۷ه ل کال چې د اپریل ۲۷ د ۱۹۷۸ سره سمون خوري سقوط کړ.

په لږ وخت کې د قدرت د لاسته راوړلو څخه وروسته د خلقیانو او پرچمیانو قدرت د اکتوبر د انقلاب په نمونه او د د سیاسي حزب د جوړېدو – د ټولنې د اقشارو په موفق کېدو په خپل منځ کې په ضد کړل او بلاخره د شوروي اتحاد په مداخله، یو ایدیالوژیکه مبارزه یې په خپلواکی برخه کې په ملي جنگ بانې بدله کړه. په دې اخیرو کې فرید مزدک د ډاکټر نجیب الله معاون د بي بي سي سره په یو مصاحبه کې داسې وویل، اې کاش چې حزب ډیموکراتیک خلق قدرت ته نه وای رسېدلی. زما په نظر یو منطقي هیله نه ده، داسې یې باید ویلي وی چې د حزب رهبریت د یو تاریخی فرصت د له لاسه ورکولو سره د یوې ډیموکراتیکې ټولنې د جوړولو چې تل د حزب په نشراتو کې منعکس کېده، لکه د سیاسي پلورالیزم جوړول، د خلکو د ډیموکاتیکو خپلواکیو ته تحقق ورکول لکه د بیان خپلواکي او د ټولنیز سازمانونو جوړښت، خپل صفوفو ته او د افغانستان خلکو ته یې خیانت وکړ او د شوري اتحاد دیکتاتوری نمونه یې په عوض کې تطبیق کړه او د شوروي سره یو ځای د تاریخ ژورو کثافت دانیو ته ولوېد!

د شوروي اتحاد ځواکونو د وتلو څخه وروسته د افغانستان څخه په ۱۹۸۹ز کال کې او د ډاکټر نجیب الله له حکومت سره د دوی د اقتصادي مرستې قطع کېدل دری کاله دوام درلود او په دې دریو کلونو کې یې وشو کولی چې په بریالیتوب سره مجاهدینوو لاسته د دولت له سقوط څخه د مخنیوی وکړي او بلاخره د مالي منابعو په ختمېدو سره، د یو سیاسي توافق د نشتوالي له وجهې د مجاهدینو ډله د جگړې د ختم او د یو ملي دولت د جوړولو په خاطر، د دولت

دوام امکان نه درلود په جبر سره مجاهدینو ته د قدرت د تسلیمولو ته مجبور شول.ډاکټر نجیب الله د کابینې په وروستی غونډه کې د مالي سرچینو د ختمېدو څخه خپل وزیران خبر کړل او په ژینوا کې له مجاهدینو سره د خپل یو سیاسي توافق ته د رسېدو د ناکامۍ خبر یې ورکړ چې خپله د دولت کار اخیر ته رسېدلی دی د دې له مخی خپلو ملګرو او وزیرانو ته یې اجازه ورکړه څو خپلې راتلونکې په هکله خپل تصمیمونه ونیسي او خپله یې هم وغوښت چې ډهلي ته خپلې کورنۍ ته ورشي، مګر د دوستم ملېشه چې د کابل د هوایي ډګر امنیت یې په لاس کې وو،د ده د پرواز څخه مخنیوی وکړ او دی د بلی لارې د نشتوالي څخه په کابل کې د ملګرو ملتونو دفتر ته پناه یوړله.

وزیرانو غونډې ته د حکومت د کار د ختمیدو په اعلان او د هغې څخه وروسته د هېواد څخه د ډاکټر نجیب الله د بیرون تللو ناکامي، بی ځایه نه دي چې ملګري او د نجیب الله د دولت وزیران د خپل راتلونکي په اړه،خپله تصمیمونه ونیول او هر یو یوې خواته ولاړل.په دې ګډوډۍ کې، د فرصتپاله جنرال عبدالرشید دوستم له احمد شاه مسعود څخه پلوي کول او د دولت او د نظامي ځواکونو تسلیمول د ډاکټر نجیب الله د څو پرچمی عناصرو پواسطه لکه وکیل، فرید مزدک، جنرال نبي عظیمي، جنرال علومي او نور په ۱۹۹۲ز کال کې، احمد شاه مسعود او د جمعیت حزب ته یې دا موقع ورکړه چې د مجاهدینو تر منځ د ټولو موافقاتو څخه په سترګې پټولو ټول قدرت په خپل لاس کې واخلي او مطلق حاکمیت ټینګ کړي .

د ثور د میاشتې په ۷ نېټه د ۱۳۵۷ ه ل کال (اپریل ۲۷ ۱۹۷۸ ز)،د افغانستان د خلق ډیموکراتیک حزب (ح د خ ا) په وینو لړلې کودتا سره د محمد داوود خان جمهوریت یې ختم کړ او د کودتا انقلابي شورا کودتاچیانو د جمهوري ډیموکراتیک افغانستان د دولت اعلان وکړ نور محمد تره کی د انقلابي شورای د ریاست د مقام لپاره وټاکل شو او ببرک کارمل د معاون په صفت او حفیظ الله امین د خارجه وزیر په صفت وټاکل شول.

د افغانستان د ډیموکراتیک جمهوریت د څوارلس کلونو لپاره، د ثور د اوومې ۱۳۵۷ ه ل څخه چې د اپریل ۲۷ د ۱۹۷۸ سره سمون خوري تر اتم د ثور ۱۳۷۱ پورې چې د اپریل ۲۸ د ۱۹۹۲ز سره سمون خوري پورې په قدرت کې وو. په دې دوران کې څلور رهبران د حزب ډیموکراتیک خلق څخه د دولت د رییس په دنده کې او د ډیموکراتیک خلق د حزب د عمومي منشي په صفت رهبري کړ چې دوی دا کسان وو:نور محمد تره کی،حفیظ الله امین، ببرک کارمل او ډاکټر نجیب الله.

د افغانستان د ډیموکراتیک خلق د ګوند فکری بنسټ مارکسیزم – لیننیزم ایډیولوژۍ وې او د کمونیست شوروي اتحاد د حکومتدارۍ او سیاستونو څخه یې د نمونې په شکل استفاده کوله او حمایت یې ورڅخه کولو.

خلقیانو او پرچمیانو قدرت د اکتوبر د انقلاب په نمونه او د د سیاسي حزب د جوړېدو – د ټولنې د اقشارو په موفق کېدو په خپل منځ کې په ضد کړل او بلاخره د شوروي اتحاد په مداخله، یو ایدیالوژیکه مبارزه یې په خپلواکۍ برخه کې په ملي جنګ باندې بدل کړ. په دې اخیرو کې فرید مزدک د ډاکټر نجیب الله معاون د بي بي سي سره په یو مصاحبه کې داسې وویل، ای کاش چې حزب ډیموکراتیک خلق قدرت ته نه وای رسېدلی. زما په نظر یو منطقي هیله نه ده، داسې یې باید ویلې وی چې د حزب رهبریت د یو تاریخي فرصت د له لاسه ورکولو سره د یوې ډیموکراتیکې

ټولنې د جوړولو چې تل د حزب په نشراتو کې منعکس کېدو، لکه د سیاسي پلورالیزم جوړول، د خلکو د ډیموکراتیکو خپلواکیو ته تحقق ورکول لکه د بیان خپلواکي او د ټولنیز سازمانونو جوړښت، خپل صفوفو ته او د افغانستان خلکو ته یې خیانت وکړ او د شوري اتحاد دیکتاتوری نمونه په عوض کې تطبیق کړ او د شوروي اتحاد سره یو ځای د تاریخ ژورو کثافت دانیو ته ولوید!

## د ثور د اوومې کودتا عوامل

د کودتا، کړنو، نتایج او د هغوی لاسته راوړنې عوامل او علتونه چې د حزب ډیموکراتیک خلق افغانستان ۱۴ کلن حکومت پر ځای پرېښود، د افغانستان د معاصر تاریخ تر ټولو ډېره برخه تشکیلوي. د میر اکبر خیبر په پټه په قتل رسول، یو کس د حزب د مشرانو (د ۱۳۵۷ د حمل د میاشت په ۲۵ ه ل)، د ده خاوروته سپارلو په مراسمو کې د حزب د قدرت ښودلو مظاهرې، او د داوود خان اقدامات چې څو تنه د حزب رهبران یې د کودتا څخه دوه ورځې د مخه بندیان کړل ټول د کودتا ظاهري عوامل ښکاره کوي.

داوود خان د یو بدلون په اوږدو کې د ایران او سعودي عربستان د میلیاردو ډالري مرستو په هیله خپل پرچمي همکاران له کابینې څخه لرې کړل او د بې رحمی چلند یې ورسره وکړ.د دې سره په عین وخت کې د پاکستان سره د تشنج پلوه سیاست د غوره کولو، شوروي اتحاد سره د پخواني سیاست څخه لرې والی، د ایران او سعودي عربستان سره نیږدې اړیکې، د یو واحد گوند په جوړولو کې هلې ځلې (ملي غورځنگ) ټول د قریب الوقوع مستقیم اقدامات د سیاسي چپي عناصرو پر ضد د ښکاره کولو.

همدا وو چې حزب ځانگړې اماده گي په ځانگړې ډول سره په اردو کې ونیوله. د هغې څخه د دوه گوندونو د یووالي بیا جوړولو اقدام ؛خلق؛د نور محمد تره کي په مشری او ؛پرچم؛ د ببرک کارمل په مشری جوړ کړ ؛د افغانستان د ډیموکراتیک خلق حزب (ح. د.خ. ا) په ۱۹۷۷ز کې. یو ځل نور محمد تره کي ویلي وو:د داوود خان د جمهوریت نسکورول د ثور د کودتا څخه د مخه (تره کی دې ته همیشه د ثور انقلاب ویل) تر کار لاندې وو.په واقعیت کې ؛چپیانو؛ - خلقیان او پرچمیان – د ښکاره کولو څخه پرته د خیبر د مړینې پېښې ته هم اماده وو څو د داوود خان د عمل مخنیوی وکړي... د ثور کودتا د حفیظ الله امین په مشری، د هغې اساسي غوښتنی په ځواب کې، چې د حزبې مشرانو د ژغورنې په خاطر وو. د نصیر مهرین په نظر ؛د کودتا د بریالیتوب علت په اردو کې د منظم نظامیانو تشکیل، د تاوتریخوالي په کارونو کې د جمهوریت د نظامي نا وړتیا، او د خلکو صرف ورته کتنې کولی شو ومنو؛. (د دري ژبې دویچه وېلو).

حفیظ الله امین ویلي وو چې ؛د ثور انقلاب په همغه کچه چې واشنگتن یې غافلگیره کړی وو په همغه پیمانه یې مسکو هم متعجب کړی وو؛. د جاناتان ستیلل په قول چې د گاردین پخوانی خبریال وو (د افغانستان د جگړو د ډگرونو ارواح کتاب کې، د لندن چاپ ۲۰۲۱۲ز کال په انگلیسي ژبه) د شوروي مسولین،په ځانگړې توگه بیا په کابل کې د ((کې جې بي KGB)) غړي په خدمت بوخت مامور، د ثور د اوومې د کودتا څخه غافلگیره شول. د دوی په باور نه افغانستان د

سوسيالېزم پوخوالي ته رسېدلی او نه د هغې څخه د مخه د خلق ډيموکراتيک گوند د واکمنۍ پيدا کوونکی وو. په حقيقت کې گوند د دوه گوندونو داخلي سوري، له دننه څخه مات کړل. ((خلق)) تندروه تگلاره او د اکثريت لرونکې، د کودتا دسيسه يې جوړه کړی وه. دا ډله د ((پښتو)) ژبې خلکو د ډلو ملاتړ يې له ځان سره درلود چې کار او يا د پوهنې نظام ته د لاسرسي لپاره په خپلو مېشتو سيمو کې وو.((پرچم)) د اقليت او منځمهاله ډله، د متوسط ښار مېشتو ډلو ((دري)) ژبو زړونه يې گرم ساتلي و.

## د افغانستان د خلق ډيموکراتيک گوند

مير غلام محمد غبار، نور محمد تره کی،ببرک کارمل، مير اکبر خيبر، صديق الله راهي او علي محمد زهما، اولين کسان وو چې د تدارکاتو په کمېټه کې د خلق د ډيموکراتيک گوند د جوړولو هلې ځلې وکړې. د يوې لنډې زمانې څخه وروسته طاهر بدخشي هم د دې کمېټې سره يو لاسی شو مگر غلام محمد غبار د دې کميټې څخه لرې ولاړ او علی محمد زهما او صديق الله راهي هم د افغانستان څخه بهر ته ولاړل.

د دې کسانو څخه ځينې د شاهي کورنۍ لخوا هم حمايت کېدل،په دې وتوانېدل چې په ۱۳۴۲ ل کال کې لومړنی تشکيلاتي هسته چې د ؛اولې کميتی؛ په نامه مشهوره وه،منځ ته راوړي. د نسبتاً خپلواکې فضا څخه په استفادې چې په ځلوښتمه لسيزه کې (د افغانستان د ديموکراسۍ لسيزه) جوړه شوې وه، د دې کمېټې غړي د ۱۳۴۳ د جدی په ۱۱ نېټه د خلق د ډيموکراتيک گوند اولينه کنگره يې په غير علني ډول سره د نور محمد تره کي په کور کې، د کابل په کارته چهار سيمه کې جوړه کړه. په دې کنگره کې د ۲۷ څخه ډېر د حزب غړو برخه واخيستله، طاهر بدخشي د نور محمد تره کي او ببرک کارمل ژوند ليک يې چې د حزب لوړ پوړي غړي وو ولوست او د هغې څخه وروسته د جلسې تر ټولو مشر شخص، ادم خان ځاځی د غونډې د موقت رييس په صفت وټاکل شو. په دې جلسه کې د هر غړي د خبرو کولو څخه وروسته يوه اساسنامه د خلق د ډيموکراتيک گوند په تصويب ورسېده او ۱۸ کسيزه ډله د ؛پلينوم؛ په نامه د حزب وټاکل شوه. دا پلينوم د حزب مرکزي کمېټه چې د ۷ اصلي غړو او څلور علي البدل غړو څخه جوړه وه غوره کړل. نور محمد تره کی، ببرک کارمل،صالح محمد زېری،طاهر بدخشي، سلطانعلي کشتمند، شهرالله شهپر او دستگير پنجشيری اصلي غړي او ډاکټر شاه ولي، ظاهر افق، ډاکټر ظاهر او نور احمد نور د علی البدل غړو په نامه وټاکل شول.

همدا راز د گوند مرکزي کمېټه، نور محمد تره کی د عمومي منشي او ببرک کارمل يې د منشي د مرستيال په صفت وټاکل.

دا گوند، خپل لومړني جدي حرکت کې، وتوانېد چې د حزب څو غړي د استازي په نامه د ملي شورا په دولسمه دوره کې، د افغانستان ولسي جرگې ته داخل کړي. په هغه ټاکنه کې، ببر کارمل، اناهيتا راتب زاده، نور احمد نور او فيضان الحق فيضان شورا ته لاره ومونده مگر نور محمد تره کي او حفيظ الله امين شورا ته لاره و نه مونده.

د دې نوماندانو څخه يو هم، په ټاکنيزو تبليغاتو کې،خپل ځان د مارکسيستي فکرونو پلوی معرفي نه کړ. کارمل او راتب زاده، چې د کابل څخه ولسي جرګې ته تللي وو خپل ځانونه يې د ديموکراسی پلويان او نور احمد نور چې د کندهار له پنجوايي څخه تللی وو د خپل پلار له نفوذ څخه چې په سيمه کې لوی ملک وو په استفاده وکړه.

د ملي شورا د کار د پيل څخه وروسته، ظاهر شاه،د دوهم ځل لپاره محمد يوسف د لومړي وزير د څوکۍ لپاره مختته کړ. ډاکټر يوسف د شورا د غړو د اکثريت رايو څخه وروسته، دا مقام لاسته راوړ. د خلق د ډيموکراتيک ګوند غړي غوښتل چې د اساسي قانون او لومړي وزير د ټاکلو لپاره دې د شورا غونډه په علني ډول سره جوړه شي او د ۱۳۴۳ ل کال د عقرب په دريمه، مظاهرې پيل کړې. د دې مظاهرو په پايله کې، په وينو لړلې نښتې منځ ته راغلې او د افغانستان سياسي فضا متشنجه شوه او ډاکټر يوسف مجبور شو چې د اعتماد د رايې د لاسته راوړلو څخه څلور ورځې وروسته استعفا ورکړي.

د ۱۳۴۵ ل کال د حمل په ۲۲ نېټه، د ډيموکراتيک ګوند لومړنۍ خپرونه د ؛خلق؛ په نامه چې د امتياز خاوند يې نور محمد تره کی وو او بارق شفيعی يې مسول مدير وو، په کابل کې په خپرونو پيل وکړ. د خلق خپرونه د سياسي اهدافو او د حزب د ايديولوژۍ د خپرولو لپاره وه او په غير مستقيم ډول سره مارکسيستي مفکورې يې نشر او تبليغ کولې.

دا خپرونه د هم هغې کال د جوزا په مياشت کې، د ياد شويو مطالبو د چاپ په خاطر د خلکو او د ولسي جرګې د قهر سبب شوه او د ولسي جرګې له تصويب څخه وروسته، په داسې حال کې چې يوازې شپږ ګڼې يې چاپ شوې وې، د دولت له خوا توقيف شوه. مګر د توقيف څخه وروسته په غير قانوني او پټه بڼه هم چاپ او خپرېده.

صديق راهي د خلق د ډيموکراتيک ګوند يو پخوانی غړی په يو فېسبوکي بحث کې د خپلو ځينو پخوانيو ملګرو سره داسې ليکي: د افغانستان د خلق ډيموکراتيک ګوند د يو پيش اهنګ په صفت کار کوونکې طبقه (زحمتکښان) د عيني اوضاع په نظر کې نيولو سره او د سياسي او ټولنيز مشخص تحليل سره هم هغه وخت (د ۱۳۴۳ کال د جدی ۱۱) بنسټ کېښودل شو. دا ګوند د لومړي ځل لپاره د افغاني ټولنې بنسټيزه مسايل د ټولنپوهنې او علمي ليدلوري څخه (تاريخي ماترياليزم) مطرح کړ د هغې زمانی انقلابيانو مترقي ايدیالوژي په پيش بينۍ د ټولنيز ژوند اساسي تضادونه يې تر هدف لاندې ونيول او د انقلاب بدلېدل يې د تاريخي ونډې په شکل مطرح او د حزب په پروګرامونو او برنامو کې يې د منل شويو لارښوونو د نړيوال انټرنېشنل کار کولو او بين المللي کنفرانسونو) د ملي ډيموکراتيک انقلاب د سرته رسولو په موخه د ملي او انقلابي لويو جبهو له لارې او د غير سرمايه دارۍ د لارو د پياوړي کولو فورمول بندي او وړاندې کړ چې په هم هغه وخت کې ضروري او انقلابي وبلل شو او زموږ اکثريت (هغه کسان چې په دې صفحه کې شامل دي او نور چې د حزب غړيتوب يې درلود مګر دلته حاضر نه دی) په انقلابي شور او شوق سره په وطنپراستانه شکل سره هغه مرام يې ومنلو او د هغه د تحقق په لار کې يې مبارزې وکړې، د دې څخه پرته چې کوم د انتقاد يا کوم بحث پيل کوونکی نظر ولرو، د دې سره سره چې زما معلومات بشپړنه دي ممکن ځينې دوستان په دې حلقه کې د مخفي يا علني مخالفانو له ډلې څخه وي، هغه مرام او هغه خط مشي وه چې زه ترې خبر نه يم، په هرحال، دا چې دا ډول يوه جبهه په افغانستان کې جوړه نشوه،د فيوډالي څخه د مخه د توليد څرنګوالی او فيوډالي او ټولنيز فيوډالي مناسبات پر دې تګلاره متکي او

همدا راز بيره شوې او په څو ډلو وېشل شوي رهبران د ملي ډيموکراتيک تحول د تحقق مانع شول او په عوض کې يې کودتا د انقلاب پر ځای راغله، او د کارگرانو طبقه د ټيټ کچې په خاطر د صنايعو پر مختګ منځ‌ته رانغی. د حزب مشران د لازم سياسي او ايديالوژيکي پوخوالي څخه بهره مند نه وو او حاکم تفکر په حزب کې د اذهانو او نادرستو توجيهاتو ټولګه وه چې په خپله جوړېده. او په اخر کې حقايق يې له منځه وړل او بلاخره دا چې د سياسي قدرت د لاسته راوړلو څخه وروسته د يو ناپېژندل شوي جوړښت په شکل د افغانستان تاريخ ته او د حزب حکومت ته داخل شول، بل نقد د دې ټکي بايد پيل شي نه له هغې ځايه څخه چې ضرور د حزب د جوړولو لپاره نه وو او يا دا چې حزب ولې جوړ شو؟؛

## د ګوند څانګې

د حزب له تشکيل څخه لا ډېر وخت نه وو تېر شوی چې د ۱۳۴۶ ل کال د ثور په مياشت کې، دا ګوند د بېلېدو او په شعباتو تجزيه کېدو لاندې راغی او په دوه ډلو ووېشل شو، د ټوټه کېدو څخه وروسته، هر يو د دوه شعبو څخه خپل ځان د خلق د ډيموکراتيک ګوند اصلي غړي بلل. د ۱۳۴٦ ل کال په حوت مياشت کې، نور احمد اعتمادي د هغې وخت لومړی وزير، د ؛پرچم؛د نشريې د خپرېدو اجازه يې ببرک کارمل ته ورکړه او دا خپرونه په اونۍ واره ډول سره، په داسې حال کې چې د امتياز خاوند يې مير اکبر خيبر وو او مسول مدير يې سليمان لايق وو، په خپرېده. د پرچم د نشريې د خپرېدو څخه وروسته، د تره کي ډله د خلق او د ببرک ډله د پرچم په نامه مشهور شول.

د خلق او د پرچم تر منځ اختلاف، اکثر د محلي او قومي تضادونو له مخې وو او د دې په خاطر پښتو ژبې غړي چې قبيلوي او کليوالي ريښې يې درلودې د خلق په ډله کې او فارسي ژبې چې ښار مېشته خلک وو د پرچم شعبې کې سره راغونډ شول. د خلق د ډيموکراتيک ګوند کې اختلافات يوازې د خلق او پرچم په شعبو خلاصه نه شوه او ځينې د طاهر بدخشي په مشرۍ د پرچم له شعبی څخه بېل شول او نوی حزب يې د ؛د افغانستان د زحمتکښانو د سازمان؛په نامه چې د ؛ملی ستم؛ په نامه مشهور وو منځ ته راوړ.

طاهر بدخشی چې د تاجک قوم څخه وو دا اعتقاد درلود اساسي او عمده تضاد په فعلي وخت کې قومي او مليتي تضاد دی او د قومي او ژبني مسايلو پر سر د خلق د ډيموکراتيک ګوند د مشرانو سره اختلاف پيدا کړ. د دې په خاطر د ده شعبه د ؛ملی ستم؛ د ډلې په نامه مشهوره شوه چې نن يې ډاکټر لطيف پدرام د پيروانو څخه دی. بيا وروسته ملي ستم هم په دوه شعبو ووېشل شو، د سازا ډله (د افغانستان د زحمتکښانو سازمان) د طاهر بدخشي په مشرۍ او د ؛سفزا؛ شعبه (د افغانستان د زحمتکښانو فدايي سازمان) د ؛باعث بدخشي؛ په مشرۍ.

د ۱۹۷۷زکال په منځ کې، د خلق او پرچم د مشرتابه د مشترکې جلسې په لړ کې د افغانستان د خلق ډيموکراتيک ګوند تشکيل شو. نور محمد تره کی د عمومي منشي په صفت د مرکزي کميټې د افغانستان د خلق د ډيموکراتيک واحد

حزب په صفت وټاکل شو. ببرک کارمل او دوه نور کسان (یو د پرچم او بل د خلق له څانګو څخه) د مرکزي کمیټې د منشیانو په صفت وټاکل شول، په دې ډول سره د ګوند د دوه شعبو بیا یووالی تامین کړی شو

**نور محمد تره کی**



نور محمد ترکی د نظر محمد تره کي زوی د ۱۲۹٦ ه ل کال د چنګاښ د میاشتې په ۲۳ د غزني ولایت، د ناوه ولسوالی په سور کلي کې په یوه ناداره او بزګره کورنۍ کې زېږېدلی دی.د تره کي کورنۍ د مالدارۍ او د بزګرۍ او کله کله هم د کوچیانو په شکل ژوند کړی دی او دژوند د دوام او د اړتیاوو د برابرولو په خاطر یې ډېر کړاوونه او تکلیفونه ګاللي دي.

تره کی پنځه کلن وو چې د یوې کونډې ښځې سره یې مزدوري پیل کړه، څو خپلې کورنۍ سره مالي مرسته وکړي. د تره کی پلار د خپل وخت یوازینی کس وو چې د خپلو ماشومانو د پوهې او زده کړې په اړوند یې علاقه ښودله. د خپل پلار د پاملرنې له امله، د غزني د ناوه د ولسوالۍ په ابتدایه ښوونځي کې شامل شو. د فارغېدو څخه وروسته، تره کی د خپلو ورونو سره د پلار لخوا اول کندهار ته او بیا کویټې ته د زده کړو لپاره ولاړ.

د تره کي د مشر ورور په وینا،خدای ښبلی سلطان محمد تره کی، چې دوی په هغه وخت کې د کویټې په ښار چې په هغه وخت کې د برېټانیا تر حمایې لاندې یو ښېل هېواد ده،په ډېرو شاقه او سختو کارونو د ژوند د بقا لپاره په کار بوخت وو او خپلو تحصیلاتو ته یې ادامه ورکړه.او همدا راز په ځینو وختونو کې د دوی مشر ورور د کاریګر په صفت خرخ شوی او اخیستل شوی دی. د کورنۍ او د روزګار د کړاونو له کبله تره کی دې ته اړ شو چې د خپلې پوهې او هوښیارتوب څخه په استفادې خپله په اداري کارونو کې ښې لاسته راوړنې ولري. د څه وخت څخه وروسته د ښه کار کولو په خاطر د پښتون شرکت د مسولانو پام یې ځان ته را وګرځولو، او د دې شرکت د استازي په صفت د هند بمبئي ښار ته لاړو .په همدغه وخت کې د نور محمد تره کي پلار د کویټې ښار په نامتو زلزله کې چې د ۱۹۳۵ کال د مې د میاشت په ۳۱ نېټه وشوه، ومړ. د پلار د مړینې په وخت، تره کی د پښتون تجارتي شرکت په کارونو بوخت وو. په هند کې ژوند کول د تره کي په روحیاتو بشپړ توپیر راوست. په همدې کلونو کې هند هم د استعمار د ضد د بدلونونو تجربه کوله.دی د لومړي ځل لپاره د استعمار ضد افکارو سره د تشدد څخه په غیر یا عدم تشدد سره اشنا شو. د هند تجربه تره کی دې ته اړویست چې د خپل ژوند شکل او تګ لارې ته تغیر ورکړي. دی په دې اړوند د خپل فکري اړیکې

له لارې د هند د کانګرس سره چې په هغه وخت کې د استعمار ضد او کیڼ اړخو یو ګوند وو، څخه یې استفاده وکړه. دا د هغه د ادبي او ژورنالیستي کارونو د پیل موده وه.

نور محمد تره کی په ۱۳۱٦ (۱۹۳۷) کې بېرته هېواد ته راستون شو. د بېرته راتګ د څرنګوالي او شکل له مخې د پخوانیو کډوالیتوب څخه توپیر درلود. دا ځل دې ته اړ وو چې هغه څه یې چې په هند کې زده کړي وو،هغه د خپلو هېوادوالو غوږونو ته ورسوي. په ډېرې چټکۍ سره تره کی ژورنالیستیکي کړیو کې ځانګړی ځای وموند او د هېواد په رسنیو کې یې په کار پیل وکړ. په ډېرې چټکۍ سره د تره کي عدالت خوښتونکې او مترقي مقالې، دی یې د بیوروکراتانو د ازار او اذیت موخه وګرځوو.

تر دې پورې چې د تره کي د درد سر پیداکوونکې مقالو څخه د خلاصیدو په موخه، دی یې د بدخشان ولایت بروغل ساحې ته تبدیل کړ.

په ۱۳۲۴ (۱۹۴۵) کال کې، د شاه محمود خان د نسبتا نرم صدارت څخه استفاده، د تره کي د ویښ زلمیانو (جوانان بیدار) د هستې د سمبالولو په برخه کې مرسته وکړه. په دې دوران کې تره کي، سیاسي مبارزه خپل اصلي هدف ګرځولی وو،خپل د وخت د روڼ اندو سره یې لیدنې کولې. دا لیدنې او ناستې په ۱۳۲۷ (۱۹۴۸) کال کې د ویښ زلمیان ( جوانان بیدار) د حزب د جوړېدو سبب شو.د دې متفرقي حزب لومړنۍ غونډه د کابل په چهار دهي کې د تره کی په کور کې د ډېر شمېر افغان روڼ اندو په ګډون چې پکې ژورنالستان، پانګه وال، دولتي مامورین هم موجود وو، ونیول شوه. تره کي د حزب په رسنۍ کې یانې (شعله) په خپرونه کې،ډېر ژور فکري تاثیر درلود، او ډېر شمېر مقالې یې هلته خپرې کړې.د ۱۳۲۷ (۱۹۴۸) او د ۱۳۳۲ (۱۹۵۳)کلونو تر منځ، تره کی لومړني سوسیالیستي ادبی اثار په پښتو ژبه ولیکل.دې لیکنو کې ؛د غوایي لاندې ؛، ؛د ادې خدمت؛، ؛څرنګه ازادي؛ او ؛ماکسیم ګورګي؛ اثار وو. په دې لړ کې نور محمد تره کی د شاه محمود خان د حکومت لخوا د افغانستان د کلتوري او مطبوعاتي استازي په صفت د امریکا متحده ایالاتو کې استخدام او هلته ولیږل شو.

نور محمد تره کی د دې دورې څخه په خپله نفع استفاده وکړه او خپلې اړیکې یې له خپلو ملګرو سره لا نورې ګړندی کړې.د دیموکراسی د لسیزې د نسبتا ډیموکراتیکو شرایطو څخه په استفادې، دی وتوانېدو چې د خپلو ملګرو سره د ګوند لومړنۍ غونډې لپاره شرایط اماده کړي او خپلو همفکرانو سره په دې اړوند فعالیتونه ولري.د ۱۳۴۳ ه ل کال د جدی د میاشتې په یولسمه چې د ۱۹٦۵ ز کال د جنوری د لومړۍ‌نیټې سره سمون خوري، تره کي یو ځل بیا د یو نوي سیاسي حزب مشر شو.د دې حزب نوم حزب ډیموکراتیک خلق وو، چې د کیفیت او کمیت له نظره یې د ویښ زلمیانو د ګوند سره توپیر درلود. په دې حزب کې یو کلک اساس، داخلي انظباط او داسې یو حزب وو چې پراخ بنسټ یې درلود. د مختلفو قومونو څخه خلک د حزب مشرتابه ته لار وموندله.دا ځلې د حزب د مشرتابه لپاره روشنفکره او با انرژي ځوانان وټاکل شول.

نور محمد تره کی په ۱۳۴۴ ه ل کال کې، کله چې یې خپل ځان د غزني د ولایت په ناوه ولسوالی کې د ملي شورا د غړيتوب په موخه کاندید کړی وو، مگر ماتې یې وخوړه.د ؛خلق؛د اونیزې خپرونې کار یې پیل کړ، مگر په چټکی سره د کلتور د وزارت لخوا بندیز پرې ولگېد.

د راتلونکو لسو کلونو په ترڅ کې، دی اردو ته د جلب او جذب په موخه مخه کړه.د دې په نظر د څلوېښتو کلونو دیموکراسی، یوازې یوه پوښښي دیموکراسی وه چې د دربار د حکومت پر مخ لکه پرده پرته وه.دی دې نتیجې ته ورسېد چې دربار دا پلان نه لري چې د سیاسي احزابو تر منځ واک او قدرت ووېشي. دا د مسلح ځواکونو په منځ کې د نفوذ پیدا کولو یو ډېر مهم اصل بلل کېږي. تر ۱۳۵۲ ه ل کال پورې، چې سردار محمد داود د یوې کودتا له لارې قدرت ته ورسېد،د خلق گوند د ملي اردو څخه ډېر شمېر کسان په خپله نفع جذب کړي وو.اسناد او شواهد دا په گوته کوي چې یو شمېر د اردو افسران د خلق او پرچم د احزابو غړي، د سردار محمد داود د کودتا په جریان کې، عمده رول لوبولی وو.

د محمد داود په پنځه کلن حکومت کې، د خلق گوند پراخه وده وکړه. خلقیان او پرچمیان وتوانېدل چې په لرې پرتو کلیو او بانډو کې، حزبي کمېټې سمبال کړي. خلقیانو په ډېر موثر ډول سره په اردو کې لار وموندل. په دې وخت کې، په ډېر مشکل سره کولی شو چې د خلق د گوند په پرتله، بل کوم گوند په افغانستان کې په گوته کړو.

د ۱۳۵۷ د ثور د میاشتې د ۷ (د ۱۹۷۸ ز کال د اپریل د میاشتې ۲۷) د کودتا د بریالیتوب څخه وروسته، چې د محمد داود خان جمهوریت یې پای ته ورسولو، د افغانستان ډیموکراتیک جمهوریت د کودتاچیانو انقلابي شورا اعلان کړه چې نور محمد تره کی د انقلابي شورا رییس ټاکل شوی دی. .

## د نوي رژیم فرمانونه

د کودتا څخه دری ورځې وروسته د انقلابي شورا لومړی شمېره فرمان چې د انقلابي شورا ریاست او صدارت یې نور محمد تره کي ته سپارلي (۱۹۱۷/۱۹۷۹)، د نظام د څرنگوالي په اړوند داسې وایي:؛د (۱۳۵۷ د ثور د ۱۰ چې د ۱۹۷۸ د اپریل د ۳۰ سره سمون خوري) څخه وروسته، افغانستان د سیاسي سازمان له مخې، د افغانستان ډیموکراتیک جمهوریت دی.؛

د همدې فرمان په اوړدو کې نظامي مقرری هم پیل شوې، او انقلابي شورا چې په جوړښت کې یې گوندي غړي او د کودتاچیانو قومندانان وو، د قطعنامو په لیکنو پیل وکړ.د افغانستان ډیموکراتیک جمهوریت د لاندني فرمانونو په اوږدو کې پریکړې اعلان کړې.

په دوه یمه شمېره فرمان کې،د انقلابي شورا مرستیال او د حکومت غړي اعلان شول. په دې کې تر ټولو مهم ټکی د خلقیانود طرف،برلاسی وو.

په درېیمه شمېره فرمان کې لیکل شوي چې انقلابي شورا ؛د دولتي ارگانونو د وظایفو د تنظیمولو په موخه ...د اساسي قانون په استثنا چې د ۱۳۵۵ د حوت د ۵نیټې څخه لغوه شوی وو، نور ټول قوانین، مقررات او فرمانونه، په مرعی الاجرا شکل منل کېږي، کوم چې د افغانستان د ډیموکراتیک جمهوریت د اهدافو سره موافق وي؛

د همدې فرمان په اساس د ؛انقلابي شورا د انقلابي نظامي محکمې؛ خبر هم ورکړل شو.

په ۴ شمېره فرمان کې دولتي نښان او د بیرغ د رنگ د بدلون سور رنگ ته او په منځنۍ برخه کې یې د خلق د کلمې اعلان هم وشو.

۵ شمېره فرمان د شاهي کورنیو د ۲۳ غړو د تابعیت د سلب او یا اخیستلو خبر اعلان کړ.

په ٦ فرمان کې ... د میلیونونو زحمتکښو بزگرانو خلاصی د ستمگرو استثمارگرانو د چړو څخه....؛بیان کړ.

۷ شمېره فرمان ؛د ښځو د حقوقو مساوات د نارینوو سره؛ او نورو برخو په اړوند،لکه په زور واده کول،د مهر یا ولور ټاکل او ...(د ۱۳۵۷ د عقرب میاشت)، صادر شول.

په ۸ شمېره فرمان کې (۱۳۵۷ د قوس میاشت) دا ډول موخې اعلان کړې:۱- ؛د هېواد د اقتصادي او ټولنیز نظام څخه د فیوډالي او ماقبل فیوډالي مناسباتو لرې کول. ۲- عمومي کول، ملاتړ کول او د کارگرانو او بزگرانو د طبقو د اتحاد لا نور رېښې ژورول د افغانستان د خلکو د یووالي د ټینگولو په موخه د یو داسې چاپیریال جوړول چې متخاصم طبقې پکې نه وي او د هر ډول شخصي استثمار څخه پاکه وي د جوړولو په موخه.او ۳- د هېواد د زراعتي تولیداتو د کچې لوړول،څو په کافي اندازه، رنگارنگ خواړه خلکو ته مهیا کړي، د زراعتي او صنایعو د صادراتو لپاره د خام موادو برابرول؛...

د ځینې فرمانونو د اعلانولو څخه د مخه، نور محمد تره کی ؛د افغانستان د ډیموکراتیک جمهوریت د انقلابي دندو اساسي کرښې؛ د کړنلارې په حیث او د ټولنیز بدلونونو د راوستلو په موخه د اکثریت خلکو په نفع اعلان کړ.

د دې ډول فرمانونو د صادرولو او اعلانولو په ترڅ کې، د گوند ورځنۍ کړنې او هغه څه لپاره ملموس وې، ډېر ستمگرانه او د خلکو د ازار او اذیت وړ وو. د دې کبله د دې خبری یادول مهم دي چې همدا ټول د افغانستان د ډیموکراتیک جمهوریت د ځېل کېدو اصلی موارد وو.ډېر مخالفتونه او ډېرې ویرې د همدې څخه سرچینه اخیستې وه. په داسې حال کې چې ۹۰۰۰ جنایي بندیان د تره کی لخوا عفوه او ازاد کړی شول.

مگر د فرمانونو صادرول، بیا په خاص ډول د ۷ او ۸ فرمان یوازې د پلي کولو له اړخه د بحث وړ نه وو.۸ شمېره فرمان، دا ښودله چې گوند د اطلاع او معرفت کموالی د اقتصادي او ټولنیزو ځانگو د جوړښتونو په برخه کې، د یو څو خوش باورانو د تحمیلولو څخه، اضافه نور هېڅ هم نه وو.

هغه کسانو چې منلې وه چې ټولنه فیوډالي ده، د هغه له منځه وړلو او محوه کولو په خاطر،بزگرانو ته د ځمکه ورکړل شي او دا به استثمار له منځه یوسي،(په دې برخه کې به له دې څخه تېر شو چې دا راز مناسبات په کرنیزو هېوادونو

کې په همدا شان شعارونو ماتې ورکړې ده، د بې عدالتۍ پای نه وو،مګر حکومتونو هم د بزګرانو د وجود څخه شیره او شیدې رودلې دي) همدا راز د اقتصاد د متجانس کولو د افغانستان سر تر سره څخه هم بې برخې وو.دا ځکه چې د افغانستان په ډېرو سیمو کې د ځمکې درلودلو کوچنۍ مالکي شته و او په ځینو برخو کې فیوډالي شته نه وه. نو د دې شان تصمیمونو نیول یوازې کولی شوی چې د اغواګری او د ذهنونو د هڅولو لپاره موجود وي. دې موخې هم پایله نه درلوده.

له بلخوا، هغه مشرانو چې دا فرمانونه صادرول، نه پوهېدل چې ټولنیز او اقتصادي بدلونونه په افغانستان کې، د دې شان فرمانونو په صادرولو او په دې شان اعمالو نه بدلېږي.که یو ګوند د خلکو د خدمت تر نامه لاندې  فرمان صادروي، مګر په عمل کې هره ورځ خلک د وژلو مرکزونو ته بیایي او زندی کوي یې او کړاونه ورته پلانوي، دا په خپهل د خلکو په مخالفت را پارول دي.چې همدا شان ډیموکراتیک جمهوریت په افغانستان کې د خلکو د سرکوبولو او ځپلو په نامه وټاکلو او د ماتې سره یې مخ کړ. ځکه همدا ډول ځپل او کړاونه د جمهوریت د ساختار سیاسي لومړنی علت وو.داسې ګوند چې د قدرت د تصرف له لارې د کودتا له لارې د مواضیعو د ځای پر ځای کولو په پلټنه کې وو، حد اقل د ټولنې نورو سیاسي برخو ته یې د ښکاره کېدو اجازه هم نه ورکوله او په رسمیت یې نه پېژندلو او د نورو څخه یې د خپل ځان ته د اطاعت غوښتنه درلوده، مسلمه وه چې د تاو تریخوالي او د وینې د بهولو څخه کار واخلي.

د افغانستان د ډیموکراتیک جمهوریت مشرتابه په ډېر وضاحت سره ویلي وو چې د افغانستان اتباع ټول دې ته اړ دي چې د ثور د لویو او زرینو لاسته راوړنو څخه ملاتړ وکړي؛ (د ٥ شمېر فرمان د تفصیلاتو څخه).

نو په دې اساس، دا لازمه وه (یا هغه څه چې دوی ورته د اصولي نوم ورکړی وو)، د فرمانونو په اړوند او د هغو د نتایجو په اړوند بحث مطرح نه وو،دا ځکه چې د حزبي ارادې تحمیل کول، د شوروي د استبدادي او مثالي شکل سره یې غوښتنه وه، او بزګران به هم د دې شان واقعیتونو څخه لرې طرحو په اساس به د ځمکو خاوندان شي، بزګرانو د خپل ژوند د لاسه ورکولو احساس کولو. نور خلک په دې موخه چې یو ښه او هوسا ژوند ولري، د ځپل کېدو څخه د مخنیوي په خاطر او د ځان د ژغورلو په خاطر یې هجرت وکړ. دولت داسې تبلیغات پیل کړ چې ګنې فیوډالان او د انقلاب مخالفین ټول اشرار شوي دي. په داسې حال کې  چې ښارونو فیوډال نه درلودل او د فیوډالانو شمېره هم ډېره کمه وه.

دیکتاتوری جوړښت د حزب،د هغه یووالي او هم نظري چې د شوروي اتحاد سره یې درلود، د بهرني ځپلو او بهرني عواملو له ډلې څخه هم وو. له دې کبله د وخت شوروي اتحاد په ټولو فعالیتونو کې چې په هغه کې د خلکو ځپل هم شامل وو، برخه درلود.

د افغانستان د ډیموکراتیک جمهوریت دیکتاتوری حزبي جوړښت د دې ډول جوړښت د ضرورت وړ فرهنګ یې برابر کړی وو. داسې مفکورې چې د کسالت او لټی باعث ګرځي، د نور محمد تره کي او د حفیظ الله امین د شخصیت رول په ټولو اداراتو کې، سواد زده کړه او تعلیمي موسساتو کې حاکم وو. دا یوازې د ثور د انقلاب د خبر پاڼې وظیفه نه وه چې دا کار وکړي.د افغانستان په تاریخ کې د لومړي ځل لپاره د سلګونه زرو څخه اضافه تیراژ د اختناق امیزه فرهنګ په خدمت کې کېښودل شو.د هغه تلویزیون افتتاح وشوه چې کار یې د داوود خان په وخت کې  پیل شوی وو، دا هم

د دې شان فرهنګ د خپرولو لپاره، بله لار وربرابره کړه.د زده کوونکو او محصلینو بې ځایه مظاهراتو ته اړ ایستل،د شعارونو ورکول او بې محتوی هلې ځلې، لا نوره د معارف سطح را ټیټوله. د دې سربېره، د پوهنتون او ښوونځیو ډېر شمېر استادان او معلمین یا اعدام شول او یا یې په زندانونو کې واچول.

هر هغه انتخاب چې دې حزبي معیارونو په اساس پلی کېدو،د پوهې او پوهنې د تنزیل سبب ګرځېدو.

د دې ډول فضا د موجودیت له کبله چې د دیکتاتوری سیاستونو څخه چې د ځپلو موخه یې ښکاره وي، مخالفتونو پراخوالی وموند او په ډېره پیمانه یې شدت وموند.مګر د مخالفینو انګېزې یو شانته نه وې او مخالفینو یوه خپلواکه غوښتنه نه درلوده. مخالفتونه د عقیدوي انګېزو څخه تر استبداد او وابستګۍ مخالفت سره د ضدیت، د هغو کسانو او ډلو لخوا مخالفتونه وو چې یا خپل ځان یا خپلوان او د کورنۍ غړي یې د ستم او ظلم لاندې لیدل، ... لا نور ډېر او اضافه شو. مخالف نظامیانو په کراتو د افغانستان د ډیموکراتیک جمهوریت د ځپلو په خاطر قیامونه او پاڅونونه وکړل.

د پاکستان سره اړیکې تر لوړې کچې پورې بدو حالاتو ته ورسېدې او هغه هېواد یې د مقابلو او د انتقام د اخیستو په موخه وپاروو کوم چې د افغانستان او د پاکستان د اوسېدونکو لپاره د مصیبتونو عامل شو. په کابل کې د امریکا د سفیر دابس قتل (د ۱۹۷۹ د فبروري په ۱۴)، د امریکا او د افغانستان د اړیکو په لا نور خرابېدو او کړکیچن کېدو سبب شو.

د اوضاعو مجموعه، چې د افغانستان د ډیموکراتیک جمهوریت له اوله څخه د بحران سره مخ وو، د نورو خوځونکو تحولاتو سربېره چې افغانستان یې د مختلفو یرغلونو موخه وګرځوو، د اشخاصو او د حزبي ګوندونه به حزبي اړیکو هم ډېر بد تاثیر کړی وو. داخلي پاڅونونه د پرچمیانو او خلقیانو یو ځل بیا لوړې کچې ته ورسېد. ببرک کارمل او یو څو نور کسان، لومړی د سفیر په حیث او وروسته بیا د جاسوس او توطیه ګرانو په نامه د ګوند څخه وویستل شول. اوضاع په ۱۳۵۸ ل کال کې، داسې وه چې هره شېبه د دولت د له منځه تللو امکان او تصور موجود وو.د دې اوضاعو سره د مقابله کولو په موخه، د شوروي چارواکو د حفیظ الله امین په غیاب کې، کوښښ وکړ چې د نور محمد تره کي او ببرک کارمل تر منځ په مسکو کې یوه توافقنامه منځ ته راوړي او امین ته په چټکۍ ماتې ورکړي.اما حفیظ الله امین د حزب په جوړښت کې ډېر نفوذ درلود،د دوی له طرحې څخه خبر شو.(امین د ۱۹۷۹ ز کال د فبروری د لومړۍ نیټې څخه د لومړي وزیر په حیث وټاکل شو) دې ده د وژلو طرحه نا مکمله پاتی شوه او د پلان خلاف تره کی په خپله د امین لخوا د قدرت څخه لرې کړی شو او د بالښت پواسطه چې پر مخ یې ورته کېښود، خفک او له منځه یوړل شو (۱۳۵۸ د سنبلې ۲۵ نېټه)

## حفیظ الله امین



حفیظ الله امین د پښتنو له خروټي قوم څخه دی او د ۱۹۲۹ ز کال (۱۳۰۸ ل کال) په پغمان کې زېږېدلی دی.د زده کړې ابتدایي دوره یې د کابل او د پغمان په ښوونځیو کې سرته رسولې. د نورو زده کړو په موخه د امریکا متحده ایالاتو ته ولېږل شو او د هغې څخه وروسته د دارلمعلمین د لیسې د مدیر په حیث وګومارل شو.په ۱۳۴۴ کال کې د افغانستان د ډیموکراتیک خلق ګوند غړیتوب تر لاسه کړ. له دې څخه وروسته دی او ملګری یې ببرک کارمل سره بېل شول، دی د تره کي په اړخ ودرېد. د ملي شورا په دیارلسم پړاو کې د پغمان څخه د استازي په حیث وټاکل شو او ډېر سیاسي شناخت یې وموند. په اردو کې د نظامي سازمانونو د چارو مسوول وو.د خلق او پرچم، ډلو د بیا یوځای کېدو په وخت د سیاسي بېرو غړی شو.

د محمد داوود خان لخوا د ګوند د ځینو مشرانو د توقیف کېدو څخه وروسته، د امکاناتو او فرصتونو څخه په استفادې، حزبي افسرانو ته په اردو کې لارښوونې وکړې چې پایله یې د ثور د کودتا بریالیتوب وو. د نور محمد تره کي د کابینې د غړو په اعلانولو، امین د انقلابي شورا د دوهم معاونیت، د صدارت د دوهم معاونیت او د بهرنیو چارو وزیر چارې په غاړه واخیستې. د ۱۳۵۸ کال د ثور په میاشت کې د صدارت مقام ته ورسېد.

د حزبي قدرت ساحه، د شخصي او فرکسیوني محدودې څخه یې لا هم تنګ او محدود شو. د پرچم د ډلې د ځینو مشرانو د ځپلو په لټه او د دوی د لرې کولو په هڅو بوخت شول، کله چې یې نور محمد تره کی زنداني کړ، د ده یو څو تنه پلویان چې په حکومت او اردو کې یې نفوذ درلود، د خپل ځان د ساتنې په خاطر د شوروي اتحاد سفارت ته پناه یوړه. امین خپل وراره، ورور او خپل د باور وړ کسان په مهمو څوکیو کې ځای پر ځای کړل. په واقعیت کې د خلق د حزب او دولت د اعمالو په ضد د لا نور قهر او پاڅونونو سبب هم شو، د حزب په دننه کې هم د امین ضد دښمنیو لمنه اوږده کړه.

د شوروي اتحاد سره مناسبات هم خراب شول او په بې باورۍ سر شو. ځکه، شوروي د تره کي مرګ نه غوښت. د پرچم او د خلق یووالی او تفاهم یې غوښتلو. مګر امین دې نتیجې ته و نه رسېد چې د دې د قتل د توطیې تر شا د شوروي اتحاد او د وخت د سفیر (پوزانف) لاس وو. همداراز په دې هم خبر وو چې د دې څو تنه مخالفین د شوروي سفارت ته پناه وروړې ده... همدا وو چې په چټکۍ سره یې پوزانف د شوروي خواته ولېږلو. دا داسې یو عمل وو چې د مسکو او په ځانګړې توګه بیا د برژنف لپاره یو تحقیر امیزه او نه خوښوونکی عمل وو.

کله چې حفیظ الله امین په رسمي توګه د قدرت واګې په لاس واخیستې، د افغانستان حالات د ثور د کودتا د اولې میاشتې له حالت څخه وروسته، ډېر توپیرونه درلودل. دا ځکه چې ډېرو جنجالونو او ناخوالو لمنه پرانیستې وه.په زرګونو کسان ووژل شول، په زرګونو نور کسان په زندانونو کې بندي شوي وو، ډېر شمېر چې شمېر یې په ګړندي ډول سره مخ په زیاتېدو وو، له هېواد څخه کډه شول.نو دا یوه مسلمه خبره ده چې نه یوازې د فرمانونو څخه چې صادر شوي وو څه نښه نښانه نه وه،بلکې جګړه او د وینې تویېدل او د قدرت ساتنه د کار مرکزي محور وو.

په داسې حال کې چې پخوانۍ لاسته راوړنې هم د پاشل کېدو او ماتېدو په حال کې وې،د ټولنیز ژوند – اقتصادي حالت، د پوهنې او روزنې حالت، ټول په سخترین شرایطو کې بلل کېده.

حفیظ الله امین په ټوله مانا سره یو دیکتاتوري استالیني رژیم سمبال کړ. نه یوازې دا چې د خپل ګوند ډېر شمېر غړي یې کوم چې د پرچم د ګوند پلویان وو، زندانونو ته واچول یا یې اعدام کړل مګر هر هغه ځواک چې د ده د لارې خنډ ګرځېد، هغه به یې لرې کړ.

مګر د خلکو پاڅونونه د دیکتاتوري دولت په خلاف په ټول هېواد کې ډېر او شدت ومونډ. د هغې څخه د بادغیس او د لوګر د دولتي کارمندانو د پاڅون کوونکو له خوا په بشپړ ډول په قتل رسول کولی شو یاد کړو او په هرات کې د فرقې د افسرانو او د خلکو پاڅون وو چې په شدت سره و ځپل شو.

**د ۱۳۵۸ ه ل کال د جدی د شپږمې نېټې پېښې**

حفیظ الله امین د دې سره سره چې د شوروي اتحاد د اړیکې په اړوند شکمن وو، بیا یې هم کوښښ وکړ چې په افغانستان کې د شوروي پر غوښتنو تکیه وکړي.همدا وو چې د ژوند تر وروستۍ شېبې یې هم د مرستو غوښتنې کولې. په حقیقت کې دی دې ته متوجه نه وو چې شوروي په افغانستان کې د خپلې ګټې په خاطر یو متحد ګوند او دولت غوښت، د شوروي تعریفونه یې کول او د شوروي ملاتړ یې غوښت. د امین او د شوروي تر منځ د ستونزې اصلي ګډه همدغه مسئله وه. نو په همدې اساس امین د هغه کسانو په خلاف چې ده هغوی ضد انقلابي عناصر بلل، له شوروي څخه یې نظامي مرسته وغوښتله او د یوې اونۍ په ترځ کې د سور پوځ د کومانډو ځواکونه د ۱۳۵۸ ه ل کال د جدی پر شپږمه د یو هوایي پل په منځ ته راوړلو د کابل هوایي ډګر ته راکوز شول.

دا ځواک د جدی د میاشتې د شپږمې نېټې ماښام کې کابل تر محاصرې لاندې ونیولو،په ځانګړې توګه د رادیو تلویزیون شاو خواته د سختو جګړو پېښې وشوې او همدا راز د حفیظ الله امین استوګنځای د تاج بیګ د غونډۍ په مانۍ کې د دارالامان د مانۍ شاته، ډېرې سختې جګړې وشوې، چې د هغې په پایله کې امین ومړ او ببرک کارمل د شوروي ځواکونو لخوا کابل ته راوستل شو او د انقلابي شورا د رییس او د دولت د رییس په صفت د قدرت واګې ورته وسپارل شوې. د دې څخه وروسته د شوروي اتحاد ځواکونه د ډېرو لارو څخه د بندرونو له لارې افغانستان ته داخل شول او د هېواد په لویو ولایتونو کې هرې خواته مېشت شول.

**د ببرک کارمل حکومت**



ببرک کارمل د ۱۳۵۸ ه ل کال د جدی په پیل کې (۱۹۷۹ ز ډسمبر) د شوروي ځواکونو لخوا له مسکو څخه کابل ته راوستل شو او د حفیظ الله امین د قتل او د حکومت له سقوط کېدو څخه وروسته د انقلابي شورا د رییس او د دولت د ریاست واګې یې په لاس کې واخیستې.

ببرک کارمل د حسین زوی د ۱۹۲۹ زکال د جون په ٦ چې د ۱۳۰۸ ه ل سره سمون خوري د کابل په سوېل ختیځ د کمري په کلي کې زېږېدلی، د کارمل پلرونه د هندي کشمېر د سرینګر څخه افغانستان ته کډه شوي وو. ځینې تاریخ لیکوال داسې هم وایي چې دی د کاکړو د یوه ښاخ څخه دی چې د پښتون قوم پورې اړه لري، په داسې حال کې چې پلویان یې تاجک معرفي کوي، مګر د کورنۍ د غړو نومونه یې په استثنا د زوی نوم یې چې وستوک نومېدو او هغه هم یو روسي نوم دی،نور ټول پښتو نومونه دي،چې دا دوهم حالت ته ممکن د حقیقت جامه ور اغوندي. ځینې نور بیا په دې عقیده دي چې جنرال حسین د دې پخاطر چې د سردار داوود سره نیږدېوالی پیدا او د هغه ملاتړ تر لاسه کړي، د یو متعصب

پښتون په ډول وپېژندل شوي، د کورنۍ لپاره يې د پښتو نومونو د غوره کړي دي په تاسف سره د دې لپاره قاطع او مستند شواهد موجود نه دي، مگر هغه څه چې په بشپړه توگه واضيح دي هغه دا دي چې لومړنۍ روايت ډېر واقعيت ته نیږدې دی او د هېواد د نفوس د ثبت په سيستم کې د ببرک د نوم او د پلار نوم يې حسين څخه پرته نور نومونه دي ثبت شوي، دا په دې مانا چې د پلار څخه پرته، په دې هېواد کې رېښه نلري.

پلار يي محمد حسين د ظاهر شاه په اردو کې د جنرالۍ رتبې ته ورسېد. ببرک د کابل په نجات لېسه کې زده کړې وکړې او په ۱۹۵۱ زکال کې چې د ۱۳۳۸ ل کال سره سمون خوري د کابل پوهنتون د حقوقو پوهنځی ته داخل شو. د زده کړو په جريان کې د استعمار ضد د مبارزاتو د زياتېدو تر تاثير لاندې، کمونيستي مفکورې او چپي فعاليتونه پيل کړل د دولت په ضد په مظاهرو او فعاليتونو کې يې برخه واخيستله. ببرک د ۱۳۳۱ څخه تر ۱۳۳٦ کال پورې د خپل چپي فعاليتونو له کبله د دولت لخوا څارل کېدو، مگر د دې کبله چې پلار يې د داوودخان سره نیږدې اړیکې لرلې، د مجازاتو څخه خوندي پاتی شو، د دې سره سره وروسته بيا په همدغه لړۍ کې زنداني شو،کارمل په ۱۳۴۳ل کال کې د نور محمد تره کي او ۲۹ نورو کسانو سره چې د ده همفکره ملگري وو او د خلق ډيموکراتيک گوند په جوړښت کې يې لويه ونډه درلوده،چې د خلق د خپرونې د مصادرې څخه وروسته د لومړنۍ برخې يا بېلېدو اقدام وکړ، د نيمايي غړو په بېلولو سره د انشعاب غړي په حزب باندې تحميل کړ او خپل ځان يې د پرچم د مشر په نامه اعلان کړ. کارمل په ۱۹٦۵ ز کال کې د کابل د شيرشاه مېنې له ساحې څخه کانديد او د حزب په ملاتړ د ولسي جرگې وکالت ته لار ومونده.د داوودخان په جمهوريت کې، د دولت سره نیږدې اړيکې لرلې.

په ۱۳۵٦ ل کال کې، د خلق او پرچم سره بېل شوې ډلې، بېرته سره يو لاس شوې،تره کی د حزب د عمومي منشي په صفت او کارمل د هغه د مرستيال په صفت وټاکل شول. د ۱۳۵۷ ه ل کال (۱۹۷۸ ز کال د اپريل ۲۷) د ثور د ۷ د کودتا بريالیتوب څخه وروسته چې د محمد داوود خان جمهوريت ته يې د پای ټکی کېښود، د کودتاچیانو انقلابي شورا، ببرک کارمل د انقلابي شورا د مرستيال او د دولت د رييس په توگه اعلان کړ.

ببرک د ۱۹۹٦ کال د ډسمبر په ۲ نېټه مړ او حيرتان کې خاورو ته وسپارل شو چې مړی يې وروسته بيا د طالبانو لخوا د امو سيند ته وغورځول شو.

**د جهاد چټکتيا**

دا به تېروتنه وي چې د افغانستان د خلکو پاڅون د افغانستان د ډيموکراتيک خلق جمهوريت په خلاف، د شوروي د اتحاد په يرغل خلاصه او ختمه کړو. حقيقت دا دی چې د ۱۳۵۸ د جدی د شپږمې څخه شپږ مياشتې د مخه او د شوروي ځواکونو افغانستان ته داخلېدل، دولت د هېواد د ۳۵ سلنه کنټرول په غرنيو او لېرو سيمو کې له لاسه ورکړی وو. د رسمي احصايو پر بنسټ چې د مرکزي احصايې ادارې لخوا سرته ورسېد، د سرشمېرنې په اوږدو کې په ۱۳۵۸ ل کال کې دا سيمې چې د هېواد ۳۵ سلنه نفوس هلته مېشت وو،د امنيت له لحاظه امن نه وو او له دې کبله د سرشمېرنې عمليات هلته سرته و نه رسېدل. مگر د شوروي اتحاد د ځواکونو داخلېدل د دې پاڅون کيفيت او اندازه پراخه او لويه

کړه او هغه يې يو ملي خپلواکې غوښتونکی جنبش یا خوځښت باندې بدله کړه. د لوګر خونړی پاځون، بادغیس او هرات (۱۹۷۹ اسماعیل خان) وشول.

سید محمد باقر مصباح زاده داسې لیکي (د لمر پیام، ۱۳۹۶) ؛د ۱۳۵۸ کال په وړې موسم کې اسلامي مقدس جهاد په پراخه توګه، د خلکو لخوا او سرښندنه د حتی لرې شانتې هم د ښکاره سیاسي ګوندونو او د بهرنیو لاسوهنو څخه پرته په هزارستان کې پیل شو. د ۱۳۵۸ کال د حمل د میاشتې په ۱۸ جهاد د شیخ محمد حسین صادق نیلي په قوماندانۍ د دوه زره شاو خوا مجاهدینو په برخه اخیستلو د دایکنډي ولایت د مرکز خدیر ولسوالی څخه (پخوا د ارزګان ولایت یوه لویه برخه وه) او همزمان د سید محمد علی لملم په مشرۍ په بلخاب کې پیل شو او په غور کې د لعل او سرجنګل ساحې، ورس او پنجاب د بامیان په ولایت کې، د بامیان ښار او همدا راز د بهسود ولسوالۍ د وردګو په ولایت کې لا نور خپور شو. د بهسودو مرکزي ولسوالۍ په ۸/۳/۱۳۵۸ نېټه د پنجاب، شهرستان او دایکنډي د مجاهدینو لخوا د بهسود مېشتو خلکو په ملاتړ فتح شول، او د بهسودو اوله حیصه ولسوالۍ په ۲۰/۳/۱۳۵۸ نېټه د پنجاب د مجاهدینو لخوا د استاد محمد اکبري په مشرۍ او د بهسودو د مجاهدینو لخوا د ارباب غریبداد په مشرۍ د کمونسیتانو له حکومت څخه ازاده شوه. د بهسود د ازادولو څخه وروسته، ارباب غریبداد او ځواکونه یې د زنبورک د غره له لارې سنګلاخ ته د حصار درې ته داخل شول.د سنګلاخ مېشت خلکو مجاهدینو ښه راغلاست په ډېر شور او شوق سره وکړ او مرحوم حجت الاسلام سید میر اقا موحدي چې د سنګلاخ له علماوو څخه وو، د سنګلاخ د مجاهدینو مشري یې په غاړه وه، د ارباب غریبداد تر مشرۍ لاندې د اهنګرانو په سیمه کې یوه مشترکه قرارګاه د مرحوم رییس میر احمد شاه په کور کې جوړه کړه . د سنګلاخ مجاهدین د مرحوم موحدي په قومانده او مشرۍ د بهسود د مجاهدینو سره یو ځای په ۱۷/۴/۱۳۵۸ نېټه د جلرېز ولسوالۍ فتح کړه او د میدان ښار په استقامت یې په درو کې پرمختګونه کول. د سنګلاخ او د بهسود مجاهدینو د مارشال د غره په جګړه کې په ۲۳/٦/۱۳۵۸ نېټه د کمونیست حکومت ځواکونو ته ماتې ورکړه او د کوټه عشرو د فتح څخه وروسته، د وردګو پخوانۍ پلازمېنه، د ارغندی او پغمان خواته پرمختګ وکړ او د پغمان ځینې سیمې یې د سنبلې میاشتې تر اخره د کمونیستي حکومت د ځواکونو د شتون څخه پاک او تصفیه کړې.

جهادي اووه سني مذهبه ډلې د پاکستان په خاوره کې تنظیم شول او اته شیعه مذهبه ډلې په ځانګړې توګه د هزاراه ګانو ډلې په ایران کې د افغانستان د ډیموکراتیک جمهوریت په ضد تنظیم شول او د جهادي فعالیتونو لړۍ یې پیل کړه، دا فعالیتونه د ایران او پاکستان په مرسته له یو اړخه، سعودي عربستان، امریکا او انګلستان لانور شدت ورکولو.د شوروي اتحاد مستقیمه مداخله د دې سبب شوه چې دا ذکر شوي هېوادونه، مجاهدینو ته مرستې لا پراخې کړي، او د افغانستان کورنۍ جګړه، یو بین المللي رنګ ځانته ونیولو، د افراطي جهادي کړیو لپاره بالخصوص د سعودي عربستان لپاره دا زمینه مساعده شوه چې په جهاد کې د افغان مجاهدینو تر څنګ برخه واخلي. په دې هکله برژینسکي د جیمي کارتر امنیتي مشاور چې د هغې وخت د امریکا ولس مشر وو په یوه مصاحبه کې داسې وویل: ؛؛هغه ورځ چې روسان په رسمي ډول سره له سرحد څخه [افغانستان] تېر شول، ما ولسمشر کارتر ته ولیکل چې موږ اوس دا چانس لرو چې روسانو ته د دوی د ویتنام جګړه بیا وربرابره کړو. واقعا چې همداسې وه، د لسو کلو لپاره، مسکو دې ته اړ وو چې په داسې یوه جګړه کې دننه شي، چې حکومت یې د هغې جګړې قدرت نه درلود؛؛ (یاسین رسولي، بي بي سي فارسي).

ربیگینو برژینسکی، امریکایی دیپلومات او ستراتیژیست چې اصلا پولنډی دی، په هاردوارډ پوهنتون کې زده کړې کړې دي، د شوروي پېژندنې په برخه کې پېژندل شوی دي. او د جیمي کارتر امنیتي مشاور او د ریګن د دولت مشاور هم وو.دی د امریکا په بهرني سیاست کې  د جهادي ځواکونو څخه استفاده د کمونیزم په  وړاندې، ورداخل کړ.

بې شکه چې برژینسکي باید په بین المللي سیاست کې د اسلامي جهادیانو د ظهور معمار ومنو. برژینسکي پخواني ژینوپلیتیک نظریې کې  د امریکا په بهرني سیاسي کړنو کې، د شوروي پر خلاف ځای ورکړ. دی د ؛د پلان جوړونې لوبې، د امریکا او د شوروي د مخامخ کېدو؛په کتاب کې وښوده چې د لویو قدرتونو ټکر، ؛بله لاره نه لري؛ او د دوی ؛انتخاب؛ هم نه دی،مګر د شخړې ماهیت د دوو زورواکو تر منځ توپیر درلرلی شي. دری سیمې اوراسیا، جاپان او د لرې ختیځ کوریا، افغانستان په مرکز کې،  اسیا او لهستان په ختیځ د اروپا د امریکا او د شوروي د شخړو مرکز دی. تر دې چې افغانستان د یو ؛اړیکه  ورکوونکي هېواد؛ په نامه د اسیا په زړه کې   وپېژندل شو، او نا امني او د کړکیچ موجودیت په افغانستان کې  ټوله سیمه نا ارامه او بې ثباته کوي.

د هغه له نظره، شوروي د تل لپاره ؛د وچې محاصره؛ یو هېواد وو او د تاریخ په اوږدو کې روسیه او ورسته بیا شوروي ازادو اوبو ته د لاس رسي په خاطر کوښښونه کول. د شوروي د محاصرې پلان د نړیوالې دوهمې جګړې څخه وروسته د امریکا په بهرني سیاست کې تطبیق کېدو او برژینسکي په دې سیاست کې  ډېر نوښتونه داخل کړل او د زرغون کمربند د طرحې پر اساس د شوروي څخه یې ملاتړ کولو؛ د دې پر بنسټ، برژینسکي د امریکا د یووالي او د رقیبو هېوادونو چې شوروي ته نیږدې وو لکه چین او جاپان او د شوروي اطرافو ته هېوادونه په سوېل او لوېدیځه اسیا او ختیځې اروپا په برخو کې بشپړې کړې، او د دین د ضد پر ماهیت او د مسلمانانو د کمونیزم سره د عقیدتي دښمنی څخه یې استفاده وکړه او دې ته یې لانوره لمنه ووهله چې یو ؛ زرغون کمربند؛ د مسلمان جهادي ځواکونو د شوروي په مقابل کې جوړ شي.

برژینسکي د ۱۹۸۰ د لسیزې په اخر کې، د افغانستان د جهادي ګوندونو په تقویت کولو کې تاریخي رول ولوبولو. برژینسکي د امریکا د امنیتي مشاور په صفت د استخباراتي همغږی په برخه کې محوري رول د نورو مسلمانو هېوادونو سره لکه پاکستان، مصر، عربستان او نورو لوېدیځو هېوادونو،  اسرایل او د شوروي د رقیبانو سره لکه چین او جاپان د افغانستان د مجاهدینو د بشر دوستانه او تسلیحاتي مرستو لړی ترغیب او ملاتړ کړ او دا رول یې ښه ولوبولو. د تور سایکلون عملیات په افغانستان کې چې د ۵ میلیارده امریکایي ډالرو په لګښت سرته ورسېد، تر ټولو لوی او پراخ بنسټیه استخباراتي عملیات وو چې د تور استخباراتو تر پوښښ‌لاندې  تر هغه وخته پورې وو چې د برژینسکي په وینا د جولای د ۳ څخه، په دې مانا چې د شوروي لخوا د افغانستان د اشغال څخه شپږ میاشتې وړاندې د ۱۹۷۹ د ډسمبر په ۲۴ نېټه پیل شوی وو. په داسې حال کې چې امریکا د مجاهدینو د مرستو په وېشلو کې مستقیمه ونډه نه درلوده او یوازې یو کم شمېر تور مامورینو به د سرحدي سیمو څخه د افغانستان او اړونده هېوادونو تر منځ د سیمو څخه لیدنه کوله. ځینې دا نیوکې په دې اړوند شته چې د برژینسکي طرحې او نظر د جهادي ډلو د لوېدو او پراخېدو سبب شو، دا نه مني او

وایي که د شوروي نړېدل؟ د یو شمېر وارخطا مسلمانانو موجودیت او که د مرکزي اروپا ازادي او د سرې جګړې پای ته رسېدل؟؛

د دولت پر ضد د پاڅون د لا پراخېدو سره او هغه لویو مصارفو سره چې د شوروي اتحاد د هغه په ورکولو مجبورېدو، په افغانستان کې د شوروي اتحاد د دولت د جوړښت د بدلولو په اړوند کوښښ وکړ او ډاکټر نجیب الله یې د ببرک کارمل په ځای قدرت ته ورسېد.

**ډاکټر نجیب الله**

د ۱۹۸٦ ز کال د می میاشتې په څلورمه نېټه چې د ۱۳٦٥ د ثور د ۱۳نیټې سره سمون خوري ډاکټر نجیب الله د ببرک کارمل پر ځای د مرکزي کمېټې د عمومي منشي او د دولت د رییس په توګه وټاکل شو.



نجیب الله په ۱۳۲٦ ل کال کې چې ۱۹۴۷ ز کال سره سمون خوري، کابل کې وزېږید، مګر د ده پلار اختر محمد،په اصل کې د پکتیا د غلجي پښتون قوم احمدزیو څخه وو. هغه کلی چې نیکونه یې د هغې ځای وو د پکتیا ولایت د سید کرم والسوالي ده.

د حبیبې په لیسه کې یې تحصیل وکړ او د کابل پوهنتون څخه د ډاکټرۍ په برخه کې په ۱۹۷٥ ز کال کې فارغ التحصیل شو. د نجیب الله پلار په ۱۳۴۰ ل لسیزه کې په پېښور کې د افغانستان د قونسګرۍ تجار وو.

نجیب الله په ۱۳۴۴ کې د خلق د ګوند سره یو ځای شو، او د مارکسیستي اثارو په مطالعه یې پیل وکړ او د حزبي زده کوونکو په ناستو او غونډو کې یې د خبرو کولو ښه مهارت تر لاسه کړ.په ډېره چټکۍ سره د کابل په پوهنتون کې د حزب د غړو تر منځ وپېژندل شو او د سازماني تشکیلاتو د لړیو له لارې په ډېره چټکۍ سره د ببرک کارمل د پرچم د چپې خوا د حزب د مشر یو نیږدې ارتباطي شخص شو،. نجیب الله ډېر ښه نطاق او بیانیه ورکوونکی وو په داسې حال کې چې لا تر اوسه هم محصل وو، ظاهر شاهي دولت هغه زنداني کړ او پرچم خپرونه،چې د ډیموکراتیک خلق د حزب یوازېنۍ رسنۍ وه، د هغه او د نورو حزب غړو د زنداني کېدو خبرونه خپرول.

له دې څخه وروسته چې د پرچم د مشرتابه لخوا د عالي رتبه مقاماتو څخه رد شو، هغه د ۱۳٥۷ کال د چنګاښ په میاشت کې په ایران کې د د افغانستان سفارت ته د سفیر په صفت ولېږلو. مګر د سفارت په مقام کې ډېر پاتې نه شو بېرته بیا هېواد ته راوغوښتل شو. نجیب الله د یو وخت لپاره مسکو ته ولاړ او د ۱۳٥۸ ل د جدی په میاشت کې د افغانستان د اشغال سره سم د پخوانی شوروي د سور فوځ پواسطه، بېرته هېواد ته راستون شو.

هغه دا ځلې د شوروي په ملاتړ د اطلاعاتي پیاوړي سازمان ریاست ته چې د دولتي امنیتي خدماتو یا (خاد) پېژندل کېدو، مقام ته ورسېد، چې ډېر شمېر افغانان په دې دوره کې له دې سازمان څخه ډېرې بدې خاطرې لري.

**د ګوند او حکومت مشرتابه ته د ډاکټر نجیب الله غوره کېدل.**

د خلق د ډیموکراتیک ګوند د مرکزي کمېټې د عمومي منشي په صفت د نجیب الله غوره کول د ګوند لخوا، په ظاهر کې د مرکزي کمېټې د اتلسم پولینوم په اساس سرته ورسېد. دا یاد شوی پولینوم چې د ۱۹۸٦ زکال د می په څلورمه چې د ۱۳٦۵ د ثور ۱۳ سره سمون خوري دایره شوه د مرکزي کمیټې عمومي منشي د مقام څخه ببرک کارمل استعفاء ومنله او د هغه پر ځای یې نجیب الله دې چوکۍ ته غوره کړ.

سمد لاسه ګرباچوف د ۱۹۸٦ کال د می میاشتې په پنځمه ورځ، د خلق د ډیموکراتیک ګوند د عمومي سرمنشي په حیث د نجیب الله ټاکلو ورته مبارکي ورکړه او په یو لیک کې یې ورته داسې ولیکل: ستاسو برخه د شوروي - افغان د دوستۍ د ساتلو او د هر اړخیزه همکاریو لا پراخول او پر ثمره اړیکې د افغانستان د ډیموکراتیک جمهوریت او د شوروي د سوسیالیستي اتحاد سره ساتل، په ښه ډول سره ښکاره دي. ملګری نجیب او د افغانستان د ډیموکراتیک خلق د حزب ټولو غړو ته د نوو بریالیتوبونو په هیله د ثور د انقلاب د دندو او موخو په پلې کولو کې هیله کوم؛.

نجیب الله نه یوازې له دې زاویې څخه چې د مشرتابه او د دولتي استخباراتي سازمان د ریاست له لارې او د شوروي د اصلی قدرتونو د مرکزونو د مهمو او زوررورو اشخاصو باور تر لاسه کړی وو، مګر د قومي هویت له مخې هم ډېر د اهمیت وړ وو.د شوروي سفیر ؛دیه ګوکوردوز؛ ته چې د افغانستان په چارو کې د ملګرو ملتونو ځانګړی سرمنشي وو،داسې ورته ویلي وو چې د ببرک کارمل پر ځای د یو پښتون مشر ته د حزب او د دولت د مشرتابه په خاطر ضرورت شته.پاکستان هم دې شان توپیر راوستلو ته خوشبین وو.سلیک هریسن امریکایی د شوروي د چارو کار پوه همدغه ټکي ته ګوته نیسي:

؛دا واقعیت چې نجیب الله یو پښتون وو، د روسي دیپلوماتانو په سترګو کې نور هم جالب او ښه ښکاره کولو. دا ځکه چې کارمل یو ؛واقعي؛ پښتون نه وو او د هغه قومي سیاستونو د پښتنو تر منځ په لوړه پیمانه ناخوښي رامنځته کړې وه.د دې سره چې کارمل خپل ځان د پښتنو سره مرتبط ګڼلو، مګر پښتنو د هغه فرهنګي منشاء ته په اشاره، د کابل د پېژندل شویو تر منځ، دوی هغه له خپلې ډلې نه بللو؛. د دې سربېره شوروي د حزب او د دولت د نوي مشرتابه لپاره د خلق د شعبې په لوري نظر درلود.روسانو فکر کولو چې نجیب الله د هر بل کس څخه ډېر د پرچمیانو د ډلې په منځ کې او د خلق د شعبې لپاره نظر هر بل کس ته د قومي هویت په اساس د منلو او اعتماد وړ سړی کېدی شي. نجیب الله هم د خاد د ریاست په دوران کې د خلقیانو باور خپل کړی وو. د افغانستان مولفین د ژنوپولوتیک په منګنه کې دې ټکي ته اشاره کوي چې:؛حزبي فرقه پالونکي، هم د خلقي او هم د پرچمي ځانګو څخه،دا یې لیدل چې نجیب فرقه پالنې ته تمایل نه لري (د دې په خاطر چې په ٦۰-۷۰ کلونو کې دی د تره کي او کارمل پشان د حزب د قدرت د واګې د لاسته راوړلو په کړکیچ کې دخیل نه وو.) د دولت په دستګاه کې دا ښکاره وه چې نجیب د خاد په مقام کې د خلقي ضد تمایلاتو د امنیت د ارګانونو د کارمندانو مخنیوی کولو، دا په داسې حال کې چې دی پخپله پټ په زړه کې د دوی

سره هم نظره او همغږی وو.. د دې دول کړنو په وخت او همکارۍ،هغه وتوانېدو چې په نیک او ښه شخصي مناسباتو د پېژندل شویو خلقیانو لکه نظر محمد، تنی، وطنجار او ګلابزوی شانته کسان په خپله خوا کې وساتي.

د مرکزي کمېټې د ګوند اتلسم پولینوم، په حقیقت کې د وینو د توئیدو څخه پرته د نجیب الله لخوا پر ببرک کارمل د خلق د ډیموکراتیک ګوند د حاکمیت په دوران کې وو چې په پایله کې یې د شوروي نظامي شتون تحقق وموند.څکه د کودتا دغه سناریو په مسکو کې لیکل شوې وه،د دې سره سره چې اتلسم پولینوم دې ته د حزب د تشکیلاتي جوړښت یو عادي بدلون ښکاره کولو.

نجیب الله د حزب د مشرتابه په پیل کې له کلي او هر اړخیزه مشرتابه څخه خبرې کولې او کوښښ یې کولو چې په اول قدم کې د حزب داخلي اختلافاتو څخه مخنیوی وکړي، او د خلق او د پرچم او د نورو فریکسیونو یا شعباتو توجه او باور ځانته واړوي. تر دې حده چې هغه د ببرک کارمل پلویانو ته هم مراجعه وکړه او د ترغیب او ترهیب د سیاست پواسطه، دا کوښښ کولو چې د هغوی مخالفت د خپل ځان په وړاندې کم او له منځه یوسي. د پاملرنې وړ خبره دا ده چې نجیب الله د ببرک کارمل د پلویانو په متقاعد کولو سره د دې په منلو چې د حزب په مشرتابه کې باید تغیر راشي، دا تغیر یا توپیر یې د شوروي د مشرتابه او د شوروي د تحولاتو څخه سرچینه اخیستې بلله.

د دې څخه وروسته چې د شوروي اتحاد قواوې له افغانستان څخه ووتلې په ۱۹۸۹ ز کال کې د دوی د اقتصادي مرستو بندېدلو څخه وروسته، د ډاکټر نجیب الله دولت درې کاله دوام وکړ، او په دې دریو کلونو کې په بریالیتوب سره یې د مجاهدینو د بریالیتوب مخنیوی وکړ، او بلاخره د مالي منابعو د ختمېدو سره سم، او د مجاهدینو د ډلو سره د یو سیاسي توافق ته د نه رسېدو په پایله کې چې د جګړې د ختمولو او د یو ملي دولت د جوړولو غوښتنه وه، د دولت دوام امکان نه درلود او جبراً دې ته اړ او اماده شو چې دولت مجاهدینو ته وسپاري.

ډاکټر نجیب الله د کابینې په وروستی غونډه کې د مالي منابعو د ختمېدو په اړوند خپلو وزیرانو ته خبر ورکړ او د خپلو سیاسي کوښښونو د ناکامېدو په اړوند چې د مجاهدینو د ډلو سره یې په ژنیوا کې کوښښ وکړ، او د دولت د کار اخري مرحلې ته د رسېدو په اړوند خبر ورکړ، د دی په خاطر یې خپلو ملګرو او خپلو وزیرانو ته دا اجازه ورکړه څو د خپل راتلونکي په برخه کې خپل تصمیمونه ونیسي او هغه خپله هم وغوښتل چې دهلي ته ولاړ شي ځکه چې د ده خپلوان هلته اوسېدل، مګر د دوستم ملیشې چې د کابل د هوایي ډګر امنیت یې په لاس کې وو هغه یې پرواز ته پرېنښود او هغه د بلې لارې د نه شتون له کبله، کابل کې د ملګرو ملتونو دفتر ته پناه یووړه .

## اصلاحات

نجیب الله د خپلې ولسمشرۍ په دوران کې، په نظام او حزبي سیاستونو کې په ډېرو اصلاحاتو لاس پورې کړ، تر دې حده چې د حزب نوم یې هم بدل کړ او د خلق ډیموکراتیک ګوند یې د ؛وطن؛ ګوند په نامه کړ.

هغه په ۱۳۶۶ کال کې لویه جرګه راوغوښتله، او دې جرګې نوی اساسي قانون تصویب کړ.په دې اساسي قانون کې د اوسېدونکو لپاره ډېرې ازادۍ، لکه د رسنیو او د سیاسي ګوندونو د جوړولو ازادي برابرې کړې. د ؛اسلام مقدس دین؛

ته احترام کول او د هغه څخه پیروي کول د دولت لپاره لازمي وګڼل شو او حتی خپله نجیب الله په مذهبي او دیني غونډو کې برخه اخیستله.

له افغانستان څخه د پخواني شوروي د ځواکونو وتل، ۱۳۶۷ د دلو ۲٦ نېټه او د شهنواز تني بی پایلې او ناکامه کودتا، چې د نجیب د دولت د دفاع وزیر وو په ۱۳۶۷ د دلو په ۱٦، د هغه د جمهوریت تر ټولو مهمه نظامي پېښه ګڼل کېږي.

د شوروي د ځواکونو له افغانستان څخه د وتلو سره سم نجیب الله،د خلکو د خوښۍ سره سمې ویناوې د دولتي رادیو او تلویزیون له لارې خپرې شوې، چې په ښه او دوستانه شکل یې خبرې کولې او ډېره هڅه یې وکړه چې سوله خوښوونکې سیاست ته ادامه ورکړي.مګر په پاکستان او ایران کې مېشت د مجاهدینو ډلو دا خبرې د کابل د حکومت د ضعف او دوه مخۍ یو چال بللو او په ۱۳٦۷ ل کال کې یې د یوه لوی ځواک سره د نجیب الله د حکومت سقوط کولو په موخه د افغانستان په ختیځ کې د جلال اباد په ښار باندې د جګړې پیل وکړ. مګر دا عملیات له ډېرې سختې ماتې سره مخ شول، او دا نظامي شکست د مجاهدینو لپاره داسې یو پیغام وو چې د دې سره سره چې د پخواني شوروي ځواکونه له افغانستان څخه وتلي، خو د افغانستان دولت بیا هم مستحکم او قوي پاتې دی.

## د نجیب الله د حکومت سقوط

د دې ټولو مسایلو سره سره، نجیب الله خپل د ملي پخلاینې سیاست په رڼا کې، د موقتې ادارې د جوړېدو او د ټاکنو د کولو سره موافق شو، مګر د حکومت په اخیرو وختونو کې داخلي اختلافات، د ده د نسکورېدو سبب شول.د نجیب الله دولت د افغانستان په شمال کې د جنرال عبدالرشید دوستم د نظامي ډلې قوماندانانو د پلوي او ملاتړ څخه لرې پاتې کېدو او د هغه سره په مخالفت پیدا کېدو سره نسکور شو. د ۱۳۷۱ ل کال په لومړۍ میاشت کې نجیب الله دا تصمیم ونیو چې له قدرت څخه لرې شي او له هېواد څخه په پټه بهر ته ولاړ شي. کله چې د هېواد څخه د بهر ته لاره هم د نجیب الله پر مخ بنده شوه، هغه په کابل کې د ملګرو ملتونو د استازي دفتر ته د پناه غوښتنې په موخه مخه کړه او شاوخوا پنځه کاله هملته وو.

د مجاهدینو ډلې، د ۱۳۷۱ ل کال د ثور په اتمه نېټه کابل ته داخلې شوې، د هغه څخه وروسته په چټکۍ د کابل ښار په کوڅو کې وسله والې نښتې پیل شوې او دا جګړې په کابل کې تر پنځه کلونو دوام وکړ او د افغانستان په نورو برخو کې یې تر لس کاله دوام وکړ.ویجاړۍ، د وینو بهېدل او کډوالي چې خلکو ته د دې جګړو تحفه وه، ډېر شمېر خلک د نجیب الله د خبرو په فکر شول چې هغه به ویل چې که چېرته قدرت داسې یوې ادارې ته انتقال نشي چې د ټولو افغانانو په خوښه وي، په دې هېواد کې به د ؛وینو حمام؛ وبهېږي.

طالبانو کابل ته د ننوتلو سره سم، نجیب الله او د هغه ورور جنرال احمدزی د ملګرو ملتونو له دفتر څخه راویست او د اریانا په څلورلارې کې، د ترافیکو د کنټرول په برج په دار ځوړند کړ. طالبانو د هغوی مړي همله پرېښې وو، څو هر هغه څوک چې له هغې ځایه تېرېږي، هغه ووینی. د نجیب الله د قتل او د هغه د قاتلانو په اړوند ډېر زیات شیان خپاره شوي دي. د هغې څخه ځینو بیا داسې ویلي دي چې د ده د قتل سبب پاکستانی نفوذ و چې د طالبانو د ډلې په دننه

کې موجود وو او نجیب د ډېورنډ د موافقتنامې سره د اختلاف په خاطر یې هغه مړ کړ.رمګر نورو بیا لیکلي دي چې دی د خپلو حزبي مخالفینو لخوا، چې په هغه وخت کې د طالبانو سره یو موټی وو، هغه په دار وځړاوه. د یادونې وړ یې بولم کله چې طالبان د کابل ښار ته داخل شول، نجیب الله ډهلي کې خپلې مېرمنې ته پیغام لېږلی وو چې وارخطا کېږه مه، طالبان خپل کسان دي! دا په ګوته کوي چې ځینو په لوړو چوکیو کې، هغه ته د طالبانو په اړوند ناسم معلومات ورکړي وو.

د ۱۳۸۰ ل کال د مني په موسم کې د طالبانو د سقوط څخه وروسته چې د مجاهدینو د مشرانو د تصویرونو بازار ګرم وو، بیا په ځانګړي ډول سره حامد کرزی، د طالبانو څخه د وروسته حکومت جمهور رییس د طالبانو او د احمد شاه مسعود، چې د مجاهدینو مشهور قوماندان وو، د نجیب الله عکسونه هم د دوی تر څنګ پیدا شول. په اخیرو کلونو کې د هغه د خبرو او بیانیو تصویرونه او ویډیوګانې د هغه په انټرنیټي سایټونو او په کتاب پلورنځیو کې، په کابل کې نیږدې د کابل په ټولو ښارونو کې پیدا شول. حتی د هغه تصویر د ؛شهید قهرمان؛په نامه په کلیزو، خبرپاڼو کې خپور شو.

د دې ټولو سره سره،هغه دروند سیوری چې د نجیب الله په شخصیت باندې د خاد د دوران پروت وو،د اکثرو افغانانو له اذهانو څخه لرې نه شو او هغوی لا تر اوسه هم هغه ته په هم هغه تصویر او له هم هغه زاویې څخه ګوري او پېژني یې.

## د ډاکټر نجیب الله د حکومت ړنګېدو یو شمېر عوامل

په ۱۹۸۵ کال کې، کله چې ښاغلی ؛میخایل ګورباچف؛ د شوروي اتحاد د کمونیست حزب د عمومي منشي مقام ته وټاکل شو، د وخت نورو مشرانو د افغانستان څخه د شاه تګ په ضرورت پوه شوي وو.د جنګ په خلاف ډېرې هلې ځلې، چې د افسرانو کورنی، پخواني جنګیالي او حتی د بیرغ لاندې فعال افسرانو پیل کړې وې، مسکو یې هغې اړخ ته اړ کړ. ډېر لرې نه وو چې ؛ perestroika ؛ پربرسترایکا او ګلازنوست ؛glasnost؛ بوزد. په افغانستان کې ؛نجیب الله؛ چې تازه د جمهوري ریاست مقام ته رسېدلی وو، د عمل کوونکي نیشنلېزم په سودا، مخکې له مخکې له مارکسیزم – لیننیزم څخه به لرې شوی وي. په ۱۹۸۸ ز کال کې هغه د افغانستان د ډیموراتیک خلق ګوند نوم یې د ؛وطن؛ ګوند په نامه بدل کړ.د خپل ماموریت د دوران په پای کې، حتی په نظر کې درلود چې د دفاع د وزارت کنټرول ؛احمد شاه مسعود؛ ته وسپاري.

دا نرمښت او د منلو سیاست، چې د ؛ببرک کارمل؛ د روانېدو او د ؛نجیب الله؛د راغورځېدو په وخت کې احساس کېدو، د رسمي سیاسي لارې د ټاکلو په برخه کې چې نوم یې ؛ملي روغه جوړه وه؛ کې ډېر مهم رول درلود. Artemy Kalniovsky" یو تاریخ پوه په خپله یوه لیکنه کې چې نوم یې ؛اوږده خدای په اماني؛ دی، د دې دیپلوماتیکو اړخونو څخه ښه نظر وړاندې کوي. هغه داسې لیکي: په ۱۹۸۵ ز کال کې تر ۱۹۸۷ ز کال پورې د افغانستان په اړوند د مسکو سیاست، د جګړې د ختمولو نیت،د دې څخه پرته چې ماتې ومنل شي، مخته وړلو. ؛ګورباچف؛ په لږ یا ډېره اندازه د وارخطایی شاته کېدو یا عقب نشینی څخه د ممکنه تاوان پلوي او ملاتړ کولو، کوم چې ممکن وو د شوروي حیثیت د

خپل دریمی نړۍ د شریکانو په وړاندې داغ داره نه کړي، دا ورته ډېر د ډار خبره وه.د دې ټولو سره سره هغه د جګړې د ختمولو کار ته هم ملا تړلې وه، او د هغه سیاسي استازی هم د دې ملاتړ کوونکی وو په دې لار کې. دا طرف نیول د نویو کارونو د پلټنې متضمن وو څو کابل کې یو تل پاتې رژیم پر ځای کېښینوي چې د شوروي ځواکونو د وتلو څخه وروسته وکولی شي خپلو کارونو ته ادامه ورکړي؛.

د دې لپاره چې د ؛ملي پخلاینې؛ په سیاست کې بریالی شي د مجاهدینو څخه د متحده ایالاتو لومړنی ملاتړ په کار وو. له بده مرغه افغانستان او شوروي، د ؛ریګن؛ دولت هغه وخت د "Bleeders ؛ (؛وینه تویونکو؛) او ؛dealers؛ (؛د پخلاینې پلټیانو؛) په دوو شعبو پاشلي وو.؛جرج شولتز ؛George Shultz) بهرنیو چارو وزیر د اصلی سولې غوښتونکو تر منځ یوې خواته راغلل د شوروي اتحاد د سوسیالیستي جمهوریتونو سره ځای درلود. د دوی موضع نیول ډېر ساده وو:په دې باور وو کله چې سور پوځ له افغانستان څخه ووځي، متحده ایالات باید د مجاهدینو د مرستو څخه لاس واخلي. مګر ؛وینه بهوونکي؛ چې د ؛CIA؛په میدان کې او د امریکا د کانګرس کې ښکاره حضور درلود، غوږونه یې د دې خبرو لپاره اماده نه وو:دوی د مجاهدینو ملاتړ څخه لاس اخیستل په دې پورې تړل چې د شوروي ملاتړ باید په صاف او ساده ډول سره د ؛نجیب الله؛ د دولت څخه لرې شي او دا یې شرط وو. دوی وو چې بلاخره خپل هدف ته ورسېدل.

د ۱۹۸۹ کال د فبرورۍ په میاشت کې د شوروي اخري ټانګ د دوستی له پل څخه په شمال کې د امو سیند څخه تیر شو. د دې سره سم، مسکو د ؛نجیب الله؛ سره له مرستې لاس وانخیست. د ۱۹۸۹ کال د مارچ په میاشت کې کله چې د افغانستان د دولت نظامیان چې اوس په یوازې سر جنګېدل، د تورخم بندر سره نیږدې په جلال اباد ښار باندې د مجاهدینو محاصره یې ماته کړه، چې دې ټول خلک حیران کړل، که چېرې یرغلګر په دې حمله کې کامیابېدلی، دا لرې خبره نه وه چې کابل د دوی راتلونکې موخه وه. له دې څخه وروسته،د مجاهدینو اووه ګوندونه،د دې سره سره چې نظامي ښه والی یې درلود، د یو بل څخه ټوټه ټوټه شول او د نه جوړښت او د مشرتابه په مشکلاتو اخته شول.

د ؛بریټ ویت؛ په عقیده، ؛ادوادرد شواردنادزه (Edouard Chevardnadze) ؛چې نه یې غوښتل د شوروي د بهرنیو چارو وزیر وي چې ماتې ته تسلیم شي، تر ټولو ډېر د ؛نجیب الله؛ ملاتړ کوونکی وو. هغه داسې فکر کولو چې افغانان د روسي تیلو او وسلو له لارې چې د سوسیالیستي شوروي جمهوریتونو اتحاد یې ورکوي، افغانان به تر ابده پورې وجنګېږي. په حقیقت کې ؛نجیب الله؛ وکولی شول چې درې کاله اضافه دوام ورکړي. د ۱۹۹۱ز کال په پای کې کله چې ؛بوریس یلتسن (Boris Eltsine) ؛ ګورباچف؛ لرې کړ او د سوسیالیستي شوروي د جمهوریتونو اتحاد ونړېدو، د مرستو لړۍ هم بنده شوه.

د ؛یلتسن؛ په شتون د روسیې په قدرت کې، د ؛نجیب الله؛ رژیم له پښو وغورځېد. که د ؛بریټ ویت؛ خبر د مثال په ډول ونیسو، داسې ویل کېږي چې ؛یلتسن؛، د روسیې د فدراسیون د جمهوري ریاست په مقام کې، حتی د ښاغلي ؛ګرباچف؛ څخه د مخه د افغان مجاهدینو سره یې اړیکې نیولې وې. له بلې خوا د دې سره سم چې د روسي موادو او د ضروریاتو وړ څیزونو عرضه کول بند شول،ښاغلی ؛عبدالرشید دوستم؛ د ؛نجیب الله؛ د اصلي نظامي ملګرو څخه و،د یرغلګرو ځواکونو سره یو لاس شو.

د دې سره سم چې د حکومت د کار د ختمېدو اعلان د وزیرانو په غونډه کې اعلان شو، او د هغه څخه وروسته د ډاکټر نجیب الله د هېواد څخه د وتلو ناکامه کوښښ، بی ځایه نه دی چې د نجیب الله د حکومت وزیران او ملګري د خپل راتلونکي په اړوند، خپله تصمیمونه ونیول او هر یو یوې خواته روان شو.په دې ګډوډیو کې، جنرال عبدالرشید دوستم په فرصتپالنې سره د احمد شاه مسعود په خوا، او د دولت تسلیمول د ډاکټر نجیب الله د نظامي څواکونو د یو شمېر دولتي پرچمی عناصرو لخوا لکه وکیل، فرید مزدک، جنرال نبي عظیمي،جنرال علومي او داسې نور په ۱۹۹۲ ز کال کې احمد شاه مسعود ته او د جمعیت ګوند ته مسعود او د جمعیت ګوند ته یې دا فرصت ورکړ چې د مجاهدینو د ډلو تر منځ د توافقاتو څخه سترګی پټې کړي، قدرت په خپل لاس کې واخلي او مطلق حاکم شي.

### د افغانستان د ډیموکراتیک جمهوریت لاسته راوړنې

## سیاسي او ټولنیز اثرات

د ګوند د ؛خلق؛ د څانګې د واکمنۍ پیل، په وینو لړلې دوره وه.د ؛داوود؛ څلوېښت تنه همکاران او همفکران، چې د هغو په شمېر کې دوه پخواني لومړي وزیران هم دخیل وو، له محکمې پرته په دار وځړول شول. نور کسان یا په قتل ورسېدل او یا هم زندانونو کې پاتې شول، ماویستان، اسلامګرایان او حتی د ؛پرچم؛د څانګې غړي هم لیدل کیده.

هغه تاوتریخوالی چې ؛خلق؛ په هغه پیل وکړ، د شوروي مشرتابه یې پریشان کړ. د ټولو بېلابېلو ترقي غوښتونکي اصلاحاتو سره سره لکه – د ماشومانو د ودونو مخنیوی،د ولور د اندازې کمول، د کلیوالې رغونې قرضونو له منځه وړل،د نارینوو او ښځو د بېسوادۍ سره مقابله کول (د هرې ډلی لپاره بېل بېل د زده کړې شرایط)، ځمکني اصلاحات او د هغه جزیات -،د دې ټولو د مدیریت خطاوې، دا ټول د خلکو لخوا د سختو پاڅونونو علت وګرځېد.

ښاغلی؛ صالح محمد زېری؛د کمونیستانو یو تر ټولو پخوانی مسولانو څخه دی چې ؛ستیل؛ وتوانید هغه په لندن کې په ساده جوړ شوي کور کې پیدا کړي دی د خلکو مقاومت په دې شکل تشریح کوي: په پیل کې د کلیو او باندېو خلک خوشحاله وو، مګر کله چې پوه شول چې موږ کمونیست یو، خپل چلند او خپل سلوک ته یې [زموږ په اړوند] توپیر ورکړ. د نړۍ په ګوټ ګوټ کې خلکو زموږ په خلاف وو.خلکو به ویل چې موږ په اسلام عقیده نه لرو،[ممکن] بی ځایه یې هم نه ویل. دوی په ښکاره لېدل چې مونځ نه کوو، ښځې مو د ولور د بار څخه خلاصې کړې وې او هم خلکو به ویل چې موږ بې بندوباره پلویان یو؛. د افغانستان د ډیموکراتیک خلق د ګوند یو بل پخواني غړي هم چې د ایټالیا په پلازمېنه کې اوسېدو، راوست چې هغه حزبي مشران چې قدرت ته رسېدلي دي ؛دا یې غوښتل چې د پنځه کلو په ترڅ کې د بې سوادۍ ریښې وباسي؛ خوب او خیال او یوه مسخره وه. خلکو د ارضي اصلاحاتو لړۍ ته زړه نه ښه کولو.مشرانو او حاکمانو به داسې فرمانونه صادرول چې ظاهرا به انقلابي وو مګر غوښتل یې چې په زور یې په کار واچوي.د خلکو سره یې مشوره نه وه کړې.

د افغانستان د ډیموکراتیک خلق ګوند اصلاحات د اضطرار څخه چې د پخوانیو ښارونو او کلیو کې په افغانی ټولنو کې موجود وو،خوندي پاتې نشول. د ښارونو مېشت تحصیل کړي ځوانان د کلیو د ژوند او اساساتو څخه هېڅ خبر نه وو، او غوښتل یې چې یو بل ترکیب ورته ورکړي، په داسې حال کې چې د کلیو اوسېدونکي د خامو خښتو دېوالونو په منځ کې اوسېدل او د ښاري ژوند سره یې هېڅ علاقه نه درلوده. له کبله د حیرانتیا ځای نه وو چې د ټولنیز او فرهنګي اصلاحاتو برخې، د ځینو د قبول او خوښې وړ و نه ګرځېدې، دا ځکه چې د ملایانو، ملکانو او د ځمکو د خاوندانو امتیاز یې تر خطر لاندې راوستلو، مګر د ټولو څخه ازار ورکونکې دا وو چې مومن بزګران هم د ترقی غوښتونکو اقتصادي برنامو اړخونه یې له سره نه منل.

افغانستان د ۱۹۷۰ کلونو په لسیزه کې په داسې حال کې چې غریب او د مساواتو څخه لرې پاتې وو، مګر د بزګرۍ په برخه کې تمرکز درلود، د مثال په ډول، لکه د چین د انقلاب او د مکسیکو د انقلاب څخه د مخه،چې نوموړو هېوادونو رنځ وړلو. لکه چې ؛جاناتان ستیل؛ یې تشریح کوي، رعایا غالباً ؛د مذهبي اړیکو کړۍ، عشیره او کورنۍ یې له خپلو مالکانو سره درلودې او دې ته حاضر نه وو چې د دوی د اقتدار څخه سرغړونه وکړي؛. کلیواله ټولنه چې د تل لپاره د کابل په نسبت خودمختاره وه، داسې احساس کولو چې د تهدید لاندې ده. د بلې لارې د نه موجودیت له کبله، په قرار قرار یې وسله وال مقاومت ته لاس واچوه او اسلامي ګوندونو سره یو ځای شول چې د ځپل کېدو په دوران کې چې ؛داوود؛ مخ ته وړلو،پاکستان ته وتښتېدل.

ځینې فنې خطاوې یو ځل بیا د افغانستان د ډیموکراتیک خلق ګوند وضیعت لانور خراب کړ. د کابل کمونیستانو په وارخطایی د کابل ځمکې تقسیم کړې، مګر د اوبو مالکیت یې په خپل حال پرېښود.

هغه تېروتنه چې د بزګرۍ په اړوند د دوی بې خبرۍ څخه پرده پورته کوي. سودخوړل او ناعادلانه نظام بازار له منځه یوړ، مګر د کلیوالو بی وزلو لپاره یې یو کرنیزه د کرهنې قرضې سیستم ځای پر ځای نه کړ.له بلې خوا د شوروي د دولت غړو هم د کابل څخه د کلکو اصلاحات د ځنډولو او بندولو غوښتنه هم نه منله.

کمونیستان د افغانستان لومړني د بیا کتنې یا عصري کېدلو غوښتونکي نه وو چې د ناکامۍ سره مخ شول. امان الله خان هم د عشیره د پاڅونونو سره د نوښت د غوښتنې د سیاست په وړاندې ودرېد، چې د ؛مصطفی کمال اتاتورک؛ د وینا په اساس،د قدرت څخه وغورځېد. هغه حد اقل بزګرو اصلاحاتو لړۍ روانه کړه، ښځو ته یې د رایې ورکولو حق ورکړ او د نجونو زده کړه یې پیل کړې وه.کلیوال پېژندل شویو کسانو به ښکلي سرکونه په نامه کړل، مګر د مالیاتو راټولول چې د بودیجې تامین لپاره وو،هغه یې نه خوښول، د کلیو مېشت کسان د کرنیز پرمختګ او د زده کړو د حالات د ښه کېدو په اړوند خوشحاله وو، مګر ځینو بیا د نارینه تر تاثیر لاندې ټولنې څخه خپل نیت نه بدلولو.

د افغانستان ډیموکراتیک خلق ګوند په داسې حال کې چې د خپل موجودیت له پیل څخه، د پخوانیو حکومتونو ظلمونو ته یې بد ویل، د هغوی ډول ډول استبداد د هغوی له نظره محکومول، مګر همدا ګوند،له دې سره سره چې داسې تبلیغات یې درلودل، په خپلو ظالمانه اعمالو یې د افغانستان د خلکو زړونه ازارول او د ټولنې په ژورو کې یې د نفاق تخم کرلو. د حزب مشرانو هېڅ وخت خپل ګرېوان ته سر نه ټیټولو چې وویني چې د افغانستان د تاریخ کومه برخه د

خلکو اړوند داسې روایتونه لرل .په داسې حال کې چې دوی د خپلو غلطو اعمالو او د جفا امیزه کړنو علت، د وخت خرابې بلله،د شوروي مخالفین یې محکومول. داسې یې ښکاره کول چې د شوروي مخالفینو له خدای څخه دا حال او دا ورځ غوښتله، څو د شوروي او د افغانستان د ډیموکراتیک جمهوریت د حکومت لپاره اسباب د سیاسي او ؛ایدیولوژیک؛برخو کې مساعد کړي.د نور محمد تره کي ۱۷ میاشتنی حکومت، د افغانستان د خلکو لپاره د دردناکه لوبې مقدمې پیل کړې.د هغه حکومت او حزب دیکتاتوري کارونه او ظلمونه، یو ځل بیا دې گران ببې تجربې او د هېواد پایلو ټولولو ته ور اضافه کړ، چې یو حزبي او پر پردیو متکي نظام، د یوې ټولنې د اوسېدونکو پر سر د ظلم کولو اعمال خپلوي. د داسې نورو نتایجو سره چې د هغه د ۱۴ کاله عمر په اخیر کې وشو، باید دا ټول وویل شی.

د یادونې وړ ده چې د ا.خ.د گوند هغه مشران چې ژوندي دي، هغه کسانو چې د دې عصر په اړوند یې کتاب لیکلی او کتنې یې کړې، یو بل برداشت توضیح کوي. دوی د افغانستان په دننه کې د تباه کوونکي اعمال اصلی علت، د حزب په استبداد امیزه جوړښت او په هغه کې د حاکمو عقایدو له امله نه بولي، او همدا راز د شوروي اتحاد نړۍ خلکو چې په هغه کې د افغانستان خلک هم شامل دي، دوست او ملگری بولي. ځینې بیا، په ځانگړې توگه د پرچم څانگه د تره کي د دورې د ستمونو او ظلمونو په څېړنه کې، حفیظ الله امین مقصر بولي. پر همدې بنسټ، د دوی له نظره ؛داخلي او نړیوال ارتجاع؛ چې د ښو پروگرامونو او برنامو په مخ کې خنډ وگرځېد. همدا راز د گوند ځینې غړي هم شته چې د ا.خ.د.گوند د حاکمیت د حقایقو په اړوند هېڅ هم نه وایي.

عبدالله نایبي چې یو پرچمي تیوریسن دی په دې اخیرو وختونو کې د ؛د افغانستان د خلکو نوی حزب؛ په ویبسایټ کې، په یوه مقاله کې د ؛د افغاني ټولنې انحطاط؛ تر لاندې د افغانستان د ډیموکراتیک خلق د گوند د ناکامۍ عوامل او په خاصه توگه د حزب داخلي عوامل لیکي... دلته د حزب د داخلي کمبودیو پر سر یو مکث کوم چې په څه ډول سره د څوارلسو کلونو په ترڅ کې د خپل حاکمیت په اوږدو کې څه رولونه ولوبول (په خپله خوښه یا د خوښې پرته) په ټولنه کې د انحطاط د استقرار په اړوند یې رول ولوبولو.

؛زرین؛اصل **ډیموکراتیک مرکزیت** چې د حزبی مفکورو – د داخلي ژوند موخه گڼل کېده، هېڅ وخت د ؛مرکزیت له اصل؛ څخه لویه نه وه. که د یوې خوا څخه په دې اړوند عیني شرایط نا معلومه وو د بلې خوا،د گوند مشرتابه، د پوهې یا ناپوهی په حالت کې، د دیموکراسۍ د منځ ته راوړلو او یا د پیاوړي کولو په منظور د گوند په دننه کې هېڅ برنامې سرته و نه رسولې. ظاهري یو لاسی او انسجام د حزب او د لوړو مقاماتو امرونو ته د سر په بیه تن کېښودل، د گوند د کارکوونکو د پېش قدمو غړو پواسطه، داسې یو مفکوره او عقیده د گوند په صفوفو کې منځ ته راوړې وه، چې گڼې انقلابي روح او ایمان د گوند د داخلي ژوند یوازېنی لاسته راوړنه او غنا ده او هغه باید د حاکم هیئت د یرغل څخه یوې خواته، او د داخلي ټوټې کېدو څخه بلې خواته، خوندي ساتي. دا د افغانستان د ډیموکراتیک خلق د جمهوریت د مشرتابه لومړنۍ او تر ټولو لویه تېروتنه وه. د حزب د داخلي دیموکراسۍ نه موجودیت،برعکس،د گوند انشعاب یا به برخو له داخله وېشل کېدل وو. مگر هغه څه ته چې د انشعاب څخه هم ډېره توجه ورکولی شو، د سیاسي قدرت د نیولو

مسئله وه.داسې یو گوند چې داخلي غیر ډیموکراتیک ژوند یې درلود، په دې قادر نه وو چې (د دولت د حاکمیت سره سره) د یو ډیموکراتیک دولت بنسټ کېږدي.

د ډیموکراتیک مرکزیت په اصل کې د ډیموکراسۍ اړخ د عقیدې او تفکر ښکاره کول دي، یا په بل عبارت، ازادۍ څخه استفاده کول دي. ؛مانیفیست؛ د هغه ټولنې چې استفاده نه کوي ؛د ازادۍ فرمانروایي؛تعریف کړي او ؛ازادي؛ (اختیاري) تر ټولو بنسټیزه بشري ارزښت بلل کېږي،ځکه یوازې د اختیاري کار کولو په وسیله کولی شي چې د نورو ارزښتونو انتخاب ولرو.که استقلال یا ازادي اختیاري نه وي،نه هېڅکله نه شو کولی له یو بل؛ سره مرسته، د هومانیستی ارزښت په جمع کې حساب کړو.هغه څه چې د افغانستان د ډیموکراتیک خلق گوند د غړو څخه اخیستل شوي وو، هغه ازادي وه،په ځانگړې توگه بیا د قضاوت ازادي! د گوند غړي، دې ته اړ وو، ځکه تر قضاوت لاندې مشري یې کوله، چې په دې کې د ژوند د چارو او د ارزښتونو قاضي مشرتابه وو.حزبیانو خپل د وجدان په ډېر ژورو نقطو کې، خپل ژوند د مظلومو خلکو د دفاع په خاطر وقف کړی وو، او حزب یې خپل د ژوند شرف او د خپل ژوند مقصد منلو.لومړنۍ پېښه چې د گوند د غړو احساس او د ؛فداکارۍ؛ د ؛د لویو ټولنیزو ارزښتونو؛ روحیه یې کمزوری کړ، د یوی وړې دیکتاتورۍ ډلې پر ټول حزب باندې مقررول وو چې د هغه له لارې پر دولت او بیا پر ټوله ټولنه استقرار وموند. حزبي ملگرتوب چې د ټولنې تر ټولو لوړه او غني ارزښت بلل کېدو،د یوې وړوکې ډلې په پښو کې قرباني شو، او د هغه ځای یې کدورت، دښمنۍ،توطیه او چل ونیولو. د افغانستان د خلق ډیموکراتیک گوند د دولت سره د جوړ جاړي په پایله کې د ثور د ۷ د پیښې د ؛انقلابي څرنگوالي؛ څخه لیري شو او د خپل انقلاب د معنویت څخه تش کړی شو.د دې څخه وروسته د ؛ملگریتوب؛ چې د حزب او د گوند د بنسټ اصلي هستي وه، یو خلاصوونکي سازمان ته چې د دنیایي کارونو پسې تړلي وو، په شکل پېژندل کېدو،د هغه څخه هېڅ خبر هم نه وو.

د جدی د میاشې پېښه چې د دولت په داخل کې، د یوې دیکتاتورۍ – ډلې په وینو ډک انجام باندې ختمه شوه، د دې سره ؛له خپل ځان څخه پردي کېدل؛ هم یو ځای وو، گوند او دولت چې اوس په بشپړ توگه حزب – شوروي په لاس کې وو.د ثور په ۷ نېټه د یوې ټولیزې ارادې؛ په شکل په دولت کې ناممکن شو او په ٦ د جدی کې حزب – دولت د یوې افغاني ټولنې د ارادې په صفت د حزب – دولت د شوروي کې ناممکن شو. د افغاني ټولنې هغه برخې چې د گوند – دولت د نفوذ او عملکر لاندې وو، د خپل راتلونکي د ټاکلو توان له لاسه ورکړ. په دې اساس د ټولنې د یوې برخې د ارادې سلبېدل چې د افغاني ټولنې وه – یانې د غوره کولو ازادۍ د له منځه تگ – د ارزښتونو د له منځه تللو حرکت یې گړندی کړ. د افغاني دغه ټولنه ؛د بند پاتې شوې ټولنې؛ هویت یا پېژندگلوي یې ځان ته واخیست چې ازادي یې یو لاسته نه راتلونکی خوب په شکل په خپلو فکرونو کې منلی وو! ؛داخلي کړکېچونه؛ د حاکمیت په دننه کې، د (کورنی، فراکسیوني، جناحي، قومي، ژبنیز، سمتي او ...) پر اساس، د گوند د هغه غړو څخه چې تر اوسه هم هومانیستی ارزښتونو ته پابنده وو، او په ډېر مشکلاتو یې وشو کولی چې لا تر اوسه هم خپل لاسونه د بشري ارمانونو تر شفاف څادر لاندې پاک وساتي، دوی یې په بشپړه توگه یو څنگ ته او له مشکلاتو سره یې مخ کړل.

د جگړې د لمنې لا نور غځېدل او د انسانانو بې شمېره مړينه د کرښې دوارو غاړو ته، د دې سبب شو چې د وخت په تېرېدو سره، د غچ اخيستنې او د ؛انسان د ژوند؛ د ارزښت د کمېدو سبب شي. د حاکميت په اخيرو کلونو کې د حکومت د ګوند ځينې غړي او د حزبي ډلې، نه يوازې دا چې په خپلو حزبي اصولو يې پښې کېښودلې، مګر د خپل پخواني دښمن د پلان په تل کې سره يو ځای ولوېدل او په خپلو ملګرو يې يرغلونه وکړل!

د ټولنې هغه برخه چې د دولت د ګوند سره يو ځای وو، خپل باور او اعتقاد يې د ارزښتونو په اړوند چې د حزب له خوا د مقرارتو په کتاب کې چاپ شوي وو، او دوی په ټولنيز ژوند کې خپل ځان د هغو ارزښتونو ممثلين بلل، هغه يې په بشپړه توګه له لاسه ورکړل. ؛سياست کول؛ د چل او هنر سره يو ځای شو او سياسي ډګر يې د ټولنيز ارزښمند پراتيک پر ځای ونيولو. د ؛افغانستان د ډيموکراتيک جمهوريت د وسله والو ځواکونو تسليمول، د نظام د پاشل کېدو يوازېنی علت نه وو، مګر دا د نظام د ارزښتونو پاشل کېدل او د انحطاط استقرار وو چې د وسله والو ځواکونو د تسليمېدو او د حکومت – ګوند د ا ټول علت ګرځېدلی وو. نورو ټولو ارزښتونو د فکرونو څخه کډه وکړه او ؛معنويت؛ يو منځ تش څيز څخه اضافه نور څه نه وو.د افغانستان د خلق د ډيموکراتيک ګوند غړي چې د دولت په څرخونو کې ګير پاتی وو، خپل پخوانی مقدس او پاک محرابونه يې د ګندګيو او مرداريو څخه ډک وليدل! له دې کبله نن (د دولت – ګوند د نړېدو د پېړۍ د څلورمې برخې څخه وروسته)  د ګونديانو د يو څو کم شمېر څخه پرته چې انساني لوړ رتبه ارزښتونو ته يې احترام کولو، نور ټول د انحطاط د نتيجې په بسترونو کې ژوند کوي!؛

بايد د افغانستان د جهاد پر سيمه ييز او نړيوال اړخ هم ټينګار وکړو.د ۱۴ کلنې جګړې په پايله کې په افغانستان او په هغه کې د شوروي اتحاد مداخله د شوروي اتحاد د وراسته او کاره لوېدلي نظام د ماتيدو په برخه کې يې مرسته وکړه او په پايله کې يې سړه جګړه ختمه شوه. دا جګړه د کمونيزم ټغر راټول کړ او په نړيواله سطحه يې سوسياليستي او کمونيستي د حقانيت تيورۍ ته نه هېريدونکې ضربه ورکړه او کيڼ اړخي خوځښتونه په ټوله سيمه او نړۍ کې د بحران سره مخامخ شول. د وروسته پاتې هېوادونو د ژغورنې په نامه د کميونېزم او سوسياليېزم د اعتماد او اعتقاد د مفکورو د بې عدالتۍ او غير مساوات د ضد جهتونه يې، ټول د تل لپاره داغ داره او د اعتبار څخه ولوېدل.

## انساني مصرفونه او اثرات

پخوانی شوروي اتحاد د کال پنځه ميليارد ډالره او په مجمع کې په ۹ کلونو کې ۴۵ ميلياړده ډالر په افغانستان کې مصرف کړي، په داسې حال کې چې امريکا، سعودي عربستان، اسلامي هېوادونو او اروپايي ملکونو په ټوليز ډول سره د لس ميليارد ډالرو په اندازه مرسته او وسله په ۱۹۸۰ ز کال کې تر ۱۹۹۲ ز پورې د مجاهدينو خدمت ته ورسپارلې وه (احمد رشيد،طالبان، ۲۰۰۰). د افغانستان د حکومت مصارف د جګړو په ترځ کې  بايد په دی اساس وشمېرو.

د افغانستان د ډيموکراتيک جمهوريت د نتايجو او اثراتو شمېر، په ميليونونو شهيدان، معلولين او کډوال دي. د لومړيو لسو کلو په ترڅ کې  ۱۹۷۸-۱۹۸۷ د افغانستان د ډيموکراتيک جمهوريت جمعا ۸۷۶،۸۲۵ افغانان چې په دې کې شامل

٦٥٠،٠٥٦ نارینه او ۲۲۷،۷٦۹ ښځې وې د جګړو له امله په افغانستان کې خپل خوږ ژوند له لاسه ورکړی (نور احمد خالدي، ۱۹۹۱ ز، ص ۱۰٦). په دې اساس په دې دوره کې په اوسط ډول سره د کال نیږدې ۸۸ زره کسانو خپل ژوند له لاسه ورکړی.که دا شمېر د خلق د ډیموکراتیک ګوند په ۱۴ کاله حاکمیت باندې تقسیم کړو، نو د افغانانو ټولیزه مړینه د افغانستان د جمهوریت د زعامت په وخت کې به د ۱.۳۲ میلیون بالغو انسانانو ته ورسېږي.

د مړو په شمېر سر بېره، په میلیونهاوو افغانان د دولت د سیاست له وجهې، د مجاهدینو پر کلیو او ښارونو د یرغلونو له امله او یا د مجاهدینو او د دولتي ځواکونو تر منځ د نښتو په ترڅ کې، د خپلو کورونو، کلیو او ښارونو څخه کډوالۍ ته مجبور شول او امن سیمو ته د هېواد په دننه او یا د هېواد څخه بهر نورو هېوادونو ته کډه شول.پاکستان او ایران ته د کډوالو شمېر د میلیونونو شمېر ته پورته کېږي.

لاندې ګراف کې شاملې احصایې چې د ملګرو ملتونو د پناه غوښتونکو ادارې څخه اخیستل شوي، ښکاره کوي چې په ۱۹۸۸ ز کال کې د (ریفیوجی) پناه غوښتونکو او بی ځایه شویو کورنیو کډوالو شمېره د شپږو میلیونو څخه د ډېرو بالغو کسانو شمېر ته رسېږي:

**لسم چارت: پناه غوښتونکو او بی ځایه شویو کورنیو کډوالو شمېره ۱۹۸۸ زیږیدیز کال**




په داسې حال کې چې با استعداده ښاري کډوال په دې هیله چې د اوسېدو لپاره مناسب ځای پیدا کړي امریکا، استرالیا، او اروپا، مخ په پاکستان او هندوستان شول، کلیوال پناه غوښتونکي چې سني مذهبه اکثریت وو، د پاکستان د کډوالو په کمپونو کې او شیعه مذهبه اکثریتو په ځانګړې توګه بیا هزاره وو ایران ته کډه وکړه. د دې کلیوالو کډوالو یو زیات شمېر بېرته افغانستان ته د ۲۰۰۲ ز کال په لړ کې  بېرته راستانه شول، چې د هغې څخه وروسته، ډېر فرهنګي  او ذهنیتي اثار په دوی کې لیدل کېږي چې د هېواد کورنیو ستونزو او کړاوونو ته لا نوره لمنه وهي.

د دې سربېره، د افغانستان دیموګرافیکي جوړښت د دې جګړو په پایله کې په ډېره اندازه متاثره شو په ځانګړې توګه د ښارونو لومړنی نفوس اکثریت کډه کولو ته مجبور شول او کلیوال نفوس د هغو ځایونه ډک کړل.په دې شکل سره د ښارونو د نفوس په جوړښت او کیفیت کې بدلونونه راغلل چې د نظر څخه یې نشو غورځولی او د دې سره سم ښاري فرهنګ هم توپیر وموند.

## د دې برخې د سرچینو لړ لیک

۱.جاناتان ستیل، د افغانستان د جګړو د ارواحو کتاب، د لندن چاپ ۲۰۱۲ ز کال: (په انګلیسي ژبه)

۲. نور احمد خالدي، د افغانستان د جګړو،دیموګرافیکي پایلې، د منځنی اسیا د سروې مجله، د منځنی اسیا د مطالعاتو ټولنه، ۱۰ جلد،۳ شمېره ۱۹۹۱ کال، اکسفورد.(په انګلیسي ژبه)

۳. بصیر احمد حسین زاده د بي بي سي فارسي ویبسایټ

۴. سلطان علي کشتمند، سیاسي یادښتونه او تاریخي پېښې، ناشر نجیب کبیر، ۲۰۰۲ کال.

۵. صدیق وفا، فېسبوکي بحثونه

٦. لوموند دیپلوماتیک، د کمونیستي تجربې بیا کتنه په افغانستان کې، ۲۰۱۲ ز

۷. فرید مزدک، د بي بي سي فارسي سره مرکه

۸. د جنرال عبدالقادر سیاسي خاطرې، دوهم چاپ، د ۱۳۹۲ ژمی، هامبورګ.

۹. صباح الدین کشککی، **د اساسي قانون لسیزه**، ناشر د میوند نشراتی مرکز، درېیم چاپ، ۱۳۷۷، پېښور

۱۰. عبدالله نایبي ویبسایټ ؛د افغانستان د خلکو نوی ګوند؛ د مقالې عنوان ؛د افغاني ټولنې انحطاط؛

۱۱. نصیر مهرین – د المان رږغ

Artemy Kalinovsky, A Long Goodbye:The Soviet Withdrawal from .12

Afghanistan, Harvard University Press, Cambridge, 2011

۱۳.یاسین رسولي د افغانستان پخوانی دیپلومات په لندن کې/ بي بي سي/ برژینسکي، په تاریخ کې کوم شی ډېر مهم دی؟ د طالبان موجودیت او که د شوروي نړېدل؟، د سه شنبی ورځ، د ۱۳۹٦ کال د جوزا ۲۳ نېټه

۱۴.سید محمد باقر مصباح زاده (د لمر پیام،۱۳۹٦)

۱۵. د ملګرو ملتونو د پناه غوښتونکو اداره UNCHR

۱٦. د لمر پیام انټرنیټي خپرونه، د ۱۳۹۵ کال د ثور ۸ نېټه

۱۷. احمد رشید، طالبان،نظامیګر اسلام، نفت او بنسټ پالنه په منځنی اسیا کې، د یل پوهنتون د مطبعې چاپ شوی،د امریکا متحده ایالات، ۲۰۰۰ (په انګلیسي ژبه).

### د مجاهدینو حکومت (۱۹۹۲-۱۹۹٦ زېږديز)

## د ډیموکراتیک جمهوریت د رژیم پر وړاندې مقاومت

د افغانستان په ژوره عنعنوي ټولنه کې د تره کي، کارمل او د نجیب الله د رژیمونو په وړاندې د مقاومت مشرتابه، له بده مرغه د اسلامي بنسټ پالو سیاسي ډلو په لاس وغورځېد. دا ډلې په دوو برخو وېشل شوې وې؛ مکتبي اسلام پالو ډله (د محمد قطب د اخوان المسلمین مکتب) لکه گلبدین حکمتیار او برهان الدین رباني او افراطي سنتي د اسلام پالو ډله لکه مولوي یونس خالص، مولوي محمد نبي محمدي، حقاني، سید احمد گیلاني او مجددي.د دوهمې ډلې تر منځ کولی شو چې بیا د وهابي ډلې څخه چې د عبدالرب رسول سیاف او همداراز د شیعه ډلو چې د حرکت او د وحدت گوندونه وو د هزاره گانو او نور هم پکې شامل کړي وو. په پاکستان او ایران کې روحانیونو به خلک د ؛کمونیستي؛ حکومت په خلاف خوځښتونو او پاڅونونو ته هڅول. په داسې حال کې چې د دې ډول گوندونو اصلي هسته او رهبري لکه د گلبدین حکمتیار د اسلامي حزب او د برهان الدین رباني د اسلامي جمعیت گوند د داوود خان د جمهوریت له وخته په پاکستان کې مستقر او تاسیس شوي وو مگر د دې سره سره نور جهادي گوندونه د روڼ اندو او د روحانیونو له دننه څخه چې کېږوال وو، راپیل شول، په پاکستان کې ۷ ډلې چې وروسته بیا د اووه گوني یا اووه ایتلاف په نامه یاد شول، د کېږوالو او د مجاهدینو د فعالیتونه محور او مرکز وگرځېد او په ایران کې اته گوندونو چې د هغوی څخه تر ټولو مهم یې د افغانستان اسلامي حرکت گوند وو او د نصر سازمان ایران پورې په ډېر شدت نښتی وو، دی.

د دې ټولو گوندونو رهبرې د دوی قومي، ژبنیز او مذهبي فرقو پورې تړلې وې همدا وو چې سیاست په افغانستان کې د روڼ اندو سره د ترون څخه د ۱۹٦۰-۱۹۸۰ ز کلونو کې، مذهبي او قومي ترون ته راښکته شو.باید ووایو چې سیاسي فعال او انتخابي قومي پلوه مذهبي دولتي پاکستانی او ایراني منابع او د انتخابي نغدي مرستو لړۍ ته ادامه ورکول، د نظامي او سیاسي ملاتړ ادامه ورکول ځانگړو ډلو ته، د دې ډلو په وده کې عمده او مرکزي رول درلود.

### د پېښور اووه گونی ایتلاف

د مجاهدینو تر ټولو مهم ایتلاف کې اووه ډلې شاملې دي چې د (۱۹۸۵ ز) ۱۳٦۴ ل کال کې د پاکستان په پېښور ښار کې یو د بل سره متحد شول.دا ټولې ډلې د سني مذهبه مسلمانانو ډلې وې او د اسلامي جمعیت سربېره، نور ټول یې اکثریت پښتانه مجاهدین وو:

-اسلامي گوند – د حکمتیار څانگه د گلبدین حکمتیار په مشرۍ – اکثریت پښتانه

- اسلامي گوند – د خالص څانگه د یونس خالص په مشرۍ – اکثریت پښتانه

- د افغانستان اسلامي جمعیت د برهان الدین رباني او احمد شاه مسعود په مشرۍ – اکثریت تاجک

- د افغانستان اسلامي اتحاد د عبدالرب رسول سیاف په مشرۍ – اکثریت پښتانه او وهابي تړاوونه

- د افغانستان ملي اسلامي محاذ د پیر سید احمد ګیلاني په مشرۍ – اکثریت پښتانه صوفي تړاوونو سره

- د افغانستان د ملي  نجات جبهه د صبغت الله مجددي په مشرۍ – اکثریت پښتانه

- د افغانستان اسلامي انقلاب حرکت د محمد نبي محمدي په مشرۍ – اکثریت پښتانه

- د حقاني ډله د سیاسي اعتقاد له نظره، لومړۍ څلور ډلې سیاسي اسلام مکتب پورې اړه لري او د شریعت په بنسټ د حکومت په جوړېدو معتقد وو او درې اخري ډلې د دودیز اسلام امتداد او ورسره یې تړون درلود او د ظاهر شاه د پاچاهۍ سره یې ښه تعلقات درلود.

جالبه دا ده چې د دې اوو تنظیمونو څخه یو هم د یو دراني پښتون لخوا، نه رهبري کېدو.په ځانګړې توګه، د حامد کرزي د ټاکل کېدو څخه وروسته د افغانستان جمهوري ریاست مقام ته په ۲۰۰۱ ز کال کې، دا پښتو بیت چې نه پوهېږم چا لیکلی، ښه تصدیق شو:

توره به غلجی کوي پاچاهي به دورانی کوي

## اته ګونی ایتلاف

د ایران مېشت د اتو ډلو ایتلاف کې شیعه مجاهدین شامل دي چې اکثریت یې په هزاره قوم پورې اړه لري

-افغان حزب الله

- د نصر سازمان د سید حسین حسیني په مشرۍ د صوفي دره او عبدالعلي مزاري

- د افغانستان د اسلامي انقلاب د پاسدارانو پوځ د محمد اکبري په مشرۍ

- د اسلامي اتفاق انقلابي شورا د سید علي بهشتي په مشرۍ

- د اسلامي جنبش انقلاب د نصر الله منصور په مشرۍ

- د افغانستان اسلامي حرکت د اصف محسني او شیخ صادق هاشمي په مشرۍ

- د اسلامي مبارزانو اتحاد د مصباح زاده په مشرۍ

- د افغانستان د رعد ګوند،د عبدالجعفر نادري او اسماعیل بلخي په مشرۍ

اکثر شیعه ګوندونه د اسلامي وحدت د ګوند په جوړښت د عبدالعلي مزاري لخوا په ۱۹۸۹ ز کال کې، جذب شول، او د هغه څخه وروسته د وحدت ګوند د افغانستان د هزاره ګانو د اصلي استازي په ډول  وړاندې شو.

**یولسم چارت: په افغانستان کې د جهادي تنظیمونو تر نفوذ لاندې سیمې**



د دې جګړې لپاره د پیسو د برابرولو بین المللي منابع او سرچینې، د سعودي عربستان دولت، د امریکا دولت (سي. ای. اې د عربو شیخان او ...نور وو) او وسله او مهمات، د (سي. ای . اې) پواسطه، د نورو هېوادونو څخه لکه مصر، ترکیه، انګلستان، چین او د اسرایلو دولت او د بین المللي قاچاقي شبکو لخوا تمویلېدله. د پورته ذکر شویو مرستندوی سرچینو مجموعي جمع د لس میلیارد امریکایي ډالرو څخه اضافه اټکل کولی شو.

د پاکستان د نظامي استخباراتي سازمان نقش (اس. اس. ای) د افغانستان د مجاهدینو په نظامي او سیاسي مشرتابه کې، کولی شو د لیکوالانو د لیکنو څخه ؛د ایرې دام؛له کتابه څخه ښه پوه شو.په دې کتاب کې داسې لولو: جنرال اختر (جنرال عبدالرحمن اختر) د (ای. ایس. ای) د اته کلن مشرتابه د کار په اوږدو کې، په حقیقت کې د افغانستان د جهاد طراح او لوړ رتبه امر وو. هغه وشو کولی په خپل هر اړخیزه مدیریت کې، د مجاهدینو نهایي بریالیتوب لپاره شرایط برابر کړي. جنرال اختر لومړني وړاندېز په اوږدولو سره، ولس مشر ته توصیه کولو سره، په حقیقت کې (په افغانستان)کې د جهاد د پردې شاته د چریکي جګړې او جهاد کې دوی وو. هغه په سیاسي برخه کې وتوانیدو چې د مجاهدینو د ډلو تر منځ نسبي تنظیم منځ ته راولي. هغه د افغانانو په روحیاتو په ښه پوهه، پوهېدو چې د دې څخه د مخه چې بږغ پورته کړي، باید نظامي لاسته راوړنې ولري. د هغه عقیده دا وه چې جهادي مشران، قومندانان باید نظر سیاست ته جهاد ته

ډېر اولویت ورکړي. د دې له نظره، د ژر بریالیتوب لاسته راوړنه او سیاسي ناتواني، جهاد به حتمي د ناکامۍ سره مخ کړي. (د ابېرې دام؛ د افغانستان د جهاد د پردې تر شاه د حقایقو په اړوند، د ډګروال یوسف چې د پاکستان د اردو او د ای. ایس. ای یو متقاعد افسر دی او د امریکایي مارک ادکین، تالیف او د محمد قاسم اسمایي ژباړه، الکترونیکی نشر:۲۰۱۵ ز) د کتاب د لیکونکي په قول؛زما دنده په (ای.اېس. ای) کې د ؛افغانستان د دفتر؛ سوق او اداره کول وو. د دې ادارې دنده د افغانستان په وړاندې د جګړې پر مخ وړل وو ؛(همغلته).

د پورتني کتاب ژبارونکی داسې لیکي: د پاکستان رول او په خاصه توګه (ای.اېس.ای) په دې جګړه کې، د قومانده کولو او د کړنلارو معین کول د جهادي تنظیمونو لپاره وو، د هغو د وحدت لپاره کوښښونه، د مجاهدینو د تربیه او زده کړې په خاطر، د کمپونو سمول د دوی مالي ملاتړ کول، د وسلو حمل او نقل کول، د مهماتو او تجهیزاتو برابرول، د ډیپو ګانو سمبالول او جهادي تنظیمو ته یې توزیع کول، د مخابراتي او ارتباطي وسایلو تامین او برابرول، د پاکستان او سي ای اې د استخباراتي او اطلاعاتي منابعو له لارې د اطلاعاتو او خبرونو رسول، د عملیاتي پلانونو ترتیب او پلي کول د ستراتیژیکو اهدافو د تخریب او چاودنې په موخه لکه پلونه او پلچکونه، د برېښنا د بندونو،د اوبو د ذخیرو، د سالنګ د تونل، د تیلو د پایپ لاین او د سلګونو او زرګونو عام المنفعه موسسو لکه ښوونځي او مدرسې، روغتونونه او روغتیایي مرکزونه د مجاهدینو په مرسته او همکاری د افغانستان په داخل کې د تخریبي پلانونو د پلي کولو پروژې (محمد قاسم اسمایي. د ۲۰۱۲ د اکتوبر دوهمه. همغلته).

د ابېرې د دام کتاب د لیکنو په اساس، د جنرال اختر په ستراتېژیک پلان کې، اصلي او اساسي موخه وه ؛مګر هغه نه غوښتل چې د یو یرغل له لارې یي خپل کړي؛ مګر دا یې غوښتل او نهایي موخه یې دا وه چې د ټولو موجودیتونو سره د کابل، لکه سیاسي تاسیسات، اقتصادي، نظامي او ټولنیز خدمتونه ټول باید له منځه یوړل شي. د هغه شعار داسې وو ؛؛کابل باید وسوځي؛ باید ټولې اکمالاتي او ارتباطي کرښې قطع شي او د تل لپاره تر فشار لاندې وي. هغه پوهېدو چې په دې ډول سره کولی شي چې ښار د مقاومت څخه پرته لاسته راوړي. د هغه تر ټولو لویه هیله دا وه چې د کابل د سقوط او ورانیدو څخه وروسته، به له کابله څخه دیدن وکړي او ؛د شکرانې لمونځ هلته ادا کړي چې دا هیله یې پر ځای نه شوه... د ابېرې د دام په کتاب کې داسې لولو چې د کار دوهمه برخه پخ ديپلوماتیک او سیاسي ډګرونو کې وه. مګر بین المللي سیاست او دیپلوماسي نه، مګر د مجاهدینو په داخلي چارو کې د دیپلوماسۍ استعمال... زما له نظره جنرال اختر یوازېنی شخص وو کولی شو چې د مجاهدینو د ډلو تر منځ، چې یو د بل سره دښمن وو، نسبي نظم منځ ته راوړي. هغه کولی شوی چې حتی که د لند مهال لپاره هم وو، جهادي مشران سره نیږدې کړي. د هغه له نظره د جګړې په جبهه کې د دې یووالي څخه پرته، د بریالیتوب لاسته راوړل ممکن نه وو. هغه کولی شو چې د جهاد د منافعوو لپاره هغه کسان چې د یو بل د مخونو لیدلو حوصله یې نه درلوده، د یو بل سره یې متحد کړي. د دی د بریالیتوب اصلي عامل دا وو چې کولی یې شو چې د اوږد مودې لپاره د امریکا متحده ایالات تر فشار لاندې راولي څو د جهاد جنګي ماشین د دوی په خوښه تقویه کړي. امریکا د (سي.ای.اې) له لارې، د تل لپاره کوښښ کولو څو اکمالاتي کانالونه، تجهیزاتي او د زده کړې کانالونه او مجاهدینو ته د وسلو د توزیع کولو لړۍ،په خپل کنټرول کې وساتي، او دا ټول د جنرال اختر د

مهارت او پوهې له برکته وو چې هغوی و نشو کولی دا په خپل زړه مخته یوسي. د همدې له کبله، جنرال اختر هغه وخت د (ای.اېس.ای) د مشرتابه څخه لرې شو چې مجاهدین بریالیتوب ته نیږدې شوي وو.؛ (همغلته)

## د جینیوا هوکړه

بنن سیوان چې یو قبرسي دیپلومات د افغانستان په چارو کې د ملگرو ملتونو ارشد مشاور او د سرمنشي خاص استازی هم وو، د (ژنیو) د جینیوا د موافقتنامې د طرحه کوونکو څخه بلل کېږي. د ښاغلي سیوان د ماموریت په وخت کې د افغانستان او پاکستان تر منځ ځینې موافقتنامې د شوروي او د امریکا تر کتنې او څارنې لاندې،د افغانستان د جگړې د ختمولو په موخه لاسلیک شولې چې د ۱۹۸۸ ز کال د اپریل په ۱۴ د جینیوا تړون وو. د دې هوکړې پر بنسټ، د شوروي اتحاد د ځواکونو د وتلو د پیل نېټه د ۱۹۸۸ د می د میاشتې ۱۵ نېټه ومنله او د بشپړ وتلو نېټه یې ۱۹۸۹ د فبروری ۱۵ ومنله.

په حقیقت کې، شوروي دا خپل لومړی گام د نجیب الله او د خلق د ډیموکراتیک گوند د دولت څخه د مخ اړولو په لور واخیست چې د همدې جینیوا یا ژینو د هوکړې په لاسلیک د ځواکونو وتل یې ومنل. د شوروي د بهرنیو چارو وزیر ادوارد شواردنادزی چې د دې هوکړې په پای کې د خپل امریکایي سیال سره یو ځای د تضمین په موخه لاسلیک وکړ، وروسته یې د نجیب الله سره د خیانت کولو په هکله خبرې وکړې: ما د دې پرېکړه لیک د لاسلیکولو په وخت ډېر بد احساس درلود او دا کار راته په ډېر شدت بد ښکاریدو.او د بېرته راتگ په حال کې په الوتکه کې پوه شوم، چې موږ د نجیب الله سره خیانت وکړ.(د تاریخ برمته کوونکي،دوهمه برخه،مزوروف،فارسي روwww.farsi.ru )

مگر د امریکا متحده ایالاتو د جینیوا د تعهداتو پر خلاف مجاهدینو ته د پاکستان له لارې د وسلو او مهماتو په لېږلو ادامه ورکړه. د امریکا او د پاکستان نظامي او سیاسي مرستو ته په پاملرنې سره، هغه د مجاهدینو ډلې چې د جینیوا د هوکړې په غونډه کې یې برخه نه درلوده، د دې هوکړې د منلو څخه یې ډډه وکړه.

## د ملي روغې جوړې د لړۍ د سبوتاژ پایلې

داخلي یا کورنۍ شخړې، اکثر په دوه ډوله پای ته رسېږي: د دواړو خواوو څخه د یو بشپړ نظامي بریالیتوب، او یا د یوې ملي روغې جوړې له لارې. د سریلانکا د جگړې ختم (۲۰۰۹ می ۱۸)، او په کولمبیا کې د سولې اخیري هوکړه (د ۲۰۱۶ ز کال د اگست ۵) د دې دوو لارو ژوندي مثالونه دي. داسې بریښېدله چې جهادي جگړه چې د ۱۹۷۹ ز کال څخه په افغانستان کې جریان لري د ۱۹۹۲ ز کال د اپریل په میاشت کې د یوې ملي مصالحې او د قدرت د انتقال له لارې د مجاهدینو یو موقت حکومت ته، ختمه شي. مگر په وروستیو شېبو کې، د احمد شاه مسعود په وینا، هغه دا تصمیم ونیولو چې د دې پروسې مخنیوی وکړي، او قدرت په یوازې ډول سره د هغو ځواکونو پواسطه چې د شمالي خلکو لخوا سمبال شوي وو، په خپل لاس کې واخلي او د هغه په وینا ؛د یوې بین المللي توطیې څخه مخنیوی وشي. پاتې د نه وي چې د ډاکټر نجیب الله د دولت د ځینو پرچمیانو فرصتپالانه یو موټی کېدل او د جنرال دوستم د ملېشوو یو

موتی کېدل د احمد شاه مسعود سره، دا امکان او شرایط مسعود ته برابر کړل، او په پایله کې په هېواد کې د سولې امکان له لاسه ولاړ او هېواد په تنظیمي جګړو کې غرق شوو.

**د پېښور هوکړه**

اووه ګوني جهادي ګوندونه چې په پېښور کې مېشت وو د ۱۹۹۲ ز کال د اپریل په ۲۴ نېټه چې د ۱۳۷۱ د ثور د شپږمې سره سمون خوري، هوکړه وکړه، چې داسې یوه د مشرتابه شورا جوړه کړي چې د جهادي مشرانو څخه جوړه وي او د صبغت الله مجددي په مشرۍ موقت ریاست جمهوری د دوو میاشتو لپاره د ۱۳۷۱ د ثور د ۸نیټې څخه د ۱۳۷۱ د چنګاښ تر ۷نیټې په همغه کال، جوړ کړي. د صبغت الله مجددي د دوې میاشتنی دورې د ختمېدو څخه وروسته، برهان الدین رباني د اسلامي جمعیت د ګوند مشر به د ۱۳۷۱ د ثور د ۸ څخه د موقت ټاکل شوي ولس مشر په صفت وټاکل شي، او همدا راز هوکړه شوې وه چې د ۱۹۹۲ ز کال کې یوه ملي  شورا د اساسي قانون د تصویب لپاره جوړېږي او د هغې څخه وروسته به یو موقت حکومت د ۱۸ میاشتو لپاره فعالیت کوي او وروسته له هغه به ټاکنې کېږي. په دې هوکړه کې ګلبدین حکمتیار د لومړي وزیر په صفت، احمد شاه مسعود د دفاع د وزیر په صفت د صبغت الله مجددي په حکومت کې   وټاکل شول، د پېښور د هوکړې متن داسې دی:

د افغانستان د اسلامي دولت؛ جوړښت او کړنلاره د موقتې دورې لپاره د په لاندې  ډول سره تنظیم شي:

داسې پرېکړه شوې ده چې د صبغت الله مجددي په مشرۍ یو د ۵۱ غړو څخه جوړ هئیت، د افغانستان ته داخل شي او د اوسني واکمنو څخه د قدرت بدون د کوم قید او شرط څخه پرته د دوو میاشتو لپاره په خپل لاس کې واخلي. د دې جوړښت رییس لکه ؛جمهور رییس په دې دوو میاشتو کې باید صبغت الله مجددي وي. له دې دورې څخه وروسته به دا جوړښت د یو موقتي مشورتي هئیت په شکل په خپل ځای پاتې شي. د دې انتقالي دورې ریاست به  مجددي په غاړه لري او د دې شورا وخت به څلور میاشتې وي.

داسې پرېکړه شوې ده چې برهاد الدین رباني د څلورو میاشتو لپاره د افغانستان د موقت اسلامي دولت د رییس او د رهبری شورا د رییس په صفت تعیین شوی او خپله دنده به د قدرت د انتقال دورې تر ختمېدو دوه میاشتې وروسته، پیل کړي.

دا دوره به حتی یوه ورځ هم نه تمدیدېږي.

د لومړي وزیر چوکۍ او د کابینې غړي د ګوندونو د دوهمې درجې د تنظیمونو د مشرانو لخوا انتخاب شي.

د لومړي وزیر چوکۍ د اسلامي حزب ته ځانګړې کړی شي .

د لومړي وزیر د مرستیال چوکۍ او د کورنیو چارو د وزارت چوکۍ د اسلامي اتحاد ګوند ته ورکړل شي.

د لومړي وزیر مرستیالی چوکۍ او د پوهنې وزارت چوکۍ د د مولوي خالص ګوند ته ورکړل شي .

د لومړي وزیر د مرستیال چوکۍ او د بهرنیو چارو وزارت چوکۍ د افغانستان اسلامي ملي محاذ گوند (پیر احمد گیلاني) ته ورکړل شي.

د دفاع وزارت چوکۍ د اسلامي جمعیت گوند ته ورکړل شي

د هېواد ستره محکمه د اسلامي حرکت گوند ته ورکړل شي (محمد اصف محسنی)

همدا راز پرېکړه وشوه چې د مشرتابه شورا د په وزارتونو کې د تقسیماتو او د تعییناتو سربېره د وحدت گوند او د مولوي منصور او نورو ورونو د ایتلافي شورا لپاره هم وزارتونه تعیین کړي.

د دې دورې وخت به تر شپږو میاشتو وي، او دا دوره به د راتلونکي انتقالي حکومت په اړوند چې وخت به یې ۲ کاله وي، شورا به د ټولو په خوښه تصمیم نیسي.

هغه کسانو چې دا هوکړه لیک لاسلیک کړ.

-مولوي محمد نبي محمدي

- صبغت الله مجددي

- عبدالرب رسول سیاف

- قطب الدین هلال د گلبدین حکمتیار د اسلامي گوند څخه

- برهان الدین رباني

- مولوي محمد یونس خالص

- پیر سید احمد گیلاني

**د مجاهدینو د اسلامي حکومت قدرت ته د رسېدو پېښلیک**

-۱/۱/۱۹۹۲ د افغانستان حکومت د اردو افسرانو او سرتیرو د حیرتان په سرحدي ښارگوټي کې د جنرال مومن په مشرۍ د ډاکټر نجیب الله د حکومت پر خلاف پاڅون وکړ.

- ۱۵/۳/۱۹۹۲ د سمنگان ولایت د مجاهدینو لاس ته ولوید

- ۱۸/۳/۱۹۹۲ د مزار شریف ښار د مجاهدینو سره د جنرال دوستم په همکارۍ د مرکزي حکومت له لاسه ووتلو.

- ۲۰/۳/۱۹۹۲ د مزار شریف په ښار کې د ډاکټر نجیب الله د حکومت مخالفه ډله د جنرال دوستم تر مشرۍ لاندې د اسلامي جنبش سازمان جوړ او راټولېدل.

- ۱۴/۴/۱۹۹۲ مجاهدینو د قومندان احمد شاه مسعود تر مشرۍ لاندې د بگرام نظامي هوایي ډگر ونیو.

۱۶/۴/۱۹۹۲ د کابل حکومت د بهرنیو چارو وزیر عبدالوکیل پروان ته ولاړ، څو د احمد شاه مسعود سره مجاهدینو ته د قدرت په انتقال خبرې وکړي.

۱۶/۴/۱۹۹۲ ډاکتر نجیب الله په کابل کې د ملگرو ملتونو سازمان دفتر ته پناه یوړه.

۱۸/۴/۱۹۹۲ د اسماعیل خان په مشرۍ، د هرات ولایت د مجاهدینو لخوا ونیول شو .

۲۰/۴/۱۹۹۲ د مختلفو ډلو مجاهدینو ته، د کندهار ښار تسلیم شو

۲۳/۴/۱۹۹۲ جلال اباد، گردیز، مهترلام او قلعه نو ښارونه مجاهدینو ته تسلیم شول

۲۴/۴/۱۹۹۲ د افغانستان مجاهدینو په یوه طرحه سره هوکړه وکړه چې د هغې پر بنسټ صبغت الله مجددي د دوو میاشتو لپاره د افغانستان د انتقالي حکومت جمهور رییس وټاکل شو.

۲۵/۴/۱۹۹۲ د مجاهدینو مختلفو ډلو د کابل کنټرول په لاس کې واخیست او همدا راز د قدرت په لاس راوړلو لپاره د کورنیو جگړو لړۍ پیل شوه.

۲۵/۴/۱۹۹۲ د کابل د ښار د امنیت په اړوند د افغانستان د اسلامي دولت لومړنۍ اعلامیه صادره شوه. د اعلامیې د صادرېدو سره سم، د کابل ښار د سوېلي حوزو په اکثریتو ځایونو کې د اسلامي گوند او د اسلامي جمعیت د متحدینو تر منځ جگړې پیل شوې او اسلامي حزب دې ته اړ شو چې د کابل څنډو ته شاتگ وکړي، احمد شاه مسعود، جنرال دوستم او د وحدت گوند د کابل ښار بشپړکنټرول په خپل لاس ونیو

-۲۸/۴/۱۹۹۲ صبغت الله مجددي د افغانستان د اسلامي موقت دولت رییس د مجاهدینو له کاروان سره کابل ته ننوت.

- ۲۸/۴/۱۹۹۲ مجاهدینو ته د قدرت د انتقال مراسم د بهرنیو چارو وزارت کې ترسره شول، فضل الحق خالقیار د ډاکتر نجیب الله د حکومت لومړی وزیر، په رسمي توگه حکومت ښاغلی مجددي ته تسلیم کړ .

- ۲/۵/۱۹۹۲ د مجاهدینو حکومت نوې کابینه اعلان شوه

- ۲۲/۵/۱۹۹۲ صبغت الله مجددي ټولې چارې قیادي شورا ته تسلیم کړې او قیادي شورا برهان الدین رباني د مجاهدینو د موقت حکومت د رییس په توگه وټاکلو

- ۱۱/۱۲/۱۹۹۲ د هغو وژل شویو کسانو په خاطر د ملي ماتم ورځ ونمانځل شوه چې د مجاهدینو لخوا کابل ښار په ورستیو جگړو کې یې خپل ژوند له لاسه ورکړی .

- ۳۱/۱۰/۱۹۹۲ د استاد رباني د ریاست جمهوری وخت پای ته ورسېد، مگر د قدرت انتقال تر هغه وخته چې د اهل حل او عقد شورا نه وي جوړه شوې، وځنډېدو.

- ۲۹/۱۲/۱۹۹۲ په کابل کې د اهل حل او عقد شورا جوړه شوه

- ۳۰/۱۲/۱۹۹۲ د اهل حل او عقد شورا، استاد برهان الدین رباني د مجاهدینو د حکومت د جمهور رییس په صفت وټاکلو

۸/۳/۱۹۹۳ د افغانستان د مجاهدینو مشران د اسلام اباد د هوکړې د لاسلیک کولو څخه وروسته مکې مکرمې ته ولاړل

۲۱/۲/۱۹۹۴ په پېښور یو ملي بس موټر چې دری تنه افغان زده کوونکي پکې سپاره وو وتښتول شو.

۲۲/۲/۱۹۹۴ غلو یا برمته کوونکو هغه ملي بس چې څلور اویا زده کونکي پکې سپاره وو، اسلام اباد ته یوړ او غوښتنه یې کوله چې د کابل جنګ ځپلي ښار ته د خوراکي توکي ولېږل شي .

۲۰/۷/۱۹۹۴ د هرات والي اسماعیل خان په نوښت، یوه داسې شورا چې په هغه کې د هېواد د ننه او بهر سیاسي، علمي، فرهنګي او نظامي شخصیتونه پکې ګډون لري د هرات په ښار کې جوړه شوه، څو ستونزو او مشکلاتو ته د حل لار ومومي.

## صبغت الله مجددي

صبغت الله مجددي د ملا میا محمد معصوم زوی په ۱۹۲٦ ز کال کې چې د ۱۳۰۵ ه ل کال سره سمون خوري، د کابل ښار کې په یوه روحاني کورنۍ کې زېږېدلی. صبغت الله مجددي په اصل کې د هرات ولایت دی او کورنۍ یې د نقشبندیه د طریقې له شیخانو یا د شیخ احمد سرهندي چې په مجدد الف ثاني مشهور وو، ده. حضرت مجددي د امام رباني حضرت مجدد الف ثاني الشیخ احمد سر هندي (رحمة الله علیه) له اولاده څخه دی چې د نسب سلسله یې د اسلام دوهم خلیفه عمر بن الخطاب (رض) ته رسېږي. امام رباني (چې اکثرا د حضرت مجدد صاحب په نامه یادېږي)، د لسمې او یوولسمې هجري پېړۍ د ډېرو نامتو مذهبي شخصیتونو څخه دی د د مجدد لقب (مجدد اسلام په دوهمه زریزه کې) د اهل سنت د مجتهدینو او علماوو لخوا په هغه وخت کې ورته ورکړل شوی وو.



حضرت شمس المشایخ فضل محمد مجددي، چې د حضرت صبغت الله مجددي له نیکونو څخه وو او حضرت محمد صادق مجددي،د پروفیسور مجددي د کورنۍ دوه نامتو شخصیتونه دي چې د افغانستان د خپلواکۍ او جهاد په ډګر کې ډېر خدمتونه کړي او همدا راز د افغانستان سیاسي، ټولنیزه او اداري برخه کې د سر او مال په بیه ونډه درلوده.

حضرت صبغت الله مجددي په حبیبه لېسه کې د ثانوي دورې تر بشپړه ولو وروسته د اسلامي علومو د مبادي په برخه کې ځانگړې زده کړې وکړې، د مصر قاهرې د الازهر پوهنتون کې داخل شو(۱۹۴۸ ز کال) او خپل لوړ تحصیلات یې د حقوق او اسلامي فقهې په برخه کې د لسانس تر کچې لوړ د ؛شرف؛ په درجه سرته ورسول. مجددي افغانستان ته له راستنېدو وروسته په ۱۳۳۳ه ل کال کې (چې د ۱۹۵۲ز کال سره سمون خوري) د هېواد په پلازمېنه کې د کابل پوهنتون کې د ښوونکې روزنې په عالي موسسه کې، دارالعلوم عربي کابل او هم په نورو عالي لیسو کې په تدریس بوخت شو.

مجددي د حفیظ الله امین د واکمنۍ په وخت د ۷۰ کلونو په اخیرو کې د حکومت تر سخت تهدید لاندې راغی او په ۱۹۷۹ زکال کې یې افغانستان پرېښود او د نجات ملي جبهه یې د افغانستان ژغورلو په موخه NFSA په پاکستان کې جوړه کړه.

د ۱۳۵۷ ثور د کودتا څخه وروسته چې د افغانستان د خلق ډیموکراتیک گوند د پخوانی شوروي اتحاد د پلوی په پایله کې د قدرت واگې تر لاسه کړه، مجددي پاکستان ته ولاړ او د افغانستان ملي نجات جبهې د گوند په جوړلو یې سیاسي او وسله واله مبارزه د کابل د حکومت په خلاف پیل کړه. د ده گوند غړي اکثریت یې د ده د طریقت سنتي پلویان. ښاغلی مجددي د جهادي مشرانو په منځ کې، د منځلارو په نامه مشهور وو.

د ۱۳٦۸ او ۱۳٦۹ ه ل کلونو تر منځ،چې د مجاهدینو حکومت په پاکستان کې په تبعید کې جوړ شو، صبغت الله مجددي د افغانستان د اسلامي دولت د رییس په حیث وټاکل شو . د مجاهدینو د بریالیتوب څخه وروسته، صبغت الله مجددي د ۱۹۹۲ کال د اپریل په ۲۸ نېټه افغانستان د اسلامي جمهوریت د جمهور رییس په نامه اعلان شو.د دوو میاشتو لپاره د مجاهدینو د موقت دولت د ریس په توگه غوره شو او دولت یې په رسمي توگه د نجیب الله د حکومت د لومړي وزیر فضل الحق خالقیار څخه په رسمي توگه لاسته راوړ.صبغت الله مجددي د دوو میاشتو څخه وروسته، د اسلام اباد د هوکړی پر بنسټ د اسلامي دولت د قدرت واگې د اسلامي جمعیت مشر برهان الدین رباني ته وسپارلې.

د ښاغلي مجددي د حکومت په جریان کې او د هغه څخه وروسته، کابل له دې وجهې چې د مجاهدینو بیلا بېلې ډلی له بیلا بېلو لارو کابل ته رانںوتل، او د کابل مختلفې برخی د مختلفو جهادي ډلو په لاس کې وې، د مجاهدینو او مختلفو گوندونو د ډلو تر منځ کابل تقسیم شوی وو، هره خوا جگړې وې دا ټول د دې دوری تر ټولو مهمې پیښې دي.

د مجاهدینو د دولت د سقوط څخه وروسته، ښاغلی مجددي یو ځل بیا پاکستان ته ستون شو، د دې سره سره چې پر طالبانو یې نیوکه کوله، مگر په افغانستان کې د احمد شاه مسعود تر مشرۍ لاندې د شمال د جبهې سره چې د طالبانو تر ټولو مهم مخالف گوند وو، سره یو ځای نه شو. ښاغلی مجددي د خپل دوه میاشتني حکومت په جریان کې د گلبدین حکمتیار او وروسته بیا د برهان الدین رباني تر منځ ځینې شخړې را منځته شوې.

ښاغلی مجددي له دې څخه وروسته چې د خپل مقام څخه لرې شو، ویلي وو چې په حکومت کې یې چندان اختیار نه درلود. د طالبانود رژیم د سقوط څخه وروسته ښاغلی مجددي د بن د تګلارې سره یو ځای شو او د هېواد په مختلفو

سياسي تعاملاتو کې يې فعاله ونډه درلوده. هغه د طالبانو د سقوط څخه وروسته د اساسي قانون د لويې جرگې رياست په غاړه واخيست چې پايله يې د هېواد اوسنی اساسي قانون دی.

د افغانستان پخواني ولسمشر حامد کرزي ښاغلي مجددي ته، په دې دليل چې د جهاد په وخت کې د هغه د گوند غړی پاتې شوی وو، ځانگړی احترام ښکاره کولو.حامد کرزی د جهاد په کلونو کې د صبغت الله مجددي د پاکستان د دفتر رييس وو.

صبغت الله مجددي د افغانستان د مشرانو يا سنا جرگې د رييس په صفت هم کار وکړ او هم يې د سولې د ټينگښت د کميسيون رياست په غاړه وو. صبغت الله مجددي د خپل معتدل او منځلارې مواضيعو په اساس، ميانه رو او متوسط اسلام ته څنگ ورکولو او د کلکو نيوکو په خاطر چې د ځينو جهادي مشرانو لخوا او د پاکستان د دولت لخوا ورباندې کېدې، د خبرو په صراحت هم مشهور وو.

هغه د ځينې تُندرو رهبرانو پر خلاف چې د مجاهدينو له ډلې وو، د هېواد په سياسي ژوند کې د ښځو د برخه اخيستلو مخالف نه وو او د ښځو سره لاس ورکول يې حرام نه کڼل.ښاغلی مجددي د ۱۳۸۸ ه ل کال د جمهوري رياست په ټاکنو کې، خپل ملاتړ د حامد کرزي څخه اعلان کړ او ويې ويل چې په دې اړوند يې ؛استخاره؛ کړې وه. هغه د ټاکنو په مخکښني دور کې هم د اشرف غني څخه چې د هېواد برحاله ولسمشر دی، ملاتړ کړی وو.

همدا راز هغه په ۲۰۰۴ ز کال کې د افغانستان د لويې جرگې د رييس په حيث هم وظيفه درلوده په ۲۰۰۵ ز کال کې د سولې د ټينگښت د کميسيون رياست هم په غاړه وو.

صبغت الله مجددي د ۹۳ کلنۍ په عمر، له اوږدې ناروغۍ وروسته د ۲۰۱۹ ز کال د فبرورۍ پر ۱۱ نېټه په کابل ښار کې وفات شو.

## برهان الدين رباني



ربانی د افغانستان د تاجک ټبر او د مجاهدینو د مشرانو څخه یو وو او د افغانستان د اسلامي جمعیت ګوند مشر وو.ښاغلی رباني په ۱۹۴۰ ز کال کې د افغانستان په شمال ختیځ د بدخشان ولایت په فیض اباد کې، نړۍ ته سترګې پرانیستلې. هغه ښوونځی په خپل پلرني وطن، د بدخشان د ولایت کې او د کابل په یوه دیني مدرسه کې تکمیل کړه او د هغې څخه وروسته د کابل پوهنتون د شرعیاتو پوهنځی ته داخل شو. ښاغلی رباني په ۱۹۶۹ ز کې د مصر د معتبره الازهر پوهنتون څخه د اسلامي فلسفې په برخه کې د لیسانس څخه پورته درجه کې ډیپلوم تر لاسه کړ او بېرته کابل ته راستون شو.دی په مصر کې  د اخوان المسلمین د مفکورو سره اشنا او تر متاثره شو.

په ۱۳۳۶ کال کې د کابل پوهنتون د شرعیاتو په پوهنځی کې د نورو همفکره استادانو لکه استاد غلام محمد نیازی، سید محمد موسی توانا، وفی الله سمیعي (د ظاهر شاه د حکومت، د عدلیې وروستنی وزیر)، استاد محمد فاضل، عبدالعزیز فروغ، سید احمد ترجمان او هدایت نهضت سره د مسلمان ځوانانو بنسټ کېښود چې د نهضت د مشرۍ څخه غلام محمد نیازي له استعفا وروسته په ۱۳۵۱ کال کې، رباني د هغه بنسټ مشري د اسلامي جمعیت تر نامه لاندې  پر غاړه واخیستله. هغه ګوند چې د افغانستان د اوسنیو جګړو په کلونو کې ډېرې لوړې ژورې لیدلې او تجربه کړې دي. د ظاهر شاه په وړاندې د محمد داوود خان د کودتا څخه او د افغانستان د جمهوري دولت د جوړېدو څخه وروسته، ښاغلی رباني پاکستان ته ولاړ او د داوود خان د حکومت په ضد د وسله والو عملیاتو قومانده په غاړه واخیستله. مګر دی په مشخصه توګه افغانستان ته د پخوانی شوروي د ځواکونو د راتلو  څخه وروسته، مشهور شو او په همدې وخت کې وو چې په دې وتوانېدو  چې د پاکستان له لارې اسلامي جمعیت ګوند، د ډېرو پیسو او وسلو سره سمبال کړي.

د وخت د حکومت سره د جګړو وروسته، د مجاهدینو ډلې په ۱۹۹۲ ز کال کې کابل ته ننوتلې او د مجاهدینو لومړنی حکومت یې د صبغت الله مجددي په مشرۍ د دوو میاشتو لپاره جوړ کړ چې د هغه څخه وروسته برهان الدین رباني د جمهور رییس په صفت واک ته ورسېد.

مګر د جهادي اووه ګونو ګوندونو هوکړه  پر دې وه چې د مجاهدینو حکومت د په دروه یې شکل سره د ده حزب لخوا اداره شي، چې د ښاغلی رباني خوښه نه وه . کله چې ښاغلی رباني د مجاهدینو د اسلامي حکومت جمهور رییس شو، داسې برېښېده چې د خپلې دورې د پوره کېدو سره سم، د قدرت څخه د لرې کېدو پلان نه لري . هغه په دې وتوانېد چې د خپل د حکومت د وخت د پوره کېدو څخه وروسته،د قدرت انتقال د څو میاشتو لپاره په دې دلیل چې امنیتي

خنډونه شته دي، وځنډولو، او د هغې څخه وروسته داسې هوکړې ته ورسېد چې خپله په همدې شکل د جمهور رییس په صفت پاتې شي او د ده اصلي رقیب یانې ګلبدین حکمتیار، لومړی وزیر وټاکل شي.

افغانستان د ۱۹۹۲ زکال څخه، په وینو لړلې کورنۍ جګړې سره مخ شو چې د هېواد په پلازمېنه کابل کې غیر نظامیانو او ملکیانو ته ډېر تاوانونه ور واړول، او کابل یې په کنډواله بدل کړو. د بشري حقوقو نړیوال سازمان، چې په هغه کې د ښېښې نړیوال سازمان هم شامل دی، داسې وایي چې حزبونه او د افغانستان په کورنۍ جګړو کې دخیلې ډلې، د پنځه ویشت زره غیر نظامي کسانو د مړینی مسولین دي. د بشري حقوقو د بنسټونو پر اساس، په دې کلونو کې زیات شمېر قتلونه، د خلکو ورکېدل،ظلم کول، جنسی تیري کول هم ټول سرته رسېدلي دي.

هغه د سنبلې په ۲۹ د ۱۳۹۰ه ل کال، د کابل په وزیراکبرخان سیمه کې په خپل کور کې د یوې انتحاري حملی په نتیجه کې ووژل شو.کله چې مړ شو نوموړی د طالبانو سره افغانستان د سولې د عالي شورا رییس او د دولت ارشد مذاکره کوونکي دنده هم سرته رسوله .

**تنظیمي جګړې ۱۹۹۲ – ۱۹۹۶**

ډېر شمېر افغانان چې په ۱۹۹۲ – ۱۹۹۶ ز کلونو کې، په کابل کې نه وو،د افغانستان د تنظیمي جګړو څخه یو روښانه او شفافه تصور نه لري، او هغوی په ساده ګی سره د هغه علتونو، عاملینو، پایلو او نتایجو په هکله چې د هغه په پایله کې د زرګونو هېوادوالو وینې وبهېدې او زرګونه بېګناه کورنیو خپل هېواد پرېښود او در په دره او بې کوره شول، نه شي پوهېدلی. اکثر نړیوالې رسنیو د څلورو کلونو په ترڅ کې (۱۳۷۵ -۱۳۷۱) افغانستان له یاده ایستلی وو او له ځو محدودو رسنیو پرته چې نړیوالې وې، د لومړۍ نه د نړۍ کومې رسنۍ په افغانستان کې دفتر درلود او نه کوم خبریال وو. مګر د دې ټولو سره سره، بیا هم د دې څلورو کلونو جنایاتو خبري اژانسونو او رسنیو ته لار موندلې،چې د هغو مطالبو څخه یو څو یې دا دي: (د کابل وحشتناکه تنظیمي جګړه د نړیوالو رسنیو د راپور پر اساس، د افغانستان د همبستګۍ ګوند سه شنبه، د ۱۳۹۴ د ثور ۸ نېټه) د ؛ اسوشیتید پرس؛ راپور چې د ؛دی نیوز؛په ورځپانه کې خپور شو (د ۱۹۹۴ د مارچ ۱۴ نېټه – د ۱۳۷۲ د حوت ۲۳ نېټه):د ۱۰۰۰ تنو څخه ډېر کسان په کابل کې مړه شول او د خیریه سازمانونو په څرګندونو، جګړه د پنځه سوه زرو کسانو په شاوخوا کې، خلک د خپلو کورونو څخه په کډوالۍ مجبوره کړي دي.

-د ؛فرانسې خبري اژانس؛راپور چې په ؛دی نیوز؛ ورځپانه کې خپور شو (۱۹۹۴ د فبروری ۲ – د ۱۳۷۲ د دلو ۱۳): د سه شنبې ورځ، د ؛سره صلیب سازمان؛؛ داسې وښود چې د جمهور رییس رباني پر خلاف د تنظیمي جګړې لړۍ، د تلفاتو شمېر ۱۲۰۰۰ کسانو ته رسېږی چې ۸۰۰ څخه تر ۹۰۰ تنه پکې مړه دي. دا سازمان دا هم زیاتوي چې د جګړې د پیل څخه په ۲۸ ورځ، ۱۲۲۰۰ د مړو شمېره ثبت شوی او د ۳۰۰۰ په شاو خوا کې د پخوانیو ټېپیانو اټکل هم شوی، او د نوی ټپونو د پټۍ لپاره یې مراجعه کړې وه.

- د ؛؛ اسوشیتید پرس؛؛ راپور چې په ؛؛دی پریسکوټ کوریر؛ ورځپانه کې خپور شوی وو (۱۹۹۳ د جون ۱۵):د سږ کال په سختو جګړو کې، د ۱۲ څخه تر ۲۳ می، هره ورځ تر سلو راکټونه راورېدل چې د هر یو لګېدل یې بد غږونه، چاودنې،

وحشتناکه تباهي او مړيني منځته راوړلې. د اسلامي جګړه مارو واک ته له رسېدو څخه وروسته د ۱۹۹۲ د اپريل تر مياشت، د ۱۱۵۰۰ څخه ډېر کسان په کابل کې مړه شوي. په سوېل او سوېل لوېديځو سيمو کې هېڅ داسې تعمير نه دی پاتی چې جوړ وي.

- د ؛نيويارک ټايمز؛ ورځپاڼه (۱۹۹۳ د مى ۱۸): په کابل کې شپږ ورځنۍ جګړه ۷۰۰ کسان وژلي ... په کابل کې د سره صليب کميټې د وينا په اساس، د جګړې د بيا پيل څخه، حد اقل ۷۰۰ کسه مړه او د ۳۰۰۰ څخه ډېر ټپيان شوي.

- بي بي سي د کابل څخه راپور ورکړ چې د ورځې په لړۍ کې، د دفاع وزير احمد شاه مسعود ته وفاداره ځواکونه، د ښار په سوېلي سيمه کې، د کوځيزو جګړو په اوږدو کې مصروف وو. ځواکونو دا کوښښ‌کولو هغه سيمې چې د ګلبدين حکمتيار چې د حکومت لومړی وزير دی او خپله دنده نه شي تر لاسه کولی، د کنټرول لاندې  دي، هغه سيمې بېرته ونيسي.

-د ؛رويټر؛ د خبري اژانس څخه راپور وو چې د ؛؛دی فرنتير پوست؛ په ورځپاڼه کې خپور شو (۱۹۹۲ جون ۲۹ – ۱۳۷۱ چنګاښ ۸):مجددي د خپلې دندې په وروستيو شېبو کې، د پېښور د ترون لاسليک کوونکي په دې تور چې د ده حکومت يې خراب کړ، تورن کړي وو. هغه د دفاع وزير احمد شاه مسعود چې د رباني سره نيږدې او متحد وو، وغندلو او داسې يې وويل چې هغه دا اجازه ورکړې چې د کابل نظم خراب شي.

- د ؛دی نيوز خپاره شوي راپورونه (۱۹۹۲ جون ۱۰ – د ۱۳۷۱ د جوزا ۲۰) او (ګلبدين حکمتيار) داسې اخطار ورکړ چې يو نيم ميليوني ښار به ويجاړ کړي، او په تيره مياشت کې يې د راکټي عملياتو په ترڅ کې سلګونه کسان مړه او ټپيان کړي چې اکثريت يې غير ملکي (غير نظامي) وو.

- د ؛؛فرانسې د خبري اژانس؛؛ راپور چې په ؛؛ډان؛؛ ورځپاڼه کې خپور شوی (۱۹۹۲ جون ۱۹ – د ۱۳۷۱ د جوزا ۲۹): د سرچينو د ويناوو په اساس د پنجشنبه په ورځ د مجاهدينو د نامعلومې ډلې د جنګياليو له لوري پر هندوانو په تازه حملو کې،، د هندوانو يوه دری کسيزه کورنۍ د بريښنا په مزي ترلې او د کابل بې پوليسه ښار کې يې په بريښنا ونيول .

- د ؛؛دي نيوز؛؛ ورځپاڼه (۱۹۹۲ د جون ۱۷ – ۱۳۷۱ د جوزا ۲۷): په اوس وخت کې، د کابل، جلال اباد او د نورو ښارونو څخه غلا شوي د موسيقی سامان الات د مجاهدينو لخوا، به پېښور ښار په ډېبګرۍ په بازار کې په ډېره ټيټه بيه خرڅېږی.

- د ؛؛فرانسی خبري اژانس؛؛ راپور چې په ؛؛دی نيشن؛؛ ورځپاڼه کې خپور شوی (۱۹۹۲ د جون ۳ – د ۱۳۷۱ د جوزا ۱۳):عيني شاهدان وايي چې د ايران پلوه وحدت ګوند او د اسلامي اتحاد، تر منځ جګړه کې راکټونه د کابل پوهنتون سره نيږدې سيمه کې ولګېدل.د ټانکونو او توپونو پيرونه هم  وشول چې وحشت وهلې ښځې او ماشومان د دې سيمو څخه په تيښته اړ کړل. په داسې حال کې چې په لومړۍ کرښه کې مسلسلې ډزې او چاودنې کېدې، يوه ښځه چې خپل څلور ماشومان يې له ځان سره انتقالول، چيغې يې وهلې: لطفا له ما سره مرسته وکړئ.

- د ؛؛فرانسې خبری اژانس؛؛ د راپور په اساس چې په ؛؛دی نيوز؛؛ کې خپور شوی (۱۹۹۴ اپريل ۲۷ – ۱۳۷۳ د ثور ۷):د کابل په وروستيو جګړو کې ۹۰۰ کسان ټپيان شول. د سه شنبې په ورځ د شفاخانو سرچينو وويل چې د ۹۰۰ څخه ډېر

ملکي وگړي او مجاهدين د کابل په شمالي سيمه کې د سختو تنظيمي نښتو په پايله کې تېپيان شوي مگر د مړو د کره شمېر په اړوند سم معلومات نشته.

## د افشارو پېښه او د وحدت گوند کورنۍ جگړې

دلته کوښښ‌شوی دی چې د پېښو خلاصه د هغو کسانو له نظره چې د پېښو په ترڅ کې هلته موجود وو او په خاصه توگه بيا د هزاره او يا شيعه سادات ليکونکي په ژبه يا قلم، هغه دوه قومونه چې تر ټولو لوی مصيبت پر دوی وو، دلته بيان شي.

د مجاهدينو د قدرت ته له رسېدو وروسته د تنظيمي جگړو يوه اجمالي کتنه چې په کابل کې  د ۱۳۷۱ ه ل کال چې د ۱۹۹۲ ز کال سره سمون خوري په دې ټولو کې د عبدلعلي مزاري تر مشرۍ لاندې د وحدت گوند يو متخاصم گوند وو، دا لاندې  پيښې تر نورو ټولو ډېرې په نظر راځي:

-د چنداول په توپ تړل د شورا نظار د نظاميانو لخوا د ۱۳۷۱ کال په منې کې

- د ۱۳۷۳ د سنبلې د ۲۳ پېښه:په ټوله مانا د شعيه وو په کورونو کې کور په کور جگړه يا د وحدت گوند کودتا

-د افشار فاجعه چې د ۱۳۷۱ ه ل کال د دلوی په ۲۱ پېښه شوه (۱۹۹۳ ز کال د فبروری) سره سمون خوري. د کابل د افشار پر اوسېدونکو تحميل شوه، په حقيقت کې د افغانستان په معاصر تاريخ کې تر ټولو لويه او په وينو لړلې غميزه ده. استاد (صباح) په يو مقاله کې چې عنوان يې ؛په هېواد کې د دری نيم لسيزو جناياتو مستندونه؛ و کې، چې د ؛اصالت؛په انټرنيټي مجله کې د ۲۰۱۳ کال د اکتوبر په ۱۴ خپره شوې، داسې ليکي: دا غمناکه تراژېدي چې د داسې کسانو لخوا،لکه احمد شاه مسعود د شورا نظار مشر، عبدلرب رسول سياف د اسلامي اتحاد ډلې مشر، محمد قسيم فهيم د رباني د حکومت د استخباراتو مشر، ډاکټر عبدالله د ملي  دفاع وزارت د دفتر رييس او د راکټ د لوا قومندان، يونس قانوني د کابل د عمومي گارنيزيون قومندان او د ملي  دفاع وزارت د عمومي سياسي دفتر رييس، د اسلامي حرکت د مرکزي شورا مشر  د شيخ اصف محسني په مشرۍ، اکبري، او سيد مصطفی کاظمي د وحدت له گوند څخه، د افغانستان د يوې برخې د اوسېدونکو د له منځه وړلو په موخه چې هزاره گان وو، طرحه او پلې شوه او اوس د يو منل شوي او پېژندل شوي جنايت په توگه چې انکار هم تر نشي کولی د افغانستان د تاريخ په حافظه کې ثبت شو.؛ (استاد صباح، تاريخي ؛اصالت؛ ۲۰۱۳ اکتوبر ۱۴ www.esalat.org ). د عبدالعلي مزاري د وحدت گوند،

-هغه ليکي:؛د فبروری ۱۱ سهار وو چې د افشارو اوسېدونکي په خپلو بسترونو کې په خوب ويده وو، چې د ټولنيزو علومو موسسه (د کابل د ښوونې او روزنې پوهنتون) له دريو خواوو څخه تر حملې لاندې  راغله، له لوېديځ څخه د سياف د اسلامي اتحاد وسله وال، له شمال او سوېل   څخه ؛دولتي؛ ځواکونه (د هغه گونديانو په مرسته چې لا پخوا پلورل شوي وو) سيمه يې تر محاصرې لاندې  ونيوله. دوی بيا تر ۲۴ ساعتونو پورې د کورونو او اوسېدونکو کسانو په وژلو،قتل، تېرې او کورونو ته په اور اچولو باندې بوخت وو او ځوان هلکان او پيغلې نجونې يې اسير ونيول. دا خبر هم هغه ورځو کې په کابل او بيا په ورستيو ورځو کې په ټوله نړۍ کې خپور شو. په دې جريان کې د اټکلونو پر بنسټ ۷۰۰ کسان

مړه او یا تر نن ورځې ورک شول.یو کال وروسته، کله چې د وحدت ګوند دغه سیمه بیا ونیوله، څو ډلیزه قبرونه یې وموندل چې په هغو کې تر ۵۸ پورې مړي هم وموندل شول. دا ډول وژل او قتلونه د بین المللي بشري حقوقو د سازمانونو لخوا محکوم شول؛ اما د دې کار عاملین هېڅکله بندی او یا محاکمه نه شول. په داسې حال کې چې رباني قتل عام د خپل حکومت د یوې لویې تېروتنې په شکل محکوم کړ، پېښه یې د افسرانو په غاړه واچوله، دا ډول افسران، په هېڅ ځای کې د دې ډول جنګي جرمونو مسول نه ګڼل کېږي. هغه ورځ د افشارو سیمه د ارواح سره شباهت درلود او د قتل عام څخه وروسته د دې سیمې ټول اوسېدونکي وتښتېدل.اما د هغې ورځې خاطرات د خلکو په مغزو او زړونو کې باقي پاتې شول او مذهبي، قومي اختلاف ته یې لا نوره لمن ووهله.دی ادامه ورکوي ؛په افشارو کې د ډله ییز وژلو سربېره، په ماشومانو او ښځو تیري هم وشول، په افشار کې جنایتکارانو د شپږ میاشتو ماشومانو په وینو په دېوالونو یادګاري شعارونه لیکلي وو او د ماشومانو د خوب ځایونه یې په مرمیو ویشتلي وو،په ښځو او نجونو یې تیري وکړل، د یوې دانه ګوتې په خاطر یې نوکان او د غوږوالۍ لپاره یې د ښځو غوږونه پرې کړل.مګر متاسفانه نن ورځ همدا جنګي مجرمین په لوړو دولتي پستونو کې کارونه کوي (استاد صباح، ؛اصالت؛ اکتوبر ۱۴ ۲۰۱۳)؛.

- سید محمد علي جاوید د افشارو د فاجعې یو متهم په انټرنیټي جریده کې ؛د جمهوري خراسان؛ د دلو ۲ تاریخ ۱۳۹۴ کې داسې لیکي: په چنداول کې د ۱۳۷۱ ه ل کال په مني کې په اټکلي ډول ډېر خلک له خاورو او وینو سره یو شول او د ۲۳ سنبلې په فاجعه کې،څو زره کسان مړه شول. په مزار شریف کې د اسد په میاشت کې ۱۳۷۷ ه ل په زرګونه کسان د طالبانو لخوا ووژل شول او د یکاولنګ په فاجعه کې په ژمي ۱۳۷۹ کې څو سوه کسان چې غیر نظامي او بی ګناه وو د طالبانو لخوا ووژل او په وینو ککړ شول او د کابل د لوېدیځ په جنګ کې لسګونه زره کسان مړه شول؛
- سید محمد علي جاوید لیکي چې د ۱۳۷۱ د مني په پیل کې سید منصور نادري کابل ته راغی، د اتیایمې فرقې ځینې نظامیان چې په کابل کې وو، د سید منصور د ښه راغلاست لپاره د وسلو سره هوایي ډګر ته ولاړل. په داسې حال کې چې هوایي ډګر د جنرال دوستم د کسانو په کنټرول کې وو، مګر د میدان شاوخواته د مسعود وسله وال پراته وو.دوی اجازه ور نه کړه چې د سید منصور ځواکونه د وسلې سره هوایي ډګر ته داخل شي او په پایله کې لفظي شخړه پیدا او د دوی تر منځ په نظامي جګړه بدله شوه. ډېر ژر په څو شېبو کې دا جنګ د تایمني او کارته پروان سیمو ته وغځېد. په تاسف سره چې دواړه خواوو غیر نظامیان ونیول.د مسعود وسله والو، هر هغه نفر چې هزاره ګې قیافه یې درلوده په دې نامه چې اسماعیلي هزاره او د ۸۰ فرقې وسله وال به وي، و به یې نیوو او زندان ته به یې یوړ او د ۸۰ فرقې وسله والو هم هر هغه کس چې د تاجک ګومان پرې کېدو زندان ته اچولو. په دې پایله کې د وحدت ګوند او د حرکت اسلامي ډېر شمېر هزاره ګان د مسعود د وسله والو لخوا بندي شول (محمد علي جاوید،جمهوري خراسان، دلو ۲ ۱۳۹۴).

لکه څنګه چې لیدل کېږي په ۱۹۹۳ ز (۱۳۷۱ ه ل) کال په کابل ښار کې پر هزاره ګانو او پر نورو افشار مېشتو شیعه ګانو باندی، او د هغې څخه وروسته بیا پر چنداول باندې یرغل کول د امیر عبدالرحمن خان د اقدام سره هېڅ توپیر نه لري چې هزاره جاتو کې یې کړی وو. اختلاف په دې کې دی چې استاد رباني او احمد شاه مسعود یوازې د قدرت

د واګې د پر لاس راوړلو څخه یوازې یو کال وروسته دا عمل سرته ورسولو په داسې حال کې  چې سل کاله د مخه د ابدالیانو د دولت د جوړېدو څخه امیر عبدالرحمن خان دا کار کړی وو.

د کابل پرس انټرنیټي خپرونه په یوه مقاله کې چې نوم یې ؛د افغانستان په تنظیمي جګړو کې د خلکو د شتمنیو غلا کول؛ د ۲۰۰٦ ز کال د اپریل په میاشت کې داسې لیکي: د بشر ضد جنایتونه چې د افغانستان د جهادي ګوندونو او تنظیمونو تر منځ وشول، د انساني ټولنو په تاریخ کې ډېر لږ لیدل کېږي. وسله وال ګوندونه  او ډلی چې د پخوانی شوروي اتحاد لخوا د هېواد د اشغال سره یې،مخالفت کولو او د (مقدس جګړې) جهاد په نامه د لوېدیځو او سیمه ییزو ملاتړ کونکي هېوادونو په مالي او مسلحانه مرستو د شوروي اتحاد پر خلاف او د دوی د لاس پوڅي دولت پر خلاف، یې پیل کړی وو،د ډاکټر نجیب الله د دولت له سقوط څخه وروسته، دا د شورویانو اخرینی پاتې شووني چې یو د بل په ځانونو بلا شول او ډېر ویرونکي او هولناکه جنایتونه یې تر سره کړل چې د انسانیت په قاموسونو کې یې مثال نه موندل کېږي. د دې جګړو څخه یو د مزار شریف په ښار کې د برهان الدین رباني په مشرۍ د اسلامي جمعیت او د جنرال دوستم په مشرۍ د اسلامي ملي  جنبش تر منځ د ۱۳۷۲ کال په ژمی کې  پیښ شو. د دې شخړې یو برخه اخیستونکی **داسې وایي دا جګړه د رسول پهلوان لخوا چې د دوستم نظامي لومړی مرستیال وو،پیل شوه. په دې جګړه کې محمد شریف د خلکو د مالونو د غلا کولو او لوټولو په برخه داسې وویل: ؛د جمعیت او د جنبش جګړه د مرکز څخه پیل شوه، په پای کې جګړه په مزار شریف کې پیل شوه؛ جګړه نیږدې دری ورځې اوږده شوه، د وحدت ګوند د دوی سره مرسته وکړه، هغه سیمې لکه د مارمول کوڅه، د شادیان دروازې کوڅه، د چغدک کوڅه د ښکېلو خواوو د قومندانانو لخوا لوټ او ټولو ورڅخه غلا وکړه؛.** ښاغلی شریف، له مالونو څخه لکه نکلی چاینر، قالین، ټغر او داسې نورو څخه د غلا کولو په اوږدو کې نوم واخیست. هغه مدعي شو چې پورته ذکر شوي مالونه نیږدې په مکمله توګه د خلکو د کورونو څخه غلا کړل شول. د افغانستان د تنظیمونو تر منځ د جګړو، غلاګانې او لوټماری ډیر یو عادي کار وو او اکثر تنظیمونو د یوی سیمې د نیولو او لاسته راوړلو څخه وروسته د خلکو د ښځزونو او شیانو په لوټولو پیل کولو او د دې غلا او لوټماریو څخه یې افسانوي مانۍ ځانونو ته جوړې کړې چې د کابل په شیر پور کې هغه وخت چې د ښاغلي کرزي په وخت کې د سولې د ټینګېدو څخه وروسته د قومندانانو او مشرانو د وسله والو ډلو لخوا جوړ شول. د ځینو کارپوهانو په اند د دې مانیو سرمایې د تنظیمي جګړو په اوږدو کې د خلکو د کورونو او مالونو د چور او غلا څخه لاسته ورغلې دي. میرزا محمد د دې جګړې عیني شاهد چې د یو تجارتی شرکت کارمند وو د خپلو سترګو لیدلی حال داسې بیانوي: زموږ مالونه جنبش چور کړل، د جنبش قومندان یعقوب کوچک ۱۲۰ ټنه غوړي، څلور موټره چینایي تور چای چې ۱۵۰۰ کارتنه وو، چور کړل؛. ښاغلی میرزا دا ادعا وکړه چې په دې جګړه کې دخیل مشرانو خپلو افسرانو ته ویلي وو چې ؛د خلکو سر زموږ او مال یې ستاسو؛.

۱۹۴۹ ز کال د ژینو کنوانسیون د خلکو د مالونو غلا کول په دریو کلمو کې خلاصه کړي ؛غلاکول منع دي؛ دغه کنوانسیونونه هم دا غوښتنه کوي چې د نظامیانو د اړتیا وړ مواد چې د خلکو څخه یې غواړي، باید ورکړل شي.

د دې جګړې نور برخه اخیستونکي د جهادي ۱۰۱ فرقې قومندان علم خان ازادی د اسلامي جمعیت د یو مهم غړو څخه په شمال کې وو، چې د ثقیله قطعې د رییس ارکان دنده یې پر غاړه درلوده، خپل خاطرات داسې بیانوي: په کابل کې د همغږۍ شورا جوړه شوې وه، دوستم خپله همغږۍ شورا کې د اسلامي جمعیت سره په جګړه پیل وکړ . د جنبش وسله والو، اسلامي ګوند او د وحدت ګوند یو ځای یوه د همغږۍ شورا جوړه کړې وه چې د جمعیت له وسله والو سره وجنګیدل.

ښاغلی رییس حسن میزان د دې جګړې وحشت د بې دفاع وګړو په وړاندې داسې بیانوي: بې غرضه او بې دفاع خلک یې اسیران ونیول ماشومان او ښځې د تیښتې په حال کې په ویالو او اوبو کې ډوب شول، خلکو ته مال او حال پاتې نه شو حتی سپي یې هم په مرمۍ ویشتلي او پر نورو حیواناتو یې هم رحم نه کولو؛.

کله چې جهادي تنظیمونو د یو بل کسان اسیر نیول د ټولو انساني موازینو په خلاف د جنګي اسیرانو سره یې چلند کولو، نه یوازې د جنګي اسیرانو سره، مګر عامو ملکي وګړو سره چې د رقیب ګوند په سیمه کې مېشت وو، هم ازار او اذیت کول او د جنګي کنوانسیون او نړیوال جنګي قوانینو په خلاف چلند ورسره کولو. چې د بشري حقوقو په لسګونه ټکي ماتول لکه د د تشو میتیازو ورباندي څښل، په سر کې د مېخ ټک وهل، د ښځو تیو پرې کول، د مړو ګډا، جنسي تیري کول، ډله ییز قتلونه، په تناسلي الې پورې تېرې تړل او داسې نور په رسنیو کې ولیدل شول.

د ښاغلی حسن د څرګندونو په برعکس چې د همغږۍ شورا یې مسول د ۱۳۷۲ کال د جګړې ګڼلو، ښاغلی سردار سعیدي د افغانستان د خلکو د اسلامي وحدت د ګوند په شمال کې مسول نه مني چې ځواکونو یې په یادو شویو جګړو کې برخه درلود.

په اصطلاح جهادي تنظیمونه چې په کراتو یې یو د بل په مقابل کې د جنګ صفونه جوړ کړي د ۱۳۷۱ کال د ثور د اتمې څخه وروسته کله چې د چارو واګې د جهادي ګوندونو لاسته ورغلې او برهان الدین رباني د قدرت پر چوکۍ تکیه ووهله، د هغه اسلامي جمعیت د رسول سیاف د اسلامي اتحاد سره په یو ایتلاف کې، د دوستم اسلامي ملي جنبش او د عبدالعلي مزاري د اسلامي وحدت ګوند د ګلبدین حکمتیار د اسلامي ګوند په خلاف، په کابل کې په وینو لړلې جګړې پیل کړې او د یو کال جګړو او وینو تویولو څخه وروسته اسلامي جنبش او اسلامي وحدت د ګلبدین د اسلامي ګوند سره یوه د همغږۍ شورا جوړه کړه چې د پروني اتحاد او یووالي په خلاف یې خپل ځواک وازمایل چې د دې جګړې لمنه په چټکۍ سره د کابل څخه شمالي ولایتونو ته وغځېده.

د جنبش اړوند قومندانان او جنګي وسله وال چې د جنرال دوستم کسان وو، د ژورنالیستانو سره د اسلامي جمعیت سره د جګړو په اړوند چې نن د مزار دښار حاکمیت په لاس کې لري، ډډه کوي او یوازې دا خبره کوي چې د خبرو وخت اوس نه دی، او بس .

ګل محمد پهلوان د رسول پهلوان ورور چې خپل د مشر ورور د مړينې څخه وروسته يې د هغه نظامي ونډه په غاړه واخيستله په يوه تلفوني اړيکه کې ريپورټر ته داسې وويل: ؛ما په هغه وخت کې کومه نظامي دنده نه درلوده. هغه د ۱۳۷۲ کال د جګړې څخه د بې خبرۍ خبرې کوي.

نه يوازې هغه کسان چې د جنرال دوستم جنبش پورې تړلي وو، مګر يو لړ عادي ښاريان او حتی ځينې پوهان او شننونکي د انتقالي عدالت سره نښتيو قضيو سره ډېر محافظه کارانه چلند کوي څو د جنګسالارانو لخوا دوی ته کوم خطر پېښ نشي.

په مزار شريف کې مدني فعال چې نه يې غوښتل نوم يې واخيستل شي د يوې پوښتنې په ځواب کې داسې وويل: ؛زه د جمعيت او د جنبش د جګړو عينی شاهد وم، وسله وال چې د جګړې څخه وروسته په مارمول کوڅه ښېرته راستنېدلې، د خلکو مالونه، او حتی کم ارزښترين شيان لکه د مرزو قفس يې هم د ځان سره وړل؛.

د دې په خاطر چې جنګسالارانو د ښاغلي کرزي په حکومت کې ونډه درلوده، د هغوی په اکثرو جنايتونو پرده واچول شوه او يو سند د ملي پخلاينې د منشور په نوم تصويب شو چې د ولسي جرګه لخوا زموږ په هېواد کې يې د ښښنې کولو فرهنګ عام کړ او زموږ په ټولنه کې د فساد او جنايتونو د لړۍ د دوامداره کولو سبب شو.

**د ملي پخلاينې منشور د دلوی په يوولسمه د ۱۳۸۵ ه ل کال د افغانستان د ولسي جرګې لخوا تصويب شو او د انتقالي عدالت د پروسې د پلي کول يې د لوی مشکل سره مخ کړ.** په دې منشور کې د زور واکانو واکمنو او د اپوزيسيون د ۲۸ کلونو جنايتونه وبخښل شول.

## د افغانستان وضيعت او د مجاهدينو د حکومت سقوط

په حقيقت کې په ۹۰ زيږديز کلونو کې د طالبانو د غورځنګ پيدا کېدل د مجاهدينو واکمنۍ ته په ۱۹۹۴-۱۹۹۶ ز کال کې د پای ټکی کېښود، د پاکستان د دولت د سوء استفادې پايله د افغانستان د مجاهدينو د انارشی او زورواکۍ حکومت او د پښتنو د نيشنليستي احساساتو څخه په سوء استفادې په هېواد کې د طالبانو غورځنګ منځ ته راغی. د دې له مخی، بې ځايه نه دی چې د طالبانو راتګ په ۱۹۹۵ ز کال کې او د دوی په لويه پېمانه بريالیتوب د مجاهدينو د حکومت په ړنګولو کې او په ۱۹۹٦ ز کال کې د کابل او نورو ولايتونو نيول، چې اکثر يې د جګړې څخه پرته وه،په حقيقت کې د پښتنو نيشنليزم عکس العمل دی له يوې خوا، او د خلکو نارضايتي د هېواد د انارشي بې امنيتي سيستم په مقابل کې چې په هېواد کې قدرت درلود، وو.

د طالبانو د راتګ څخه وړاندې په ۱۹۹۴ ز کال کې افغانستان په ډېر زور سره د تجزيې په حالت کې وو او د جنګسالارانو تر منځ لا وختي وېشل شوی وو:

-د رباني – مسعود حکومت کابل او د هغه شاو خوا کنټرولول

- دری لوېديځ ولايات د اسماعيل خان په لاس کې وو

- دری ختیځ ولایتونه چې پښتانه هلته مېشت دي د پاکستان سره سرحد لري، ننگرهار، لغمان او کنړونه، د ختیځې شورا لخوا اداره کېدل.

- یوه سیمه په ختیځ او سوېل د کابل کې د گلبدین حکمتیار په لاس کې وه

- جنرال عبدالرشید دوستم شپږ شمالي ولایتونه په خپل لاس کې لرل

- د هزاره گانو ډلې په مرکزي افغانستان د بامیان ولایت په خپل واک کې درلود

- سوېلي افغانستان او کندهار د وړو جنگسالارانو او د غلو د ډلو تر منځ سره وېشل شوی وو.

دا جنگسالاران د دې سره سره یو د بل په مقابل خپلې وفادارۍ ته تغیر ورکولو. د ۱۹۹۴ په جنوری میاشت کې، دوستم خپل اتحاد د رباني – مسعود له حکومت سره مات کړ او د حکمتیار سره یو ځای شو او پر کابل یې یو لاسي حملې وکړې. پښتنو و نشو کولی چې یو واحد مشر ولري. د احمد رشید په وینا ؛پاکستان نه غوښتل چې خپلې نظامي مرستې د دوراني پښتنو په لاس کې ورکړي.د دې کار لپاره یې یوازې حکمتیار غوره کړی وو. د سوېل پښتانه په خپلو کې په جگړو بوخت وو؛ (احمد رشید، طالبان، ۱۹۹۰).

د احمد رشید په وینا په کندهار کې، ښار د جنگسالارانو تر منځ وېشل شوی وو، تړوله شتمني او دارایي، پاکستاني تجارانو باندې خرڅېدله چې په دې کې د تلیفونونو مزي، فابریکې او ماشینونه، حتی د سړک جوړولو رولرونه هم پاکستان ته یووړل شول، کورونه، بڼونه، د خلکو ځمکې جنگسالارانو او د هغوی پلویانو ته وېشل کیدلې. قومندانانو پر خلکو ظلم او زیاتی کولو ځوان هلکان او پیغلې نجونې به یې اختطاف کول. د دې ډول شرایطو موجودیت ډېر شمېر خلک کویټه ته کډوالۍ ته اړ ایستل.د دې ډول حالاتو په افت کې، ترانسپورتي لارې نا امنه وې،د ترانسپورتي او انتقالاتو مافیا چې په کویټه او کندهار کې مېشت وو په کار راوستل. احمد رشید داسې وایي ؛په ۱۹۹۳ز کې ما د کویټه څخه کندهار ته د ۱۳۰ میلو لاره د موټر پواسطه ووهله، حد اقل د شلو ډلو لخوا د لارو په اوږدو کې ودرول شوم او زموږ څخه یې د حق العبور پیسې اخیستې.؛ (احمد رشید، طالبان، ۲۰۰۲، ص ۳٦)

### د مجاهدینو حکومت او د اسلامي جمعیت پورته کېدل

د افغانستان په ژوره دودیزه ټولنه کې د ریژیمونو سره مقابله کول لکه تره کی، امین، کارمل او نجیب الله په تاسف سره د ټولنې ارتجاعي ترینو ځواکونو په لاس ولوېد.دا ډلې په دوو برخو وېشل شوې وې؛ مکتبي اسلام پالو ډله (د محمد قطب د اخوان المسلین مکتب) لکه گلبدین حکمتیار او برهان الدین رباني او افراطي سنتي د اسلام پالو ډله لکه مولوي یونس خالص، محمدي، حقاني، سید احمد گیلاني او مجددي.د دوه یمې ډلې تر منځ کولی شو چې بیا د وهابي ډلې څخه چې د عبدلرب رسول سیاف او همداراز د شیعه ډلو چې د حرکت او د وحدت گوندونه وو د هزاره گان او نور هم پکې شامل کړو.

د دې ټولو ګوندونو رېښې د دوی قومي، ژبنيز او مذهبي فرقو پورې تړلي وو همدا وو چې سياست په افغانستان کې د روڼ اندو سره د تړون څخه د ۱۹۶۰-۱۹۸۰ ز کلونو کې، مذهبي او قومي تړون ته نزول وکړ.بايد ووايو چې سياسي فعال او انتخابی قومي پلوه مذهبي دولتي پاکستاني او ايراني منابع او د انتخابي نقدي مرستو لړۍ ته ادامه ورکول، د نظامي او سياسي ملاتړ ادامه ورکول ځانګړو ډلو ته، د دی ډلو په وده کې عمده او مرکزي رول درلود.

د دوستم فرصتپالي او د پرچمي يارانو او ځينو ملګرو احمد شاه مسعود ته تسليمېدل د ډاکټر نجيب الله څخه وروسته د يو ملي دولت د جوړېدو چې د ژينيوا د هوکړې په اساس وو،خيال او امکان له منځه يووړ او د تنظيمي جګړو پيل، د کابل ښار د ورانېدو او د يو ملوک الطوايفي سيستم د جوړېدو د جهادي قومندانانو لخوا د قومي کرښو پر بنسټ د افغانستان په ګوټ ګوټ کې شو.

د دولت او د ډاکټر نجيب الله د نظامي ځواکونو تسليمېدل احمد شاه مسعود او د جمعيت ګوند ته دا فرصت برابر کړ چې يو محدود محلي ځواک د هېواد په يو حاکم ځواک بدل شي. په پايله کې د دويم ځل لپاره د هېواد په تاريخ کې، د حبيب الله کلکاني د حکومت څخه وروسته په ۱۹۲۹ ز کال کې، د هېواد سياسي مشرتابه، په بشپړتوګه د تاجکانو لاسته ورغله. دا غير متوازن د قدرت او نفوذ موجوديت د کورنيو جګړو سبب شو چې د مجاهدينو د ډلو تر منځ پيل شوې، د حکمتيار د اسلامي حزب د مليشوو، د جمعيت او دوستم او وروسته بيا د مليشوو، مسعود او سياف د هزاره ګانو د نظامي مليشوو مقابل ته د مزاري په مشرۍ، او وروسته بيا د هزاره ګانو د مختلفو ډلو تر منځ د کابل په ښار کې هر يو د خپل نفوذ د  ډېرولو په موخه په دولت کې، لا نور اضافه شو، د دوی د کنټرول لاندې د سيمو د اضافه کولو موخې، هېواد يې وران او  وېجاړ کړ، د مرکزي حکومت نفوذ او ملي  حاکميت د قانون له منځه ولاړ هېواد په عملي توګه د جنګسالارانو تر منځ تقسيم شو.

قوم پرستانه احساسات او د پښتون ضد اعمال د مجاهدينو د لومړني حکومت له راتلو سره سم په ۱۹۹۲ کال کې د جنرال دوستم په کودتا او د ډاکټر نجيب الله د دولت او د افغانستان د اردو د پرچمي کسانو لخوا، احمد شاه مسعود ته، په اوج ورسېد او د پښتون قوم د نړېدو او شاته غورځولو لړۍ پيل شوه، چې د هېواد د وروښو قومونو ترمنځ تر  ټولو لوی قوم  دی.

په عين وخت کې د ۲۴ کلو په ترڅ کې هېڅ کوم سياسي جوړ شوی ګوند چې د پښتون د ټولنيز او سياسي ارمانونو څخه د مذهبي  دخالت څخه پرته استازيتوب وکړي، موجود نه وو. بايد ووايو چې د نامساعدو سياسي شرايطو په خاطر د جهاد کلونه، د افغان ملت ګوند و نشو کولی چې دغه خلا ډکه کړي.

په تاسف سره دغه سياسي خلا يا تشه، د مذهبي  افراطيانو لخوا چې په هغه کې د ګلبدين حکمتيار اسلامي ګوند شامل دی، په ۱۹۹۲-۱۹۹۶ کلونو کې، او د هغه څخه وروسته،د طالبانو غورځنګ، دغه تشه ډکه کړه

په دې کې د تاجک او د هزاره مليتونه، د دا راز ګوندونه لرل چې د زورواکه احزابو لکه جمعيت او وحدت څخه جوړ شوي وو د خپلو  قومونو د قومي، سياسي، سمتي، ټولنيز او تاريخی غوښتنو ممثلين وو، په داسې حال کې چې نور جهادي

تنظیمونه لکه سیاف، محمدي، خالص، حقاني، ګیلاني او حکمتیار، په پښتون مېشتو سیمو کې، تر ټولو ډېره پر مذهبي ایدیولوژۍ باندی تکیه کوله، دا یې د کمونیزم سره د مقابلې او د هغه د خطر څخه کوله، په مقابل کې یې د جمعیت اسلامي ګوند، خپل تشکیلات او مشرتابه د احمد شاه مسعود په مشرۍ، او د همفکرانو سره یو ځای د ملي ستم مفکورې ته معتقد وو او یو مناسب پوښښ یې درلود او د پښتنو د سیاسي حاکمیت د ختمولو ښه فرصت یې درلود، په ځانګړې ډول بیا په تاجک مېشتو سیمو کې. دا بې ځایه نه دي چې د نورو تنظیمونو مشرانو احمد شاه مسعود په دې تورن کړ چې د شوروي اتحاد د ځواکونو سره یې هوکړه کړې وه او ځانګړو قومي، ژبني او سمتي مقاصدو پسې وو.

## د دې فصل د سرچینو او ماخذو لړ لیک


1. جمال احمد خاشقجي، د ؛الوطن؛ ورځپانه د ریاض چاپ د ۲۰۰٦ ز می ۹ نېټه، ژباړونکی عبدالاحد هادف. جیو هزاره Geo Hazara October 2018 زیږدیز
2. د ؛اېږې دام؛ یا د افغانستان د جهاد د پردې شاته واقعیتونه، تالیف د ډګروال یوسف متقاعد افسر د ای.ایس.ای د پاکستان د اردو اوامریکایي ښاغلی مارک ادکین، د محمد قاسم اسمایي ژباړه، الکترونیکي نشر:۲۰۱۵ ز The Bear Trap: Afghanistan's' Untold Story
3. د تاریخ برمته شوی،دوه یمه برخه، مزوروف، فارسي رو www.farsi.ru
4. استاد صباح، ؛؛په هېواد کې د دری نیمه لسیزو جنایتونو مستندات؛؛، د ؛اصالت؛ انترنیتي مجله،د ۲۰۱۳ اکتوبر ۱۴ نېټه
5. د اریانا نیوز خبري ویبسایټ
6. د افغانستان سیاسي ګوندونه، دوه یم توک، لومړی چاپ، د ۱۳۸۴ ژمي، کابل، د افغانستان د اسلامي جمهوریت د عدلیی وزارت
7. د افتاب یا لمر د پیام رسنی اطلاعاتی پایګاه، انترنیټ
8. سید محمد علي جاوید، انترنیتی خبرپانه ؛د جمهوري خراسان ؛ ۱۳۹۴ دلو ۲ نېټه
9. د کابل جګړه او تنظیمي وحشت د نړیوالو رسنیو پر بنسټ، د افغانستان پیوستون ګوند، سه شنبه، ۱۳۹۴ د ثور ۸
10. د کابل پرس انترنیتي جریده ؛د افغانستان په تنظیمي نښتو کې د وګړو د شتمنیو لوټېدل؛ ۲۰۰٦ ز د اپریل شپږمه
11. محمد حسین جعفریان، د ؛مشرق؛ انترنیتي جریده
12. د دویچه ویلو دري پروګرام

13. احمد رشید، طالبان، د عبدالودود ظفري ژباړه، الميدا کليفورنيا، ۲۰۰۲

14. احمد رشيد، طالبان، نظاميگر اسلام، نفت او په مرکزی اسيا کې بنسټ پالنه، د يل پوهنتون د مطبعې چاپ، د امريکا متحده ايالات،۲۰۰۰ (په انگليسي ژبه).

## د طالبانو حکومت (۱۹۹۶-۲۰۰۱ زېږديز)

طالبانو د ۱۹۹۶ د سپتمبر په ۲۶ نېټه د افغانستان پلازمېنه کابل ونيو. د هغې څخه وروسته د خپل حکومت نوم يې د افغانستان اسلامي امارت کېښود او خپل تشکيلات او جوړښتونه يې د کابل راډيو له لارې اعلان کړل. پاکستان،متحده عرب امارات او سعودي عربستان يوازېني  درې هېوادونه وو چې طالبان يې په رسميت وپېژندل.

د وروستۍ پېړۍ د څلورمې برخې لپاره، د ۱۹۹۴ ز کال څخه، چې د طالبانو د تحريک نوم په رسنيو کې  په ژبو راغی، تر ننه چې ۲۵ کاله کېږي، د طالبانو تحريک د افغانستان په پېښو او د افغانستان په راتلونکي کې يې ډېر مهم رول لوبولی دی.له دې کبله د جوړښت، منځ ته راتگ، قدرت ته رسېدو او د طالبانو سياستونه او موخې د هغوی او د هغو پايلې او د نتايجو مطالعه کول، چې تر نن ورځې پورې د هېواد په سياسي ژوند کې  مطرح دي، د يو تاريخي، بې طرفه ليد لوري څخه، د افغانستان د ځوان نسل لپاره ډېر ضروري گڼل کېږي.

د طالبانو د حکومت په دوران کې، يوازېنی سپورت چې اجازه يې درلوده، هغه کريکټ وو.مگر طالبان د ترلي ليدلورو او متفاوت افکارو سره د ټولنې او نړۍ سره چلند وکړ او په يو ډول يې د مذهبي  بيا کتنې او په وگړو د فشار په راوستلو، د افغانستان د وگړو د اکثريت د نارضايتۍ سبب شول. دوی  د افغانستان د حکومت نوم له اسلامي جمهوريت څخه ؛د افغانستان اسلامي امارت؛ ته بدل کړ او خپل مشر ملا محمد عمر يې د ؛امير المومنين؛ په صفت معرفي کړ. د امنيت د شورا پرله پسې پريکړو ته يې نظر ونکړ او ډېر شمېر بهرنيان يې له هېواد څخه د باندې وويستل. د طالبانو حکومت د راډيو، تلويزيون، موسيقي، نقاشي، مجسمه جوړول، او هنري اثارو سره مخالف وو او د بودا مجسمې يې په باميانو کې چې د افغانستان د پخوانيو فرهنگي  شتمنيو څخه شمېرل کېدې له منځه يوړې.

هغوی ښځو ته اجازه نه ورکوله چې يوازې له خپلو کورونو څخه د باندې لاړې شي . د لواطت کونکو او زنا کونکو جزا مرگ وو او د غلو لاس يې پرې کولو. د لمانځه د ادا کولو لپاره يې خلک په زوره له خپلو دوکانونو څخه جوماتو ته بېول. د طالبانو په نظام کې د نارينوو ږيرې بايد اوږدې وي او د سر وېښتان يې بايد لنډ کړي وي.

د پاکستان او د منځنۍ اسيا تر منځ د ترانسپورتي لويې لارې د امنيت تامين د کويټې، کندهار او هرات له لارې، او همداراز د نفت او گاز په خاطر له ترکمنستان څخه پاکستان ته د پايپ لاين تمديدول د ټولو څخه لويې موخې وې چې د هغو په اساس بېنظير بوټو په پاکستان کې د امريکا حکومت، د طالبانو په مستقيم او غير مستقيم ملاتړ باندې لاس پورې کړ.د طالبانو د حکومت په دوران کې د امريکا لويه کمپنۍ يونيکال او بريداس ارجنتاين د طالبانو او ښکېلو

هېوادونو ملاتړ د لاسته راوړلو په برخه کې پراخه کوښښونه وکړل څو دا پایپ لاین سرته ورسېږي او په هغه وخت کې وو چې د خلیلزاد او د کرزي نومونه د دې شرکتونو د مشاورینو په صفت په ژبو راغلل. د شوروي اتحاد د نړېدلو څخه وروسته په ۱۹۹۱ ز کال کې او د منځنۍ اسیا د هېوادونو د خپلواکۍ څخه وروسته ترکمنستان په دې لټه کې شو چې سوېلي اسیا ته ډېر د گاز سرچینې ولېږي. دوه بریداس او ارجنتاین شرکتونه او یونیکال چې امریکایي وو، د دې طرحې د سرته رسولو په خاطر یې سیالۍ وکړلې.د گاز لپاره د لولې د غځولو په خاطر له ترکمنستان څخه پاکستان ته او هند ته په ۱۹۹۴ ز کال کې ډېر یادیدل. داسې ویل کېږي چې د طالبانو د غورځنگ د پیدا کېدو سره د پاکستان د اردو د اطلاعاتي سازمان ملاتړ،په همدې موخه وه.

د ترکمنستان اصلي مشکل دا وو چې د ارجنتاین د شرکت شتون، امریکا نه غوښت او په سیمه کې د امریکایي یونیکال شرکت شتون د دې سبب کېدو چې امریکا باید د بشري حقوقو مسایل مطرح کړي.

د خبرونو په اساس د ۱۹۹۷ ز کال په دسمبر میاشت کې د طالبانو استازی د یونیکال په بلنلیک د امریکا د هیوستن ښار ته ولاړ څو د دوی سره د گاز د لولې کرښې د کښولو په اړوند خبرې وکړي. د معلوماتو په اساس، خلیلزاد د دې مذاکراتو کوربه وو. ښاغلی خلیل زاد هم دا مني چې د طالبانو او د یونیکال سره په غونډه کې یې حضور درلود او د امیر خان متقي سره چې د طالبان د مشرانو له ډلې څخه وو، کلکې خبرې د ښځو سره د دوی د چلند په اړوند هم درلودې. خلیلزاد په خپل کتاب (استازی) کې لیکلي دي چې د ۱۹۹۰ ز کال په منځ کې د کمبریج د انرژۍ بنسټ له هغه څخه وغوښتل، چې د امکاناتو د سنجش په یو څېړنه کې چې د یونیکال شرکت یې سرته رسوي، دې برخه واخلي.

د طالبانو د ډلې د اسامه بن لادن سره نیږدیوالی، چې د القاعده شبکې مشر وو، د دې سبب شو چې امریکا پر طالبانو باندې شک وکړي او وروسته بیا طالبان په دې دلیل چې د بشري حقوقو درناوی یې نه دی کړی او د ښځو د دندو او زده کړو په لار کې د خنډ گرځېدو مسایل یې، تحریم کړل. یونیکال چې د دې پروژې د لاسته راوړنې هیله یې لوړه وه، خپل دفتر یې د عبدالسلام عظیمي په ریاست، چې د افغانستان د قضایه قوی مخکنی رییس وو،په کابل کې پرانیستلو، د دې څخه وروسته چې امریکا ډېر زیاد فشار راوست د دې په اساس چې طالبان د ښځو په حق کې ظلم کوي، او د بشري حقوقو ته احترام نه کوي، هغه دفتر یې بېرته وتړلو او افغانستان څخه بهر شو.

**د افغانستان شرایط او د طالبانو ظهور**

په حقیقت کې د طالبانو د تحریک منځ ته راتگ د ۹۰ ز کلونو کې د مجاهدینو واکمنۍ ته د ۱۹۹۴-۱۹۹۶ د پای ټکی کېښود، د پاکستان د دولت د سوء استفادې پایله د افغانستان د مجاهدینو د انارشی افت حکومت او د پښتنو د نیشنلیستي احساساتو څخه په سوء استفادې په هېواد کې داسې منځ شرایط منځ ته راغلل. د دې له مخې، بې ځایه نه ده چې د طالبانو ظهور په ۱۹۹۵ ز کال کې د مجاهدینو د حکومت په ړنگولو کې د دوی په لویه پیمانه بریالیتوب او د کابل او نورو ولایتونو نیول په ۱۹۹۶ ز کال کې،چې اکثر یې د جگړو څخه پرته وه، په حقیقت کې د پښتنو نیشنلېزمی عکس العمل دی یوی خوا څخه، او د خلکو نارضایتی د هېواد د انارشی بې امنیتی سیستم په مقابل کې چې په هېواد کې قدرت درلود، وو.

د طالبانو د راتگ څخه وړاندې په ۱۹۹۴ ز کال کې افغانستان په ډېره چټکۍ سره د تجزیې په حالت کې وو او د جنگسالارانو تر منځ لا د وخته وېشل شوی وو:

-د رباني – مسعود حکومت کابل او د هغه شاو خوا کنټرولولو

- دری لوېدیځ ولایت د اسماعیل خان په لاس کې وو

- دری شرقی ولایتونونه چې پښتانه هلته مېشت دي لکه، ننگرهار، لغمان او کنړونه، د ختیځې شورا لخوا اداره کېدل.

- یوه سیمه په ختیځ، سوېل او کابل کې د گلبدین حکمتیار په لاس کې وه

- جنرال عبدالرشید دوستم شپږ شمالي ولایتونه په خپل لاس کې درلودل

- د هزاره گانو ډلې په مرکزي افغانستان کې د بامیان ولایت په خپل اختیار کې درلود

- سوېلي افغانستان او کندهار د وړو جنگسالارانو او د غلو د ډلو تر منځ سره تقسیم شوی وو.

دا جنگسالاران د دې سره سره یو د بل په مقابل کې خپلې وفادارۍ ته تغیر ورکولو. د ۱۹۹۴ په جنوری کې، دوستم خپل اتحاد د رباني – مسعود حکومت سره مات کړ او د حکمتیار سره یو ځای شو او پر کابل یې سم لاسي حملې وکړې. پښتنو ونشو کولی چې یو واحد مشر ولري. د احمد رشید په وینا ؛پاکستان نه غوښتل چې خپلې نظامي مرستې د دوراني پښتنو په لاس کې ورکړي.د دې کار لپاره یې یوازې حکمتیار غوره کړی وو. د سوېل پښتانه په خپلو کې په جگړو بوخت وو؛ (احمد رشید، طالبان، ۱۹۹۰).

د بینظیر بوټو د صدارت څخه په پاکستان کې لا دری میاشتې نه وې پوره شوې چې کابل د ژمي د موسم په سر کې په ۱۹۹۴ کال یوې بلی خونړۍ جگړې ته ورداخل شو، داسې جگړه چې په پاکستان کې د بینظیر بوټو دصدارت لاس یې تر شا وو. پاکستانی ژورنالیست احمد رشید د پاکستان د رول او مداخلې په اړوند داسې لیکي: د ۱۹۹۴ کال د جنوری په میاشت کې ټول اپوزیسیونو ډلې یو بل ته لاسونه ورکړل او د رباني په خلاف یې د یو پراخ بنسټه یرغل یا حملې پلان ونیولو.حکمتیار، په شمال کې د ازبکو قوماندان جنرال عبدالرشید دوستم او په مرکزي افغانستان کې هزاره گان چې د کابل ځینې برخی یې هم تر لاس لاندې وې، یو د بل سره متحد شول. پاکستان د دې نوی اتحاد سره مرسته وکړه، دا ځکه چې حکمتیار لا تر دې وخته هم د پاکستان ملگری گڼل کېدو.د همغه کال په پیل کې حکمتیار د کابل په مرمۍ ویشتلو په خاطر له پاکستان څخه ډېر شمېر راکټونه لاسته راوړل؛.

د حکمتیار جگړه د ایتلافي همغږۍ شورا کې چې د کابل د نیولو لپاره پیل شوې وه، په دې پای ته ونه رسېده چې پلازمېنه او د قدرت واگې په لاس ورشي. په داسې حال کې چې د دې جگړې نتایج ډېرې ورانۍ او وژنې وې او تر اوسه هم د دې اور سوځېدل نه دي ختم شوي، چې اسلام اباد د افغانستان د جگړو په لاس لرلو کې او د افغانستان لپاره د نوي تجربوي کارونو پلانونه جوړ کړل .دا ځکه چې د پاکستاني شنونکي احمد رشید په وینا: پاکستان دې ته اړ نه

وو چې یو ماتېدونکي (ګلبدین حکمتیار) څخه ملاتړ وکړي، او د دې په لټه کې وو چې د پښتنو په ځای بل ځواک پیدا کړي، کله چې بینظیر بوټو په ۱۹۹۳ کې صدارت ته ورسېده، ډېره لیواله وه چې مرکزي اسیا ته لاره پرانېزي؛.

د بینظیر بوټو لیوالتیا دې ته چې په پاکستان کې د خپل صدارت په زمانه کې د منځنۍ اسیا خواته لاره پرانیزي، هغه یې د طالبانو د ډلې د رنګ اخیستو او پیدایښت خواته اړ ایستله. تر دې پورې چې په دې لیوالتیا او اشتها کې هغې ته د پاکستان په د ننه کې ځینې کړۍ او د پاکستان څخه بهر ځینې لوبغاړي لکه واشنګټن، لندن او ریاض هم ورسره یو لاس شول. داسې چې د هغې د لوموند رسنۍسره په ۲۰۰۲ مرکه کې داسې وویل: ؛د طالبانو منځ ته راوستلو مفکوره د انګلیسانو وه، د هغه د مدیریت کار د امریکا په غاړه وه،د دې قېمت او بیه سعودي عربستان ورکړه او ما یې اسباب برابر کړل او د دوی طرحه مې جوړه کړه.؛

اسلام اباد د افغانستان پېچلې جګړې لړۍ ته دوام ورکړ او د حکمتیار او رباني د جبهو تر منځ نه حل کېدونکو اختلافات د یو ستراتیژیک او اقتصادي ګټې له نظره د خپل ځان په ګټه نه لیدل. دوی غوښتل چې افغانستان داسې یو ثبات ته لاسرسی ولري، څو پاکستان وشي کولی د دې هېواد څخه د منځنۍ اسیا هېوادونو ته لار ومومي .داسې لاره چې د افغانستان د کورنیو جګړو له وجهې،په بشپړ توګه تړلې ښکاریده. پاکستان غوښتل چې افغانستان کې ثبات راشي، او دا چې د طالبانو بنسټپاله ګوند هم هغه ورکه شوې کړۍ ده چې کولی شي د کابل سقوط ضروري کړي، او د اسلام اباد خوبونو ته د حقیقت جامه ورواغوندي.

د احمد رشید په وینا په کندهار کې، ښار د جنګسالارانو تر منځ وېشل شوی وو، ټوله شتمني او دارایي، پاکستاني تجارانو باندې خرڅېدلځ چې په دې کې د تلیفونونو مزي، فابریکې او ماشینونه، حتی د سړک جوړونې رولرونه هم پاکستان ته انتقال شول، کورونه، ښځونه، د خلکو ځمکې جنګسالارانو او د هغوی پلویانو ته وېشل کیدې. قوماندانانو پر خلکو ظلم کولو ځوان هلکان او پیغلې نجونې به یې اختطاف کول. د دې شان شرایطو موجودیت یو ډېر شمېر خلک کویټې ته کډوالۍ ته اړ ایستل.د دې ډول حالاتو په اړدوړ کې، ترانسپورټي لارې نا امنه وې، د ترانسپورټي او انتقالاتو مافیا چې په کویټه او کندهار کې مېشت وو په کار راوستل. احمد رشید داسې وایی ؛په ۱۹۹۳ز کال کې ما د کویټه څخه کندهار ته د ۱۳۰ میلو لار د موټر پواسطه ووهله، حد اقل د شلو ډلو لخوا د لارې په اوږدو کې ودرول شوم او زموږ څخه یې د حق العبور پیسې اخیستې.؛ (احمد رشید، طالبان، ۲۰۰۲، ص ۳٦)

**هغه پېښې چې د طالبانو قدرت ته د رسېدو په برخه کې مرکزي رول درلود**

- د ۱۹۹۴ د اکتوبر په ۱۲ د ۲۰۰ په شاو خوا کې طالبان د کندهار او د پاکستان د مدرسو څخه د سپین بولدک سرحدي ښارګوټي ته چې د پاکستان او افغانستان تر منځ پروت دی، داخل شول. دا ښارګوټی په هغه وخت کې د ګلبدین حکمتیار په واک کې وو. د طالبان ځواکونه په دریو برخو ووېشل شول او د حکمتیار پر ځواکونو یې یرغل وکړ د هر یو کس په مقابل کې یې اووه کسان ووژل او د حکمتیار ځواکونه وتښتېدل په پایله کې سپین بولدک او د حکمتیار د

وسلو لویه ډیپو چې هلته نیږدې یې موقعیت درلود، د طالبانو لاسته ولوېدله چې په هغه کې د ۱۸۰۰۰ کلاشنکوفونو سربېره، نور ډېر شمېر وسلې او موټران پکې وو؛

- د ۱۹۹۴ ز کال د اکتوبر په ۲۰ نېټه نصیرالله بابر د پاکستان د کورنیو چارو وزیر د شپږو لوېدیځو هېوادونو د سفیرانو چې په اسلام اباد کې مېشت وو سره د رباني-مسعود د حکومت له خبرېدو پرته، هرات او کندهار ته سفر وکړ. هغه ویلي وو چې ۳۰۰ میلیون ډالره یې د نړیوالو موسسو څخه راټول کړي او د کویټې او هرات تر منځ سړک به بېرته ورغوي

- د ۱۹۹۴ ز کال د اکتوبر په ۲۸ نېټه بینظیر بوټو د پاکستان لومړۍ وزیره د اسماعیل خان او جنرال دوستم سره د ترکمنستان په پلازمېنه عشق اباد کې وکتل او ټینگار یې وکړ چې د پاکستان د تجارتي کاروانونو پر مخ، د کویټې ترانسپورتي لویې لاره د کندهار او د هرات له لارې ترکمنستان ته د حق العبور په بدل کې د خلاصه وساتل شي.

- د ۱۹۹۴ د اکتوبر ۲۹ نېټه د پاکستاني پوځ لوژیستیکي څانگې پورې اړوند د موټرو کاروان،چې په اویایمه لسیزه کې د ای اېس ای لخوا منځته راغلی وو څو د وسلو او د مهماتو مرسته له مجاهدینو سره وکړي، او ۸۰ تنه هغه ډرېورانو پواسطه چلول کیده چې د پاکستاني پوځ پخواني کسان وو،د کویټې څخه د هرات په لوري روان وو.د ای اېس ای یو لوړ رتبه افسر کرنیل امام چې د پاکستان جنرال قونسل وو،په هرات کې د دوو ځوانو طالب قومندانانو ملا بور جان او ملا ترابي سره یوځای، د کاروان څارنه کوله. کاروان د کندهار د هوایي ډگر ساحې ته نیږدې د قوماندان لالي او منصور اڅکزي او د قوماندان استاد حلیم لخوا ودرول شو، او دوی د کاروان او د هغه موادو چې کاروان هغه انتقالول،خپله برخه او پیسې وغوښتې.

- د نومبر دوه یمه ورځ طالبانو په یرغل پیل وکړ، د کندهار قومندانانو په دې فکر چې گنې پاکستان یرغل کړی دی، د جنگ له ډگر څخه وتښتېدل. په منصور پسې شول او ویې نیولو د لسو ساتونکو سره یې ووژلو. د قوماندان منصور اڅکزي مړی د ټانک په میل باندې ځوړند کړ،

- د همغې ورځې په ماښام طالبان کندهار ته داخل شول او د دوو ورځو جگړو څخه چې قوماندانانو ته یې ماتې ورکړه. ملا نقیب الله د کندهار تر ټولو غښتلی قوماندان چې ۲۵۰۰ مجاهدین یې درلودل د ای اېس ای څخه د پیسو په اخیستلو، د خپلو مجاهدینو سره، د طالبانو سره یو ځای شو.

- د پاکستاني ملایانو جماعت او د پاکستان حکومت، د طالبانو لخوا د کندهار فتح ونمانځله، نصیر الله بابر د پاکستان د کورنیو چارو وزیر د طالبانو د بریالیتوب کریډېټ خپل ځان ته ورکړ او خبریالانو ته یې وویل: طالبان زموږ دي؛ (احمد رشید، طالبان، ۲۰۰۲، ص ۴۷)

## د طالبانو د بریا پېښلیک

- ۵/۱۱/۱۹۹۴ د کندهار اکثر سیمې طالبانو ونیولې
- ۱۲/۱۱/۱۹۹۴ طالبانو د کندهار ولایت بشپړکنترل په لاس کې واخیست، او د کندهار مجاهدین د هرات خواته وتښتېدل
- ۱۰/۲/۱۹۹۵ د لړ جگړې وروسته د وردگو ولایت د طالبانو لاس ته ولوېد
- ۱۱/۲/۱۹۹۵ د لوگر ولایت بشپړ کنټرول یې په لاس کې واخیست
- ۱۹/۲/۱۹۹۵ د خوست ولایت کنټرول یې په لاس کې واخیست
- ۱۱/۳/۱۹۹۵ عبدالعلي مزاري د اسلامي وحدت گوند مشر چې طالبانو بندي نیولی وو، په وردگو ولایت کې ووژل شو.
- ۱۷/۴/۱۹۹۵ د فراه ولایت د په لاس راوړلو په خاطر، لویه حمله پیل شوه
- ۵/۹/۱۹۹۵ د هرات ښار د طالبانو لاس ته ولوېد
- ۲۶/۶/۱۹۹۶ گلبدین حکمتیار چې د افغانستان د لومړي وزیر په صفت ټاکل شوی وو کابل ښار ته ورسېدو.
- ۱۱/۹/۱۹۹۶ د جلال اباد ښار د طالبانو لاسته ورغی
- ۲۷/۹/۱۹۹۶ د کابل ښار د طالبانو لخوا فتح شو.ډاکټر نجیب الله د افغانستان پخوانی جمهور رییس د څو وسله والو کسانو لخوا د ملگرو ملتونو سازمان د دفتر څخه په کابل کې بهر وویستل شو، ډاکټر نجیب الله او د هغه ورور احمدزی او د هغه یاور یې په قتل ورسول او د هغوی مړي یې د اریانا په څلور لاري کې  په دار وځړول
- ۱/۱۲/۱۹۹۶ ببرک کارمل د افغانستان پخوانی جمهور رییس په مسکو مړ شو
- ۱۸/۵/۱۹۹۷ جنرال عبدالملک د افغانستان د اسلامي جنبش سیاسي رییس د جنرال دوستم پر خلاف چې د گوند مشر وو،پاڅون وکړ او د مزار شریف اداره یې په خپل لاس کې واخیستله
- ۲۴/۵/۱۹۹۷ د مزار شریف ښار د طالبانو لاس ته ورغی
- په ۲۰۰۱ ز کال کې د هېواد یو وړوکې څنډه د تخار ولایت خواجه بهاولدین او د امو د سیند تر څنگ بدخشان کې د طالبانو د نفوذ څخه پاکې او د رباني – مسعود د پلویانو په لاس کې پاتې شوې، د مزار شریف ښار د سقوط سره سم او وروسته بیا کندز نور ټول هېواد طالبانو په لاس کې وو، طالبان د هېواد په ۹۰ سلنه خاوره د باندی تسلط درلود او خپل حکومت یې اعلان کړ.د طالبانو حکومت د مجاهدینو د انارشي د تنظیمونو او په افغانستان کې د مجاهدینو د دولت د ملوک الطوایفی د پای ټکی وو او د خلکو د ځان او مال امنیت ټینگ کړ.مگر په تاسف سره چې طالبان د منځنیو پېړیو د دوران یو مذهبي  رژیم په هېواد حاکم کړ او د هېواد د وگړو لپاره یې روغتیایي، تعلیمي، تجارتي، صنعتي، ترانسپورتي، مخابراتي، ټولنیز، فرهنگي او په نورو چارو کې یې هېڅ خدماتو ته لاره نه برابروله، او هر هغه څه چې د

مجاهدیونو د مخه دوران څخه لا تر اوسه په ځای پاتی وو، هغه یې هم ټول رخصت یا په نه پاملرنې سره، هغه ټول له منځ یووړل. طالبانو د گرانو تاریخو اثارو په ویجاړولو پیل وکړ چې د هغې جملی څخه یې د بامیان د دوه زره کلن بودایي مجسمه وه چې هغه یې ونړوله.

**ملا محمد عمر**



ډېرو لږو کسانو ملا محمد عمر مجاهد له نیږدې څخه لیدلی دی. د دې کسانو څخه کولی شو نصیر الله بابر د پاکستان پخوانی د کورنیو چارو وزیر، رحیم الله یوسفزی پاکستانی خبریال، او د دوه ایراني خبریالانو نوم واخلو.د ؛مشرق؛ انټرنیټي خبرپاڼې په وینا، محمد حسین جعفریان چې د ایران یو جنگي خبریال دی چې خپل ځینې جنگي خاطرات یې په خراسان ورځپاڼه کې خپاره کړي داسې لیکي ؛د هسپانیا هېواد د الپاییس ورځپاڼې دوه خبریالان تهران ته راغلی وو، ممکن د دې لپاره چې اورېدلي یې وو چې دوه ایراني خبریالان مدعي دي چې ملا محمد عمر یې لیدلی دی، هغوی دغه تصور له ځان سره راوړئ وو او موږ ته یې ښکاره کړ **د څېړنو په اساس دا تصویر د هم هغه سړي دی کوم چې ما او ښاغلي برجي له کندهار څخه د بېرته راتلو په وخت کې لیدلی وو.**

ملا محمد عمر د ۱۹۵۹ ز کال په لړ کې، کندهار ته نیږدې د نوده په کلي کې په یوه غریبه کورنۍ کې چې د غلجي پښتنو په هوتک قوم پورې اړه لري زېږېدلی. په اتیایمه لسیزه کې د جهاد په دوران کې د ملا محمد عمر کورنۍ د ارزگان ولایت د ترنک سیمې ته کډه وکړه. ځوانۍ ته نه وو رسېدلی چې پلار یې وفات شو او د مور او کورنۍ مسولیت ورپه غاړه شو. د کار او بار د موندلو په موخه،د کندهار ولایت میوند ولسوالۍ د سنگ حسار کلي خواته روان شو او په مسجد تکې یې امامت پیل کړ او همدا راز یې یوه وړه مدرسه هم جوړ کړه .ملا محمد عمر د مولوي خالص اسلامي حزب کې غړیتوب واخیست او د نیک محمد تر قوماندانۍ لاندې د ډاکټر نجیب الله د  ریژیم په وړاندې د ۱۹۸۹  زکال څخه تر ۱۹۹۲ کلونو پورې په جگړه کې برخه واخیستله .

د ملا عمر د زېږېدنې د ځای او مکان په اړوند ضد او نقیض معلومات ورکړل شوي دي، مگر د ده د ژوند لیک په اساس چې د طالبانو لخوا لیکل شوی دی، هغه په ۱۹۶۰ ز کال کې د کندهار ولایت د خاکریز ولسوالۍ کې زېږېدلی او د شوروي لښکرو سره د جگړې په دوران کې، خپله یوه سترگه هم له لاسه ورکړې. د ده د  ژوند لیک په اساس، د ملا محمد عمر پلار هغه وخت چې دی پنځه کلن وو وفات شوی او د ارزگان ولایت ته کډه شو څو د خپل تره تر سرپرستۍ

لاندې ژوند وکړي. هغه د ارزګان په ديني مدرسو کې خپلې ديني زدکړې سرته ورسولې او د زده کړو د ختميدو څخه د مخه، په ۱۹۷۹ زکال په افغانستان باندې د شوروي اتحاد د يرغل په ضد د جګړې کرښو کې ورګډ شو.

ايراني خبريال محمد حسين جعفريان داسې ليکي د ۷۳ ه ل کال په حوت مياشت کې، موږ د طالبانو تر کنټرول لاندې سيمو ته ولاړو. هغه وخت د طالبانو د حکومت جوړېدو څخه شپږ مياشتې وتلې وې او موږ د يو مستند فيلم جوړولو په کار بوخت وو چې نوم يې د طالبانو جمهوريت ته سفر وو. په همدې موضوع د څو نامتو افغان مسولانو سره چې وروسته يې د طالبانو په منځ کې هم مهمې چوکۍ لاسته راوړې، په خبرو شوو، موږ وليدل چې په کندهار کې ملا محمد عمر ته د امير المؤمنين لقب استعمالولو او همدا يې ويل چې د هغه ليدل امکان نه لري. د دی سره موږ ته د ښار په داخل کې د فيلم ډکولو اجازه رانکړل شوه، داسې يې ويل چې د مذهبي نظره ښه کار نه دی.کله کله په ډېره مشکلاتو مو عکسونه اخيستل. کله چې مو کار ختم شو او د کندهار څخه د هرات په لوري لاړو، په سړک يو موټر مخامخ راتلو، او لارښود وويل: دا د ملا محمد عمر موټر دی. موټر د سړک هغه بلې غاړې ته ودريد، او يو کس ترې راکښته شو، موږ هم کښته شو، زموږ طالباني لارښود ورته وويل چې دا دواړه ايراني خبريالان دي او زموږ ميلمانه وو. هغه هم په ډېره خرابه فارسي پوښتنې وکړې. تر پنځلس دقيقو پورې مو خبرې وکړې او موږ يوازې د هغه ږغ ثبت کړ.

هغه داسې ليکي ؛ملا محمد عمر اول سر کې د لارښود څخه پوښتنه وکړه چې د دې ايراني ملګرو غمه مو خوړلې ده؟ ايا دوی ته ښه ځای او ښه خواړه ورکړل شوي؟ له دې وروسته يې زموږ څخه پوښتنه وکړه چې څه حال مو دی؟ ايا تاسو ته خو به کوم تکليف نه وي پېښ شوی؟ او دا شان نورې پوښتنې... کينه پښه او يوه سترګه يې معيوب شوی وو. دا ايراني خبريال دوام ورکوي ؛موږ ته په اصل کې د پوښتنو او ځوابونو اجازه را نکړل شوه.موږ ته په هم هغه لحظه کې تر ټولو په زړه پورې دی پخپله وو، زموږ فلمبردارانو په اند لږ وخت يې ونيولو څو په دې ځان قانع کړو، چې ايا دا په رښتيا خپله ملا محمد عمر دی او کنه؟تر ټولو عجيبه ټکی هم دا وو چې ده خپل موټر پخپله چلولو، مطلب دا چې، کله چې موټر ودريد، شاته څوکۍ خالي وې، يانې محافظين ورسره نه وو او دې سړي پخپله موټر چلولو. زموږ لارښود وويل، دا يوه عادي خبره ده، دی د ځان سره محافظين نه ګرځوي. پخوا هم کله چې موږ د کندهار والي ملا محمد حسن پسې ګرځېدو چې د ملا عمر مرستيال او د طالبانو دوهم شخص وو، په کوڅه کې مو يو کس وليد چې د افغاني کاليو پاېڅې يې پورته کړې وې، پياز او کچالو يې اخيستي وو کله چې يې زموږ سره خبرې کولې. د دې کبله هم ډېره عجيبه نه وه، مګر کله چې مو دا سړی په لومړي ځل وليد، ورته حيران شو چې ايا دا به په ريښتيا ملا محمد عمر وي چې يوازې موټرواني کوي او په دې خالي لار کې تېرېږي. ؛ هغه ليکي: په ظاهره چاغ او پنډ سړی وو.کينه پښه او يوه سترګه يې معيوب وو او چې تصادفاً سترګه يې هم کينه وه، لويه ږيره او لونګۍ يې پر سر وو ډېرو نورو طالبانو ته يې قواره او څېره ورته وو لکه چې په عکس کې يې وينو.؛

د طالبانو د پخواني مشر ملا محمد عمر اړوند ډېر معلومات نشته دي، په اول سر کې د شوروي اتحاد په وړاندې د ؛اسلامي حزب ؛ ګوند د مولوي يونس خالص په څانګه کې وجنګېد او وروسته يې بيا د افغانستان حکومت، د ناټو او امريکايي ځواکونو په وړاندې په يوه اوږد مهاله جګړه کې، هم خپلې جګړې ته دوام ورکړ. ملا محمد عمر د ۱۹۹۰

لسيزې په اخيرو کلونو کې د افغانستان ۹۰ سلنه خاوره په خپل کنټرول کې درلوده، د خپل ژوند ډېره برخه يې پټه تېروله. د جهاد په دوران کې په کندهار کې قومي گوندونو ډېر نفوذ درلود لکه د مولوي خالص اسلامي گوند، د محمد نبي محمدي اسلامي انقلاب حرکت او د پير سيد احمد گيلاني په مشرۍ د اسلامي محاذ تنظيم.

کله چې د پخواني شوروي ځواکونه په ۱۹۸۹ ز کال کې له افغانستان څخه ووتل، ملا محمد عمر د نورو مجاهدينو په شان چې د امريکا او عربي هېوادونو حمايت ورسره وو، د ډاکټر نجيب الله د حکومت پر ضد وجنگېد. او په پاکستان کې اوسېدلو .

د خبرونو پر بنسټ، ملا محمد عمر په عربي ژبه هم غږېدو چې د ديني زده کړو په وخت کې يې زده کړې وه. ډېر لږ شمېر کسانو چې د ملا محمد عمر سره يې ليدلي دي، هغه يې د يو ساده سړي په حيث تشريح کړی، چې حکومتي چارې يې د نورو طالبانو او نيږدې ملايانو سره په گډه اداره کولې.

## د طالبانو د اسلامي امارت د دولت اقدامات

د طالبانو ځواکونو کابل ښار ته د ننوتلو سره سم دلاسه په خپل لومړني اقدام کې، په بې پروايی سره د ملگرو ملتونو دفتر ته ننوتل او پناه اخيستونکی جمهور رييس ډاکټر نجيب الله يې ملگرو ملتونو د سازمان له دفتر څخه په کابل کې د ده د ورور احمدزي سره يو ځای بهر راويستل، دوی بلکل د منځنيو پېړيو په څېر په بربريت عمل وکړ ډاکټر نجيب الله او ورور يې په پړو وتړل تر اريانا څلور لاري پورې يې په سړکونو او ځمکه کش کړل، د خلکو د سترگو په وړاندې د خطرناکو شکنجو وروکولو سره يې دا دواړه په مرميو وويشتل او مړي يې د جمهوري رياست ارگ سره نيږدې ځوړند کړل.

د طالبانو د ځواکونو په کابل کې د ځای پر ځای کېدو سره سم، دا د هغې غميزې اوج وو چې د کلونو راهيسې د افغانستان پر تندي د ننگ سيوری پروت دی او د بلاوهلي افغانستان د بدبختی اړخونه هېڅ وخت دومره ډېر نه وو، او د افغانستان د تور اسمان تر چتر لاندې هېڅکله داسې ظلمونه نه وو شوي. د طالبانو وروستي اقدامات، په کابل ښار کې د شرعي قوانينو اعلانول وو.

د طالبانو د اعلان شويو قوانينو پر اساس چې د هغو قوانينو څخه څارنه د يو شپږ کسيزه هئيت لخوا کېده، د دې وروسته ښځو ته په ادارو کې د دندې اجرا کولو اجازه نه وه او هر هغه ښځه چې د بشپړ شرعي حجاب د مراعاتولو څخه پرته د باندې وليدل شوه، د شرعي اصولو په اساس، به په کلکه مجازات شي. په دې ډول سره د ښځو او نجونو لومړني حقوق چې په هغه کې د کور څخه بهر د دندې سرته رسول وو او ښوونځيو ته د تگ څخه منع کړل شوې.

د ملا محمد عمر رژيم د بشري حقوقو د نه مراعتولو، او د افغانستان په شمال کې په قتل عام متهم دی. د ملا محمد عمر په حکومت کې افغانستان د القاعده لپاره د امن ځای گرځېدلی وو. په ظاهره اسامه بن لادن، د القاعدې ډلی وژل شوی مشر په کندهار کې مېشت وو او د ملا عمر سره يې ډېرې نيږدې اړيکې درلودې .

د پاکستان د پخوانۍ لومړۍ وزیرې بینظیر بوټو په وینا، چې د بي بي سي خبریال ته یې داسې ویلي وو ؛ د طالبانو ډله د امریکا متحده ایالاتو، انګلستان او سعودي عربستان په مرسته، په پاکستان کې یو څو کاله د مخه منځته راغله چې اساسي څېرې یې د دینی مدرسو طالبان وو چې د افغان کډوالو له جملی څخه وو چې وروسته بیا دا ډله په وسله واله ډله بدله شوه او مشري یې د پاکستان بنسټ پاله سازمان (جمعیت العلما) په خپله غاړه واخیستله او ...د طالبان وسله د امریکا او انګلستان وه او پیسې یې د سعودي لخوا برابرېدې. (بي بي سي).

## د طالبانو د تحریک فکري مبناوې

د طالبانو تحریک، داسې یو جنبش دی چې د افغان ملایانو او طالبانو څخه جوړ دی، کوم چې په دیني مدرسو کې چې اکثر دیني تحصیلات په پاکستان کې کړي وو. دا شمېر دې دیني علومو د محصلین چې د ۱۹۹۸ – ۲۰۰۰ ز کال پورې د پاکستان دوو ښارونوبلوچیستان او سرحد ته تللي وو او په کډوالو پورې اړونده کمپونو کې د قراني او حدیثو په زده کړه مصروف شول، د زرګونو تنو څخه هم ډېر وو.د ۱۳۵۷ ه ل کال د کودتا څخه وروسته د افغانستان په سلګونو زره اوسېدونکو د خپلو ښارونو او کلیو څخه د پاکستان لور ته کډه وکړه.دې کډوالو ته په کمپونو کې چې د پاکستان د دولت، د ملګرو ملتونو، لوېدیځو او عربي هېوادونولخوا پراخه مرستې محیا شوې، د اوستوګنې ځای ورته ورکړل شو.د دې کډوالو نوی نسل چې د پاکستان د پوځ په روزنځایونو کې یې روزنه تر لاسه کړې وه او هلته را لوی شوي وو، په ډېر ساده ګی سره په دې هېواد کې، دیني مدرسو ته جذب شول او هلته یې د دیني علومو زده کړه پیل کړه.

د طالبانو څخه مطلب طا لب (جمع یې:طلاب)، یوه دګماتېزم مذهبي عقیده لري،چې رېښې یې د اسلام په دین کې په حنفي مذهب د دیوبندي او جهادګرایانه لید لوری لري. مګر نشو کولی چې دا ادعا وکړو چې طالبان د یو ځانګړي ایدیولوژیکي مکتب او لارې څخه متاثره وو، مګر د دوی مفکورې او کړنلارې د څو مذهبي افرطګرایانو د مکتب نښې درلودې. د دوه مکتبو سلفي ګري او دیوبندي د تاثیر څخه سربېره، طالبان د وهابیت تر تاثیر لاندې هم وو.طالبان ډېر د دې نظر ته چې دیوبندي عمل وکړي، ټولنیز پوړیز او قومي چلند کوي. دوی حتی د اخوانیانو، جماعتیانو او مودودیانو سره هم جوړښت نه لري او د عشیره او د قبیلي عرف او رواج پر دین دوی ته ډېر اهمیت لري.

د طالبانو د ډلې ډېر غړي هغه پښتانه وو چې د پاکستان په شمال لوېدیځو سیمو کې وو او د ډېورینډ کرښې په دواړو خواوو کې مېشت وو. د دې سربېره د هغو پښتنو شمېر چې د قدرت د یو طرفه تمرکز څخه د تاجک ټبره اسلامي جمعیت ګوند د رباني – مسعود او په ځانګړې توګه پنجشیریانو لخوا د حکومت د انحصار څخه ناراضي وو او همدا راز پخوانیو خلقیانو هم د طالبانو څخه ملاتړ کولو. د ملا اخترمحمد منصور له وژل کېدو وروسته د طالبانو اوسنی مشر، ملا هیبت الله اخوندزاده دی.

پاکستان ته د کډوالو زیاتېدل،په کمپونو کې د ننه د نوي مدرسو په برخه کې د ډېرو محدودیتونو سبب شول، په دې ډول چې د دې نویو مدرسو کم امکانات،چې د دې توان یې نه درلود چې دومره ډېر ځوانانو ته تدریس ورکړي. دا په داسې حال کې چې دیني درسي مرکزونه په خپل دې دوران کې د اعظمي حد څخه اضافه، کولی شو چې طالبان جذب کړي او د خپل ظرفیت څخه اضافه طالبان ځای کړي. د پاکستان اسلامي تندروه ګوندونه لکه جمعیت العلما

اسلام، اسلامي جماعت، د اهل حدیث جمعیت، د دیني او قومي انګېزو تر تاثیر لاند (پښتون پالنه) د کډوالو مرستې ته را ودانګل، او د دوی د ماشومانو لپاره یې، ډېر شمېر دیني او مذهبي د زده کړې مرکزونه پرانیستل، او یا دا چې هغوی یې د خپلې ډلې پورې تړلې مدرسو ته نیول، چې د پاکستان په مختلفو ښارونو کې وې. هغه په لسګونو مدرسې چې د جمعیت العلما اسلام لخوا یې بنسټ کېښودل شو، افغان ځوانان یې جذب کړل. افغانان هم، ځکه پورته ذکر شوې مدرسې، وړیا وې او د قران کریم او نورو دیني مسایلو تدریس هلته کېدو، دې مدرسو ته ورتلل. په دې اساس د طالبانو لومړنۍ د زده کړې دوره په دې مدرسو کې وه، او طالبان هم د دوی د درسي موادو تر تاثیر لاندې راغلل.

احمد رشید د طالبانو په اړوند داسې لیکي: **د طالبانو ډېر شمېر د پاکستان د کډوالو په کمپونو کې نړۍ ته سترګې پرانیستلې او د هغوی په مدرسو کې یې زده کړې وکړې، او د جهاد په دوران کې جنګي مهارتونه زده کړل. ځوان طالبان په ډېره کمه اندازه د خپل هېواد او د هېواد تاریخ په اړوند معلومات لري، مګر د مطلوب او د دوی د خوښې اسلامي ټولنې په اړوند چې د حضرت محمد ص په وخت کې ۱۴۰۰ کاله دمخه منځ ته راغلي وو،د خپلو مدرسو څخه یې، په کافی اندازه معلومات لاسته راوړي دي، او د هغه تطبیق اوس غواړي.؛** (همغلته، ص ۳۷).

بېنظیر بوټو د طالبانو د مدرسو سره د مبارزې د رد کولو په اړوند خپل دلایل چې اکثر طالبان هلته زده کړې کړي او روزل شوي دي، داسې بیانول: موږ نشو کولی چې یوسري ټولې مدرسې وتړو او دې خلکو – طالبانو ته اجازه ورکړو چې د هېواد په ګوټ ګوټ کې خپاره شي. موږ دا غواړو چې دوی محدود وساتو.؛ (د فلیپین پلازمېنه مانیلا کې د بوټو خبرې)

## پر طالبانو د پاکستان د اسلامي مفکورې د جریان نقش

## د اهل سنت څلور مذهبونه

فقهی ډېرو اختلافاتو ته په پاملرنې سره چې د سني مذهب د ډېرو غړو تر منځ موجود دي، د دې مذهب د خلکو تر منځ د ځای پیدا کولو په موخه، یو ډول عمومي محدودیتونه منځته راوړل شوي دي.او باید چې د حکومت رول د څلورو مذهبونو د مصادیقو د ټاکلو کې له پامه ونه غورځوو. دا خلک نه وو چې د مذهبونو شمېر محدود کړي، مګر حکومت او دولتونه وو چې دا مصادق یې انحصارول او په ځانګړو حالاتو کې یې، یو مذهب ته نظر بل ته ترجیح او اولویت ورکولو، او کله چې د یو مذهب پیروان د قدرت او د فتوا چوکۍ ته رسېدلي، د خپل نظر لاندې مذهب ته یې ډېر پرمختګ ورکړی او هغه مذهب یې عامه او د ټولو لپاره غوره بللی.د مثال په توګه،حنفي، د خپلو پیروانو او خپلو امکاناتو او قدرت له مخې، اکثر د سنیانو په منځ کې پراخه شوي، قاضی القضات ابو یوسف، د عباسي خلافت چې هغو ډېر احترام ورته درلود، دا مذهب یې ترویج کړلو، او په عملي ډول، هغه کسان چې د حنفي مذهب پیروان وو، هغوی ته به یې د قضا منصبونه ورکړل.د اهل سنت د مذهبونو امامان په لاندې ترتیب سره ذکر شوي:

1. حنفي- ابو حنیفه، نعمان بن ثابت ( ۱۵۰ ه س)

2. مالکي- مالک بن انس ( ۱۷۹ ه س)
3. شافعي- محمد بن ادریس (۲۰۴ ه س)
4. حنبلي- احمد بن حنبل (۲۴۰ ه س)

د هر مذهب زده کوونکي، د خپل مذهب د رییس اثار او د هغه لارښوونو ته په ډېر تعصب سره کتل او هېڅ ډول خلاف ورزي او مخالفت یې ورسره نه منلو. دا عمل د زده کوونکو، د څلورو اهل سنت فقهي مذهبونو د رییسانو د مړینې څخه وروسته په ډېر ملموس ډول سره د اهل سنت په عملي برخو کې تاثیر پرېښود، احمد بن حنبل، محمد بن ادریس شافعي، ابو حنیفه او مالک بن انس.کله د ځینو حاکمانو په ډول حکمونو کې چې دوی صادرول، ډېر کلک اختلاف موجود وو، په داسې ډول چې که د یوې محکمې قاضي مجتهد وو، خپل اجتهاد ته د توجه په اساس یې فتوا ورکوله. دا کار د خلکو لخوا د ډېرو نیوکو سره مخ شو، ځکه، داسې بریښیده چې هره محکمه د یوې قضیې په ارتباط بېله فیصله اعلانوي، نو په دې اساس حکومت دې ته اړ شو چې د محکمو د احکامو د خلکو لخوا د منلو او د دې ډول شخړو د مخنیوي په خاطر،**قضا په دې مجبوره کړه اړ چې د څلورو مذهبونو څخه، په فتوا ورکولو کې،د یو مذهب د لارښوونو څخه یوازې استفاده وکړي** (اسلام کوست نت،۱۳۹۱ ه ل)

## طالباني تفکر او وهابیت

د طالبانو د سیاسي تفکر د پېژندلو په خاطر، د دې کسانو د سیاسي تفکر پوهېدل ډېر ضرور دی لکه، احمد ابن حنبل، ابن تیمیه، محمد ابن عبدالوهاب او د دیوبندي مکتب مفکورې د دوو سلفي گرایانه عناصر، دا ډېر مهم کڼل کېږي. په خلاصه ډول سره،**د طالبانو دیني تفکر په حقیقت کې هم هغه دیوبندي تفکر دی چې د هند په نیمه وچه کې د ؛؛وهابیت؛ نسخه بدیل بلل کېږي.** د طالبانو سیاسي تفکر د سلفي گری د تفکر بیا منځته راوستل دي. **ابن حنبل، ابن تیمیه او محمد ابن عبدالوهاب د حدیث نگری او د سلفیه د جنبش بنسټ اېښودونکي دي.** طالبان د پښتنو قبایلو همغه طالبان دي چې د دیوبندي ډلې لخوا ورته زده کړه ورکړل شوې ده . د دوی د تفکر رېښې باید اول د عربستان په وهابیت او وروسته بیا د پاکستان په دیوبندي کې ولټوو.د طالبانو د جوړښت بل تحریک، نیشنلېست پښتانه او هم د پښتنو خلقیانو ډله وه چې د نجیب الله د دولت د ړنگېدو څخه وروسته، په خاص ډول سره د پښتنو پر ضد د فکرونو په لرلو سره او د رباني-مسعود په حاکمیت او د اقشارو د انحصار په وخت کې د نظار شورا، ستمیان او د شمال اتحاد، دوی د طالبانو د تحریک سره یو لاس شول.

د طالبانو تفکر او وهابیت، په اخیرو دریو لسیزو کې تر ټولو د ډېر تاثیر لرونکي باورونو په شکل، د سني اسلام یو نوی تفسیر دی چې محمد بن عبدالوهاب د هغه مشر وو. هغه د ابن تیمیه پلوي او د هغه د مفکورو پر بنسټ د وهابیت د مکتب پر بنسټ وو. په اوسني حال کې د القاعده او سلفي جهادي ډلې، خپل ځانونه د ابن تیمیه ریښتني پیروان گڼي.

د ابن تیمیه افکار روښانه او صریح دي، هغه د عقل د فکر سره بشپړمخالف دی! او د ژوند د ټولو اړخونو څخه د عقل او د تفکر د استعمال خلاف دی او د فکر کولو او تفکر سره دښمن دی، په استثنا د هغه تفکر چې د نقل تایید په لار کې وي. په حقیقت کې هغه د دې عصر ټول ظاهري بنسټونه ردوي. د هغه په نظر تر ټولو مهم نظر دا دی چې د کفارو سره باید دښمن پاتې شو. هغه په دې لار کې دې ته پرېشاني نه ښايي چې ګنې په دې تګلاره کې غیر مسلمان ته به تاوان پیښ شي او یا دا چې مسلمانانو ته به اقتصادي نقصان پېښ شي.هغه په دې کار کې د تندروۍ او نژادپرستۍ پر بنسټ ډېر پافشاري کوي داسې وايي:دا چې پیغمبر داسې ویلي چې هر هغه څوک چې کافر ته ازار ورسوي، ګنې داسې به وي لکه ماته یې چې ازار رسولی وي، دا یو لوی دروغ دي. د هغه زده کونک القیم الجوزي داسې روایت کړی: د دې په هکله چې یهودان کولی شي په خپل دین ټینګ پاتې شي، دغه ایت ته کتلی شو ؛:قل یا ایها الکافرون لا اعبد ما تعبدون و لاانتم عابدون ما اعبد و ..و ؛ دا ایت له محکماتو څخه دی او منسوخ شوی نه دی، مګر د دې ټولو سره هغه د دې ایت په تفسیر کې  په شخړه کې   شو او داسې یې وویل:هغوی کافران دي او ابدي ځای یې دوزخ دی. ابن تیمیه وايي:هغه کسان چې د اسلام په دین پابند نه دي، دوه ډلې دي: یا کافر او یا منافق او د پیغمبر (ص) هجرت څخه وروسته تر نن پورې، خلک په دریو برخو وېشل شوي دي: مومن،منافق او کافر. د هغه څخه وروسته د غیر مومن (منافق او کافر) وینه یې حلال بللې او حتی په همدې ډله کې د مسلمانانو بله ډله چې د شیعه دولس امامانو څخه دي او د هغوی د پوهې او طریقه د اسلام،له دې څخه پیروي نه کوي، هغه یې هم د منافقانو او کافرانو په ډله کې شامله کړې.

ابن تیمیه د شریعت له نظره، د ښځو او د ماشومانو ازارول، غضب کول او د اموالو مصادره کول او هم د قتل او سلب ....کارونه یې حلال اعلان کړي. مګر د شیعه مسلمانانو په اړوند د ابن تیمیه د حسب پر بنسټ، د دوی کفر د اصلي کافرانو د کفر څخه په کراتو لوړ او لوی ګڼل شوی دی نو په دې اساس د دوی مجازات د اصلي کفارو د مجازاتو څخه ډېر او شدیدتره دی. په هر حال، دا ډول مفکوره او پوهه،د فرهنګ او د پرمختګ لپاره،یو ښه او د احترام وړ مفکوره نه بلل کېږي.

د ؛اهل سنت؛فرقه  چې رېښه یې تر ذالثدیه پورې چې د خوارجو د فرقې رییس وو، پورې رسولې،د اهل سنت په فرقه کې، تر ټولو تندرو ترینه او خشنترینه سیاسي نظریې لري،هغه د اهل حدیث د مهمو پیروانو څخه ګڼل کېږي. هغه د عقل له استعمال څخه ډېر لرې او د حدیث په استناد چې هر څومره ضعیف حدیث او غیر مستند حدیث به هم وو، ډېره مبالغه کوله، او په همغه شان چې مشرانو دې ته د ایمه د حدیث په سترګه کتل مګر د فقهاوو له ډلې یې نه بللو. (سید احمد موثقي – اسلامي معاصر جنبشونه)

د ابن حنبل مذهب چې د قوم پرستی او د کلکو قشري تړاونو پر بنسټ د هېڅ ډول نوښت څخه یې استقبال نه کولو، یو کلک، جمود او تحجر شکل یې ځان ته اختیار کړی وو.د تشیع سربېره، دا مکتب د نورو فکري جریاناتو سره لکه عقل څخه د کار اخیستو، استدلال کول او د روشنفکرۍ پلوي کول او ازاد فکر کولو سره ډېر مخالفت کوي.

محمد بن عبدالوهاب بن سلیمان بن علي بن محمد بن احمد تمیمي (۱۱۱۱ – ۱۲۰۷س) د وهابیت د جنبش بنسټ اېښودونکی په سعودي عربستان کې د حنبلي مذهبه فقهاوو څخه وو چې د ابن تیمیه اثارو تر ټولو ډېر پر دوی تاثیر کړی وو.دی په سلفي ګرۍ باندی په اعتقاد او د اسلامي پخواني سنتونو ته د راګرځېدو په اساس، د وهابیت مذهب یې پیل کړ.د ابن سعود سره د پېژندګلوی او پر هغه د تاثیر کولو څخه وروسته د عربستان د نجد د سیمې حاکم شو، دې دواړو یو حکومت جوړ کړ چې د سیاست جوړولو کارونه ټول د محمد ابن عبدالوهاب په غاړه شول د سلطنتي او حکومتي چارو مسولیت د ابن سعود په غاړه شو. د وهابیه جنبش او د ال سعود کورنۍ، د خلکو په ډله ییزه وژلو د مسلمانانو او وهابیت ته نه راګرځېدلو په جرم د بې ګناه وژلو، وهابیت ته راګرځول او د ځمکو او ملکیت په تسخیر او قبضه، د یو څه وخت وروسته د ټولو عربستان په خاوره خپل کنټرول ټینګ کړ.

د عثماني خلافت ضعف په دې دلیل وو چې خلیفه یې بې کفایته وو او په پرله پسې جګړو کې یې برخه درلود، د انګلستان لخوا، د وهابیت د ملاتړ په اساس د اسلامي مقتدر دولت (عثماني) او هم په اسلامي نړۍ کې د اختلاف د منځته راوړلو په خاطر او په اخیر کې د عربستان د نفت، تیل او ګاز په خاطر او د اسلامي نړی د تضعیف کولو په موخه او د وهابیت جنبش په وړاندې د ناتوانایی په موخه، په دې وتوانیدو چې د استعمارګرانو په پیسو، قدرت او ملاتړ، خپله مفکوره، ټولې نړۍ ته ورسوي، هند یې هم له دې کار څخه مستثنی نه کړ.

په هند کې د وهابیت د جوړښت له اثارو څخه د اصول ګرایی نهضت – سن ګرایي شاه ولي الله دهلوي (۱۷۰۳ – ۱۷۶۳ ز) وو،زوی یې شاه عبدالعزیز (۱۷۴۶ – ۱۸۲۴ ز) او لمسی یې شاه اسماعیل (۱۷۸۱ – ۱۸۳۱ ز) او د دیوبند د مشهورې مدرسې اساس کېښود د قاسم ناتوتوی پواسطه په ۱۸٦۷ ز کال کې،چې بنسټ اېښودونکي یې بنسټپاله حنفیان او ډېر سختګیره وو، په دګماتیزم شکل خپلو درسی موادو یې ټول نوي تفکرات،د پرمختګ د لارې ښوونی لرې او حذف کړي وو.

## په پاکستان کې د اصلي اسلامي فکرونو جریانات

د مهمو مسایلو سره چې په دې اخیرو څو لسیزو کې یې د پاکستان داخلي امنیتي وضع خرابه کړې ده او د دې هېواد بهرنی سیاست یې په ډېره اندازه تر تاثیر لاندې راوستی، هغه د اسلامي ډلو ډېر شمېر موجودیت او د هغوی په شدت سره ډېرېدل دي. دا حالت له یوې خوا څخه د پاکستان د پیدایښت په مفکورې پورې تړلی چې د اسلام د شعار لاندې پاکستان جوړ شو او له بلی خوا د پاکستان د دولت د ابزاري ډول کار اخیستو له سببه په ځانګړې توګه بیا د ضیاو الحق له وخت څخه او له هغې وروسته له افراطي ډلو څخه د جهاد تر پردې لاندې، دې لپاره چې پاکستان خپل سیاسي مقاصدو ته ورسېږي. وو.

د الوهابیت؛ د سایټ په نقل، محمد اکرم عارفي په یوه مقاله کې ؛د طالبانو مذهبي  او قومي بنسټونه؛ تر عنوان لاندې د پاکستان په دننه کې د روانو اسلامي افکارو د جریاناتو په اړوند او د هغوی اثرات د ؛طالباني تفکر؛ په جوړښت باندې، یو ښه بحث کړی دی، چې د هغې بیا کتنه په دې برخه کې په خلاصه ډول سره د افغانستان د معاصر تاریخ د زده

کوونکو لپاره گټور دی. عارفي داسې لیکي چې په عمومي ډول سره کولی شو **درې** مهم **اسلامي فکري جریانات** په پاکستان کې وګورو،چې د ټولو اصلي او اساسي بنسټ، بریالي اسلامي تفکر سره په هندوستان کې (مخکی له دې څخه چې په پاکستان، هند او بنګله پش ووېشل شي) سره نغښتی دی چې خپله په سعودي عربستان کې د وهابیت د تفکر د منځته راتګ علت ګڼل کېږي .په دې ځای کې د ځینو اسلامي پېښو او اسلامي سیاسي مفکورو یادول ضروري ګڼل کېږي. د سلفیه مذهب، د حنبلي سني مذهب د ابن تیمیه پیروان دي چې د هغو څخه کولی شو د عربستان د وهابیت،د هند او پاکستان د دیوبندي، طالبان، القاعده او داعش څخه یادونه وکړو.

**لومړی بهیر، د افراطي بنسټپالو بهیر وو چې رېښه یې د شاه ولي الله دهلوي ـ۱۷۰۳ – ۱۷۶۲)په افکارو کې نغښتې ده.** د شاه ولي الله د نهضت یو پېژندلی شوی عالم، د قاسم ناتوتوی په نامه په ۱۲۸۴ ه (۱۸۶۷ م)کال کې د ؛؛دیوبند؛ په یوه مشهوره مدرسه په یوه سیمه کې چې هغه هم په همدې نامه یادېدله،د هند په اتاراپردېش ایالت کې برانیستله. ؛؛دیوبندي؛؛مدرسه په تدریجي ډول سره په یو فکري مکتب بدله شوه او همدا نوم یې ځان ته غوره کړ چې تر نن ورځې پورې، په هغه کې د زده کړې کوونکي لپاره او یا د هغو لپاره چې د هغه مکتب سره همفکره دی **د هغوی مفکورو ته ؛؛دیوبندي؛؛ ویل کېږي.**؛ د دې مدرسې جوړکوونکي، سخت ګیره حنفیان وو، او د تعلیم، تصوف او فکر کولو په برخه کې، د مذهبونو له ژبو او عقایدو څخه د اشعریه او ماتریدیه څخه سرچینه اخیسته... د دوی مدرسې، نوي زده کړې د خپل درسي موادو څخه ایستل.

دیوبندي مکتب، وروسته له دې چې سیاسي رنګ یې پیدا کړ، تر دې پورې مربوط ملایان د ځینو نورو ملایانو سره چې نورو ډلو پورې یې اړه درلوده، یوه ډله د ؛؛جمعیت العلمای هند؛؛په نامه په ۱۹۱۹ کال کې منځته راوړه. د هند له تجزیې او د پاکستان د منځته راتلو څخه وروسته، د دوی بېلې شوې څانګې د ؛جمعیت العمای اسلام؛تر نامه لاندې په اوسني پاکستان کې خپلو کارونو ته دوام ورکړ. ؛؛جمعیت العلمای اسلام؛؛ د خپل نوي بنسټ اېښودونکي تر مشرۍ لاندې مولانا بشیر احمد عثماني د دیوبندیانو په سیاسي حزب بدل شو.دا ګوند نن ورځ په دوه برخو په اکثریت او اقلیت وېشل شوی دی. د اکثریت ډلې مشري یې د مولانا فضل الرحمن او د اقلیت ډلې مشري یې مولانا سمیع الحق په غاړه لري. دا دوه مشران،دواړه په قوم پښتانه دي او د فکر پر بنسټ دواړه د قران او حدیث او د خلفاوو او اصحابو د سیرت سرسخته طرفداران دي، او د سلف د ملایانو د عقیدو پیروان او د اجتهاد او تجدد مخالفین بلل کېږي. د دې دوو مشرانو اړیکه ؛پښتون قوم دیوبندیان؛ د طالبانو د ډلو سره ډېرې ژورې رېښې لري.

**د پاکستان د فکري جریاناتو دوهم بهیر، د مولاناسیدابو الاعلی مودودي بهیر (۱۹۰۳ – ۱۹۷۹) دی** په لړه اسانۍ کولی شو دې ته د دې هېواد د ؛؛اخواني؛؛ بهیر نوم هم ورکړو. مولانا مودودي د دې سره سره چې یو بنسټپاله شخصیت وو او تر یو حده د شاه ولي الله دهلوي د افکارو څخه هم په اتلسمه زېږدیزه پیړۍ کې متاثر وو، مګر د دې سره سره، د هغه د سیاسي چلند او د هغه په فکري طرز کې د جمیع العلمای اسلام سره ډېر توپیر نه لیدل کېږي. مودودي د اسلام د لومړیو د تاریخ سره د نیوکو او نقدونو باندې معتقد وو او د اسلامي حکومت د ډول په اړوند، د ؛؛الهي جمهوري؛؛ څخه یې (جمهوري تنوکراسي) یاده وله. مودودي د سلفي تفکر تر څنګ، د معاصرو چلندونو د ډولونو څخه په سیاسي

نظام کې غافل نه وو. هغه په څو حزبي نظام او پر ټاکنو یې عقیده درلوده په دیني دولتدارۍ کې یې د موډرنو لارو او کارونو څخه کار اخیستو سره همغږی وو او داسې یې ویل:؛د اطمینان وړ کسانو تشخیص کول زموږ په چاپیریال کې، د هغه لارې سره چې د لومړني عصر مسلمانان وربانديې روان دي، ممکن نه دي... په دې اساس، باید د خپلې زمانې د غوښتنو سره سم، د لارو څخه استفاده وکړو...؛

مودودي په ۱۹۴۱ ز کال کې د ؛؛جماعت اسلامي پاکستان؛؛ د ډلې بنسټ کېښود. دا گوند نن په پاکستان کې تر ټولو لوی اسلامي گوندونو څخه شمېرل کېږي. د ؛؛اسلامي جماعت؛ مشري اوس قاضی حسين احمد کوي. قاضی حسين احمد د لوېديځ نفوذ پر ضد د جگړې او د اسلامي وحدت منونکی او پلوي دی، مگر د مبارزې شکل او تگلاره یې په بشپړ توگه غیر نظامي او د سولې له لارو څخه ده، او د هر ډول نظامي سیاسي تحول څخه وړاندې، فرهنگي او فکري تحول لومړی او غوره گڼي. ؛اسلامي جماعت؛ د افغانستان د جهاد په دوران کې د برهان الدين رباني له جمعيت څخه او د حکمتیار د اسلامي گوند څخه په کلکه ملاتړ کولو.

**په پاکستان کې درېیم اسلامي بهیر د سید احمد خان بهیر دی (۱۸۱۷ – ۱۸۹۸).** سید احمد خان د لیبرال مسلمانانو لپاره ځانگړی مثال د پاکستان د روڼ اندو په منځ کې پېژندل شوی دی.د هغه په اند، قران شریف ته د نورو وسیلو او واسطو څخه پرته، په مستقیم ډول سره باید اړیکه ونیول شي، هغه په همدې باندې معتقد وو او د ؛سنت؛او ؛اجماع؛ونډه یې په سیاسي سرچینو کې د تردید لاندې راوستله.سید محمد خان د عقل گرایی د مکتب تر تاثیر لاندې وو او د اروپا د نولسمی پېړۍ د طبیعي فلسفې اغیز یې پر فکر اچول شوی وو او قران کریم ته یې علمي تفسیر ورکولو.د احمد خان د تفکر په ترځ کې تر ټولو مهمه دا وه چې د لوېدیځ نوښتونو ته یې په ورین تندي کتل. د احمد خان دغه لوېدیځ پلوه نظریات،د سنت پالو مسلمانانو د هغه سره د دښمنۍ علت شو او بلاخره یې هغه د دین څخه د انحراف او د ارتداد په جرم متهم کړ. روشنفکر مسلمانان او د ؛؛مسلم لیگ؛ تر حده،(که هغه یوازې یو ملي گوند و نه بولو) د درېیم بهیر د پلویانو څخه په شمېر کې راځي.

په همغه ډول سره چې اشاره ورته وشوه، دا درې بهیرونه،هر یو په یو شکل سره د هند د مسلمانانو پر افکارو د برېټانیا د واکمنۍ په دوران کې درلود چې د هند په نیمه وچه کې د مختلفو ډلو د جوړېدو رېښه همدا وو.مگر هغه څه چې د شاه ولي الله د دیني فکر ستنه جوړه کړې وه، سلفي گري او بنسټ پالنه وه چې وهابیت سره یې شباهت درلود، تر دې چې د برېټانیا استعماري دولت هغه په وهابیت باندې متهم کړ.دا درې ډوله اسلامي بهیرونه په عمومي ډول سره، د پاکستان اکثر مسلمانانو ته پوښښ ورکوي او د ټولگې له مخې، پکې حوزوي اصناف شته، او د هر یو پوهنتونونه او بازارونه دي. مگر د دې تقسیماتو سره سره د دې هېواد د اسلامي بهیر سره، عمومي جنبه درلوده، بله تقسیم بندي هم شته ده چې هغه د دیني مدرسو، ملایانو او مذهبي روحانیونو سره اړیکه لري. د دوهمې تقسیم بندۍ شهرت او رسمیت په خاصه توگه بیا حوزوي او مذهبي محفلونه،ډېر د پاملرنې وړ دي.

په دې وروستی تقسیم بندی کې، اکثر مدرسې او دیني سنتي ملایان، د فقهې او کلامي گرایشونو له نظره په دوو مهم او لویو ډلو وېشل کېږي،؛**دیوبندي؛؛ ډله او ؛؛بریلوي؛؛ ډله**. دا دوه ډلې د دوه ډوله کلامي او فقهي ډلو استازي دي (د

حنفي فقهې په جوړښت کې) چې هر یو بیا په تدریج سره د خپلواک سیاسي حزب درلودونکي هم دي.**د اعتقاد له نظره دیوبندیان، د وهابیانو سره مکمل شباهت لري.** هغوی د وهابیانو په شان، د نورو اسلامي فرقو په مقابل کې ډېر حساسیتونه ښکاره کوي او د ؛؛شرک او توحید؛؛ څخه خاص تفسیر بیانوي. مگر بریلویان ډېر د تغیر حالت درلود او د ؛؛توحید او شرک؛؛ څخه هېڅ کله هم سخت دریزه او د مشهور په مخالفت، تفسیرونه نه کوي.بریلویان تر یو حده صوفیانه گرایشونه لري.

د بریلوي مکتب موسس رضا خان بریلوي وو (۱۸۵٦ – ۱۹۲۱ ز کال ).**د بریلوي مکتب د محمد بن عبدالوهاب د جنبش په وړاندې د دریز او د شاه ولي الله، شاه اسماعیل او د دیوبندي ملایانو د دیني عقایدو سره په اختلاف درلودلو منځته راغی.** په پاکستان کې د دې ډلی سیاسي استازی د ؛؛جمیعت العلمای پاکستان؛؛ ډله ده چې مشري یې د مولانا شاه احمد نوراني او عبدالستار نیازي په غاړه ده. د ؛؛دیوبندي؛؛ مکتب په اوسني پاکستان کې، د ؛رسمي دین؛ استازی گڼل کېږې او د اهل سنت د مسلمانانو په منځ کې اکثریت گڼل کېږي. په دې هېواد کې د دیوبندي پلویان، د تل لپاره د ډېرېدو په حال کې دي. په اخیرو دوه لسیزو کې، د دیوبندي وده، د اسلامي بنسټپالنې د ودې له وجهې په سیمه او د عربستان د پراخو پانگه اچولو له وجهې همدا راز د ضیا الحق او د هغه د پلویانو څخه یې ملاتړ کولو، په پایله کې، لا نور گړندی شو.

په پاکستان کې د دیوبندي ډلې پورې اړوند مهمې ډلې دا دي: جمعیة العلمای اسلام؛؛، ؛سپاه صحابه؛؛، او جمعیت ؛؛اهل حدیث؛؛ دا دری لوري، د دیوبندي مکتب اړوند دي او مشابه یا یو بل ته ورته عقاید،شعارونه او بهرنی ملاتړ او پلویان لري. د دې دریو اړخونو یوازېنی توپیر دا دی چې ؛جمعیة العلمای اسلام؛؛ د فضل الرحمن او سمیع الحق په مشری، د یو سیاسي گوند په شکل د هېواد سیاسي صحنې ته داخل شو په داسې حال کې چې ؛؛سپاه صحابه؛؛ او ؛؛اهل حدیث؛؛ په ترتیب سره فرهنگي فعالیتونه پیل کړل.

د طالبانو جنبش، یاد شویو دریو ډلو سره ډېرې نیږدې اړیکې لری، او د دوی ټولو لخوا ورسره معنوي، مادي او حتی انساني مرستې ورسره شوې دي. په عین حال کې، دا اړیکه د ؛؛جمعیة العلمای اسلام؛؛ سره د فرهنگي، ژبنیز او نژادي دلایلو پر بنسټ او هم د سیاسي تجربو له مخې، په عمل کې د نورو دوو ډلو څخه اضافه دي. مولانا فضل الرحمن او سمیع الحق، دواړه پښتانه دي او د بلوچستان او پښتونخوا په ایالتونو کې چې د پښتنو اصلي ټاټوبی شمېرل کېږی، کې ډېر نفوذ لري.د افغانستان د دینی علومو طالبان، د دیوبندي مدرسو سره ډېره پخوانی اړیکه د هند په نیمه وچه کې لری. د هند د تجزیې څخه وړاندې او د پاکستان په نامه د هېواد د جوړېدو څخه د مخه په ۱۹۴۷ کال کې، د افغانستان اکثر اهل سنت د دیني زده کړو طالبان د خپلو زده کړو د دوام په موخه د هند دیوبندي مدرسې ته ورتلل.

عزیزالرحمن سیفي چې د سلیمان ندوی او شبلي نعماني د اثارو ژباړونکي دي، په دی برخه کې یط ډېر مهم رول لوبولی، او د هغه ژباړې په ۱۳۴۰ او ۱۳۵۰ لسیزو کې د ؛؛پښتو ټولنې؛؛ له لارې په کابل کې چاپ شوې دي . افغانستان ته د دیوبندي لیکې رگونه،له همدې ځایه راخپاره شول، مگر د دې پردیتوب د افغانستان د رسمي لید لوري سره، د هغه په لویه کچه د منل کېدو مخه ونیوله. الیورروی چې د افغانستان په چارو کې یو لوېدیځ څېړونکی او کارپوه دی، په دې

هېواد کې د ديوبندي مفکورې د نفوذ په اړوند د انقلاب څخه  وړاندې  ، داسې ليکي: ؛؛په ۱۹۴۷ ز کال کې د هند د تجزيې څخه وروسته، ډېر افغان طالبان، هغو مدرسو ته چې دوی ته په سرحدي او شمال لوېديځو ايالتونو کې نيږدې جوړ شوي وو، ته ولاړل.اکثر دا طالبان پښتانه، نورستاني او ځينې بدخشي وو. ځينې يې د اهل حديث په ايديولوژی باندی باورمنده شول  کله چې افغانستان ته بېرته راستانه شول، د تصوف او حنفي مذهب په  وړاندې  په مبارزه پيل وکړ. د مثال په توگه،محلي زيارتونه يې رنگ کړل. حنفي مذهبو اکثرا دوی ته د ؛؛وهابيانو؛؛ خطاب کولو، مگر دوی خپل ځانونه سلفيان بلل.؛؛ د افغانستان د طالبانو او ملايانو تر منځ فکري اړيکه له يوې خوا څخه او په پاکستان کې موجوده د ديوبندي مکتب د نفوذ موجوديت بلې خوا څخه، د تېرو لسيزو په ترڅ کې څه نا څه موجود دي.دا اړيکه د افغانستان د جهاد د دوران څخه د مخه، يو طبيعي او ارامه حالت درلود، مگر د جهاد د پيل کېدو څخه وروسته يې توپير وموند او د وارخطايی او عجلې ډول يې ځانته ونيولو.

د دې بهير چلند کې هغه وخت د عجلې نښې نښانې او د وارخطايی اثار ښکاره کړل چې، پاکستان او عربستان دواړو دا تصميم ونيولو چې د دی په عوض چې د منځلارو اسلامي گوندونو څخه د افغانستان په قضيه کې، د اسلامي تندرو گوندونو څخه ملاتړ وکړی. همدا وو چې جمعيت العلمای اسلام او اهل حديث دواړه د قوي مالي او سياسي ملاتړ سره چې د هغو هېوادونو څخه يې لاسته راوړی وو، د اوږد مهاله طرحو او بنسټيزو پلانونو سره د افغان مجاهدين او مهاجرينو لپاره يې تر کار لاندې  ونيولې او په ډېر حوصله مندی سره يې، د هغه د بشپړولو په خاطر په کار بوخت شول. ؛؛اهل حديث؛ د عربستان د خيريه موسسو د مالي او فکري ملاتړ سره، د فرهنگي  پروگرامونو د جوړلو سره بيره د زده کړې فعاليتونه  د پاکستان په دننه، او د افغانستان په ختيځو ولايتونو کې هم په فعاليت راوستل.

د طالبانو سخت دريځه او له قهره ډک چلند او د اسلامي انقلاب حرکت د جهاد په وخت کې د افغانستان په ځينو سيمو کې د ټولو په ژبو و. مگر هغه څه چې په اخير کې د طالبانو او د دوی د پاکستاني ملاتړو څخه ؛؛جمعيت العلما؛؛ د اتلانو او ناجی تصويرونه يې ورته ورکړل، هغه توپيرونه او تحولات وو چې په ۱۹۹۲ ز کال کې د افغانستان په نظامي صحنه کې راښکاره شول. په دی تحولاتو کې  ؛جمعيت العلما؛؛ د فکري او ايديولوژيکي  اړخونو څخه او حتی له عملي نظره، مرکزي رول درلود، او د طالبانو په منځ کې يې نوم درلود او لري يې، دا ځکه چې ؛؛جمعيت العلما اسلام؛؛ د ښوونې او روزنې په ډگر کې د ماشومانو او د نوي ځوانانو لپاره،ډېر مهم او موثر رول درلود،چې د عقيدې او مذهب تر نامه لاندې  وو.؛؛

قومي، فرهنگي، ژبنيز او قبيلوي مشترکات د جمعيت العلما اسلام مدرسو ته د افغان ځوانانو د جذبېدو سبب شو، چې په پايله کې،د دوی د بی خبری په حال کې د ديوبندي زده کړو د جمعيت العلما اسلام په مدرسو کې، سره اړ شول. **طالبانو چې يو پراخه ليدلوری نه درلود،د کليو او بانډو څخه مستقيما د جمعيت العلمای اسلام سره يو ځای شول، د ديوبندي په بې قيد مريدوانو بدل شول. د دې له مخې د طالبانو د اسلام څخه سختگيره تعبير او  د ښځو په وړاندې دوی ليونی تعصب، ټول د همهغه ځای څخه منشا اخلي.** په عمومي ډول سره، هغه مدرسې چې په پاکستان کې د ديوبندي ډلی پورې اړه لري په  لاندې  ډول دي: د خيبر پښتونخوا ايالت په اکوړه ختټک حقانيه

دارالعلوم، په لاهور کې د اشرفیه مدرسه، د بنوی ټاون د جامعه کده دارلعلوم په کراچۍ کې، په سند کې د تندو الله یارخان دارالعلوم، په لاهور کې د جامعه مدینه،په ملتان کې د خیرالمدارس مدرسه او داسې نورې ځینې مهمې مدرسې په کویټه بلوچستان کې. پر هغو سرچینو او منابعو باندې چې د طالبانو پر فکر، او د دوی د زده کړې او روزنې په اړوند وویل شول، د طالبانو دیني تفکر بهیر هم تر یو حده ممکن واضیح شي.

د طالبانو او د دیوبندي فکري څرنګوالی د لا نور روښانه کولو په موخه، د دوی په فهم او فکر کې یو څو مسایل د څېړنې لاندې نیسو. دیوبندي او نورو بنسټ پالو افراطي ډلو په سیاسي تفکر کې چې طالبان یې په جمع کې حسابېدی شي، تر ټولو مهم اصل، د اسلام په سیاسي نظام کې د خلافت د اصل بیا راژوندي کول دي. هندي شاه ولي الله د اسلامي بېداریدو نهضت سلسله په هغه نیمه وچه کې چې د دیوبندي مفکورې مکتب هلته دی، هم له دې افکارو څخه متاثره شوی دی.د ټولنې په اسلامي کېدو کې، تر ټولو مهم رکن، د اسلامي خلافت په ټولنه کې بیا را ژوندي کول مني. شاه ولي الله د نورو اهل سنت د پوهانو په شان، د اسلامي خلافت د جوړېدو لاره په څلورو ټکو کې خلاصه کړې ده : د اهل حل او عقد بیعت،شورا، نصب او غلبه. په زړه پورې دا ده چې شاه ولي الله د خلیفه د ځانګړو صفاتو څخه یو ؛؛نسبي او قومي شرافت؛؛ بولي، چې دا د طالبانو د ننني مکفورې سره، چې خپل ځان د یوې برتره او بهتره قومي ډلې سره منتسب کوي (پښتون)، سره په بشپړه توګه جوړ دی .

طالبان د خلافت پر اصل د اعتقاد سره، په افغانستان کې د هر ډول بریالیتوب د لاسته راوړنې څخه د مخه، په عاجل ډول سره د خپل راتلونکي احتمالي دولت خلیفه، د کندهار څخه غوره کوي او د ابولکلام ازاد نتوریسین جمعیت العلمای هند تئوري ؛؛اسلامي امارت؛؛، یې په دې شکل په افغانستان کې ښکاره کړ.تئوري ؛اسلامي امارت؛؛ د لومړي ځل لپاره د هند د نیمه وچې په معاصر تاریخ کې د ابولکلام ازاد او د هند د جمعیت العلما اسلام لخوا وړاندېز کړلی شو، او د جهاد په دروان کې، د دیوبندي پیرو وهابي ډلې،هغه یې د هېواد دختیځو ولایتو نو په ځینې برخو کې او د هېواد سوېل ختیځ کې تجربه کړ، او هم دا چې،طالبان هم د جمعیت العلمای هند د فکري ډلو څخه شمېرل کېږی، دا طرحه یې په افغانستان کې پلې کړه.

په تئوري کې ؛؛خلافت؛؛ او ؛؛امارت؛؛ هغه ډول چې طالبان یې بولي،خلک او ګوندونه ځای نه لري. ځینې د قومونو مشران او دیني عالمان د اهل حل او عقد تر نامه لاندې سره راټولېږي او یو کس د دې چوکۍ لپاره غوره کوي، په همدې ترتیب سره د ټول هېواد قدرت د امیر المومنین په نامه یو شخص ته انتقالېږي. طالبانو په واضیح ډول سره اعلان وکړ چې ؛؛په افغانستان کې به ټاکنه یا ټاکنې نه کېږي، ځکه ټاکنې یو غیر اسلامي عمل دی. د لوېدیځ فرهنګ او تمدن سره په عمومي ډول سره مخالفت کول، د ټولو اسلامي ډلو یو اساسي شعار دی،**مګر هغه بنسټپاله افراطیت چې د طالبانو ډله د نورو اسلامي ډلو څخه بېلوي،د هغوی په وسیله د لوېدیځ مدنیت مطلقه نفی دی.** نورې اسلامي ډلې لکه اخوانیان، د لوېدیځ تمدن باندې نیوکې کوي او د هغه د منطقي جنبو لرلو سره سره، د هغه د مثبتو جنبو د منلو څخه هر کلی کوي په داسې حال کې د طالب او د دیوبندي مکتب او وهابي مکتب، د کار په پیل کې د هر ډول لوېدیځ تمدن سره یې مخالف وکړ او وروسته یې په تدریجي ډول سره، محافظه کاریو باندې شروع وکړه . غیر نقادانه

چلند کول،که د لوېدیځ فرهنګ په منلو یا نه منلو کې وي، د خپل ځان سره ډېر خنډونه منځ ته راوړلی شي. د طالبانو تعصب امېزه مخالفت د تلویزیون، د فلمبرداری د وسایلو سره، د دودیزو کالیو او جامو سره، سینما او داسې نورو سره، د دوی د لوېدیځ تمدن پر وړاندې د ښکاره مقاومت او مخالفت ښکارندوی وو.

د طالبانو په نزد سینما او تلویزیون د لهو او لعب د ؛؛شیطانی ابزارو؛؛ په قطار کې حسابېږي، چې په دین کې مشروعیت نه لري. او دکابل ښار کې طالبانو د تلویزیونونو جمع کول وو دوی د خپل امربالمعروف او نهی عن المنکر ډلې پواسطه د کړنو په اړوند داسې ویلي وو:؛؛د دوو تېرو ورځو په ترڅ کې، د ښار د مختلفو سیمو د پلورنځایونو څخه د سلو څخه ډېر تلویزیونونه راټول شوي دي ؛؛ هغه وویل ؛؛راټول شوي تلویزیوني دستګاوې، سوځول کېږي او یا هم له منځ وړل او ماتېږي ؛؛. د تلویزیوني او تصویري منابعو سره د طالبانو مخالفت تر هغه حده ډېر شوی دی چې امیر خان متقي، د طالبانو د اطلاعاتو او فرهنګ وزیر داسې وایي: ؛؛د دې څخه وروسته به خلک په خپلو کورونو کې تصویرونه او فلمونه نه ساتي، ځکه دامسئله د اسلام سره په تضاد کې ده؛؛. داسې برېښي چې طالبان د لوېدیځ تمدن سره د مقابلې په ښکاره کولو کې، له ټکر سره مخ شوي دي. ځکه چې دوی د یوې خوا څخه د لوېدیځ تمدن او فرهنګ سره خپل ښکاره مخالفت څرګندوي او له بلې خوا څخه،په خپلو ورځنیو چارو کې د هغو څخه په عملي ډول سره کار اخلي. د طالبانو په لیدلوري کې یو پیچېدلی او اساسي خاص اړخ، بنسټپاله افراطیت دی چې په مجموعي ډول سره،د تعبد ګرایی روح کلامي او فقهی لاسته راوړنې دي.

افراطي بنسټپالنې، د اسلام د لومړني وختونه او منځنی دوره، مصؤن او د هر ډول خطا څخه پاکه دوره بللې ده، او د دې دیني دورې د تفسیرونو او خبرونو په اړوند، د استثنا څخه پرته عقیده لري. نوی اجتهاد او استنباط، په دې مکتب کې ځای نه لري او خلک د تل لپاره د سلف د ملایانو د نیوکو او خبرو څخه پلوي کوي. د دوی صرف تقلیدي دیني حرکات، د دوی د معاصرې اسلامي نړی د ژوند او څرنګوالي سره، د دوښمنی سبب ګرځي.

د افراطي بنسټپالو په نزد، یوازېنی مطلوب نمونه د اسلام د لومړنیو پېړیو،کلیوالي ژوند او هغه دودونه دي او د ښځو سره د هغوی وچ او متحرانه چلند او د دوی د لیدلوری او نظر د ښځو په ټولنه کې، تربیتي ونډې په برخه کې، دا ټول د دوی د سلفي ګری څخه رېښې اخلي چې د دنني ژوند د ضروریاتو سره په بشپړ توګه په تضاد کې دي.همدا راز د دوی تفسیر د ؛توحید او شرک؛؛ څخه چې د افراطي بنسټپالنې د تفکر کلامي بنسټ پرې ولاړ دی، تشکیلوی،د دې مفهومونو د رایج تفسیرونو سره په مغایرت د نورو اسلامي مکتبونو سره دی. شاه ولي الله د هند، په نیمه وچه کې د بنسټ پالنې د فکري مکتب مشر، د ؛؛توحید؛؛ دایره تر هغه ځایه راتنګوي،چې حتی ظاهري استمساک نورو شیانو ته چې د الهي قدرت په لار کې په نظر کې نیول شوي وي، هغه شرک بولي.

د شاه ولي الله دهلوي له لیدلوري، نذر اخیستل د ایمه لپاره او د دوی په نامه قسم خوړل، او د اولادونو نومونه اېښودل لکه ؛؛عبدالشمس او نور، د شرک له کارونو څخه شمېرل کېږي. د همدې شان تفکر لارې دي، چې د طالبانو په مشرتابه کې هم لیدل کېږي، طالبان د خپل سختګیره اسلامي تفسیر له لارې، د خلکو شخصي ژوند او د خلکو شخصي حریم د نظارت او د خپلو مامورینو د نظر لاندې ساتي او ؛؛ د سر د وېښتانو د اوږدولو؛؛ څخه تر ؛؛د مخ د وېښتانو د لنډولو؛؛ تر

عمومي حمامونو او د ښځو د کور له چاپيريال څخه دباندې وتل، ټول اکثرا د دوی د حکومتي ضوابطو لاندې راغلل. او همداراز د توحيد د اعتقاد په مسئله کې او د شرک د مظاهرو په اړوند د مبارزې په هکله، تر هغه اندازې په شدت عمل وکړ چې حتی د تصويرونو ساتل او د ماشومانو د لوبو اسباب په کور کې ساتل يې، د اسلام د توحيدي عقايدو ضد اعلان کړ.

د وهابي ډول څخه افراطي بنسټپالنه، د ؛؛تکفير؛؛ د حربه سره په ارتباط، د خپل فکر څخه ايسته، د ټولو مذهبونو سره يې مغايرت درلود او د خپل ځان څخه په غير، نور ټولې ډلې يې باطل او يو شان ګڼلې. په پاکستان کې د ديوبندي مکتب، خپل فکر رقيب ګوند ؛؛بريلوي؛؛ چې د حنفي مذهب سنيانو بله ډله ده، يې کافر اعلان کړی وو او د دوی سره مخالفت کول يې خپل شرعي برخه بلله، تر دې ځايه چې ؛؛سپاه صحابه؛؛ د خپل رامنځته راتللو په سر کې، د شيعوو او بريلويانو سره مبارزه، دواړه د خپلو اصلي اهدافو په اوږدو کې ذکر کړي وو، اما د دې ډلې د سياسي کېدو څخه وروسته، يوازې شيعه ګان د دوی د اصلي دښمن په نامه ومنل شو. د ديوبندي مکتب په مفکورو کې د شيعوو سره دښمني،ډېره لرغونې ده.

په افغانستان کې د طالبانو جنبش همدا شان د شعيه ضد فکر لري. طالبان د دې څخه وروسته چې د مزار شريف ښار يې په ۱۳۷۷ ه ل کال کې ونيو، د شيعوو د قتل عام کولو امر ورکړ او د هغوی نظاميانو، په ډليزه ډول سره شيعه ګان د ؛؛رافضي؛؛ او ؛؛کافر؛؛ تر نامه لاندې په خاورو او وينو کې ولړل.د طالبانو کسان چې مزار شريف په اوله جګړه کې (۱۳۷٦) د اسلامي وحدت د ګوند په لاس بنديان شول، په ښکاره يې د ازبکانو په وړاندې ؛د جهاد ضرورت؛ او د ؛متحد جبهې؛؛ په وړاندې په مړينه يې د ؛شهادت؛؛ غوښتنه له خدای څخه کوله.د طالبانو دښمنی د ايران سره هم د دوی د همدې نادرسته باور سره اړيکه لري، لکه چې د دوی همفکران (ديوبنديان) په پاکستان کې، خپله ښکاره دښمني د ايران د شيعوو سره پټه نه ساتي. د خپل ځان پر حق ښکاره کول او د نورو ډلو په مقابل کې تعرضي مفکورې درلودل،د طالبان بشپړ قهرجن تصوير او د دوی د نه بدلېدونکي حالت ښکاره کونکی دی.د دې تفکر بشپړ حاکميت پيدا کول پر سياسي او ټولنيز ډګر کې، د فکر د ازادۍ، عقيده او بيان، او په پايله کې د علم او د پوهې او د خلاقيت په ډګرونو کې د لوی خطر عامل کېدی شي.

معمولا به هغه نظام کې چې د افراطي بنسټپاله اداري لاندې وي، د خلکو مهم حقوق د سياست او ټولنيزو چارو په ډګر کې، په نظر کې نه نيول کېږي، او د هغه په سيوري کې مهم جوړښتونه له منځه ځي، لکه چې نن ورځ د طالبانو د اداري لاندې سيمو کې، په واضيح ډول سره د دې نمونې ليدل کېږي.جهادي مشهور ګوندونه او سياسي او علمي خپلواک شخصيتونه، د طالبانو په سياسي اداره کې،ځای نه لري.د مخالفينو رسنی او خپرونې، د اسلامي او علمي پېژندنې سره سره، رخصت شوې او علمي او لرغونې پانګې، د ناروا‌وو تعصباتو څخه قرباني شوې او اکثر له منځه ولاړل او يا د نابودۍ په حال کې دي.

د پښتنو د عمومي فرهنګ د تاثير منلو ميزان د نورو قبايلو د دودونو او ادابو څخه، د دې هېواد د نورو فرهنګونو څخه په ډېره پيمانه ډېر ليدل کېږي. د افغانستان پښتانه د ځانګړو دودونو او ادابو درلودونکي دي چې د ؛؛پښتنولۍ؛؛ په

نامه يادېږي. ؛؛پښتنولي؛؛ د پښتنو په عرف کې ؛؛هم د قوانينو او هم د ايديولوژيو ټولګه؛؛ ؛؛د پښتنولۍ قوانين او احکام، د پښتنو د کړنې او انساني اړيکو، لويه برخه په ځان کې لري. د دې ټولګې د ټولو څخه لوی اصول هغه قوانين دي چې د انساني کرامت پر مبنا، مېلمه پالنه دی.؛؛. تل پاتې قبيلوي پيوندونو ته په پاملرنې سره، او د پښتنو په ټولنه کې د پښتنولۍ د سنتونو ملي استحکام، دا ډله د خپل همنژادي اوسيدو په اړوند، ډېر د کلک نژادي ارتباطي احساس درلودونکی دی او يو بل سره مرسته کول د خپلې قبيلوي دندې څخه ګڼي.د دې ؛؛تعلق درلودلو احساس؛؛ په شديد توګه د يو بل په خاطر موجوديت دی، د دې سبب شو چې دا قوم، د دې سره سره چې داخلي ډول ډول شخړې موجودې وي، دا دښمنۍ يې په حساسو شرايطو کې يوې خواته پرېښې، او په موقت ډول سره د ګډ راتلونکې په اړه موضوع کې، سره يو ځای کېږي.

په پاکستان کې د ؛؛پښتونستان؛؛ تاريخی مسئله، د دې خلکو د وينې په اړيکه کې ريښې لري چې د ؛؛ډېورنډ د کرښې؛؛ دواړه خواته پښتانه، د دې سره سره چې په دوو ښارونو کې اوسېږي، هېڅ وخت يې، يو بل له ياده نه دي ايستلي. که نن ؛؛جمعيت العلمای اسلام؛؛ د مولانا فضل الرحمن او سميع الحق په مشرۍ او پرون ؛؛جماعت اسلامي؛؛ د قاضی حسين احمد په مشرۍ د ټولو امکاناتو سره او د پاکستان د خلکو او د ملت د مصالحو سره سره، د افغانستان د اسلامي ډلو پلوۍ لپاره په چټکۍ اقدام وکړ،پرته د دوی د قبيلوي او پښتونولۍ تاثير او قومي تمايلاتو څخه نه وو.د دې سربېره، درېواړه يادو مشرانو چې د افغانستان په قضيوو کې فعال دي، د پښتون قوم پورې تړاو لري.د دی په اساس، کولی شو ادعا وکړو چې ؛؛عرف او سنت؛؛ د پښتنو په ټولنه کې ډېر مهم ځای درلود او لري يې.

اوس چې د پښتنو په دود او فرهنګ کې د عرف او سنت د ځای په اړوند معلومات لرو او ورته مو پام شو، دا سنت او دا فکرونه د طالبانو د جنبش د مشرانو په اړوند په خلص ډول سره د څېړنې لاندې نيسو. د طالبانو جنبش د افغانستان د پښتنو د ټولنې څخه د پاڅيدلي جنبش تر نامه لاندې، په تيره بيا د کليوالو او غير ښاري خلکوو له ډلې څخه چې سنتي او قومي اړيکې يې حتی ډېرې دي، نشي کولی چې د تاثير منلو څخه لرې وي.

د طالبانو د پښتنو د فرهنګ د تاثير د منلو اساس،د دوی د ديني قوانينو څخه د تفسير ډول څخه په بشپړ ډول سره محسوس دی. د طالبانو پر ديني فکر، د پښتون فرهنګ د تاثير ډېر مهم قدم،د سياسي نظام او هغه ته د مشروعيت ورکولو د غوره کولو ډول دی او پکې ليدل کېږي، د مثال په توګه،د نظام مودل ؛؛خلافت؛؛ د طالبانو په اساسي فکر کې، د دې سره سره چې په اصل کې پخپله يو اسلامي مودل دی،چې هېڅ مسلمان د هغه په اسلامي اوسيدو کې ځان ته د ترديد اجازه نه ورکوي.

هغه ځای چې ؛؛ښځه؛؛ د طالبانو په ديني حکومت کې ګټلی دی، د هغه ځای څخه توپير لري چې ؛؛ښځه؛؛د پاکستان د ديوبنديانو په وړاندې يې لري. دط کې شک نشته، چې د ديوبندي مکتب اصل، په ټولنه کې د ښځو د کور څخه په بهر ټولنه کې نه مني،مګر د دې سره سره، هغه محدوديتونه چې طالبانو پر ښځو راوستل،د جمعيت العلما اسلام د پاکستان سره، هېڅ د مقايسې وړ نه دي .په پاکستان کې د طالبانو سفير عبدالحکيم مجاهد د نجونو د زده کړو په څرنګوالي باندې د طالبانو د سنتي ليدلوري په اړوند داسې وايي ؛؛زموږ ټول د پوليسو او اردو ځواکونه، په خپله خوښه

د زړو او سنتي ځايونو څخه دي، او په دې باور دي چې د نجلۍ مدرسې ته لېږل، د بی شرمۍ کار دی. ؛؛تاوتريخوالی کول او بدلون نه منل؛؛ د طالبانو په سياستمدارۍ کې، دوه نور خاصيتونه دي.

د طالبانو جنبش، داسې يو جنبش دی چې د فکري اړخه، د افغانستان د سرحدونو څخه، بهر تغذيه کېږي. د طالبانو اوسني سياسي مذهبي تفکر،د افغانستان په ټولنه کې، پېژندل شوی اسلامي ريښې نه لري. په افغانستان کې مروجه تفکر، اخواني، ليبرالي او اصلاحي د هغوی د تګلارې د ډول څخه دی، او د طالبانو د بنسټپاله ډول، يوازې په کليوالي سيمو کې، په غير مکمله توګه،موجود وي، چې هېڅ وخت د يو جدي تفکر په شکل ورته پاملرنه نه وه شوې. مګر په دی هېواد کې د اخيرو دريو لسيزو تحولاتو، تاريخي شرايطو ته پاملرنه، د طالبانو د تفکر د ډول د ودې سبب شو.

د دې سره سره چې د طالبانو تفکر په ظاهر کې د خالص اسلامي تفکر تر عنوان لاندې په افغانستان کې تبليغ کېږي او تر دې حده چې ځينې ګاونډي هېوادونه يې هم د خپل دينی ماهيت تر تاثير لاندې راوستي دي، مګر د افغانستان قبيلوي سنتونو ته د يوې ژورې کتنې او د عرف ؛؛دودونو؛؛ د رول د څېړنی څخه وروسته، کليوالي فرهنګ او د هېواد په قبايلو کې، دا زده کوو چې نوی تفکر، په همغه اندازه چې مذهبي اړخ لري، قبايلي اړخ هم لري.د دې ادعا سموالی په داسې حال کې چې د طالبانو مفکوره تحليل او د افغانستان د ټولنې په داخل کې د هغه او د دوو مورنيو هېوادونو چې پاکستان او عربستان دي، سره مقايسه کړو، دا لا نور واضيح او روښانه کېږي. په عين حال کې، د طالبانو د جنبش مفکوره د محلي ځانګړيتوب او د نني فرهنګ د تاثير او تفسيرڅخه پرته، داسې يوه مفکوره ده چې د هند په نيمه وچه او د فارس خليج د ځينو هېوادونو د رسمي مفکورو په شکل مطرح وو، او د خلکو د پرتلو په منځ کې (پېژندل شوي کسانو کې) يې ژورې ريښې موندلې وې.

**د پښتنو د دوديزه سيستم سره د طالبانو دننه تضاد**

مګر بايد له ياده و نه باسو هغه کسان چې د طالبانو جنش ته د پښتون قوم ځانګړي جنبش په سترګه ګوري، د ؛پښتنولی؛ د ارزښتونو د موجوده تضاد د څرنګوالي او د طالبانو د جنبش د مذهبي عقايدو تر منځ د ژورو تضادونو په اړوند معلومات نه لري. يو هزاره څېړونکی د صاحبنظر مرادي په نامه د وضع شويو مقرراتو په اړوند چې د احمد شاه ابدالي لخوا وه،داسې ليکلي؛؛ احمد خان ...د خپلو قبايلو د مشرانو د لارښوونې په خاطر د دې ډول ديني، سياسي او نظامي اساسنامی څخه استفاده وکړه. د دې ډول مقرراتو څخه په ښکاره ډول جوته ده چې احمد خان يوازې او يوازې په فقهی او اسلامي شرعي احکامو اکتفا ونکړه د خپلو قبايلي مشرانو د خاصرو مقرريو ضرورت يې د خپلو قبايلو مشرانو او د دوی په مديريت کې احساس کړ.؛ د احمد شاه ابدالي لخوا د مقرراتو او قوانينو د وضع کېدو علت دا وو چې د ؛پښتنولی؛ اصول لکه چې پورته پر هغه د اوليور روی له ژبې مو هم ولوستل،د قانون په سطح د ؛شريعت؛ سره په تضاد کې دي. د پښتنو په سنتي ټولنو کې پښتنانه، په کليو کې، د ملا په سطح نه دي، لکه د غير پښتون کليو او سيمو کې په افغانستان کې په ځانګړي توګه بيا په هغه سيمو کې چې هزاره قبيلې هلته مېشت دي. د دې نښانې ټوله ورځ د هزاره وو لخوا او د دوی د پلويانو لخوا د محمد محقق د لاسونو د مچې کولو عيني شاهدان د تلوېزيون له لارې موږ ټول وينو.د ملا او د روحاني

اشخاصو رتبه په هزاره جاتو کې، د شیعه افغانانو په سیمو کې، د رهبر،پېشوا رتبه صرف تقلیدي رتبه ده. بیا د پښتون په ټولنه کې ملا داسې یو زورور مقام نه لري.د ملا نقش په سنتي پښتنو مېشته سیمو کې یو مشورتي نقش دی او تصمیم نشي نیولی.د دې لحاظه د طالبانو په داخل کې او د پښتنو د عنعنوي دود او دستور په سیستم کې یو مرکزي تضاد موجود دی.

باید له یاده و نه باسو چې طالبان د مذهبي مدرسو تولید شوي عناصر دي چې د پاکستان په پښتون مېشته سیمو کې روزل شوي. اکثر دغه افراد د مهاجرینو په کمپونو کې په پاکستان کې زېږېدلي دي هلته لوی شوي په وهابیت او د هغې په اساساتو د ؛محمدي شریعت؛ د لارښوونو څخه لرې روزل شوي تدریس شوي. د سعودي عربستان په پیسو او د سعودي او وهابي پاکستاني امامانو لخوا ورته درسونه ورکول شوي.د دوی د اکثریت په فکر او خیال کې د افغانستان سره تعلق، د افغانستان ملي شتمنۍ او ارزښتونه، د پښتونولۍ اصول او د افغانستان نیشنلېزم نشته او نه وجود لري. د دې یو مثال د بامیانو د بودایي مجسمې تخریب کول لیدی شو. د پښتنو دولتونو د دری سوه کاله راهیسې چې د پښتنولی د دود او دستور سره سم دولتونه وو، دا مجسمې د ملي شتمنۍ په نامه او حیث لاس هم پرې نه و وهل شوی. په داسې حال کې چې طالبان د مذهبي تعصب له مخې بالخصوص د ای اېس ای د هم لاسۍ پواسطه د هندوستانیانو په ضد د دې د ورانولو څخه خوند واخیست.د دې سره سره هم، د خپل حکومت په وخت کې طالبانو د هغو دودونو او عنعناتو چې په پښتون مېشت سیمو کې رواج او پلي کېدل، مخه و نشوه نیولی او غرض یې پری و نکړ.

# شپږمه برخه: د افغانستان اسلامی جمهوریت دولت

### د طالبانو نسکورېدل او د نوي دولت منځته راتګ

د ملا محمد عمر اړیکه د القاعده او د هغه د پخواني مشر سره چې د طالبانو د ډلې د بقا لپاره ډېر مهم وځکه د پناه اخیستلو په بدل کې یې د طالبانو ډلې ته، القاعده مالي مرستې ورکولې. امریکا د نړیوال تجارتي مرکز د دواړو تعمیرونو پر سر د یرغل ملامتي پر اسامه بن لادن واچوله. په دې اساس،د اسامه بن لادن د تسلیمولو غوښتنه یې له ملا محمد عمر څخه وکړه. ملا محمد عمر دې غوښتنې ته منفي ځواب ورکړ او په پایله کې یې، د امریکا متحده ایالاتو د طالبانو د رژیم په خلاف یرغل وکړ چې د ملا محمد عمر او د کسانو لپاره یې، د یوې نوې جګړې پیل وو.

د طالبانو د دولت نسکورېدل په ۲۰۰۱ ز کال کې د امریکا د هوایي ځواک څخه په استفادې د محلي ملیشوو په مرسته د زرګونو میلیون ډالرو په بدل کې په نقد توګه، د وسلو مرستې او د امریکا د ځانګړو ځواکونو د مرستې په پایله کې، یو ځل بیا یې افغانستان د جنګ سالارانو د نفوذ څخه په ډکه سیمه بدل کړ. په بلخ، سمنګان،جوزجان، او فاریاب کې د دوستم ملیشه، عطا محمد نور او محمد محقق قدرت ته ورسېدل، په هرات کې اسمعیل خان او کندهار کې حامد

کرزی او گل اغا شیرزی، په ننگرهار کې د ختیځ د شورا ملیشې (حاجی قدیر، حضرت علي او نور) او طالبانو د کابل څخه په چټکۍ د بهر کېدو سره، د نظار شورا ملیشې ښار د جگړې څخه پرته لاسته راوړ او د قدرت واګې یې په خپل لاس کې واخیستې.

د بن د کنفرانس څخه لاسته راغلی حکومت په حقیقت کې په د هیواد په سیمو کې د محلی قدرت له مخې د سیاسي تقسیم بندیو په ټول هېواد کې وو او د شلو کلو څخه وروسته، مرکزي حاکمیت ونشو کولی چې په هېواد کې تامیین شي.

د کابل د نیولو سره سم د نظار شورا لخوا او د نړیوالو ځواکونو د اوږدمهاله مرستو سره، دوی ته داسې شرایط برابر کړل چې د نظار شورا او د هغه محلي پلویان په غیر متوازن ډول سره د هېواد په تر ټولو زورور سیاسي او نظامي ډله بدله شي. د نظار د شورا ټول جهادي قوماندانان،د ملي اردو جنرالۍ رتبو ته ارتقاع وکړه او سیاسي مهم بستونه، اداري او نظامي یې ټول د ۱۴ کلو په ترڅ کې په خپل اختیار کې لرل او څرنګه چې د جمهوري ریاست ټاکنې په ۲۰۱۴ کال کې وښوده، په هېڅ ډول د سیاسي،نظامي او حتی د قدرت د متناسب شراکت د نورو سره او د قدرت د له لاسه ورکولو لپاره اماده نشول.

د امریکایی ځواکونو په واسطه د طالبان نسکورېدل په ۲۰۰۱ ز کال کې د محلي ملیشوو په مرسته او د یو دولت منځ ته راتلل چې د دیموکراسۍ او اساسي قانون پر بناوو جوړ وو د بن د هوکړې په اساس منځته راغی او د خلکو په خاصه توګه د روڼ اندو د لوی استقبال سره مخ شو. د طالبانو فاشستي او د منځنیو پېړیو مذهبي دولت افت د ۱۹۹۶- ۲۰۰۱ ز کلونو د پاکستان په مرسته، د افغان ملت پر لمنه یوه ننګینه داغ په شکل او په ځانګړې توګه د پښتون قوم حساب کېږی او د ترووریزم د ادامې تر ټولو لویه قرباني او د جهل پرستۍ همدا د پښتنو ډله چې د پاکستان په سرحدي پښتون مېشت ځایو کې اوسیږي وو.

## د طالبانو د مشر ملا عمر مړینه

د افغانستان جمهوري ریاست په رسمي ډول سره تایید کړه چې ملا محمد عمر، د طالبانو د ډلې مشر، په پاکستان کې وفات شوی. د افغانستان د جمهوري ریاست دفتر په خپله یوه اعلامیه کې ویلي دي چې ملا محمد عمر د ۱۳۹۲ ه ل کال د حمل میاشت کې چې د ۲۰۱۳ ز کال د اپریل سره سمون خوري، په پاکستان کې مړ شوی.

د ملا محمد عمر د مړینې څخه وروسته، ملا اختر محمد منصور د طالبانو مشري په غاړه واخیستله چې هغه د ۲۰۱٦ ز کال د مى په میاشت کې د امریکایي بې پیلوټه الوتکې لخوا د کویټې ساحې سره نیږدې ووژل شو او د هغه څخه وروسته بیا مولوي هیبت الله د طالبانو د تحریک د مشر په توګه وټاکل شو. ملا هیبت الله اخندزاده د کندهار د نورزو له قوم څخه دی، ملا اختر محمد منصور او ملا عمر، د طالبانو دوه پخواني مشران هم د کندهار څخه وو، د باشګاه جوان د ویبسایټ د ډلې د خبر په اساس، د طالبانو نوی مشر، د دې ډلې عالي شورا او قوماندانانو ته اعلان کړی چې ؛د افغانستان د دولت سره د سولی هېڅ مذاکراتو ته اړتیا نشته . دا مطلب یوې سرچینه د طالبانو په دننه کې د یوې

واسطې له لارې سي ان ان ته ورکړی. دې سرچینې داسې ویلي چې ؛ملاهیبت الله اخوندزاده؛، به هم هغه نظامي کړنلاره سرته ورسوي چې د طالبانو د بنسټ اېښودونکي پخوا، ملا محمد عمر، پیل کړې وه.ملا هیبت الله د طالبانو د بنسټپالو څخه، یو دیني عالم او د ملا عمر د نږدې ملګرو څخه یو وو.نو له دې مخې امکان لري هغه تر دې نور هم د ځوان او جنګیالي طالبانو نسل ته روزنه ورکړي او سره متحد یې وساتي. سید محمد اکبر اغا، د طالبانو د جنبش د بنسټ اېښودونکو څخه دی چې کابل کې ژوند کوي، داسې وایي چې د طالبانو نوی مشر په ډېر ښه شکل سره پېژني. د ده په ادعا، ملا هیبت الله یو تحصیل کړی شخص دی او په دیني علومو کې د احترام وړ شخص دی چې د ده مذهبي رتبه په ډله کې د ده پر نظامي رتبه لا پورته ده. د اکبر اغا په وینا، د هیبت الله سره د سولې مذاکره به د مړ شوي ملا اختر محمد منصور نسبت ته لا نور هم سخت تره وي.

الجزیره په خپلو خبرونو کې د هیبت الله د سوانحو په اړوند ولیکل چې پر افغانستان د شوروي اتحاد د یرغل په وخت کې د ۱۹۷۰ لسیزې په پیل کې، هغه د خپلې کورنۍ سره پاکستان ته مهاجرت وکړ. هغه په خپله د مجاهد په شکل د شوریانو سره په کلونو په جګړو کې بوخت وو. د جګړې څخه وروسته د کویټې په ښار کې خپل دیني تحصیلات تکمیل کړل او د افغانستان د اسلامي امارت د جوړېدو سره سم د طالبانو لخوا، هغه ته د امارات قضایي دنده وسپارله. پر افغانستان د ایتلافي ځواکونو د یرغل څخه وروسته په ۲۰۰۱ ز کال کې او د طالبانو د له منځه تللو څخه وروسته، هغه د لا ډېرو طالب مشرانو سره یو لاس بېرته کویټې ته راغی او د هغې ځایه د کویټې د شورا د غړي په حیث، د ډلې په مشر تابه کې یې نوښتونه کول. ؛؛تامس روتیګ؛؛ غړی د ؛؛د افغانستان د تحلیلګرانو شبکه؛؛ اخوندزاده یې یوه طبیعي ټاکنه د ملا اختر محمد منصور پر ځای ګڼلو: ملا هیبت الله د ملا اختر محمد منصور ارشد مرستیال وو.د هغه هوشمندانه ټاکنه د دې په خاطر جې دی یو دیني عالم او د طالبانو د نهضت د بنسټ اېښودونکو څخه او د ملا محمد عمر د نیږدې ملګرو څخه دی.؛ د طالبانو په دننه کې سرچینه د کویټې د شورا د مشرانو د دوو غونډو، چې د نوي مشر د ټاکلو په موخه وو، CNN یط خبر کړ. دا دوه غونډې د شنبه او سه شنبه په ورځو ونیول شو. د هغه په ادعا، په لومړۍ غونډه کې د غړو غوښتنه د مشری د چوکۍ لپاره ؛؛سراج الدین حقاني؛؛ غوره کول وو چې د حقاني شبکې مشر دی. د سه شنبه په غونډه کې حقاني د ملا هیبت الله په پلوی، د مشرۍ د منلو څخه ډډه وکړه. په پایله کې یې د سه شنبه د غونډې په وروستیو کې، ملا هیبت الله د مشر په توګه، او ملا محمد یعقوب او حقاني د هغه د مرستیالانو په توګه وټاکل شول. دا سرچینه په دې باور دی چې د ملا یعقوب ټاکنه (د ملا عمر زوی چې د طالبانو د تحریک بنست اېښوودونکی او پخوانی مشر وو) د طالبانو د اصلی غوښتنې د مشروعیت او وجهه په خاطر،یانې د کندهار ولایت او د حقانی ټاکنه همدې موخه ته د رسېدلو په خاطر د پاکستان په هم سرحده ولایتونو کې لکه خوست، پکتیا او پکتیکا کې سرته ورسېد.

د دې سره سره چې د ملا یعقوب نوم او سراج الدین حقاني د نومونه مطرح کېدل، د ځنو فکتورونو د موجودیت په اړوند، د دوی د نه ټاکل کېدو علت د ځینو کارپوهانو لپاره د پېش بینۍ لپاره یې لاره هواره وله. ملا یعقوب، نیږدې ۲۵ کلن، ډېر زیات بی تجربه وو. او دا څو میاشتې کېږی چې د مشرتابه کمیټې غړیتوب یې هم اخیستی. شورا هغه ته تش په نامه د ۱۵ وولایتونو د قومندانۍ دنده ورکړې.حقاني،د حقاني شبکی مشر، چې هم نظامي ډېره تجربه لري او په

تیر یو کال کې یې د طالبانو تر ټولو ډېر نظامي یرغلونو قومنداني کړې، د پاکستان د استخباراتي ډلی سره،د نیږدې اړیکو د درلودلو پر بنسټ، چندان د وثوق شماری لاندې د ډلې د قومندانانو لخوا نه دي.په اخر کې، د ذبیح الله مجاهد د اعلامیې په اساس، چې د طالبان ویاند دی،۲۴ د مشرتابه کمیټې دایمي غړی،د ډلې د ۱۲ متنفذو شیخانو سره، د سه شنبه په ورځ ملاهیبت الله د مشر په صفت وټاکلو.

د طالبانو د جنبش د منځ ته راتللو واقعیت د ۱۹۹۰ ز کلونو په منځ کې، د پاکستان د دولت سو استفادې په افغانستان کې د مجاهدینو د انارشي استیلایی حکومت او د پښتنو د نیشنلیستي احساساتو څخه د سو استفاده وه .د دې له مخې بی ځایه به نه وي چې د طالبانو منځ ته راتگ په ۱۹۹٦ ز کال کې، او د دوی ډېر اندازه بریالیتوبونه د مجاهدینو د حکومت په سقوطولو کې او په ۱۹۹٦ ز کال کې د کابل او د نورو ولایتونو له جگړې پرته نیول، په حقیقت کې له یوې خوا د پښتنو نیشنلیستي عکس العمل او د خلکو نارضایتي د انارشی نا امنی په هېواد کې د دوی د بریا سبب گڼل کېږي.

مگر په تاسف سره چې د طالبانو رژیم، یو اختناق مذهبي د منځنیو پېړیو په هېواد کې ځای پر ځای کړی وو چې د هغه سقوط په ۲۰۰۱ کال کې د امریکا د ځواکونو لخوا د محلي ملیشه وو په مرسته او د یو داسې دولت جوړښت چې د دیموکراسی او اساسي قانون ولاړ وي، د بن د هوکړې په اساس، د وگړو په تیره بیا د روڼ اندو د پراخه هرکلي سره مخ شو،.د طالبانو د فاشیستی، منځنیو پیړیو مذهبي دولت د ۱۹۹٦ – ۲۰۰۱ کلونو پورې، د پاکستان په مستقیمه مرسته، د افغان ملت پر لمنه یو داغ دی او په ځانگړې توگه بیا د پښتون د ملیت لپاره او د تروریزم د دوام تر ټولو لویه قربانی د دې ډلې څخه ټول په پښتنو سیمو کې مېشت پښتنو ورکړی چې د پاکستان سره په سرحداتو کې دي.

احمد رشید د طالبانو په اړوند داسې لیکي::**د طالبانو ډېر شمېر د پاکستان د کډوالو په کمپونو کې زېږېدلي او د هغوی په مدرسو کې یې زده کړې کړې، د جهاد په وخت کې یې جنگي مهارتونه زده کړل. ځوان طالبان په ډېره کمه اندازه د خپل هېواد او د هېواد تاریخ په اړوند معلومات لري، مگر د مطلوب او د دوی د خوښی اسلامي ټولنې په اړوند چې د حضرت محمد ص په وخت کې ۱۴۰۰ کاله دمخه منځ ته راغلي وو، د خپلو مدرسو څخه یې، په کافی اندازه معلومات لاسته راوړي دي، او اوس د هغه تطبیق غواړي.**؛ (همغلته، ص ۳۷).

**دغه پیښې، د طالبانو قدرت ته په رسېدو کې اساسي رول لري:**

د ۱۹۹۴ د اکتوبر په ۱۲ د ۲۰۰ په شاو خوا کې طالبان د کندهار او د پاکستان د مدرسو څخه د سپین بولدک سرحدي ښارگوټي ته چې د پاکستان او افغانستان تر منځ پروت دی داخل شول. دا ښارگوټی په هغه وخت کې د گلبدین حکمتیار په اختیار کې وو.د طالبان ځواکونه په دریو برخو ووېشل شول او د حکمتیار پر ځواکونو یې حمله وکړه د هر یو تن په مقابل کې یې اووه کسان ووژل او د حکمتیار ځواکونه وتښتېدل چې په پایله کې سپین بولدک او د حکمتیار د مهماتو لویه ډیپو چې هلته نږدې یې موقعیت درلود، د طالبانو لاسته ولوېدل چې په هغه کې د ۱۸۰۰۰ کلاشنکوفونو سربېره، نور پکې ډېر شمېر مهمات او موټر هم وو؛

د ۱۹۹۴ ز کال د اکتوبر په ۲۰ نېټه نصیرالله بابر د پاکستان د کورنیو چارو وزیر د شپږو لوېدیځو هېوادونو د سفیرانو چې په اسلام اباد کې مېشت وو سره د رباني-مسعود د حکومت له خبرېدو پرته، هرات او کندهار ته سفر وکړ. هغه ویلي وو چې ۳۰۰ میلیون ډالره یې د نړیوالو موسسو څخه راټول کړي او د کویټې او هرات تر منځ سړک به بېرته ورغوي

د ۱۹۹۴ ز کال د اکتوبر په ۲۸ نېټه بینظیر بوټو د پاکستان لومړۍ وزیره د اسماعیل خان او جنرال دوستم سره د ترکمنستان په پلازمېنه عشق اباد کې وکتل او ټینګار یې وکړ چې د پاکستان د تجارتي کاروانونو پر مخ، د کویټې ترانسپورتي لویې لاره د کندهار او د هرات له لارې ترکمنستان ته د حق العبور په بدل کې د خلاصه وساتل شي.

د ۱۹۹۴ د اکتوبر ۲۹ نېټه د پاکستاني پوځ لوژیستیکي څانګې پورې اړوند د موټرو کاروان،چې په اویایمه لسیزه کې د ای اېس ای لخوا منځته راغلی وو څو د وسلو او د مهماتو مرسته له مجاهدینو سره وکړي، او ۸۰ تنه هغه ډرېورانو پواسطه چلول کیده چې د پاکستاني پوځ پخواني کسان وو،د کویټې څخه د هرات په لوري روان وو.د ای اېس ای یو لوړ رتبه افسر کرنیل امام چې د پاکستان جنرال قونسل وو،په هرات کې د دوو ځوانو طالب قومندانانو ملا بور جان او ملا ترابي سره یوځای، د کاروان څارنه کوله. کاروان د کندهار د هوایي ډګر ساحې ته نیږدې د قوماندان لالي او منصور اڅکزي او د قوماندان استاد حلیم لخوا ودرول شو، او دوی د کاروان او د هغه موادو چې کاروان هغه انتقالول،خپله برخه او پیسې وغوښتې.

د نومبر دوه یمه ورځ طالبانو په یرغل پیل وکړ، د کندهار قومندانانو په دې فکر چې ګنې پاکستان یرغل کړی دی، د جنګ له ډګر څخه وتښتېدل. په منصور پسې شول او ویې نیولو د لسو ساتونکو سره یې ووژلو. د قوماندان منصور اڅکزي مړی د ټانک په میل باندې ځوړند کړ،

د همغې ورځې په ماښام طالبان کندهار ته داخل شول او د دوو ورځو جګړو څخه چې قوماندانانو ته یې ماتې ورکړه. ملا نقیب الله د کندهار تر ټولو غښتلی قوماندان چې ۲۵۰۰ مجاهدین یې درلودل د ای اېس ای څخه د پیسو په اخیستلو، د خپلو مجاهدینو سره، د طالبانو سره یو ځای شو.

د پاکستاني ملایانو جماعت او د پاکستان حکومت، د طالبانو لخوا د کندهار فتح ونمانځله، نصیر الله بابر د پاکستان د کورنیو چارو وزیر د طالبانو د بریالیتوب کریډېټ خپل ځان ته ورکړ او خبریالانو ته یې وویل: طالبان زموږ دي؛ (احمد رشید، طالبان، ۲۰۰۲، ص ۴۷)

## شپږمه برخه: د امریکا نظامي مداخله او له طالبانو وروسته حکومت

*د لوېدیځې نړۍ د خپلو ګټو لپاره، په افغانستان، عراق، سوریه، یمن او لیبیا کې د تر ټولو افراطي جهادي اسلام غوښتونکو څخه، ملاتړ وکړ او هغوی ته یې د قدرت واګې په لاس کې ورکړې! مجاهدین په ۱۹۹۲ز کال کې،طالبان په ۱۹۹۶ زکال کې، او د شمال ایتلاف په ۲۰۰۱ زکال کې، د دې ښکاره مثالونه په افغانستان کې دي. د لوېدیځ ګټې د وخت او زمان سره سم بدلېږي را بدلېږي، او د هغه سره سم، د لوېدیځ دوستان او دښمنان هم د بدلون په حالت کې دي. که څوک د لوېدیځې نړۍ دغه سیاسي الفبا باندې پوه نشي،د تل لپاره به په تعجب، ګمراهی او سرګردانی کې وي!؛*

*(ډاکټر نور احمد خالدي)*

### د بن کنفرانس، اساسي قانون او هیلې

د المان غږ یا دویچه ویلې په ۲۰۱۱ کې ولیکل: د بن ښار د المان په لوېدیځ کې، د دې سره سره چې د افغانستان سره په زرګونه کیلومتره فاصله لري، مګر د ورستي لسو کلونو پېښو، د هغه ځای نوم د دې جنګ ځپلي هېواد د سیاست سره تړل شوی دی . یوه لسیزه مخکې په ۲۰۰۱ زکال کې، د افغانستان راتلونکی، د دې هېواد په یو هوټل کې ولیکل شو.؛

د طالبانو له منځه تلل په ۲۰۰۱ ز کال کې، د بن د کنفرانس جوړېدل، د موقت دولت جوړېدل چې په هغه کې ټول د طالبانو ضد ځواکونو برخه درلوده او بلاخره د نوي اساسي قانون تصویبېدل ؛د افغانستان اسلامي جمهوریت؛ په ۲۰۰۳ زکال کې د لویې جرګې لخوا د ټولو سیاسي او ملي ځواکونو په غوڅ ملاتړ سره، لویه جرګه کې داخل، او د طالبانو پر ضد د ودې په موخه د میلیاردونو ډالرو وعدې ایتلافي هېوادونو لخوا وشوې، چې دا زموږ غم ځپلي هېواد او ستم لیدلي هېوادوالو لپاره لکه سهار نسیم، د یو نوي او روښانه راتلونکې، یو سولیزه لرلید، ارامي او هوساینې زیری وو.

د بن کنفرانس په ۲۰۰۱ کال کې د افغانستان لپاره یو بنسټ جوړونکی کنفرانس وو. د بن کنفرانس په متن کې دې ته پاملرنه شوې چې د افغانستان لپاره د سیاسي جوړښتونو په منځ ته راوړلو سره، د قوي دولت د جوړېدو لپاره شرایط برابر شي او د دې لارې افغانستان کې سیاسي ثبات ځای پر ځای شي. د بن په کنفرانس د ۲۰۰۱ ز کال کې د لومړي ځل لپاره، یو شمېر افغان سیاستوال، د مختلفو ډلو څخه سره یو ځای شوي وو څو د نړیوالو همکاریو تر سیوري لاندې او پر نړیوال ملګرو ملتونو د تکیې پر زور، د بحران څخه د تېښتې، نوی پلان سمبال کړي.

## د بن کنفرانس ګډون کوونکي

د بن په کنفرانس کې قانوني، فهیم، ډاکټر عبدالله، حاجي قدیر، عباس کریمي، حسین انوري، عارف نورزی، مصطفی کاظمي، امنه افضلي، میرویس صادق د متحده جبهې څخه، د محمد ظاره شاه په مشری د روم د لړی پلاوی، عبدالستار سیرت، عزیز الله واصفي، هدایت امین ارسلا، محمد اسحاق نادري، زلمی رسول، محمد امین فرهنګ، مصطفی طاهري، سیما ولي، رنا منصوري، د قبرس د سولې له لړۍ څخه:همایون جریر او اسحاق ګیلاني برخه اخیستې وه، او د پېښور د سولې له بهیر څخه انورالحق احدي وو.دا کنفرانس د لسګونو مشاورانو تر اداري لاندې د لخضر ابراهیمي په مشری

چې چې د افغانستان لپاره د ملګرو ملتونو خاص استازی وو او د نورو هېوادونو د پلاوي او استازو په حضور کې جوړ شو.

## د بن کنفرانس تصمیمونه

د ۲۰۰۱ ز کال د ډیسمبر په دیارلسمه نېټه د ۹ ورځې بحث او مشاجرې څخه وروسته، د المان د بن د کنفرانس ګډون کونکو، یوه دوه مرحلیزه هوکړه لاسلیک کړه، چې د افغانستان د داخلي جګړو د شل کلو څخه وروسته د نوي نظام د بنسټ تېږه یې کېښوده.

د دې تاریخي هوکړې پر بنسټ، پېژندل شوې او متخاصمې ډلې چې د افغانستان په مسایلو کې ښکېل وو، پر یو موقت شپږ میاشتني حکومت باندې سره جوړ شول او همدا راز یې ومنل چې په افغانستان کې د امنیت د تامینولو په موخه، د بې ثباتۍ د کلونو څخه وروسته، نړیوال سوله ساتونکي ځواکونه به په افغانستان کې ځای پر ځای شي.

په دې غونډه کې مختلف برخه اخیستونکي اړخونه، د شمال د متحدې جبهې څخه تر نورو جهادي ډلو او همدا راز د محمد ظاهر شاه پلویانو ټولو دا هوکړه لاسلیک کړه.

د بن هوکړه، په دې وتوانېدله چې د افغانستان د ستونزو څخه ډکه سیاسي شخړه چې د تېرو درېو لسیزو څخه روانه وه د سیاسي قدرت وېش ته د پای ټکی کېږدي او حامد کرزی، د پښتون قوم جهادي شخصیت ته د موقتې ادارې د ریاست واګې ورکړي او په افغانستان کې  نوی بهیر روان کړي.

## د موقت کابینې قومي جوړښت

د حامد کرزي په مشرۍ یوه کابینه، ۳۰ چې چوکۍ یې لرلې د افغان سیاسي ډلو د قومي جوړښت په نظر کې نیولو سره، ووېشل شوې .له هغه څخه، یوولس چوکۍ پښتنو ته، اته چوکۍ تاجکانو ته ورکړل شوې، نورې پنځه چوکۍ هزاره ګانو ته ورکړل شوې، درې چوکۍ په ازبک قوم پورې تړلي کسانو ته او پاتې د نورو اقلیت قومونو پر کسانو ووېشل شوې.

دوې ښځې – سیما سمر او سهیلا صدیق – هم د موقت حکومت کابینې ته لار وموندله او د ښځو چارو او روغتیا وزارت دوی ته ورکړل شو. د دې سربېره، اغلې سمر، د ښاغلی کرزي د پنځه مرستیاالانو څخه هم وشمېرل شوه.

### ټولنیزه خپلواکي او بشري حقوق

د بن د هوکړې څخه مهم ټکي، د افغانانو پر ټولنیزې ازادۍ ټینګار، د هغه څخه د بیان ازادي او همدا راز د ښځو او د بشر حقوق وو.

په دې هوکړه کې ویل شوي چې ؛د افغانستان د خلکو حق، د خپل هېواد د سیاسي راتلونکي په اړوند، د اسلامي اصولو پر بنا، دیموکراسي، پلوراليزم او ټولنیز عدالت؛ د تضمین شي.

نړیوالو ملګرو ملتونو ته په دې هوکړه کې صلاحیت ورکړی شو د بشري حقوقو د نقض په برخه کې، څېړنې وکړي او په دې اړوند خپل وړاندېزونه او توصیې وړاندې کړي.

دا هوکړه همداشان په نړیوال ډول سره، د ملګرو ملتونو په سازمان کې، د افغانستان چوکۍ هم پرانیستله، او په کورنۍ اړخ کې یې، د غیر مسولو ګوندونو،عمومي خلع سلاح کول هم منظور شو او د هېواد پر ټولو پېښو کنټرول ؛موقت؛ مرکزي حکومت ته ورکړل شو.

## انتقالي اداره

د هوکړې پر بنسټ، موقت اداره کې شامل ۳۰ چوکۍ کابینه او رییس، د اضطراري لویې جرګې د جوړولو خپلواک کمیسیون، مرکزي بانک او ستره محکمه وو.

همدا راز هوکړه وشه چې یو عدلي کمیسیون، د عدلي سیستم د بیا جوړولو او احیا په موخه او د افغانستان د قضایي سیستم لپاره ؛د بین المللي قواعدو او د اسلامي احکامو په رڼا کې؛ جوړ شي.

د انتقالي ادارې د جوړولو او د انتقالي اداری د رییس د ټاکلو په موخه د اضطراري لویې جرګې جوړېدل، د موقت ادارې د جوړېدو څخه شپږ میاشتې وروسته د افغانستان د نوي اساسي قانون د تصویب په موخه د بلې لویې جرګې جوړېدل، د انتقالي ادارې د جوړېدو څخه اتلس میاشتې وروسته، د نورو مهمو ټکو څخه ځینې د بن د هوکړې له ټکو څخه وو.

د بن هوکړه کې راغلي دي چې د قدرت د انتقال سره سم، ټولې جهادي ډلې، د افغانستان وسله والو ځواکونو او نورې وسله والې ډلې ؛د موقتې ادارې تر کنټرول لاندې راځي، او د امنیتي ضرورتونو په اساس، د افغانستان د وسله وال ځواک صفت پېژندل کېږي.

## د نړیوالو شتون

د بن د هوکړې په بله برخه کې، د ملګرو ملتونو څخه غوښتنه شوې، چې د نړیوالو ځواکونو په شتون سره، په کابل او په شاو خوا سیمو کې، توافق وکړي.

دا ځواکونه باید د افغانستان د امنیت د ساتنې په موخه افغانستان ته لېږل شوې وې. چې (ISAF) مرستندوی امنیتي ځواکونو په نوم یادیږي.

د بن په لومړنی غونډه کې حاضر ډلې، په دې باندې راضي شول چې د کابل او نورو سیمو څخه، چېرته چې د ملګرو ملتونو ځواکونه شته،د هغه ځای څخه خپل ځواکونه وباسي .

د نړیوالو ځواکونو د شتون په افغانستان کې ښودل شوی، خو د دوی د شتون وخت، نېټه او تعداد مشخص شوی نه وو.

همداراز توافق وشو د دې ځواکونو حضور، ضرورت ته د پاملرنې سره، د افغانستان نورو سیمو ته غځېدلی شي.

## د بن کنفرانس پایلې

په پورتني متن کې د بن په کنفرانس کې، په دې باندې دقت شوی وو چې د افغانستان لپاره د بنسټیزو جوړښتونو برابرول، د پیاوړي دولت د جوړېدو په خاطر شرایط مساعد شي او له دې لارې په افغانستان کې سیاسي ثبات ځای پر ځای شي.

په ډېر تاسف سره چې د بن د کنفرانس میلمه پال، او د لویه جرگې چلونکي، په پوهې او یا ناپوهی، د وخت د یوه سیاسي لوبغاړې ډله چې طالبان وو، د دې بهیر څخه بهر پرېښودل، د ناارامۍ تخم یې په هېواد کې وکرلو. په دې اړوند ډېرې پوښتنې شته دي چې کولی شو هغه وپوښتو:

- ایا دا له یاده ایستل یې تصادفي وو،غفلت وو او یا قصدي او حساب شوی؟
- په دې توطیه کې کوم کسان شامل وو؟
- ایا داسې څوک نه وو دا فکر وکړي چې یو داسې ځواک چې د هېواد په ۸۰ سلنه خاوره حکومت کوي، د څو بې ۵۲ الوتکو څخه د راغورځول شویو بمونو څخه په عمومي ډول سره د مقاومت څخه پرته، به له منځه ولاړ شي؟
- ایا د هېواد د سیاسي ژوند د لرلید لوبغاړو څنگه ونشو کولی چې د سیمې تر ټولو غښتلی ځواک، چې د دې ځواک حامي سیاست دی، هم په خپل معادلاتو کې په نظر کې وساتي؟
- ایا د چا فکر او هوش دې ته نشو چې دا دېو چې خپلو وسلو او موټرسایکلو سره د خپلو پیکاپ جیپونو سره له خاورو سره یو شول، بلاخره د یو ځای څخه به سر پورته کړي او کنه!؟
- د دې سره سره،کله چې دا سیاسي ځواک نوی وړاندیز کوي چې حاضر دي د افغانستان په دولت کې برخه واخلي، دا وړاندیز ته پاملرنه نه کېږي.

**مهرالدین مشید** په اریایي انټرنټي مجله کې داسې لیکي: ؛د ټولو څخه مهمه دا ده...د امریکا بې باوري د جنگی ځواکونو په سخت سرۍ او د افغانستان تاریخي ځانگړتیاوو ته لږ ارزښت ورکول وو او داسې سوچ کولو چې وسله وال مخالفین به په چټکۍ سره له منځه ولاړ شي. په دې اړوند د افغانستان د گاونډیو هېوادونو لاسوهنه،په تیره بیا ایران او پاکستان ته، د دوی د بریا غوښتنې او لوړ پرواز کونکې ستراتیژۍ ته په افغانستان کې هم لږ ارزښت ورکړل شوی وو.د دې سطحي کتنو تر څنگ کولی شي، د طالبانو د استازو د رول څخه په دې غونډه کې د سترگو د پټولو په اړوند خبرې وکړو، د دی علت دا نشي کېدی چې دا کنفرانس د طالبانو د له منځه وړلو په خاطر جوړ شوی وو، دا نشو کولی دا د خطا څخه ډکه خلا په دې خبره ډکه کړو. د امریکایانو په وړاندې د دوستم د ځواکونو لخوا د افغانستان په شمال کې د طالبانو د ځواکونو اته زره کسانو وژل کېدل، یوه تېروتنه وه چې طالبان یې لانور هم په غوصه کړل. د دې په ترڅ کې، د بن یو اړخیزه فیصلې او د طالبانو رقیب گوند ته د ډېر قدرت ورکول د هغه تېروتنو څخه وو، چې په افغانستان

کې د سولې او ثبات د راتګ تېول امیدونه یې په ایرو بدل کړل. د ځمکو مافیایي غلا، او د اقتصادي لوټماریو سازمان شوي حرکتونه، د خپل قدرت د شریکو ملګرو سره یو ځای،وروسته د خلکو د خوش بینی د مرفه او سوکاله راتلونکې په لور، یې د خاورو سره خاورې کړل؛.

په شمال کې د ۲۵۰ امریکایي افسرانو راتګ د طالبانو د ژر نسکوریدو سره یو ځای، یو ډول نظامي وارخطایي رامنځته کړه چې پنټاګون یې غافل ګیره کړ او هم دا چې امریکا یو شمېر هغه کسانو ته چې د سیاست ډګر ته نوي داخل شوي وو مشورې،د دې باعث شوې چې طالبانو ته په ټیټه سترګه وګوري او په ۲۰۰۳ ز کال کې د عراق خواته متوجه شول.

**د موقت حاکمیت جوړښت**

د افغانستان د سیاسي مشرۍ په خاطر د موقت ادارې جوړېدل او د دې هېواد د اداره کولو لپاره د دیموکراسی او ثبات په لور،دا یوه لومړنۍ او تر ټولو مهمه موضوع وه چې د بن د کنفرانس د ګډون کونکو لخوا ورته پاملرنه شوې وه. د لومړۍ مادې په لومړۍ بند کې چې د بن د هوکړې د عمومي احکامو برخه وه،د موقت حاکمیت تاسیس د پاملرنې وړ وګرځید. برخه اخیستونکو په دې هوکړه لیک کې منلې وو چې موقت حاکمیت د رسمي قدرت د لاسته راوړلو سره سم د ۲۰۰۱ به د ډیسمبر په ۲۲ نېټه جوړېږي.

د موقت ادارې په جوړېدو او د حامد کرزي ځای په ځای کېدو سره سم د دې ادارې په راس کې، په افغانستان کې، مختلف سیاسي اړخونه هم چې د خلکو د جګړو څخه د سترپا حالت یې لیدلو، د دې څخه هرکلی وکړ. برهان الدین رباني، د مجاهدینو د وخت د هېواد جمهور رییس چې استازي یې په کنفرانس کې ګډون درلود،د بن تړون یې لاسلیک کړی وو، د ۱۳۸۰ د جدی د میاشې په اوله نېټه چې د ز کال ۲۰۰۱ د ډیسمبر میاشتې ۲۲نیټې سره سمون خوري، په رسمي مراسمو کې قدرت یې، موقت جوړ شوي حاکمیت ته تسلیم کړ. د برهان الدین رباني له لوري، حامد کرزي ته د قدرت تسلیمي ورکول،په خپل جوړښت کې، په افغانستان کې ساری نه درلود. د افغانستان په تاریخ کې دا د لومړي ځل لپاره وو چې قدرت تر ټولو په لوړه کچه کې- د وینې له تویدو، د کودتا او د پاڅون څخه پرته او په ارامۍ کې، د یو اړخ څخه و بل اړخ ته وسپارل شو.

د بن په کنفرانس کې، دولت ټول د طالب ضدو ځواکونو په برخه اخیستو سره،چې د امریکا سره یې د طالبانو په ماته ورکولو کې مرسته کړې وه جوړ شو. د بن د کنفرانس میلمه پال او چلونکی، امریکا او په خاصه توګه زلمی خلیلزاد په ډېره ښه توګه د افغانستان د قومي جوړښت څخه باخبره وو. د امریکا د مرکزي استخباراتي دفتر د اټکلونو پر بنسټ (سي ای اې) او د امریکا د جغرافیایي مرکزي استخباراتو د مرکز د اټکل په اساس د افغانستان قومي جوړښت په لاندې ډول دی: ۴۲ سلنه پښتون، ۲۷ سلنه تاجک، ۹ سلنه هزاره، ۹ سلنه ازبک،۴ سلنه ایماق، ۳ سلنه ترکمن، او نور ټول قومونه ۷ سلنه د افغانستان نفوس جوړوی. د دې پر بنسټ د حامد کرزي ټاکنه چې د پښتون د قوم یو متجدد، د یوې پېژندل شوې کورنۍ پورې اړه لري او همدا راز د مجاهدینو د حکومت یو شخصیت چې په ۱۹۹۲ ز کال یې قدرت په لاس کې واخیست،وو،داسې یو شخصیت چې وشي کولی د جهادی تنظیمونو د مشرانو سره د امریکا متحده ایالاتو سره د طالبانو د دولت په سقوط ورکولو کې چې اوس واقعي قدرت په اوسنی حکومت کې په لاس کې لري، یو حکومت جوړ کړي.

د یادونې وړ ده چې زلمی خلیلزاد د بن د کنفرانس چلونکی وروسته بیا تایید کړه چې د حامد کرزي نوم د موقت حکومت د مشرۍ په خاطر د عبدالله عبدالله لخوا هغه ته وړاندیز شوی وو.

**د حامد کرزي ولسمشري**

د حامد کرزي ژوند لیک د حقیقت د انټرنیټي خپروني څخه اخیستل شوی دی. حامد کرزی د عبدالاحد کرزي زوی د خیر محمد خان لمسی دی د ۱۳۳۶ ه ل کال د جدی په ۳ نېټه چې د ۱۹۵۷ ز کال د ډیسمبر میاشتې ۲۴نیټې سره سمون خوري، د کندهار ښار ته نیږدې، د کرز په کلی کې زېږیدلی دی. د کرزي قدرمن نیکونه د افغانستان د استقلال د جګړو په وخت کې او د هغه څخه وروسته په مبارزو کې ډېرې ونډې درلودې او د څه وخت لپاره د اعیان مجلس د مرستیال په حیث خدمت کړی دی.عبدالاحد کرزی د حامد کرزی پلار،د پوپلزوو د قوم د رییسانو څخه وو او د هېواد د سیاسي مشرانو څخه هم وو چې په شپېتمه میلادي لسیزه کې، د افغانستان د شورا د مرستیال په حیث یې خدمت کړی وو.



کله چې عبدالاحد کرزی د ولسي جرګه غړی شو، د خپلې کورنۍ سره یې کابل ته کډه وکړه. حامد کرزی په هغه وخت کې د محمود هوتکي په ابتدایه کې، سید جمال الدین افغانی او وروسته بیا د حبیبه عالی لیسی ته داخل شو. دی د حبیبیې لیسی څخه د فراغت څخه وروسته په ۱۳۵۵ کال کې چې د ۱۹۷۶ سره سمون خوري، د تحصیل د لړۍ د دوام په موخه هندوستان ته ولاړ او د سملې په پوهنتون کې یې د نړیوالو اړیکو او سیاسي علومو په برخه کې زده کړې پیل کړې.

حامد کرزی په ذکر شوې رشته کې د ماسټرۍ تر کچې زده کړې وکړې او په ۱۳۶۲ ه ل کال کې چې د ۱۹۸۳ ز کال سره سمون خوري له هند څخه پاکستان ته ولاړ او د مجاهدینو په صفونو کې د وطن د ژغورنې په موخه د شوروي د تیري په وړاندې شامل شو او جهاد او مبارزه یې پیل کړه.

حامد کرزی په ۱۳۶۴ ه ل کال کې چې د ۱۹۸۵ ز کال سره سمون خوري د یوې زده کړیزه دورې لپاره د ژورنالیزم په رشته کې فرانسی ته ولاړ، او د دری میاشتنې کورس د مکملولو څخه وروسته چې د فرانسې د لیل په ښار کې وو، بېرته پېښور ته راغی، او د رسنیو د اداری د امر په حیث او وروسته بیا د افغانستان د ملي نجات د جبهی د تنظیم د سیاسي دفتر د مرستیال په صفت د پروفیسور صبغت الله مجددي تر مشرۍ لاندې یې، دنده درلود.

حامد کرزی، د مجاهدینو د موقت حکومت د جوړېدو سره سم په ۱۳۷۱ کې چې د ۱۹۸۹ سره سمون خوري، د موقت حکومت د بهرنیو اړیکو په ریاست کې د رییس دنده په پېښور کې په غاړه درلوده.

حامد کرزی،په افغانستان کې د مجاهدینو د حکومت د جوړېدو څخه وروسته په ۱۳۷۱ ه ل کې چې د ۱۹۹۲ ز کال سره سمون خوري، د افغانستان د بهرنیو چارو په وزارت کې د سیاسي معیین په حیث، مقرر شو.

دوه کاله وروسته، کله چې د جهادی ډلو تر منځ د کابل په ښار کې جګړی ډېرې شوې،د حامد کرزي په اند، د منازعاتو د حل یوازېنی لاره، د لویې جرګې راغوښتل وو، او په همدې منظور هغه په ۱۹۸٦ کې د موقت ادارې تر تشکیل پورې، د افغانستان پر دودیزو جرګو، ډېر تینګار کولو او هغه یې د افغانستان د بقا لپاره ډېرې مهمې بللې.

په ۱۳۷۹ ه ل کال کې چې د ۲۰۰۰ ز کال سره سمون خوري، د حامد کرزي پلار،چې د پاکستان د کویټه په ښار کې اوسېدو – ترور شو.

کرزي خپلو مبارزاتو په ادامې د ۲۰۰۱ ز کال د اکتوبر په سر کې چې د ۱۳۸۰ د میزان میاشتې سره سمون خوري، خپل دری تنو همفکرانو سره د ارزګان ولایت ته ولاړ، څود طالبانو د رژیم د نسکورولو په لړ کې د افغانستان په مرکزي ولایتونو کې هلې ځلې وکړي[10].

حامد کرزی د ۱۳۸۰ د قوس په ۱۴ نېټه چې د ۲۰۰۱ ز کال د ډیسمبر په ۵ نېټه، د بن د غونډې د برخه اخیستونکو لخوا – المان کې، د موقت ادارې د رییس په صفت وټاکل شو، او د ډیسمبر په ۲۲ نېټه همغه کال د کابینې د غړو سره یې د وفاداری لوړه وکړه.]

**د طالبانو څخه وروسته دولت**

د طالبانو د دولت نسکورېدل په ۲۰۰۱ ز کال کې د امریکا د هوایي ځواکونو څخه په استفادې د محلي ملیشوو په مرسته د زرګونو میلیون ډالرو په بدل کې په نقد توګه، د وسلو مرستی او د امریکا د ځانګړو ځواکونو د مرستې په پایله کې، یو ځل بیا افغانستان د جنګسالارانو د نفوذ څخه په ډکه سیمه بدله کړ. په بلخ، سمنګان،جوزجان، او فاریاب کې د دوستم ملیشه، عطال محمد نور او محمد محقق قدرت ته ورسېدل، په هرات کې اسمعیل خان او کندهار کې حامد کرزی او ګل اغا شیرزی، په ننګرهار کې د ختېځې د شورا ملیشې (حاجی قدیر، حضرت علي او نور) او د طالبانو له کابل څخه په چټکی بهر کېدو سره، د نظار شورا ملیشو ښار یې د جګړې پرته لاسته راوړ او د قدرت واګې یې په خپل لاس کې واخیستې.

---

[10] *حامد کرزی په ارزګان کې د طالبانو پر ضد یو ملیشه جوړ کړ چی د امریکا د خاصو قواوو لخوا یی ملاتړ، تجهیز او تربیه یی کیدو او هوایی حمایت یی تر کولو چی په پایله کې یی د طالبانو له لاسه ارزګان د باندی کړ او د قندهار خواته یی سوق کړل. قندهار ته نږدی طالبان د حامد کرزی سره د ښار څخه د وتلو او تسلیمولو په خاطر یی مذاکره وکړ او توافق یی وکړ چی د دی په اساس طالبانو له جګړی څخه لاس واخیست، حامد کرزی او ګل آغا شیرزی چی د بلی خوا څخه د امریکایانو په مدت د قندهار خواته په حرکت کې وو، د قندهار ښار یی تسلیم واخیست. (لیکونکی).*

د بن د کنفرانس څخه لاسته راغلی حکومت په حقیقت کې د سیاسي تقسیم بندیو له مخې په سیمه کې د قدرت له اړخه،په ټول هېواد کې وو او تر نن پورې د ۱۴ کلو څخه وروسته، مرکزي حاکمیت ونشو کولی چې په هېواد کې تامیین شی.

د کابل د نیولو سره سم د نظار شورا لخوا او د نړیوالو ځواکونو د اوږدمهاله مرستو سره، دوی ته یې داسې شرایط برابر کړل چې د نظار شورا او د هغه محلي پلویان په غیر متوازن ډول سره د هېواد په تر ټولو زورووره سیاسي او نظامي ډله بدله شي. د نظار د شورا ټول جهادي قومندانان،د ملي اردو جنرالۍ رتبو ته ورسېدل او سیاسي مهم بستونه، اداري او نظامي یې ټول د ۱۴ کلو په ترڅ کې ټول په خپل اختیار کې درلودل او څرنگه چې د ریاست جمهوري ټاکنو په ۲۰۱۴ کال کې وښوده، په هېڅ ډول د سیاسي،نظامي او حتی د نورو سره د قدرت د متناسب شراکت او د قدرت د له لاسه ورکولو لپاره اماده نشول.

پورتني قومي جوړښت ته په کتو او د افغانستان د دولتونو د زعامت تاریخچې ته د کتنې وروسته، امریکایانو، حامد کرزی چې یو پښتون سیاستمدار دی او امریکایان د یو ځانگړي ځواک په اختصاصی نظامي لړۍ کې، د ارزگان او کندهار د طالبانو څخه د بیا نیولو په موخه، سمبال کړ،د هغه سره یې مرسته وکړه، د طالبانو څخه وروسته دولت په خاطر یې رییس وټاکلو.باید یادونه وکړو چې دا ټاکنه د نظار شورا د توافق او د شمال د اتحاد توافق سره چې د بن په کنفرانس کې د یونس قانوني په مشرۍ،حاضر وو، په دی شرط منلی وو چې د دولت مهم پوستونه دوی ته ورکړل شی. **د جهادي اړخونو تر منځ د قدرت تقسیم، او په خاصه توگه د نظار شورا او د شمال د اتحاد انحصاري رول، د بن د ۲۰۰۲ ز کال پر کنفرانس یوه اساسي نیوکه ده.**

## بېړنۍ لویه جرگه

د بېړنۍ لویې جرگی جوړېدل د انتقالي اداري د جوړښت په برخه کې، د بن د کنفرانس ۲۰۰۱، دوهمه لاسته راړونه ده. د بېړنۍ لویې جرگې د تشکیلېدو په موخه د کمیسیون جوړېدل، او د دې جرگې جوړېدل د انتقالي دولت د جوړېدو په موخه، د بن د کنفرانس د برخه اخیستونکو مشرانو د تعهداتو څخه یو تعهد وو.

بېړنۍ لویه جرگه چې په (۲۰/۳/۱۳۸۱ – ۲۸/۳/۱۳۸۱) نېټه کې نیول شوی وو، په کابل کې د لویه جرگې په کېږدۍ کې جوړه شوه، د افغانستان تر ټولو تاریخي او مثبته لاسته راوړنه بلل کېږی. ځکه د دې جرگې ارزښت له دې څخه وو چې د افغانستان د تېرو څو لسیزو د تاریخ په اوږدو کې، د لومړي ځل لپاره وو چې د یو زر او پنځه سوه کسانو څخه ډېر، په داسې ژبه چې هغه د توپک ژبه نه وه،د هېواد د سیاسي راتلونکي په اړوند بحث پیل کولو.

د بېړنۍ لویې جرگې ځینې غړي یو زر او شپږ سوه او دوه پنځوس غړي اعلان شول چې د افغانستان د ننه خلکو څخه او په بهرنیو هېوادونو کې د افغان کډوالو، پکې برخه اخیستی وه.له دې ډلې څخه ۵۰ غړي انتصابي وو چې د موقت اداري د رییس لخوا ټاکل شوي وو.په افغانستان کې د انتخابي لومړنۍ جرگې په شکل، بېړنۍ لویې جرگه وکولی شو د افغانستان د ملت څخه د مختلفو اقشارو، چې کډوال هم پکې شامل وو، استازیتوب کولو.په دې جرگه کې چې د نړی

د ګوټ ګوټ څخه مختلفو هېوادونو پاملرنه یې هم له ځان سره درلود، د افغان ښځو حضور په خاصه توګه، ډېر د پاملرنې وړ وو.

## انتقالي اداره د نامتوازن جوړښت سره

په بېړنۍ لویه جرګه کې، حامد کرزی د افغانستان د انتقالي دولت رییس وټاکل شو. حامد کرزی د موقت ادارې د رییس په صفت د ډاکټر مسعوده جلال سره په رقابت کې، وکولی شو چې د رایه ورکوونکو څخه تر نورو ډېرې رایې په دې جرګه کې لاسته راوړي.

انتقالي اداره هغه دوهم ګام وو چې د افغانستان د سیاسي ثبات او د دیموکراسۍ طرف ته، د بن د کنفرانس د هوکړې په اساس، په نظر کې نیول شوی وو. د لومړۍ مادې په څلورم بند کې چې د بن د هوکړې عمومي احکام پکې دی، موقت اداره د افغنستان د مسوول ګذار په صفت د ثبات او دیموکراسی خواته، معرفي شوه.د دې بند په یوه برخه کې ذکر شوي:؛دا اداره – انتقالي اداره – د دوو کلو په ترځ کې د لویې جرګې د جوړېدو د نیټې څخه، شرایط د د داسې یو حکومت د جوړولو په خاطر چې په بشپړه توګه استازیتوب وکړي، او د ازاد او مناسب ټاکنو په پایله کې به وټاکل شی، دا شرایط به اماده کړي.؛

په ۲۰۰۲ ز کال کې بېړنۍ لویه جرګه جوړه شوه او حامد کرزی د انتقالي دولت د رییس په توګه وټاکل شو.

موقتي حکومت چې د شپږ میاشتو د دورې لپاره په نظر کې نیول شوی وو، اصلی موخه یې دا وه په افغنستان کې ملي حاکمیت متمرکز کړي. د موقت حاکمیت د جوړېدو څخه وروسته، افغانستان د قدرت د ګډوډیو شاهد وو.ډېر شمېر مشران د هېواد په ډېر شمېر سیمو کې، د خپلې وسلې په زورکولی شو چې قدرت په لاس کې واخلي او سوله یا جګړه پیل کړي.موقت حکومت وشو کولی چې دغه مشکل ته د پای ټکی کېږدي.انتقالي ادارې لپاره پلان دا وو چې په لا نوره لویه اندازه فعالیت وکړي.دې اداړې مسولیت درلود چې داسې لارې پیدا کړي چې افغانستان ته تل پاتې سوله او ثبات راولي. د دې په اوږدو کې یو مهم ټکی د ټولنې قانونمندي کول دي. تیمور شاران په ۲۰۰۹ کال کې په بي بي سي کې داسې لیکلي:

**په ۲۰۰۲ زکال کې د بن هوکړې د کاغذ پر مخ د حکومت لپاره یوداسې بنسټ کېښود، چې پراخ بنسټه پایې ولري،د ټو قومونو څخه جوړ، متوازن سیاست سره منځته راشي. د دې صفت په درلودلو، قدرت په عملي ډول سره په عمومي ډول د هغه ډلې په اختیار کې چې ؛د شمال ایتلاف؛ ګڼل کېدو، او په خاصه توګه د جمعیت د ګوند د کوچنی نظامي څانګې پورې اړوند وو چې ؛پنجشیري؛ په نامه پېژندل شویو کسانو څخه جوړ شوی وو.؛**

د شمال ایتلاف،د ۳۰ پوستونو څخه ۱۷ مهم پوستونه خپل کړل چې مهم وزارتونه لکه د دفاع وزارت،کورنیو چارو وزارت، بهرنیو چارو وزارت، پلان، تجارت او د ملي امنیت ریاست ټول په هغه کې شامل وو.په دې کې یوازې دوه پوستونه د

دولت د ریاست او د مالیی وزارت، هغه ډلې ته چې د ؛روم؛ د ډلې په نامه پېژندل کېده او د ظاهرشاه پلویان وو، ته په اختیار کې ورکړل شو.

په دې ترتیب سره، شمالي ایتلاف،چې د طالبان د نسکورېدو څخه وروسته یې د کابل کنټرول په خپل لاس کې واخیست،د ټولو چالاکیو ګټونکی وو.دا کابینه متوازنه نه وه،ځکه په دې کې ځینو ډلو ته د اندازې څخه اضافه برخه ورکړل شوې وه او ځینو نورو ته یې واقعي برخه نه وه ورکړې. د بن د هوکړې په پلي کولو کې لنډیز او خطایي کول، د قدرت د متناسب وېشلو په برخه کې،داخلي جنجالونه په شدت سره د حکومت د مختلفو څېرو تر منځ وروسته ښکاره کړل.

ښاغلي کرزي چې کولی شو ووایو چې د ؛جنګسالارانو؛ په منځ کې راګیر وو او د نفوذ حوزه یې، کابل کې محدوده وه، په ۲۰۰۳ کال کې،د رقیبانو د سیاست د ډګر څخه د لرې کولو سیاست خپل کړ او کوښښ یې وکړ څو په خپل کابینه کې د شمال د ایتلاف برخه کمه کړي.

په همدې دلیل د ۲۰۰۲ او ۲۰۰۵ کلونو په منځ کې، د شدیدو کشمکشونو او جنجالونو شاهدان یو چې د هېواد په دننه کې د مختلفو دولتي پېژندل شویو کسانو تر منځ وو، ستونزو به برخه کې جمهور رییس د خپل د نیږدې متحدینو سره، یو خواته او ؛جهادیان؛ د شمال ایتلاف بلې خواته وو.

**نوی اساسي قانون**

د قانون د حاکمیت په موخه، انتقالي دولت ته وظیفه ورکړل شوې وه چې د اساسي قانون د تصویب په موخه لویه جرګه جوړه کړي او د افغانستان لپاره،نوی اساسي قانون تصویب کړي.د بن د هوکړې په اولو شپږو مادو کې،دولت په دې باندې موظفه شوی وو چې د اساسي قانون لویه جرګه د انتقالي حکومت له جوړېدو وروسته په اتلسو میاشتو کې، جوړه کړي، څو د افغانستان لپاره اساسي قانون جوړ کړي، البته د قانوني تشې چې په افغانستان کې موجود وو څخه د تیښتې په موخه،د ۱۳۴۳ اساسي قانون پر افغانستان د نافذه اساسي قانون په نامه نافذ شو.

د اساسي قانون تدوین او تصویب کېدل،په افغانستان کې د ملت جوړونې په لار کې، یو مهم قدم وو چې د بن د هوکړې یو ډېره مهمه برخه شمېرل کېده. د یو ګډ سند جوړول د افغانستان د ټولو خلکو د ګډې غوښتنې په نامه،کولی شو چې د افغانستان د جګړو څخه ستړي خلکو ستړیا ته د پای ټکی کېږدي.

د بن په هوکړه کې راغلي وو چې نوی اساسي قانون د اساسي قانون د لویې جرګې پواسطه چې د انتقالي حکومت له جوړېدو اتلس میاشتې وروسته جوړېږي، د تصویب شي. همدغه موافقتنامه،دا پېش بیني کړې وه چې د اساسي قانون کمیسیون چې د انتقالي دولت لخوا د ملګرو ملتونو په مرسته به جوړېږي.

د دی تعهداتو په رڼا کې، د انتقالي دولت رییس حامد کرزی د ۱۳۸۱ د میزان په ۱۳ نیټه چې د ۲۰۰۲ ز کال د اکتوبر ۵ سره سمون خوري، نهه کسان یې د اساسي قانون د کمیسیون د غړو په صفت د تسویدي لپاره وټاکل.دا کمیسیون د

نعمت الله شهراني په مشرۍ، د دولت د رییس مرستیال،مسوده ابتدایي، اساسي قانون یې جوړ کړ او د اساسي قانون د تدقیق کمیسیون ته یې وروسپارلو.

نوی اساسي قانون،د اساسي قانون په لویه جرگه کې چې د ۱۳۸۲ د قوس او جدی په میاشتو کې وه،په تصیوب ورسولو. د اساسي قانون تصویب تر ټولو مهم او اخیرنی کار وو چې افغانستان یې د ثبات او دیموکراسی خواته د بن د هوکړې په اساسي وړاندوینه شوی وو.د اساسي قانون تصویب کېدل د جمهوري ریاست او ولسي جرگې ټاکنو لپاره او د یو مقتدر حکومت د حاکم کېدو په خاطر، چې مشروع او د خلکو څخه جوړ وي، د افغانستان لپاره یې شرایط اماده کړل. د اساسي قانون په رڼا کې ۱۳۸۲ ه ل کال،د افغانستان د جمهوري ریاست ټاکنې په ۱۳۸۳ کې او د ولسي جرگې ټاکنې په ۱۳۸۴ کې وشولې او د حاکمیت ملي کول او قدرت خلکو ته سپارل چې ثبات ته د رسېدو په موخه د بن په تړون کې ورڅخه یادونه شوې وخ، هم سرته ورسېد.

د اساسي قانون محتویات څه دي؟

اکثر عصري قوانین او له هغې جملې څخه د افغانستان اساسي قانون دا لاندې مسایل په خپل جوړښت کې لري.

- اصلي اصول او ارزښتونه چې د یو هېواد د اوسېدونکو کسانو لپاره ضروري دي (دا مسایل اکثرا د اساسي قانون په مقدمه کې لیکل کېږي)
- د دولت جوړښت
- د دولت د صلاحیت او د قدرت حدود
- د اتباعو حقوق او مکلفیتونه (چې اکثر یې د کسانو د حقوقو او ازادیو په فصل کې توضیح شوي دي)
- شورا، - لویه جرگه،- حکومت،- قضا، - اداره،- بېړنی حالت،- د اساسي قانون تعدیل،

د افغانستان اسلامي جمهوریت؛ په ۲۰۰۳ کال کې د لویې جرگې لخوا د ټولو ملي او سیاسي ځواکونو په قاطع ملاتړ سره چې لویه جرگه کې شامل وو، چې د هغوی څخه اکثریت په اوسني ملي وحدت حکومت کې هم شامل دي، د پراختیایي پروژو لپاره د ایتلافي هېوادونو لخوا د میلیاردونو ډالرو د مرستې وعدې چې د طالبانو ضد وو، زموږ د ستم لیدلي او بدې ورځې ځپلي خلکو لپاره لکه د سهار نسیم په شان، د روښانه راتلونکي زیری وو، د یو سوله ییزه راتلونکې خبر، چې صفا او له ارام څخه ډکه راتلونکې یې ښودلو.

### په ۱۳۸۳ ه ل کال کې په افغانستان کې د جمهوري ریاست ټاکنې (۲۰۰۴)

دا ټاکنې باید د ۱۳۸۳ د چنگاښ په ۱۵ نېټه سرته رسېدلی وی، مگر د دوه ځلو لپاره، و ځنډېدې. یوځل د سنبلې په میاشت کې او دوهم ځل د میزان په میاشت کې. د افغانستان د اسلامي جمهوریت د اساسي قانون د شپیتمې مادې په اساس،د جمهور رییس سره، دوه نور کسان د مرستیالانو په نامه نوماند شول.ځینو کاندیدانو،د ډېرو رایو د تر لاسه کولو

په موخه، خپل مرستیالان یې د نورو قومونو څخه ټاکل، دا په داسې حال کې چې کاندید نشو کولی د ۵۰ سلنې ډېرې رایې له خلکو څخه لاسته راوړی.

د ۲۰۰۴ کال ټاکنې د افغانستان په تاریخ کې، لومړنۍ ټاکنې وې چې خلکو د جمهور رییس د ټاکنې په موخه او د هغه د دوو مرستیالانو د ټاکنې په خاطر، د ټاکنو صندقونو ته ولاړل. دا ټاکنې د ۱۳۸۳ کال د میزان په ۱۸ نېټه سرته ورسېده او **حامد کرزی** د ۵۵.۴ سلنه رایو په ګټلو، د افغانستان لومړنی منتخب جمهور رییس وټاکل شو.

دا ټاکنې د ګڼ شمېرو داخلي او بهرنیو څارونکو په شتون کې سرته ورسېدې.د دې ټاکنو مسولیت د یو یوولس کسیز کمیسیون په غاړه وو چې د جمهور رییس په فرمان په انتقالي دوره کې جوړ شوی وو او د دې کمیسیون پنځه غړې، په نړیواله سطحه د ټاکنو په چارو کې کارپوهه او مسلکی کسان وو،دا په کابل کې د ملګرو ملتونو سیاسي سازمان ټاکلي وو.

حامد کرزی په دی وتوانېدو چې په دی ټاکنو کې د نورو کاندیدانو په پرتله ۳ برابره رایې وګټې. دولس نور نوماندان یا کاندیدان په ټاکنو کې د ۱ سلنه رایی ګټلې وې . دا په اټکلي شکل سره دا ښکاره کوي چې د څلورو څخه د دریو نه هم اضافه د تخمینا ۱۲ میلیوني واجد شرایط کسانو چې په دی ټاکنو کې یې برخه اخیستې وه، وو. دا ټاکنې د مشترکه نظارت سازمان د نظر لاندې چې د رکیم شاه او د ارشد معاون لخوا چې ری کندی چې امریکایی وو او د ملګرو ملتونو د سازمان کارکونکي وو، اداره کېدې.

## نوماندان او مسایل

په دې ټاکنو کې ۲۳ کسان کاندید شول، پنځه کاندیدان لرې شول.

- د افغانستان موقت جمهور ریس **حامد کرزی**.اګر چې هغه په دې ټاکنو کې په خپلواک ډول سره راښکاره شو، مګر د څو سیاسي ګوندونو ملاتړ چې په هغه کې افغان ملت چې سوسیال دیموکرات حزب دی،لخوا یې ملاتړ هم درلود. احمد ضیا مسعود او محمد کریم خلیلی په دې ټاکنو کې د هغه مرستیالان وو.

- په لومړي سر کې **جنرا عبدالرشید دوستم**، د افغانستان د ملي اسلامي جنبش مشر او د افغانستان د ملي اردو غړی د کرزي په موقت حکومت کې د کرزي د اصلي رقیبانو څخه پیش بیني شوي وو، مګر د ټاکنو د مبارزاتو په اوږدو کې ښکاره شوه چې د هغه محبوبیت محدود وو.شفیقه حبیبي او مصطفی کمال مخدوم د هغه مرستیالان په دې ټاکنو کې وو.

- **یونس قانوني،** چې په موقت حکومت کې یې د څو مهمو پوستونو چارې په غاړه درلودې، په دې ټاکنو کې یې خپل ځان د حامد کرزي رقیب او د هغه د مخالفینو څخه ښکاره کولو. قانوني د شمال ایتلاف د غړو څخه پېژندل شوی کس وو او د محمد قسیم فهیم په ملاتړ،چې د موقت جمهوري ریاست لومړی مرستیال وو چې د کرزی د ټیم څخه لرې شوی و، حضور یې وموند. قانوني د احمد شاه مسعود د میراث خوری ادعا کوله، د نورو کاندیدانو په شان چې په هغه کې

احمد ضیا مسعود چې د حامد کرزي په ټیم کې یې شته و. په ټاکنو کې د یونس قانوني مرستیالان  تاج محمد وردګ او سید حسین عالمي بلخي وو.

- **محمد محقق د** افغانستان د اسلامي وحدت د ګوند مشر، د حامد کرزي او د برهان الدین رباني د حکومت په دوران کې وزیر او د عبدالرشید دوستم له متحدینو څخه وو. هغه د ټاکنیزو مبارزاتو په اوږدو کې، کرزي ته یې د یو ضعیف مشر په نامه کتل او نیوکې یې پرې کولې او تعهد یې کولو چې د مخالفو متحد شویو اړخونو سره او د مخدره موادو تجارت ته به د پای ټکی کېږدي. د هغه مرستیالان نصیر احمد انصاف او عبدالفیاض مهرایین وو.

- **عبدالحفیظ منصور** چې ۴۱ کلن وو، د ریاست جمهوري تر ټولو کاندیدانو ځوان کاندید وو. هغه د شمال ایتلاف له غړو څخه وو او د احمد شاه مسعود د میراث ادعا یې هم کوله. د هغه کاري سابقه د خبریالی په څانګه کې وه او هم د اطلاعاتو او فرهنګ وزیر پاتی شوی وو.د ټاکنیزو مبارزاتو په اوږدو کې هغه پر حامد کرزي د ټاکنېزې دیکتاتوری کوښښونو تور ولګولو.د هغه مرستیالان محمد اقبال منیب او محمد ایوب قاسم وو

- **احمد شاه احمد زی** د ښې دیني اړخ اصلی کاندید وو. هغه د شوروي لخوا د افغانستان د اشغال په دوران کې د دولت لومړی وزیر د تبعید په حال کې په پاکستان کې وو. احمد زی پخوا د یو راډیکال اسلامي ګوند مشر  چې د مجاهدینو، طالبانو او القاعدې سره یې همکاري درلوده، وو،مګر د دی زمانی څخه، د هغوی سره د ټولو تعلقاتو څخه یې انکار کړی.مرستیالان یې عبدالله عبید او عبدالمنان ارزګانی وو

- **همایون شاه اصفي** د سلطنت غوښتونکو ډلې مشري یې په غاړه درلود،د دی سره سره چې د افغانستان پخوانی پاچا محمد ظاهر شاه،دا ادعا ردوله. مرستیالان یې محمد هاشم عصمت الله او نیلات مبارز وو

- **عبدالستار سیرت** چې د ۱۹۷۰ په لسیزه کې د څو وزارتخانو په تشکیل کې ونډه درلود او وروسته یې د پاچا د استازی په صفت د افغانستان څخه د تبعید په حالت کې ژوند کولو. هغه په اول سر کې د موقت حکومت د رییس په صفت وټاکل شو مګر د کرزی په نفع ترې تېر شو.د هغه مرستیالان محمد امین وقاد او عبدالقادر امامي وو

- **مسعوده جلال** د طب ډاکټره او یوازېنی ښځه د کاندیدانو له ډلې څخه وه.په داسې حال کې چې په دې ټاکنو کې دوې ښځینه مرستیالانې هم موجود وې (نیلاب مبارز او شفیقه حبیبي). د مېرمن جلال مرستیالان په دې ټاکنو کې میر حبیب سهیلي او سید محمد عالم امیني وو

- **عبدالطیف پدرام** شاعر، ورځپاڼه لیکونکی او د افغانستان د ملي  کنګرې د ګوند مشر په ټاکنو کې د پناه غوښتونکو د حق څخه یې ملاتړ کولو. د هغه مرستیالان احمد نیرو او محمد قاصم معصومي وو

- **اسحاق ګیلاني** د افغانستان د ملي  پیوستون ګوند پورې تړلی او د مسلمانانو د صوفي اقلیت ډلې مشر،په دې ټاکنو کې کاندید وو.مرستیالان یې محمد اسماعیل قاسمیار او بریالی نصرتي وو.

- **غلام فاروق نجرابي** د ماشومانو ډاکټر، د افغانستان د خپلواکی ګوند پورې تړلی وو. د هغه غوښتنه په افغانستان کې د قومي، مذهبي او جنسی تبعیض خاتمه وه او ادعا یې کوله چې کولی شي د طالبانو سره د اړیکو پل جوړ شي. مرستیالان یې عبدالفتاح او عبدالحنان وو

- **عبدالهادي دبیر** په خپلواک ډول سره یې په دی ټاکنو کې برخه اخیستې وه. هغه په حکومت د قبیلو په انتصاب تور لګولی وو او ولسي جرګه کې یې د ملي علماوو د ځانګې د جوړښت غوښتنه کوله. مرستیالان یې عبدالرشید او داد محمد وو

- **عبدالهادی خلیلزوی** خپلواک کاندید وو. مرستیالان یې خدای نور مندو خېل او خداداد عرفاني وو

- **میر محفوظ ندايي** خپلواک نوماند وو او د موقت دولت په جوړښت کې د معادن او صنایعو وزیر وو. هغه په نورو کاندیدانو د قوم پالنې او حزب پالنې تور لګولو او ویل یې چې د یوې سمې ملي وحدت پروګرام جوړښت یې ونکړ. مرستیالان یې عارف ابراهیم خېل او محمد حکیم کریمي وو.

- **محمد ابراهیم رشید** خپلواک کاندید وو او د افغاني پناه غوښتونکو د حقوقو پلوي یې کوله. مرستیالان یې سید محمد هادي او حمید طاهري وو

- **وکیل منګل** خپلواک نوماند وو د ټاکنو د مبارزاتو په دوران کې د ښځو د حقوقو ځخه یې دفاع کوله. مرستیالان یې محمد یونس مغول او دینه ګل وو

- **عبدالحسیب ارین** خپلواک نوماند وو.۷۲ کلن وو، د نوماندانو په لست کې تر ټولو زوړ او سپین ګیری نوماند وو چې د ښځو له حقوقو ځخه یې ملاتړ کولو او دا ادعا یې کوله چې په اساسي قانون کې د ښځو حقوق، د خلکو اسلامي او فرهنګي حقوق په افغانستان کې یو منل شوی امر دی. د هغه مرستیالان دل اغا شکیب او سید محمد زمان احمد یار وو

د مهاجرینو د سازمان په مرسته (IOM) د لس میلیون کډوالو ډېری د ایران او پاکستان هېواد ځخه، په ټاکنو کې برخه واخیستله. په پاکستان کې د استوارت پوچر په مشری چې د ملګرو ملتونو د سازمان یو کوچنی ډله وه،د دوو میاشتو ځخه په لږ وخت کې د ۴۰۰ مامورینو او ۶۰۰۰ لوړ رتبه مامورینو د زده کړې په موخه د ۸۰۰ زرو کډوالو لپاره په کار وګمارل. د دې کډوالو د نیم ځخه ډېرو په ټاکنو کې ونډه واخیستله.

طالبانو دا ادعا وکړه چې د دې ټاکنو د جوړېدو مخنیوی به کوي. هغوی په امریکا د سیمې د نیولو تور لګولو. د ټاکنو په اوږدو کې، د افغانستان د ملي اردو پنځه سرتیري د نارامی او د ځمکنیو ماینونو پواسطه، ژوند له لاسه ورکړ.۱۵ تنه د ټاکنیزو مشترکه اداري د کارمندانو ځخه مړه شول او ۴۶ تنه هم ټپیان شول. دوه نړیوال کارمندان هم چې په نورستان کې په دنده بوخت وو، مړه شول.

## د ۲۰۰۴ ز کال د جمهوري ریاست د ټاکنو پایلې

### د ۱۳۸۳ هـ ل کال د میزان میاشتې ۱۸نیټې د افغانستان د جمهوري ریاست ټاکنو د پایلو لنډیز

| نوماندان | د ګوند نوماند / ګوند | قومیت | د رایو شمېر | د ټولو رایو سلنه |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| عبدالرشید دوستم | خپلواک / د افغانستان د ملي اسلامي جنبش | ازبک | ۸۰۴،۸۶۱ | %10.0 |
| عبدالستار سیرت | خپلواک | ازبک | 30,201 | %0.4 |
| | | د ازبکو د رایو شمېر | 835,062 | %10.4 |
| حامد کرزی | خپلواک | پښتون | 4,443,029 | %55.4 |
| اسحاق ګیلاني | ملي پیوستون | پښتون | 80,081 | %1.0 |
| احمدشاه احمدزی | خپلواک / د افغانستان د اسلامي اتحاد ګوند | پښتون | 60,199 | %0.8 |
| همایون شاه اصفي | خپلواک / Unity Party National | پښتون | 26,224 | %0.3 |
| عبدالهادي خلیلزی | خپلواک | پښتون | 18,082 | %0.2 |
| میر محفوظ ندایي | خپلواک | پښتون | 16,054 | %0.2 |
| محمد ابراهیم رشید | خپلواک | پښتون | 14,242 | %0.2 |
| وکیل منګل | خپلواک | پښتون | 11,770 | %0.1 |
| | | د پښتنو د رایو شمېر | 4,669,681 | %58.2 |
| یونس قانوني | د افغانستان نوی ګوند | تاجک | 1,306,503 | %16.3 |
| لطیف پدرام | ملي کنګره | تاجک | 110,160 | %1.4 |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مسعوده جلال | خپلواک | تاجک | 91,415 | %1.1 |
| غلام فاروق نجرابي | د افغانستان د خپلواکی گوند | تاجک | 24,232 | %0.3 |
| سید عبدالهادي دبیر | خپلواک | تاجک | 24,057 | %0.3 |
| عبدالحفیظ منصور | خپلواک / د افغانستان اسلامي جمعیت | تاجک | 19,728 | %0.2 |
| عبدالحسیب ارین | خپلواک | تاجک | 8,373 | %0.1 |
| | | د تاجکانو د رایو شمېر | 1,584,468 | %19.7 |
| محمد محقق | د افغانستان د خلکو اسلامي ملي وحدت گوند | هزاره | 935,326 | %11.7 |
| | | د هزاره گانو د رایو شمېر | 935,327 | %11.7 |
| د صحیح رایو شمېر (مشارکت ۷۰٪) | | | 8,024,537 | %100.0 |
| باطلې رایې | | | 104,404 | %1.3 |
| د رایو مجموعه | | | 8,128,940 | %101.3 |

*سرچینې:د ټاکنو د محاسبې نهایي پایلې د افغانستان د ټاکنو، د بي بي سي فارسي ویبسایټ،د ۲۰۰۴ د نومبر ۰۳ نېټه د چهار شنبه ورځ*

**یادابښت**: د ټولو رایو څخه ۳/۱ برخه یې باطلې اعلان شوې.څو نوماندانو په دې ټاکنو کې د خپلواک په ډول برخه اخیستې وه، د دې سره سره چې د سیاسي ډلو سره یې شناخت او اړیکې درلودې،مسعوده جلال د یوازېنۍ ښځې نوماندې په صفت په دې ټاکنو کې برخه اخیستې وه،ټولې رایې په لاس وشمېرل شوې، د هغو کسانو څخه چې د نوماند په صفت خپل نومونه یې ثبت کړی وو ۷۰٪ یې په ټاکنو کې برخه واخیستله.

**درغلي**

په دې ټاکنو کې د کرزي پنځلسو ته نیږدې رقیبانو د تقلب او درغلی خبرې مطرح کړې. اعتراض کونکي، د رایو ورکونکو د ګوتو د رنګ د پاکېدو او د حامد کرزي په نفع د بهرنیو ځواکونو او د پولیسو دخالت څخه یې د اعتراض کولو، او د ټاکنو او د هغه د پایلو د تحریم غوښتنه یې وکړه. په داسې حال کې د امنیت سازمان او د اروپا همکارۍ او د ټاکنو مقامات د ټاکنو پر صحت باندې ټینګار وکړ.

مګر د مهمو ؛جهادي؛ څېرو د دولتي فعالو پوستونو د دندو څخه لیري کول،کولی شي چې هغوی د ښاغلي کرزی په مقابل کې د حریف او رقیب درېدو په برخه کې  د ۲۰۰۴ کال د جمهوري ریاست په ټاکنو کې تعریف کړو. یونس قانوني، محمد محقق او جنرال دوستم ټول د حامد کرزي سره په رقابت کې  راغلل او کوښښونه یې وکړل چې د ډول ډول قومي ډلو له لارې په دې ټاکنو کې استازیتوب وکړي.

ښاغلی کرزی په ۲۰۰٦ کال کې او د ؛جهادي؛حریفانو د دولت څخه د لرې کولو په طریقه، په عین حال کې د مخالفینو د سیاسیت څخه لرې کولو څخه په استفادې یې له قدرت څخه لرې وساتل او د دې لارې یې یوه  پیچلې شبکه د قومندانانو سره د اړکې، د قومي مشرانو او نورو لوبغاړو سره د شبکو په جوړولو یې،یو قدرت جوړ کړ.د ۲۰۰۹ کال ټاکنې د همدغه سیاست بیا پلې کېدل وو چې د هغه په بنسټ دی د زورواکو سره لکه جنرال دوستم،محمد محقق او نورو سره یې معاملې وکړې څو د دوی په حمایت کولو کې دولتي پوستونه، چوکۍ او نور امتیازات د هغو لپاره ومني.په دې مانا چې هر هغه چا چې د دې څخه د مخه کوښښ کړی وو چې د هغه موقعیت او پوزیشن د افغانستان په سیاسی ټولنه کې ضعیف کړي.

**۲۰۰٦ ز کال او د نا ارامیو پیل**

په تاسف سره چې د ۲۰۰٦ ز کال په پیل کې، د ترقي، خپلواکي او د خلکو د سوکالۍ د دښمنانو د مرمیو لومړنۍ ډزې بیا پیل شوې، د خلکو په امیدونو، د جګړو د تورو تیارو سیورې د ختیځ له لوري بیا پریوت. هغه دیو چې د ځمکې لاندې  شوی وو، بیا یې خپل سر را پورته کړ!

زمونږ د خلکو په مورچل کې پراته دښمنانو یو ځل بیا زمونږ د غفلت او نفاق څخه استفاده وکړه او مونږ یې د یو بل پر سر دښمنان کړو. بهانه یې وموندل او د بحران څخه وتلو تېز تبر ته یې بیا لاسته ور واچولو څو د امیدواره کونکي راتلونکي د لرلید سره سره،زمونږ خلک یوځل بیا په خپلو وینو ولمبوي او ورنګوي. دا د وینو بهېدل تر نن ورځې پورې په ډېر ځواک سره او د پخوا څخه په تیزۍ ادامه لري.

## د افغانستان د ۲۰۰۹ کال د جمهوري ریاست ټاکنې

د افغانستان د دوهم ځل لپاره د جمهوري رياست ټاکنې، د يو خپلواک کميسيون مسوليت وو چې ټول غړي يې افغانان وو. د ټاکنو خپلواک کميسيون (IEC) چې د افغانستان د ولسمشر د حکم په اساس د ۲۰۰۵ کال د جولای په نولسمه جوړ شوی و،۹ غړي درلودل، چې په هغه کې  يو رييس او يو معاون او دوه ښځينه غړي پکې شامل وو.

عزيز الله لودين چې د حقوق او سياسي علومو په برخه کې يې لسانس او د اقتصاد په برخه کې يې ډاکټري درلوده، د دی کميسيون رييس او جنرال ايوب اصيل چې د عدالت او پوليسو په برخه کې ماسټري لري، د دې کميسيون مرستيال وو. د ټاکنو د کميسيون د رييس ټاکل، د ولسمشر د فرمان په اساس سرته رسېږي.

**د افغانستان د ولسمشرۍ ټاکنې** د ۱۳۸۸ ه ل کال د اسد مياشتې په ۲۹ نېټه سرته ورسېدې،په اول سر کې د حامد کرزي د رايو شمېر د رايو پنځه پنځوس سلنه واجد د شرايطو اعلان شو، مگر د تقلب د نيوکو څخه وروسته او د کتنو په پايله کې په ټاکنو کې د کرزي رايې د پنځوسو سلنه څخه هم ښکته  راغلې او ټاکنې دوهم پړاوو ته ولاړې،د کرزي رقيب عبدالله عبدالله اعلان وکړ چې د حکومت په غلطو کړو او پر هغه په اعتراض کې او د ټاکنو د کميسيون ناسم چلند، په سبب،په ټاکنو کې بيا برخه نه اخلی، په پايله کې کرزی منتخب جمهور رييس اعلان شو.

د دې ټاکنو څخه وروسته او د څرنگوالي په اړه يې د تشويشونو په ښودلو، د ټاکنو کميسيون د ټاکنيزو شکاياتو برخه،د رايو د بيا شمېرلو لړۍ پيل کړه. د بي بي سي په خبر، په همدې بنسټ وو چې د بيا شمېرلو په ترڅ کې، د حامد کرزي رايې د ۵۰٪ سلنې ښکته راغلې، د افغانستان د ټاکنو د قوانينو پر بنسټ، په داسې حال کې چې هېڅ يو نوماند د ۵۱٪ رايو د لاسته راړلو له لارې بريالی نه شي، نو ټاکنې به دوهم پړاوو ته ځي.

د ټاکنيزو مبارزو په لړۍ کې،د ولسمشرۍ يوولس نوماندان د نورو نوماندانو په نفع، له ميدان څخه لرې شول:مولوي محمد سعيد هاشمي، باز محمد کوفي، نصر الله بريالی ارسلايي، عبدالمجيد صميم ,حکيم تورسن ,ياسين صافی ,نصير صافی ,هدايت امين ارسلا ,شاه محمود پوپل، محمد نصير انيس، سن علي سلطاني ,عبدالقادر امامي غوري ,محمد داود ميرکی.

## د ټاکنو پایله

په نومبر کې، ډاکټر عبدالله اعلان وکړ چې، د دې په خاطر چې شرطونه يې د ټاکنو د دوهم دور د پيل لپاره نه دي منل شوي،هغه به د ټاکنو په دوهم پړاوو کې چې بايد د نومبر په اوومه پيل شوي وی،کې به برخه وانخلي.د عبدالله عبدالله غوښتنې او تقاضاوې داسې وې: د ټاکنو د خپلواک کميسيون د رييس سمد لاسه له دندې څخه لرې کول، او د ځينې دولتي اراکينو د معطل کولو غوښتنه چې په هغه کې د کورنيو چارو وزير، د پوهنې وزير او د سرحداتو او قومنو او قبايلو وزير شامل وو.هغه د ماليې د وزارت پر دندو نظارت، اطلاعات او فرهنگ،حج او اوقاف او د ملي  راډيو تلويزيون وزارتونو غوښتنه هم کړې وه .

په دې شکل سره عبدالله عبدالله په غیر ډیموکراتیک ډول سره د ټاکنو پایلې یې له پیل څخه و نه منلې او دا یې په دوه راتلونکې ټاکنو کې بیا او بیا تکرار کړل. هغه همداراز په غیر معمول ډول سره د ټاکنو د کمیسیون د رییس د دندې څخه د لرې کولو غوښتنه او د هغه بدلول، د درې راتلو جمهوري ریاست ټاکنو په اوږدو کې یې کړې وه. په دی شکل دی چې د رقیب ټیم کپتان د فوټبال د یوې لوبې په ترڅ کې، د ریفري د بدلولو غوښتنه وکړي!

د افغانستان په هېڅ اساسي قانون کې، د ټاکنو د کمیسیون د کړنو په اړوند د یو نوماند د غوښتنې په بنسټ د ټاکنو د دوهم پړاو د پیلیدو څخه د مخه، څه لارښوونه نه ده شوی. د دې سره سره د ټاکنو دهم پړاوو امنیتي مشکلاتو سره مخ وې چې د دی بیا سمبالول یې د سوال لاندې راوست، او داسې وړاندوینه شوې وه چې د بیا ټاکنو په کولو سره، به ډېر تلفات منځ ته راشي.

د نومبر په ۲،د جمهوري ریاست د ټاکنو خپلواک کمیسیون، کرزی، چې په لومړي پړاوو کې مخکې وو، او په دوهم پړاوو کې عبدالله عبدالله انصراف وکړ، بریالی اعلان کړ. دا کمیسیون د خپل دې اقدام په خاطر د اساسي قانون پر ٦١ ماده باندی اتکا وکړه:د ټاکنو دوهم پړاوو ته تلل،په هغه حالت کې کېدونکي دي،چې حد اقل دوه مخکښه نوماندان پکې سره سیالي وکړي.

ډاکټر عبدالله د نومبر په ۴ نېټه یو مطبوعاتی کنفرانس راوغوښت چې په هغه کې یې وویل چې د ټاکنو د کمیسیون دا پرېکړه،کوم قانوني بنسټ نلري او غیر قانوني بلل کېږی.

د حامد کرزی ټاکنېز مرکزي دفتر، د افغانستان د ټاکنو د کمیسیون پر خپلواکی باندی ټینګار وکړ وې ویل چې دغه کمیسیون د ښاغلی کرزی څخه د اګست په شلمه په ټاکنو کې، پلوي او ملاتړ نه دی کړی.

د ټاکنو نهایې پایلی په لاندې جدول کې د نوماندانو په تفکیک تشریح شوې دي.

**د جمهوري ریاست د ټاکنو نهایي تصدیق شوې پایلې**

**۲۰۰۹ د ۱۳۸۸ د میزان ۲۹ د چهارشنبې ورځ د ټاکنو خپلواک کمیسیون**

| د نوماند نوم | قومیت | د رایو شمېر | سلنه ٪ |
|---|---|---|---|
| میرویس یاسیني | پښتون | 47,511 | 1.00% |
| الحاج عبد الغفور (زوری) | پښتون | 9,283 | 0.20% |
| حامد کرزی | پښتون | 2,283,907 | 49.70% |
| اشرف غني احمدزی | پښتون | 135,106 | 2.90% |
| شهنواز تنی | پښتون | 29,648 | 0.60% |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ملا عبد السلام ( راکتي ) | پښتون | 19,997 | 0.40% |
| داکتر حبیب منگل | پښتون | 18,747 | 0.40% |
| معتصم بالله مذهبي | پښتون | 18,248 | 0.40% |
| محمد سرور احمدزی | پښتون | 14,273 | 0.30% |
| الحاج رحیم جان شیرزاد (فی سبیل الله) | پښتون | 7,197 | 0.20% |
| عبدالجبار ثابت | پښتون | 6,190 | 0.10% |
| محمد اکبر (اوریا ) | پښتون | 2,991 | 0.10% |
| هدایت امین ارسلا | پښتون | 2,346 | 0.10% |
| | د پښتنو مجموعه | 2,595,444 | 56.40% |
| عبد الله عبدالله | تاجک | 1,406,242 | 30.60% |
| داکتر فروزان ( فنا ) | تاجک | 21,512 | 0.50% |
| عبداللطیف ( پدرام ) | تاجک | 15,462 | 0.30% |
| محبوب الله ( کوشاني) | تاجک | 10,255 | 0.20% |
| پروفیسور دوکتور غلام فاروق ( نجرابي) | تاجک | 4,528 | 0.10% |
| عبدالحسیب ( ارین ) | تاجک | 4,472 | 0.10% |
| محمد هاشم توفیقي | تاجک | 5,043 | 0.10% |
| بشیر احمد بیژن | تاجک | 2,457 | 0.10% |
| | د تاجکانو مجموعه | 1,469,971 | 32.00% |
| سید جلال کریم | سادات | 13,489 | 0.30% |
| شهلا ( عطا ) | ازبک | 10,687 | 0.20% |
| ذبیح الله غازي نورستانی | نورستانی | 6,284 | 0.10% |

| | | | |
|---|---|---|---|
| رمضان بشردوست | هزاره | 481,072 | 10.50% |
| بسم الله شیر | | 4,880 | 0.10% |
| انجنیر معین الدین الفتي | | 3,518 | 0.10% |
| گل احمد (یما) | تاجک | 3,221 | 0.10% |
| ملا غلام محمد (ریگي) | | 3,180 | 0.10% |
| سنگین محمد ( رحماني ) | | 2,434 | 0.10% |
| عبدالمجید صمیم | | 2,198 | 0.00% |
| ضیأ الحق حافظي | | 1,679 | 0.00% |
| | د نورو نامعلومو مجموعه | 21,110 | 0.50% |
| د رایو مجموعه | | 4,598,057 | 100.00% |

*سرچینه:د افغانستان د ټاکنو خپلواک کمیسیون*

مگر په کوم ډول سره چې سپنتا په خپل ؛د ننه څخه روایت؛ کتاب کې لیکلي دي، حامد کرزی د خپلې حکومتدارۍ په اخیرو کلونو کې، د یو صبور انسان څخه، په یو خودمحوره، ضعیف بېچاره؛ باندې بدل شوی و. په ځانګړې توګه د ۲۰۰۹ کال د ولسمشرۍ د ټاکنیزو لانجو څخه وروسته، کرزی داسې امریکا او لوېدیځ ته بدبین شوی وو،چې د سپنتا په وینا ؛د تل لپاره د امریکا لخوا د یوې توطیې په تمه وو؛.

## د طالبانو څخه وروسته دولت او په افغانستان کې د مالي او اداري فساد ډېرېدل

دا لاندې مستقیم نقل قول د مهر الدین مشید څخه دی، چې د اریایي انټرنیټي خبر پاڼې څخه اخیستل شوی، کولی شي د افغانستان د پراخ بنسټه فساد لپاره ښه پیل وي، هغه داسې لیکلي: ډېر لوی مشکلات لکه د بانکي او مالي فساد، د حق له منځه وړل، د قانون ضد عمل کول،د عامه شتمنیو او دارایيو غلا کول، د عامو او دولتي ځمکو غضب کول دا شان نور کړاونه، زموږ د خلکو ستونی کلک او ټینګ کړی وو او فاسدو چارواکو او معامله کونکي زمامدارانو په دې مشکل لا نور اضافه کولو تر دې چې د خلکو څخه یې د اخ ویلو حق هم اخیستی وو. هغه مافیا چې د هېواد د دریو لسیزو له سببه را پیدا شوې وه چې په هغه کې د مخدره موادو د قاچاق مافیا،د قدرت او سیاسي واک مافیا، د اداري فساد مافیا، مالي او اقتصادي مافیا،د دولتي او عامه ځمکو د چور کولو اداره شوې مافیا، د بیوروکراسۍ مافیا، د تکنو کراسۍ مافیا او حتی د موډرن پست مافیا، موډرن او نورې نړیوالې مافیاوې په داسې شکل سره لاس په لاس کار سره کولو چې د مخدره موادو، اقتصادي او مالي مافیا، اداري فساد مافیا په اخیر کې په نړیوال موډرن کچه دې مافیاوو سره لاس یو کړی وو او د افغانستان د تاریخ او ټول ارزښتونه یې ترې قرباني کول او په دې اندازه چې پروني جهاد کونکي چې ډېر مومن

کسان وو،خپل تول دار او ندار یې د خپل دیني عقایدو په پای کې د مبهمې ازادۍ په خاطر د اخلاص په کاسه کې ورته اېښودلي وو، هغوی یې داسې په خپل دام کې گیر کړي وو، چې تر ټولو لوی جهادي ارزښتونه چې د ؛در دري؛ څخه لوی دي او په تعبیر سره ؛پارسي قند؛ دی، نه د خوگانو په پښو کې، مگر د خوگ په شکل د خوگانو تر پښو لاندې یې تیت او دانې دانې کړي.... اوسنی نسل چې په هغه کې د جهاد وارثین او غیر جهادیان هم شامل دي، ټول یا د مافیا د نسل سره یوځای شوي او په مافیایي ډول سره وهل شوي دي. د ننگینو دارایيو او شتمنیو درووند بار یې په داسې شکل سره پر فکر باندې فشار راوړي، او د خلیج د خرما د ونې د څانگو مجلل کورونه یې،د دوی د قهر څخه ډک روح یې تر تاثیر لاندې نیولی دی چې د مرگ تر حده،به تر خلاص نه شي.؛ (مهر الدین مشید، انټرنیټي اریایي خپرونه)

د نړیوالو سازمانونو د خبرونو پر بنسټ، افغانستان د امریکا د ۲۰۰۱ کال د نظامي یرغل څخه وروسته د نړۍ د تر ټولو ډېر فاسد هېوادونو په لړ کې د مالي او اداري چارو په برخه کې معرفي شوی دی. افغانستان د تېرو ۱۸ کلو په اوږدو کې د سلگونو میلیاردو ډالرو په پورته کښته کېدو کې چې بهرنی مرستې او د سلگونو نړیوالو موسسو موجودیت او د بهرنیو بنستونو د مدیریتی کارونو اضافه کولو له وجهې، باید په یو موډرن او پر مختللي هېواد بدل شوی وی، بر عکس یې،د برنامو او پروژو د طرحو د نه موجودیت له کبله، د فساد د اضافه کېدو او د مرستو د سم مدیریت نه کولو او د څارنې موثر سیستم نه موجودیت او د مالي حساب ورکولو سیستم د نه موجودیت له وجهې، د نړۍ په تر ټولو لوی فساد تولید کونکي هېواد بدل شو.

په اریایي کې مهر الدین مشید داسې وایي: ؛د توکیو د کنفرانس څخه وروسته،لندن، پاریس، کابل، استانبول او ... د ۶۷ میلیارد ډالر څخه ډېر د افغانستان لپاره ژمنه وکړه چې د ۴۵ میلیارد ډالرو څخه ډېر د هغه جملې څخه افغانستان ته راغلی او معلومې نه دي چې چېرته،کومې پروژې او د چا لخوا څنگه مصرف شوې...د افغانستان خلکو ته د مرسته شوې پیسو څخه ۸۰ سلنه د داخلي او نړیوالو مافیاوو په برخه شوې او د دې غلا او چور د پردې شاته بهرني دلالان او داخلي غلو ته گورو چې د خلکو د وینو په څښلو لا نور چاغ او څټونه وکړل. بر عکس د دې، د افغانستان خلک لا نور له لوږې سره مخ شول.؛

سیگار، یا په افغانستان کې د امریکا د دولت د مالي مصارفو د تفتیش اداره، په خپل یو راپور کې د سویسي او یو هغه شرکت څخه چې په متحده عرب اماراتو کې راجستر دی، نوم اخلي چې د ۲۰۰۱-۲۰۱۴ ز کلونو کې یې د امریکا د دفاع وزارت څخه په افغانستان کې امریکایي مېشت پوځ ته د اوبو او خوراکي توکو د برابرولو په برخه کې، دوه سوه میلیون ډالرو په اندازه، اضافه اخستې وې. دغه شرکتونو په محکمه کې، په خپل جرم اعتراف وکړ او د نهایي حد جریمې په ورکولو محکوم شول [11].

---

[11] Supreme Foodservice GmbH, a privately held Swiss company, and Supreme Foodservice FZE, a privately-held United Arab Emirates (UAE) company, pled guilty to a major fraud against the United States and agreed to resolve

په افغانستان کې د پراخ بنسټ مالي او اداري فساد د موجودیت په تایید سره، حامد کرزی چې د وخت جمهور رییس وو، د هغه په دیارلس کلنه واکمنۍ کې ۲۰۰۱-۲۰۱۴ افغانستان د فساد په کړنګ بدل شو، د ۲۰۱۲ کال د دسمبر په ۲۲ نېټه یې په کابل کې په یوه غونډه کې چې د فساد سره د مبارزې نړیواله ورځ وه په تایید سره وویل ؛فساد په افغانستان کې یو اصل او حقیقت دی، یو ترخ حقیقت دی. د دې فساد یوه برخه چې زموږ په اداراتو کې دی، وړوکی فساد دی- رشوت دی، او دا زموږ خپل دی. د دې فساد بله برخه چې لویه برخه یې ده او سلګونه میلیون ډالرو ته رسېږي، زموږ نه دی **چې د بهرنیانو په وتلو سره،به د فساد اصلي ریښې وچې شي** (بي بي سي فارسي).

د اداري فساد او د مالي حساب ورکولو د یو ښه سیستم د نشتوالي له وجهې او د مسولیت د اخلاق د نشتوالي له کبله د دولت د بودیجې په اړوند او عامه شتمنیو په برخه کې، په ډېر روښانه ډول سره یوه موضوع مې په یاد ده چې د داوود خان د دولت د پلان وزیر علی احمد خرم په دفتر کې پیښ شو.د ۱۹۷۷ زکال وو او د لرلید انکشافي پروګرامونو په عمومي مدیریت کې د پلان وزیر په دفتر کې می د هغوی سره غونډه درلوده.د دې غونډې په اوږدو کې، د وزارت اداري عمومي مدیر هم راننوت او د پلان وزیر ته یې د مالیې وزیر عبدالله سره د پلان وزارت لپاره د راتلونکي کال د کلنی بودیجی په اړوند خبر ورکړ.هغه په دې لړ کې د پلان له وزیر څخه غوښتنه هم وکړه چې د تلیفون له لارې د مالیې له وزیر څخه غوښتنه وکړي چې یو قلم هغه شی یا اقلام چې د مالیې وزیر حذف کړی وو، باید یو ځل بیا منظور کړي. دا قلم د موجوده بنز موټر په عوض د یو چټک سرعت مرسیډیس بنز موټر بودیجوي خریداري وه چې د وزارت د مقام د استفادې په خاطر وو چې د شپږ کلو د استعمال څخه وروسته زوړ شوی وو، پلان دا وو چې لیلام به شي. علي احمد خان خرم د دې څخه وروسته چې د مالیې وزیر د مخالفت څخه د نوي موټر د اخیستو په اړوند خبر شو، اداري مدیر ته یې وویل چې دا موضوع همدلته پرېږده او د نوي موټر د اخیستلو خبر هم همدلته پرېږده. علي احمد خرم چې د دولت په یو با نفوذه وزارتي چوکۍ کې ناست وو، او د ټول افغانستان د ډالري مصارفو او د افغانستان د پرمختیایي بودیجی ټول صلاحیت ورسره وو، و یې نشو کولی چې د وزارتخانې یو زوړ موټر خرڅ او نوی بنز موټر د وزارت لپاره واخلي. اوس تاسو دا د ۲۰۰۱ څخه تر ۲۰۱۴ کال سره د طالبانو څخه وروسته حکومتونو سره چې اختیار او صلاحیت د اضافه خرڅیو د حامد کرزي د حکومت وزیران او حتی هغه کسان چې په دولت کې یې رسمي دندې هم نه درلودې، مګر د دولتي صلاحیت څخه یې ناوړه استفاده کوله، او تر اوسه یې هم استعمالوي، سره مقایسه کړئ.

د مثال په ډول، د سپنتا په کتاب کې چې د کرزي مشاور د ملي امنیت او بهرنیو چارو وزیر وو، د ؛راویتی از درون؛ په نامه داسې راغلي دي چې جنرال دوستم غوښتل چې د خپل زوی باتور د ترکیې نظامي اکادمۍ څخه د فارغ التحصیل کېدو په خاطر ترکیې ته لاړ شي. د دې په خاطر چې د هوایي شرکتونو په الوتکو کې سفر کول ورته ډېر ټیټ او د عار وړ ښکاریدو، و یې غوښت چې یوه خاصه الوتکه کرایه کړي. په هغه وخت کې دوستم هېڅ کار او وظیفه په دولت کې نه درلوده. یو چا ورته وویل چې جمهور رییس حامد کرزي ته دې زنګ ووهي او د هغه څخه د مرسته

civil violations of the False Claims Act, in connection with a contract to provide food and water to the U.S. troops serving in Afghanistan. (Corporate Crime Reporter, December 8th, 2014).

وغواړي.دوستم دا کار کوي او کرزي ورسره ژمنه وکړه چې مرسته به وکړي. د يو ساعت څخه وروسته د کرزي له دفتر څخه دوستم ته زنګ راغی چې د کام اير الوتکه د ده د استفادې لپاره اجاره شوې ده دی او د ده کسان به ترکيې ته يوسي او د مراسمو د ختميدو او د ترکيې د سياحت څخه وروسته به دوی بېرته کابل ته انتقال کړي او په عين حال کې د اتيا زره ډالر څخه اضافه هم د هغه د سفرخرڅ لپاره منظور شوي دي!

دا پورته دوه مثالونه دا ښکاره کوي چې دوه مختلفې د حکومتدارۍ لارې د دوو موازي مالي او اداري اخلاقو سره او د مسوليت په وړاندې د احساس د دولتي خزانې په اړه دلته په ښکاره ډول سره ليدل کېږي.

دريېم مثال د ملي شورا په دننه کې د فساد څخه کيسه کوي چې د فساد په شبکه کې د مشهورې ويل شوې خبرې ښکارندوی ده چې وايي د زور په سر بل زور دی، په شبکه کې فساد دی.عبدالباري جهاني چې د يو يا دوه کلو لپاره د اشرف غني په لومړۍ کابينه کې د اطلاعاتو او کلتور د وزير په صفت دنده درلود، د ولسي جرګې د وکيلانو د رشوت اخيستلو څخه يې پرده پورته کړه چې د وزيرانو د نوماندانو لپاره يې د دوی د کانديداتورۍ د منلو په مقابل کې د ولسي جرګې وکيلانو ته ورکولې. د اطلاعات د ورځپاڼې د يوې ليکنې پر بنسټ چې د ۱۳۹۶ (۲۰۱۷ ز) د چنګاښ په ۱۲ د دوشنبه په ورځ داسې ليکل شوی وو چې ؛د عبدالباري جهاني تريخ او نه هېريدونکې خاطرې؛ تر عنوان لاندې نشر شوي وو، هغه داسې ليکلي:

د اپرېل په څلورمه د سهار په سر کې، غلام نبي فراهي، په پارلماني چارو کې د دولت وزير، د تليفون له لارې ماته وويل چې ماښام د بل چا سره ژمنه ونکړم،ځکه ډېر مهم ځای ته به ځو. د همغې ورځې په ماښام يې ماته وويل چې د شپې د ډوډۍ لپاره، د حاجي ظاهر قدير ميلمانه يو، چې د ولسي جرګې لومړی مرستيال دی . د همغې ورځې د ماښام د اوو بجو شاو خوا، د حاجي ظاهر کور شيرپور کې ورغلو. په سړکونو او کور کې، دومره موټر ولاړ وو چې حتی د پلي ګرځېدو امکان هم نه وو. په کور کې بلاخره د دې څخه د مخه چې د غونډې يا ناستې کوټې ته ورداخل شو، د ټولو کانديد وزيرانو تليفونونه واخيستل شول، د هغې څخه وروسته بيا د ناستې کوټې ته يې لارښوونه کوله...د ډوډۍ خوړلو سره مو په دې کوټه کې دوه ساعته تېر کړل. ټول حاجي ظاهر يوازې وغږېدو. حقيقت دا دی چې د حاجي ظاهر د نيږدې يو ساعت خبرو څخه زه هېڅ پوه نه شوم، څو چې هغه وويل چې د کابينې غړي د ولسي جرګې څخه د اعتماد د رايې د لاسته راوړنې په موخه، د ډېر لوی مشکل سره مخ دي. ولسي جرګه په مختلفو ډلو تقسيم شوې ده، حتی د اکثرو کانديد وزيرانو د ردېدو امکان هم شته او که داسې وشي نو هم به ولسمشر ته صدمه ورسېږي او هم ممکن داسې بحران منځ ته راشي چې هېڅوک به يې د پايلې فکر هم نشي کولی.هغه وويل چې ولسمشر دری څلور ځلې غوښتنه کړې. د زنې څخه يې نيولی او په زارۍ او عذر يې ورته ويلي دی چې د ماما زويه! چې هر ډول کېږي، حل يې کړه! حاجي ظاهر د ډوډۍ د خوراک څخه وروسته،د چای د څښلو په اوږدو کې په اطمينان سره وويل، ورونو او خويند! په ولسي جرګه کې، د نقد پيسو څخه د استفادې پرته،د اعتماد د رايې د اخيستو امکان وجود نلري.هغه وويل چې زه پوهېږم چې کانديد وزير ټول دومره پيسې نلري چې وکيلانو ته يې ورکړي او رايې په لاس راوړي. په همدې وخت کې يې

خپل مخ زما خواته کړ او حق په جانب قوارې سره یې وویل، چې تاسې څه فکر کوئ؟ چې زه همداسې مفت د ولسي جرګې لومړی مرستیال شوی یم؟

ما د دې چوکۍ د لاسته راوړنې په خاطر، دری سوه او اویا زره ډالره مصرف کړي. حاجي ظاهر وویل چې د هر وکیل د رایې د لاسته راوړنې په خاطر، د پنځه څخه تر لس زره ډالرو ته ضرورت دی، په دې حساب هر کاندید وزیر باید د اعتماد د رایو د لاسته راوړنې په خاطر پنځوس تر سل زره ډالرو مصرف کړي. هغه وویل چې زه پوهېږم چې د ټولو کاندید وزیرانو له وسې نه کېږي چې دا پیسې برابرې کړي، موږ د هغه وزیرانو لپاره چې پیسې نلري، همدا اوس یو میلیون ډالر په خپل موټر کې راوړي (خدای د وکړي چې څوک یې وانوري او موټر غلا نه کړي،څکه ډېرې پیسې دي. مګر موټر مې ښه ځای کې درولی دی) هر وزیر،هر څومره پیسو ته چې ضرورت لري، زه یې ورکوم، هغه وزیران چې خپله پیسې لری، خپله غمه د وخوري.؛

ډاکټر طاووس وردک د مشعل په انټرنیټي خپرونه کې د فساد مثال د معتبرو نړیوالو موسساتو لخوا افغانستان ته د بهرنیو مرستو په ورکولو، داسې بیانوي. هغه لیکلي چې:

د مثال په ډول د کابل حلقوي سړک د ۲ میلیارد ډالرو په پانګه چې باید جوړ شوی وی، او (یو اېس اې ډي) هغه کس ګټونکی اعلانوي چې ۵۰۰ میلیون ډالر سم د لاسه په دوبۍ یا لوېدیځ کې په ځانګړي بانکي حساب کې تحویل کړي او نورې پیسې د قرض په شکل متباقي شرکتونو ته ورکوي، دلته یو قرارداد، د دې لپاره چې حد اقل ۵ میلیونه خالص عاید ولري اول باید ارزانه کارګران په کار واچوي او وروسته باید بې کیفیته موادو څخه د اعمار په کار کې استفاده وکړي، او په دې شکل یې چې قرار داد کړی وو،د هغه څخه یې هم لا نور کمتره مواد، مساله باب استعمال کړل چې له همدې وجهې، دا پروژه د یو کال تېرېدو وروسته له منځه ولاړه، ولې داسې کار کېږي او ولې د دې فساد مخه څوک نه نیسي؟ تر ټولو اول دا چې په دولت کې داسې کسان نشته چې دا جرات ولري چې د امریکا او یا د لوېدیځ په مقابل کې د اقدام زور ولري او یا دا چې د هغوی سره استدلال وکړي، دوهم دا چې هغه کسان چې تمویل کونکي دي،چا ته حق نه ورکوي چې د پلانګذارۍ او نورو چارو کې مداخله وکړي، دریېم په هېواد کې د نورم او سټنډرد اداره وجود نلري چې د هغه پروژو څخه چې لوېدیځ یې خپله جوړوي، څخه اداره او تفتیش وکړی.؛ ( مشعل خپرونه)

د نړیوال شفافیت د سازمان د راپور په اساس،لکه چې مخکې مو ولیکل، افغانستان په ۱۳۹۶ کال کې به نړۍ کې د فاسد ترینو هېوادونو په لېست کې پېژندل شوی وو چې د ۱۸۷ نړیوالو هېوادونو څخه په ۱۸۴ رتبه کې، په دې ډول یې په نړۍ کې د تر ټولو فاسد ترینو هېوادونو په لړ لیک کې، درېیم هېواد معرفي شوی.

امریکا دا ادعا کوي چې په دې هېواد کې یې د یو ټریلیون ډالرو څخه ډېر لګښت کړی دی، مګر مالي او اداري فساد د دې باعث شو چې د دې مرستو څخه نا سمه استفاده وشي او په دې هېواد کې پرمختګ ته پام نه کېږي . مګر حقیقت دا دی چې امرکایانو د خپلو مرستو په نوع او شکل کې د افغانستان د فساد په لا نور ډېرېدو کې لاس او برخه لري.

په تاسف سره چې هر هغه څه چې نړیوال راپورونه یې نه لیکي، د فاسد اجرایي سیستم د شبکې موجودیت دی چې د بهرني او په ځانګړې توګه د امریکایي مرستو د تطبیق لپاره وو.د دې مرستو ۲۰ سلنه څخه ډېر، حتی د امریکا څخه بهر نه دي تللې، او دا هغه پیسې دي چې افغانستان ته د مرستو تر عنوان لاندې د منظور شویو پروژو له بودیجې څخه امریکایی شرکتونو ته د حقوقي، مشاورتي او نظارتي مصرفونو تر نامه لاندې د پروژې تر پیل کولو په موخه بېرته ور کول شوې. مرستندوی هېوادونو خپله د افغانستان لپاره د مرستو لویه برخه د ځانګړو موسساتو له لارې په مستقیم شکل سره افغان قراردادی شرکتونو ته ورکولې او هغه یې هم خپله غوره کول او دا موسسی (NGO )چې بیا یې هم پخپله ټاکلو، ته ورکولې نه دا چې د افغانستان د دولت له لارې او د حساب ورکولو او تفتیش کولو په مسولیت سره هغه یې ټولې خپله دې بهرنیو موسساتو تر لاس لاندې ورکړې وې.

تر ۱۹۹۲ ز کال پورې کله چې مجاهدین قدرت ته ورسېدل، بهرنۍ مرستې افغانستان ته د هرې پروژی په ارتباط به د افغانستان بانک ته انتقالېدې او یا دا چې د مرستندوی هېواد د بانکي حساب څخه، بهرني قراردادې ته د پلان وزارت په تصدیق ورکول کېدې. د دی پیسو د مصرف په داخل کې له بهر څخه د ماشین الاتو اخیستل یا بهرنیانو ته د پرسونل د مصارف ورکول یا د پروژې د جوړولو خدمات او د پروژو تطبیق کول بهرني شرکتونو ته وو، په مقابل کې یې ګمرکي او حسابي فورمې او اسناد د دولت د ډالري بودیجې څخه پلان وزارت د انکشافی برخې د تصدیق کولو سره سرته رسېدې په دې شکل چې هر مصرف شوی ډالر تفتیش کیدی شو او حساب یې ورکول کیدو او د دې مرستو څخه په هېڅ وجهه شخصي استفاده نه کیده.د بن په هوکړه کې داسې یوه ماده ځای پر ځای شوې وه چې موجب یې د افغانستان اقتصاد ؛رقابتي ازاد بازار؛ څخه ښه یاد کړی وو او د دې سرلیک لاندې داسې کوښښ وشو چې د افغانستان د دولت نقش، د بهرنیو مرستو په تطبیق کې تر حداقل حده پورې لاندې راولي. موږ په افغانستان کې د بهرنیو مرستو د حساب ورکولو په اوږدو کې د مشکلاتو اصلي ټکی همدلته وینو.

ښاغلی کرزی په خپل حکومت کې د فساد د زیاتوالي عامل د بهرنیو میلیاردونو ډالري قراردادونه بولي او د ده په باور،نړیوال بنسټونه د افغانستان د حکومت د مشوری پرته د شرکتونو سره بېلابېل تړونونه وکړل.

ښاغلی کرزي وویل چې فساد د بهرنیو ځواکونو لخوا ؛د پراخ بنسټه تبلیغاتو؛سره د حکومت پر خلاف پیل شو.هغه دا زیاته کړې چې که دا کار ؛سهوا؛وي، افغانان یې بخښي، اما مګر که د افغانستان د حکومت د خپلواکۍ او ملي حاکمیت د کمزورتیا په موخه وي، په هغه صورت کې مقابله ورسره کوو، او د دې کار د کولو حق لرو او رسوا کوو یې

د حامد کرزي په باور، له افغانستان څخه د نړیوالو ځواکونو د وتلو سره سم،د ؛لوی فساد؛ رېښې شلېږي او وچېږي او حکومت چې د ۲۰۱۴ کال څخه وروسته په افغانستان کې به په کار پیل وکړي، به د فساد سره مبارزه وکړي. د افغانستان ولسمشر،د نړیوال شفافیت سازمان اخیرنی راپور چې افغانستان یې د فاسدترینو هېوادونو په لړ کې،د نړۍ په سویه معرفي کړی وو، تر شک لاندې راوست او هغه یې د سیاسي اهدافو پایله وبلله.(بي بي سي فارسي)

د دې حال سره، عزیز الله لودین د افغانستان د فساد سره د ضد مبارزې د اداري رییس وویل چې په دولتي بنسټونو کې د فساد په اضافه کېدو کتنې نه کېږي او په تیر یو کال کې د دې کارونو هېڅ یو مرتکب، محاکمه شوی نه دی.

ښاغلی لودین وپوښتل شو چې ولې حتی د فساد عادي دوسيو ته هم کتنه او غور نه پرې کېږي او پايلې يې خلکو ته نه ويل کېږي. د هغه په نظر، د دې پوښتنی ځواب په هغو مسايلو کې نغښتی دی چې د ده په وينا،؛د بنسټيزې ستونزې؛ د فساد سره مبارزه بلل کېږي.

د فساد پر وړاندې د مبارزی د اداري رييس دا مشکل په دې شکل سره تشريح کړ:؛په اول قدم کې د اداري فساد سره د مبارزې سيستم د کار نه دی. دوهم د فساد په مقابل کې د فساد سره د مبارزی اداری سره د موازي ادارو موجوديت، د قانون يو ډول نه تطبيق کېدل د دوی ټولو په اړوند،د سياسي ارادې ضعف د پلټنې او بيا محاکمې ته يې کش کول د جرايمو د عاملانو  چې لوی جرمونه يې کړي، او د دولت د کارمندانو حقوق د عدم کفايت؛.

د مهر الدين مشيد چې يو افغان ليکوال دی، په قول:

؛په هېواد کې اداري فساد په يو داسې قدرتمند او د کنټرول څخه بهر ځناور بدل شوی،چې ډېر سخت تشويشونه يې منځ ته راوړي. هغه دا وويل چې فساد په مافيايي ډول سره د حکومت په رګونو کې خپل کور جوړ کړی دی او د مخدره موادو، غصب او د شخصي او دولتي ځمکو غلا چې دې سره يو ځای د اطلاعاتي شبکو سره په يو زر سري ښامار چې په زرګونو پښې يې په دې هېواد کې شته دي، بدل شوی دی. په افغانستان کې اداري فساد،روښانه او واضيح سياسي علت لري چې سمېدل يې هم په اداري لارو ناممکنه دی او يوازې په سياسي تحولاتو شونې ښکاري. د اداري فساد د عواملو سره مبارزه کول، جدي عزم او اراده  او عملي برنامې غواړي، چې د دې عزم شواهد او ارادې يې په اوسني دولت کې نه ليدل کېږي.ځکه د اوسني حکومت څخه دولس کاله تيرېږي تر اوسه هم د دولتي او تشکيلاتي جوړښت يې سيمه ييز او قومي رنګ او بوی لري او د تبعيض او تعصب شکل يې ځانته نيولی دی.د حکومت د حد څخه اضافه تمرکز پالنه او هغه کمزوری او کمی چې د هېواد په اداري سيستم کې شته، شرايط د اداري فساد لپاره جوړوي.؛ (ارياييي) په حکومتونو کې، په ډېرو مقرريو کې   مهمو او ځانګړو  پوستونه لپاره،دوستان، خپلوان او په حکومت کې نيږدې اړيکه لرونکي امرين دي، په ځانګړې توګه د خريداری پوستونه او نور د ګټې څخه ډک چوکۍ خرڅېږي او ليلامېږي او د خپلې خوښې ګټونکي اعلانيږي. د فقر ميزان، په اداراتو کې فساد او د سياسي، نظامي، بيکاری، قراردادیانو شتون،د دولتي مامورينو د معاشاتو کموالی، پر جيبي اړيکو متکي غلط کادري سياست،کورنۍ او استخباراتي ټول هغه عوامل دي چې د اداري فساد پرتله يې لا نوره اوچته کړې ده.مګر د سياسي ارادې نه موجوديت د قانون په پلي کولو،د هر غړ بندول، د قانون نه پلي کول، د هغه کسانو په قدرت رسېدل چې د قانون څخه يې پخپله سرغړونه کړې وي، هغه عوامل دي چې د اداري فساد د له منځه وړلو پروسه خرابوي او خنډ ورته ګرځي، ظلم او بې عدالتي، او د بهرنيو مرستو حيف او ميل کول او په لسګونو نور معظلې په هېواد کې روان او وضع لا نوره کړکېچنه کوي او بحران خواته يې کاږي.د داسې چلند سره د يوې اداري د مسوليت روحيه او سالم اجراات يو پر بل لګېږي، نفاق، شقاق او بدبينی د هېواد د خلکو تر منځ رامنځ ته کوي او له دې سببه د خلکو اعتماد پر دولتي اداری او موسسو باندې له منځه ځي.

UNODC يا په افغانستان کې د ملګرو ملتونو سازمان دفتر اعلان وکړ چې فساد په افغانستان کې ۳.۹ ميليارد ډالرو څخه لانور اضافه شوی دی او ۴۰ سلنه اضافه کېدل يې د ۲۰۰۹ او ۲۰۱۲ کلونو کې منځته راغلی دي، په ضمن کې په افغانستان کې د شفافيت د تفتيش سازمان هم ويلی چې د افغانستان اقتصاد د حاکم ټيم او د کابينې د يو شمېر وزيرانو په لاس کې دی،د ملي شورا استازی، واليان،د پوليسو قومندانان او د وزيرانو د مرستيالانو پکې لاس دی،دوی دي چې د هېواد اقتصادي سيستم يې قبضه کړی دی او د خلکو لوی قراردادونه د ساختماني، د نفتي موادو د وارداتو او خوراکی توکو يې انحصار کړي دي. اداري فساد د افغانستان په دولتي کچه کې ډېرې ژورې ريښې لري او اصلي او اساسي عوامل يې هغه کسان دي چې د هر ډول مبارزه پرمختګ لپاره ټولې چارې د هغوی په مشروطه همکارۍ سرته رسېږي.**د دې په اوږدو کې د نظارت د شبکې مسولين پر طبيعي منابعو هم مدعي شوي چې د ۱۴۰۰ شرکتونو څخه اضافه لړ ليک يې د معدن وزارت څخه خپور شوی، او د دې شرکتونو اکثريت زورواکانو،محلي قوماندانانو او د ولسي جرګې غړو پورې اړه لري او د حکومت په مخالفت کې د هېواد په ځينو سيمو کې هم د دوی د پيسو څخه استفاده کېږي.** زورواکان د موادو د قېمت په ټاکنه کې، په ځانګړې توګه په بازار کې د نفتو په قېمت ټاکلو، مهم رول لوبوي، د اجناسو په قېمت ټاکلو کې دخالت کوی، د کال په ميلياردونو ډالر له دې لارې خلکو ته تاوانوررسوي. زورور کسان پيسو ته د لاسرسي په خاطر په ډول ډول قانوني او غير قانوني فعاليتونو او ډول ډول تجارتونو ته يې مخ اړولی دی. دغه کسانو په بازار کې د رقابت د کموالي سبب ګرځېدلي او زورواکان په دې شان د موادو د قېمت د ټاکلو اصلي کسان دي.

محمد عوض نبي زاده په مشعل انټرنيټي خپرونه کې داسې ليکي

د لازم سياسي عزم، او د قاطع او ټينګ سياسي او د قانون د حاکميت په موجوديت کې د اداري فساد د له منځه وړلو په موخه، د يو نيک کتنې او نيک فکر کولو له لارې، د دې د ختمولو په خاطر،عملي لارې موندل کيدی شي.دا د حکومت مسوليت دي چې د صلاحيت سطح، اتوريته، ظرفيتونه او د هېواد عدلي او قضايي ارګانونو امکانات پورته يوسي او د عدالت د پلي کولو په اوږدو کې په بشپړ قاطعيت سره د عدالت د تامين کولو په خاطر عملي کارونه سرته ورسوي. د تندروی څخه مقصد، سر غوڅول او د افراط او تفريط په خلاف هر ډول عمل کول، متخلف نه دی. مګر د پلټنو سره قانون پلي کېدل او په حوصله مندۍ بايد وي.د فساد سره مبارزه کول، د جرمونو، مخدره موادو او نورو ټولنيزو منفي پديدو سره مبارزه کول،د دوه اقتصادي او اداري کارونو په سرته رسولو شونی دی. د اداري فساد جرړې راايستل د اقتصادي کارونو له لارې په هغه حال کې سرته رسېدی شي چې کارمندا ټولنيزه بيمه ولري، د ټولنيزو تضمينونو ډول ډول قسمونه موجود وي، تقاعد،د مسلکي او د حقوقو څخه د دفاع اتحاديو د جوړښت حق د دسيسو د عاملينو په مقابل کې چې سازمان شوي جرايم دي په مقابل کې او مادي او ټولنيز تضمينونه د کارکونکو د کورنيو لپاره د دوی د ژوند په جريان او وروسته له مرګ څخه يې د اجراتو قابل وي.تر ټولو موثره طريقه د اداري فساد سره د مبارزې دا ده چې اقتصادي لارې ونيول شي.د اداري فساد د مخنيوي لپاره بله بهترينه لاره، يو اجباري اداري شکل دی چې د جبر او قيوداتو څخه په استفادې د تطبيق وړ دی.اجبار څخه کار اخيستل،لکه تفتيش، تهديد، استخبارات او د موثريت

تبدیلي د اقتصادي لارې څخه لږ کمه رتبه لري. د دواړو لارو څخه استفاده په یوه موازنه سره او په معقول ډول سره د کار موثریت کولی شي دوه چنده کړي او د اجباري طریقې څخه کار اخیستل د اقتصادي تاثیرات څخه پرته،ممکن منفي اغیزه ولري. په ضمن کې، په افغانستان کې د فساد سره مبارزه کول سیاسي او اداري اصطلاحاتو ته ضرورت لري.

هغه په دوام پسې داسې لیکي:

د اداري فساد سره مبارزه د فرمان له لارې شونې نه ده، د دې او نورو کارونو د سرته رسولو په خاطر د یو قوي ارادې موجودیت ضروري دی، د غوره سیستم او د نوي قوانینو په تنظیم کولو او انساني عامل، کادري سیاست، ټول په هر نظام کې مهم او مرکزي ځیزونه دي. د تروریستانو معافول، انسان وژونکو، قاچاقبرانو، غلو، ځان مرگو، اداري مفسدینو، د مخدره مواد تولید کونکي، د قانون څخه تښتیدونکي،د سیاسي توانمندۍ د ارادې نشتوالی د اداري فساد پر وړاندې، په هېواد کې د مبارزې او د معاف کولو فرهنگ بنسټیز کېدل د مجرمینو لپاره چې سیاسي ملاتړ لري او د هغوی نه محاکمه کېدل، د اداري فساد سره د مبارزې په لار کې لا نور خنډونه بلل کېږي. باید عمومي د بحران د ننني عوامل او په ځانگړې توگه بیا د اداري فساد عاملین د دیني بنسټیزې پوهې سره،علم، منطق او اقلانیت له لارې، سم وپېژندل شي او وروسته بیا د یو ښایسته سالار حاکمیت لخوا، مدیریت شي او د خلکو په ملاتړ د ټولو ناخوالو او گډوډیو په وړاندې او د موجوده بحرانونو سره په منظم او اوږدمهاله ډول سره مبارزه وشي، څو چې جرړې یې وچې شي.؛

ډېر راپوروته او خبرونه د اداري او مالي فساد د شتون په اړه په افغانستان کې موجود دي، چې د هغې څخه تر ۲۰۱۴ کال پورې، دا لاندې خبرونه او مقالې د یادونې وړ دي: **د واشنگټن پوسټ راپور- د کرزي د حکومت مامورین په وار وار سره د اداري فساد د ځېړنو مخنیوی کړی دی.** د افغانستان د شفافیت د تفتیش سازمان،**د زورواکانو د رول په هکله د اداري فساد په ډېرېدو او وده کې،** د ډاکټر عزیز الله لودین خبرې چې د اداري فساد د مخنیوي د ادارې عمومي رییس دی، **د نشر شوی اداري فساد د ودې څخه د مخنیوي مبارزه، د افغانستان په ورځپاڼه کې لیکلي:ډاکټر حسین علي یاسا.** د ادارې د اصلاح او د اداري فساد سره د مبارزې په اړوند ستراتیژي او تگلارې په اړوند یې مقاله لیکلي دي،، لیکونکی:**غلام سخي ارزگانی.** د اداری فساد سره د مقابلې په اړوند لیکل شوې مقاله، لیکونکی: پروفیسور ډاکټر حسین علي راموزي لعلي / کابل ۱۳۸۸. **په افغانستان کې د اداري فساد د عواملو په اړوند مقاله: محمد رضا هویدا.**

د ډاکټر طاووس وردگ له نظره د اداري فساد ډولونه دا دي:

ناڅاپي فساد – تنظیم شوی فساد – لوی فساد – کوچنی فساد – اختلاس – غلا – د اوراقو او اسنادو له منځه وړل – د مقام او منصب څخه په استفادې د قانون د حدودو او صلاحیتونو څخه تېری کول – د دولتي دندې په جریان کې له دندې څخه تلل او شخصي دنده سرته رسول – د حقایقو پټول – په اسنادو کې جعل کول – د خلکو د کارونو د سرته رسولو په خاطر، د هغوی څخه تحفې لاسته راوړل – رشوت – د خلکو او بندیانو په دوسیو کې بې ځای تحلیلونه کول – د مراجعینو او عارضینو سره ناسم چلند او سلوک کول – د خلکو د کارونو لپاره د لوړو مقاماتو لپاره واسطه کېدل او

په بدل کې یې پیسی اخیستل، چې دا کار د ولسي جرګې په استازو کې ډېر لیدل کېږي – قومي نظریات داخلول، ژبني، سمتي، جنسي په ځانګړې توګه د کارونو د سرته رسولو په موخه د ښایسته نجونو او ښځو لپاره واسطه کېدل(مشعل)

ډاکټر طاووس وردګ د مشعل په انټرنیټي خپرونه کې لیکلي چې:

؛په افغانستان کې اداري فساد د (حامد کرزي او د هغه د وروړنو لخوا په اول قدم کې او وروسته بیا د کرزي د مرستیالانو لخوا او دریم کې د کرزی د کابینې د وزیرانو او مشاورینو لخوا او همداراز والیان او ولسوالانو لخوا،تر نن ورځې پورې د افغانستان د عامو خلکو په مقابل استعمال شو) استعمال او کار ترې واخیستل شو... د هېواد د ټول وجود فاسد کېدل له ختیځ څخه تر لوېدیځ پورې د شمال څخه تر سوېل پورې پکې شامل کړ، د (یو اېس اې ډي) امریکایي موسسه په اول مقام کې بیا وروسته نورې انجیو ګانې او سفارت خانې د مختلفو لوېدیځو هېوادونو چې په افغانستان کې د ډول ډول پروژو تمویلوونکي وو، د خپل ځان په خاطر یې پانګې اچولې، او د هر حساب څخه د پانګې نیمایې برخه پیسې یې، خپلو حسابونو ته او یا د دوی خپلو بانکی حسابونو ته په نورو هېوادونو کې بېرته ورکول کېدې چې ری اکسپورټ‌کېدل، او وروسته بیا افغان قراردادیانو له یو لاس څخه بل لاس ته پلورل او ډېره ګټه یې تر لاسه کوله، همدا وجهه وه چې د کار کیفیت به اکثرا ډېر ټیټ وو...دولتي اداري او وزیران هم وختي خپل حق تر لاسه کړی وو، او خولې یې بندې او غلې ناست وو په لنډه باید ووایو چې ټولې دولتي اداري او ورسته بیا ټول بهرني لوېدیځې موسسی (کرپشن) یانې په اداري فساد کې لاس او ونډه لري او د داخلیانو څخه خارجیان ډېر پر دې متهم دي او په دوهم او دریم قدم کې ساختماني او اکمال کونکې موسسې او شرکتونه په هغه کې لاس درلود.

په دې اړوند مهر الدین مشید په خپله مقاله کې په ؛اریایي؛ سایټ کې ؛د مافیایي ماڼیو او شیرپور تر پنډغالي پورې، د واشنګټن د فساد یوه بیلګه په کابل کې؛ داسې لیکي:

؛نظام ... افغانستان، د اقتصاد په بیلا بیلو حوضو کې مافیایي سیستمونه،مالي، سیاسي او ټولنیز مافیایي سیستمونه یې په دې هېواد کې منځته راوړي دي چې مافیایي اقتصاد او د مافیایي اقتصاد پر بنسټ ولاړه ده او پر سیاسي قدرتمنده بنسټ په دې هېواد کې ډېرې ښکاره نمونې لري. دا مافیا دومره غښتلې شوې دي. چې بېباکه یې خپله ونه پورته کړې او د ودې په حال کې دي... چې د امریکا واشنګټن پوسټ ورځپاڼه په دې اخیرو کې له ځینې اړخونو څخه پرده پورته کړې ده. د دې مافیایي نظام سر په امریکا کې، وجود یې د نړۍ په اقیانوسونو کې، لاسونه یې په اروپا او یوازې پښې یې نیم بنده او لړزانده په افغانستان کې لامبي.؛ (اریایي)

هغه ادامه ورکوي:

د تعجب ځای دا دی چې د دې مافیا هیکل یا مجسمه د ښکلې او ښایسته ښارګوټي څخه،پیل شوې ؛جمیرا[12] بلاخره د ؛د واشنګټن پوست لیکونکي اندري او ګنز لخوا ښکاره کړی شوې او دا ورځپاڼه لیکونکی په خپل نه ستړې کېدونکي کار، د سلګونو مافیایي کړیو څخه پرده پورته کړې چې د غنې د تارونو په شان تر ټولو بد شکله سیوری یې د افغانستان

[12] د پالم جمیرا د دریو مشهورو جزیرو څخه یو، دیرا او جبل علی د فارس د خلیج په اوبو په دوبۍ کې دی

پر خلکو غځولی دی، څخه راووت... او یا ممکن د دې له کبله چې نورو اسنادو ته یې لاسرسی نه درلود، په دې نه دی توانېدلی چې دا مافیا بیا د مخدره موادو،د قدرت د مافیا او نورو بهرنیو مافیاوو سره یې مثلث ونښلوي او ویې پېژني. هغه دې ته اړ وتی چې دا دری نمونې ښکاره کړي (سمپل)، د فساد ډولونو ته اشاره کړي ؛مشت نمونه د خروار؛ هغوی د جمیرا په ښکلې ښارګوټي کې وښايي...دا چې دا ښاغلی د کابل د قدرت د مافیا سره چې په هغه کې تکنوکراتان د دې بیوروکراسی مافیا کې شامل دي چې په هغه کې وزیران، معینان،والیان، د ولسي جرګې ځينې استازي او د مشرانو جرګې او نور لوړ او ټيټ رتبه مامورینو څه برخه درلوده ؛ ارګاه او بارګاه ګانې؛ افسانوي مانۍ په نورو جزیرو، په مشهورو ښارونو کې لکه د اماراتو، دوبۍ، لندن، ډهلي او نورو ځايو کې لري څو دا غلاوې د نورو غلاوو ښکاره مثال وي، د خلیج په ښکلې ښارګوټي کې د دوی په ننګینو شکلونو کې وي د دوی حساب د ګوتو د شمېر څخه په کراتو ډېر دی. بیا هم امریکایي خبر لیکونکي ددې سره سره چې د اسنادو د موندلو کار یې سخت وو. ډېر لوی کار یې سرته رسولی او بی نظیره افشاګري یې کړې ده. هغه چې په دې راپور کې  د **کابل بانک د مناسباتو په اړوند د دولت د لوړ پوړي مقام سره د ؛کاپیتالیستي نظام علایم چې بنسټ له ښو ارتباطاتو لري؛ تر نامه لاندې، داسې یې یاده کړې ده چې خصوصي سکتور او دولت تر منځ کلکې اړیکې موجودې وي، او د مشکل حلوي داسې یې ویلي دي** :د ولسمشر ورور محمود کرزی او احمد ضیا مسعود چې پخوا د جمهور رییس لومړی مرستیال وو، داسې کورونه چې په میلیونونو ډالره یې قیمت دی په دوبۍ کې اخیستي دي او دا یې په خپلو نومونو نه دي ثبت کړي، مګر د شیر خان فرنود په نامه چې د کابل بانک موسس او مالک وو،ثبت شوي دي چې هغه دا څو میلیون ډالري قرضې د کرزي کورنۍ ته، د حکومت غړو او پلویانو ته یې ورکړې څو په دوبۍ کې ځانونو ته ښایسته کورونه واخلي. هغه د دې پوښتنی په ځواب کې، چې ولې دومره ډېرې پیسې د دوی په اختیار کې ورکړې، داسې وویل؟دوی نه غواړي په خپل نامه په دوبۍ کې کورونه واخلي، مګر محمود کرزي، چې د امریکا په بالتیمور ښار کې یو هوټل لري، دا خبرې یې دروغ بللې او ورځپاڼې لیکونکي ته یې وویل چې دا کور چې ۵ میلیون او ۵۰۰ زره ډالر قیمت لري، هغه یې په کرایه نیولی دی، او د کابل بانک سره یو د ګروی قرارداد په غیر رسمي ډول سره لري چې د میاشتې ۷۰۰۰ ډالره سود دې بانک ته تحویلوي؛ .. هغه د دې پوښتنی په ځواب کې چې میلیون ډالره د کابل بانک څخه پوروړی دی، داسې وویل: په کابل بانک کې ما یو میلیون ډالر پانګونه کړې او بله برخه یې د کابل بانک پور دی.

دا ورځپاڼه همدا راز د یو کور څخه چې بیه یې ۲ میلیون ډالره ده په پام جومیر کې د احمد ضیا مسعود مالکیت دی، په اړوند هم خبره کړې چې د شیرخان فرنود په نامه ثبت  شوې ده . دا کور په ۲۰۰۷ کې  د ۲ میلیون او ۳۰۰ زره امریکایي ډالرو په بیه اخیستل شوی دی. چې دا ښکلی کور په اول کې د هغه د ښځې په نامه  ثبت شوی وو او وروسته یې د کابل بانک د مالک شېرخان فرنود په نامه  ثبت کړ. احمد ضیا مسعود د خبریال د پوښتنې په ځواب کې ویلی دی چې فرنود یې ملګری دی هغه ورسره فوټبال او سطرنج لوبې کولې.

**په دې راپور کې د حسین فهیم** د مارشال فهیم ورور څخه هم یادونه شوې ده. چې هغه واشنګټن پوسټ ته داسې ویلي: دوه شرکتونو یې د کابل بانک څخه ۷۰ میلیون ډالره پور لاسته راوړ، مګر دا چې د دې شان پور ورکول اوسنیو مقاماتو

ته یا مخکنی مقاماتو ته تر کومه حده کولی شی د پریشانی سبب شي.دا کولی شي په ځینو هېوادونو کې د تشویش وړ وی. په ځانګړې توګه، هغه پیسې چې پټې ساتل کېږي، دا ښکاره کوي چې د خپل نفوذ څخه په استفادې د پور د اخیستو په مقابل کې د بانک سره په یو شکل د اشکالو مرسته کوي، مګر په داسې هېوادونو کې لکه افغانستان چې د نړۍ په کچه د فساد دوهم نمبر یې ګټلی، او پاچا، محافظ، ساتونکی یې ټول غله دي او قاضي یې مرتشي دی،ممکن ډېر لږ او حتی د هېڅ تشویش وړ هم نه وي. په ځانګړې توګه کله چې د دوی لاسونه د شا لخوا د بهرنیو لخوا تړل شوي وي... **مګر حسین فهیم** وایي: د داخلي پورونو اخیستلو څخه ډډه نشي کېدی او حتی ښه دی.البته د هغه په باور د یو حقوقي نظام په نشتون کې اکثر راکړه ورکړه د رسمي اسنادو پر ځای. د طرفینو د اعتماد پر اساس وي **هغه وایي:** افغانستان امریکا نه دی، افغانستان له صفر څخه پیل کوي

د مسعود یاران او قوماندانان د هغه د ژوند په وخت کې...د دولتي ځمکو په چور پیل وکړ او په دولتي بڼونو او شنه ځایونو یې یرغل وکړ او ټول یې له غصب څخه وروسته خرڅ کړل او د خپل ځانونو لپاره یې،ښکلې بنګلې پکې جوړې کړې او دا بده کړنه د طالبانو تر سقوط کېدو وروسته پورې له پخوا څخه هم په تېزۍ روان وه او دولتي ځمکې د کابل په شاو خوا کې د شورای نظار او د اسلامي جمعیت د قومندانانو لخوا غصب او خرڅېدلې.

**محمود** کرزی هم د حسین فهیم په څېر په دې اړوند په تشویش کې نه وو هغه د ازادۍ راډیو سره په خبرو اترو کې، نه یوازې داچې په خپلې ضعیفې دفاع کولو یې پیل وکړ،مګر مخته ولاړ او د فهیم د ورور څخه هم چې د قدرت شریک وو څخه یې هم دفاع وکړه.

**مګر فرنود چې د ازادۍ د راډیو سره خبرو ته اماده نه شو،د واشنګټن پوسټ ورځپاڼې ته وویل:** افغانستان باید د بهرنیو معیارونو په اساس د قضاوت لاندې راوستل شي، هغه څه چې زه یې کوم نا سم کار دی او په حقیقت کې یې باید ونکړم، مګر دا افغانستان دی.بلې، او ښاغلي فرنود سم ویلي چې دلته افغانستان دی،هغه هم یو ناروغ افغانستان،جنګ ځپلی او د یو قدرتمند اداري نه درلودونکی او داسې مدیر چې پر مخ او لاره یې د فساد اورونه لګېدلی دي او د هر مظلوم اواز یې په ستوني کې تړل کېږي. نو په داسې هېواد کې چې هلته هر ډول نا روا اجازه ولري او هر ستم هلته شرعي توجیه شي. ښاغلی فرنود حق په جانب دی چې په عام او تام جرات سره کولی شي په میلیونونو غلا شوي ډالر د هېڅ حساب او کتاب څخه پرته د افغانستان څخه بهر ته وباسي، ځکه هغه د قانون او پوښتنې څخه ډار نه لري، یوې خواته یې د کرزي ورور بلخوا ته یې د مارشال فهیم ورور او شاته یې هم احمد ضیا مسعود، د شهید مسعود ورور شته. داسې سړی چې د داسې کسانو ملاتړ ورسره وي، کولی شي د پوښتنه کونکي ژبه له ستوني څخه وباسي.

په داسې هېوادونو کې د غلا شوې پیسو موندل اسانه کار نه دی. **داسې به یې ومنو** د بانک د رییس په وینا، چې واشنګټن پوسټ د ملکیتونو په اړوند شایعات او دروغ خپاره کړي او یا په حقیقت کې یو علت یې د ؛کپیټالیستي نظام علایم د صمیمانه اړیکو پر بنسټ؛ تشویش په خاطر یې داخل کړي وي.مګر داسې یو څه یې په خپلو څېړنو کې ښکاره کړي چې کابل بانګ ۱۵۰ میلیون ډالر یې په دوبۍ کې پانګه اچولې ده. دا چې دا پیسې په شرمناکه راکړه ورکړه کې د دې ښاغلي د سترګو پر وړاندې تېر شوي،هغه نشي کولی په دې خبرو خپل مسولیت رفع کړي. لکه څنګه چې څو

موده مخکې خپرونو خبر ورکړ چې په تېرو دريو مياشتو کې ۱۸۰ ميليون ډالره د افغانستان څخه بهر ته وړل شوي او دا پيسې د هوايي ډګر د مسولينو د سترګو په وړاندې او د ماليې وزارت څخه دوبی ته انتقال شوې دي.

**د دې سربېره** د جهاد شهزاده ګان، پاچاه غوښتونکي، ديموکراتان، تکنوکراتان او بيوروکراتان د ښاغلي کرزي د قدرت د رېرې لاندې د دولتي ځمکو په غصب پيل وکړ او د ښاري مقرراتو په نظر کې نه نيولو سره او د ټولو غريبو خلکو ځای، د شېرپور تاريخي کلی يې وران کړ او د هغه حرامو پيسو پواسطه چې د اشغالګونکو د معاملو څخه، د هيروينو د قاچاق څخه، د وسلو د خرڅولو او د رشوت څخه يې لاسته راوړې وې، ښايسته تعميرونه اباد کړل. د همدې له مخې د نيويارک ټايمز ورځپاڼه په يو راپور کې د خلکو له خولې ليکلي دي چې خلک دې کورنو ته ؛د مخدره موادو کورونه؛وايي. بی ځايه نه وو چې اشرف غني احمد زي په ۲۰۰۴ کال کې وويل: د حکومت څخه لرې شئ، چې دولت د مخدره موادو د تجارانو لاسته ورغلی دی.

**دا مافيا** د اميب په شکل، د دروغو پښې لري، په مناسب وخت کې د خوراکي توکو د لاسته راوړلو په خاطر هرې خواته لاس او پښې کاږي او د هغه څخه هم لانور خطر ناکه دی چې د غني په شان د مظلومو خلکو شاو خواته تارونه اچوي، او تر دې چې يې ټوله وينه نه وي څښلې، نه يې پرېږدي... دا غني خپل ځانونه داسې د قدرت پر واګې نښلولې دي چې د فاسدانو په نصب کولو کې د ځان څخه ډېر مهارت ښکاره کوي او د خپلو تارونو په واسطه، د خپلې خوښی مهرې د قدرت په واګې کېنوي. کله بيا داسې د قدرت شريک بلا منازعه شي او قدرت په خپل لاس کې اخلی چې هر هغه څه يې چې زړه غواړي، هغه کوي، بې سواده وزيران د قدرت چوکۍ باندی کښېنوي، او د دولتي قراردادونو له لارې، د هغوی څخه استفاده کوي. که نه نو څوک باور کولی شي چې د يو وېجاړ ښار ښاروال د کابل د حاکميت د رېرې لاندې هره اونۍ څو ځلې دوبۍ ته سفر کوي، بيا خپلې دندې ته بېرته کابل ته راشي. دا بېچاره چې په اصل کې د قدرت او د مخدره موادو د مافيا لپاره غوړه نمړۍ وه، په چټکۍ دام ته وغورځېد او د دولتي قدرت د سو استفادې په جرم تنفيذي زندان ته ولاړ؛ اما هغه د کرزي د مداخلې څخه وروسته په قضايي چارو کې د هېواد د سترې محکمې په پرېکړه توکې کولو باندې، د حبس څخه خوشی شو.

داسې برېښي چې مخکې له دې چې کومه معامله وشي، څنګه کولی شو باور وکړو چې يو ښاروال چې دومره په خپل کار نه پوهېږي، بيا هم په قدرت کې پاتې شي. دا ښکاره خبره ده چې د کاسې لاندې نيم کاسه ده او لرې خبره نه ده چې نيم کاسه يې د ښکلي خليجي جزيرو کې په يو داسې مانۍ کې پرته وي چې د خرما په يو شاخ باندې جوړه شوي وي. د دې رسوايي په افشا کېدو سره، د معما اصلي ګنډه راخلاصه شوه او د دې څخه وروسته هم سپړل کېږي (مهر الدين مشيد، د اريايي انټرنيټي خپرونه[13])

---

[13] مهر الدين مشيد د ؛اريايي؛ د سايټ څخه اخيستل شوی چی سر ليک يی ؛مافيايي مانۍ له شيرپور څخه تر جميرا د واشنګتن د فساد نښه کابل کې؛.

پورته غوره شوې او خلاصه نقل قولونه د مهر الدین مشید د افشاگرۍ د مضمون څخه، د مافیایي اړیکو پراخ بنسټه شتون د افغانستان په دولت کې دی او په حقیقت کې د دریو ټاکنو د پایلو پرله پسې نه منل او شور ماشور جوړول او بېشرمانه مشکلات جوړول چې په قدرت کې پاتې شي د یوې ځانګړې ډلې چې جهادي میلیونران وو، ښه ښکاره کوي. د تعجب خبره دا ده چې دا ټول غلا او فساد د امریکایانو د سترګو په وړاندې او د دوی په تایید سره سرته ورسېدل که نه نو څنګه امریکایان د دریو پرله پسې جمهوري ریاست ټاکنو څخه وروسته د دې مافیایي میلیونرانو څخه د دولتي قدرت د بیا تر لاسه کولو لاره و نه نیوله او د دوی په دولت کې د قدرت د دوام درلودلو غوښتنه یې کوله. بې ځایه به نه وي چې واشنګټن پوسټ په مقاله کې چې د کرګ ویتلاک لخوا لیکل شوې د ۲۰۱۹ د ډیسمبر په نهمه لیکي[14]:د امریکا دولت د دې واقعیت په وړاندې چې په افغانستان کې د فساد تشویق کولو،ناکامه شو؛.

## د فساد په تور د یو وزیر لومړنۍ ښکاره محاکمه

د خبري سرچینو د خبر پر بنسټ ۲۰۱۸ جنوري په ۲ نېټه **عبدالرزاق وحیدي**، د افغانستان د مخابراتو وزیر د ملي **وحدت په حکومت کې** د ۱۳۹۵ کال په ژمي کې په خپل کار کې د فساد په اتهام محاکمه شو. شاه حسین مرتضوي، د افغانستان د جمهوري ریاست د ویاند مرستیال اعلان وکړ چې د فساد سره د مبارزې په لار کې،د لومړي ځل لپاره د کابینې مخکنی غړ په یوه ځانګړې او ښکاره محکمه کې حاضر شي.

د ښاغلي وحیدي مهم تورونه ؛د ۱۶ میلیون مخابراتی محصولاتو حیف او میل کول او د مخابراتو وزارت د اترا اداره کې ۳۷ کسان په بالمقطع ډول مقررول وو.

محمد علي فرهنګ، د ښاغلي وحیدي مدافع وکیل په ښکاره غونډه کې د په کار اچونو په اړوند داسې وویل چې **بې طرفه هیئت د د مقررولو تګلاره د په ټولو وزارتخانو کې** وڅېړي.

ښاغلی وحیدي هزاره دی هغه د عبدالله عبدالله له ټیم څخه، د افغانستان د اجرایه رییس لخوا کابینې ته معرفي شوی وو.د دې په خاطر محمد محقق،د اجرائیه ریاست مرستیال د ښکاره محکمې کار د پیل د اعلان څخه وروسته د ښاغلي وحیدي لپاره، په یو شدید الحنه اعلامیه کې، پر ښاغلي غني یرغل وکړ او ویې ویل ؛د مخابراتو لس سلنه د مالیاتو راټولول د ښاغلي اکلیل حکیمي دنده وه چې باید تر سره کړې یې وی، د دې لپاره چې د مالیې وزیر د فساد په خبیثه کړۍ کې او د ارګ په مالیه کې شریک وو، نه یوازې دا چې محاکمه نه شو، د امان الله خان غازي مډال یې هم تر لاسه کړ؛. ښاغلی محقق،د ښاغلي وحیدي د محاکمې څخه په انتقاد کې وویل ؛ښاغلی غني داسې احساس کوي چې ګنې هزاره ګان په دې هېواد کې سیاسي، امنیتی، حقوقي او قضایي خوندیتوب نه لری، او هم د دې مسخره نمایش

[14] About halfway into the 18-year war, Afghans stopped hiding how corrupt their country had become. Dark money sloshed all around. Afghanistan's largest bank liquefied into a cesspool of fraud. Travelers lugged suitcases loaded with $1 million or more, on flights leaving Kabul. By Craig Whitlock Dec. 9, 2019.

یوازېنی علت، د عقدې لري او د غچ اخیستل دي چې ښاغلی غنی د هزاره ګانو څخه د ولسمشرۍ ۲۰۱۴ ټاکنو څخه یې اخلي.

دا کارونه د هزاره ګانو سره د مخامخ کېدو پیل کېدی شي او موږ هم لازم سیاسي او مدني تدابیر نیسو؛

د پورته خبر څخه کولی شو دری مهم مطالب راښکاره کړو:

- د اداري فساد سره د مبارزې په خاطر،ښاغلی غني د خپلې پخوانی کابینې یو وزیر محکمې ته راوستی دی
- مدافع وکیل د دې پر ځای چې کوښښ وکړي چې په دلایلو محکمې ته اثبات کړي چې د متهم وزیر ټولې کړنې د قوانینو او مقرراتو په داخل کې وې او هېڅ فساد او اختلاس نه وو شوی، برعکس، هغه محکمې ته وایی چې :**د مقررولو تګلاره په ټولو وزارتخانو کې** د وڅېړل شي؛. دا په حقیقت کې په جرم اعتراف کول دي یانې چې نورو کول، موږ هم وکړل! دا وکیل د وکالت او قضا یو اصلي او ابتدایي اصل له یاده ایستلی او هغه دا چې په دې محکمه کې اتهام پر **عبدالرزاق وحیدي**، د مخابراتو پخوانی وزیر تر بحث لاندې دی،نه د نورو!
- ښاغلی محقق، د اجراییه رییس مرستیال د ملي وحدت د حکومت په چوکاټ کې، د دې پر ځای چې پر **عبدالرزاق وحیدي** د اتهام په اړوند قضاوت محکمې ته پرېږدي، سم د لاسه یې د متهم وزیر مظلومیت مخ ته کړ ولسمشر یې تهدید کړ چې دا کار :د هزاره ګانو سره مخامخ کېدلو پیل وګڼلو او داچې موږ هم ورته سیاسي او مدنی تیاری نیسو.؛ دا په دې مانا چې د هېواد یو قضایي دستګا د دې حق نه لري چې پر یو هزاره سیاستمدار پورې کړل شوی اتهام وڅېړي او که چېرې یې وکړ،موږ به غبرګون پیل کړو!

د اداري فساد سره مبارزه باید له داسې ځایه پیل شي.داچې اشرف غني د اداري فساد سره مبارزه د دولت د لوړ رتبه څخه پیل کړه چې د ملي وحدت د حکومت د یو وزیر څخه یې پیل کړ، دا د پوهې قابلیت لري.ځکه په یقیین سره چې د حامد کرزي ټول حکومت په فساد کې ډوب وو او د هغوی محکمو ته راوستل ممکن په راتلونکې کې سرته ورسېږي. پرېږدئ چې دا محکمه د عبرت یو درس وي د دولتي نورو لوړ پوړو چارواکو ته.په تاسف سره چې د محقق لخوا د قومیت په اساس د دې رنګول، د فساد د مخنیوي لپاره،هېڅ مرسته نه کوي.

عبدالرزاق وحیدي، د مخابراتو پخوانی وزیر چې د یو کال راهیسې د افغانستان ولسمشر د محمد اشرف غني لخوا، کار ته راوستل شوی وو،د دریو حضوري غونډو څخه وروسته په :د وزیرانو په ځانګړې محکمه کې؛ نن (۱۳۹۷ د جدی ۰۴ – ۲۰۱۸ د ډیسمبر ۲۵ د سه شنبه، چهارشنبه ورځ) بې ګناه وپېژندل شو او برات یې واخیست. د ښاغلي وحیدي پر خلاف مهم اتهامات :د میلیونونو ډالرو حیف او میل کول او د ۳۷ کارکوونکو بالمقطع (موقت) په کار ګمارل د افغانستان په مخابراتي تنظیم اداره (اترا) وو؛ دی د محکمې په نني حکم کې داسې راغلی چې قضایي هئیت ؛ د وزیرانو ځانګړې

محکمه؛ د دعوا د طرفینو په موجودیت د کتنو څخه وروسته دې نتیجې ته ورسېد چې د ؛کافي الزام دلایلو؛ په نه موجودیت د دې ادعا په اړوند،محکمه د عبدالرزاق وحیدي د برات او بې ګناهی حکم کوي.

مګر د خبرونو او رسنیو په ساس ۲۰۱۹ د اپریل اتمه – ۱۳۹۸ د ثور نولسمه سره سمون خوري جمشید رسولي، د لوېې ځارنوالی ویاند رسنیو ته خبر ورکړ چې ښاغلی وحیدي د ۱۳۹۸ د دلو په دوهمه په لومړنی محکمه کې په عدلي او قضایي مرکز کې چې د اداري لویو فسادونو سره د مبارزې مرکز دی،غیابي محکمه شو او د دندې د صلاحیتونو څخه د سواستفادې په جرم د مالیې په وزارت کې د خپلې دندی په اوږدو کې ؛ په دریو کلو زندان محکوم شوی دی.

### د اشرف غني ولسمشري

## د اشرف غني ژوند لیک

( دا ژوندلیک د پژواک افغان نیوز د انټرنیټي پاڼې څخه اخیستل شوی دی).

[اشرف غني د شاه جان احمدزي زوی د ۱۳۲۸ه ل کال د ثور په ۲۹ نېټه په کابل کې زېږېدلی دی. لومړنی دوره یې د استقلال په عالي لیسه کې، منځنی یې په حبیبیه عالي لیسه کې او یوولسم ټولګی یې په یو کلن پروګرام کې د (AFS) د امریکا متحده ایالاتو کې سرته ورسولو.



هغه د لیسانس دوره د شپږو میاشتو لپاره په کابل پوهنتون کې او نوره بشپړه بیا د امریکا په بیروت پوهنتون کې د سیاسي علومو په رشته کې تیره کړه. اشرف غني د ماسټری سند د سیاسي علومو په برخه کې د امریکا د بیروت له پوهنتون څخه لاسته راوړ، د نړیوالو اړیکو په څانګه او انسان پېژندنه کې د امریکا د کولمبیا د پوهنتون څخه او په نړیوالو اړیکو څانګه کې یې د امریکا د کولمبیا له پوهنتون څخه سندونه تر لاسه کړي

هغه همدا شان د انسان پېژندنې په څانګه کې (انټرپولوجي) د امریکا د کولمبیا د پوهنتون څخه ډاکټري لاسته راوړه.هغه همدا راز افتخاري ډاکټري د متحده ایالاتو د سکرانټن د پوهنتون څخه په ۲۰۰۷ کې، د کانادا د ګیلف پوهنتون څخه په ۲۰۰۸ کې لاسته راوړې.

د یادونې وړ ده چې ډاکټر اشرف غني د کوچنیوالی څخه تر اوسه پورې په اسلامي زده کړو کې یې کوښښونه او تلاشونه کړي چې د هغه څخه د سیرت نبي اړوند معلومات تر لاسه کول د لاهور او کراچی له مدرسو څخه دي چې د ۱۹۸۵

څخه تر ۱۹۸٦ کلونو کې وو او د یادونې وړ ده چې د هغه په وینا دا زده کړې ورته ډېرې مهم او ارزښمنې دي. همدا راز د امریکا د تفت د پوهنتون لخوا اشرف غني ته یوه جایزه د نړیوال وطندار په نامه ورکړل شوې.

**دندې**

د کابل پوهنتون ادبیاتو په پوهنځی، د بشري علومو په ډیپارتمنت کې د پوهیالي او پوهنیار په رتبه کې د استاد په صفت دنده درلوده.

د مېلمه پروفیسور په صفت د ډنمارک د اروس په پوهنتون کې په ۱۹۷۷ ز کال کې د لږ وخت لپاره تدریس کړی دی د امریکا په مشهور برکلی پوهنتون کې د یو کال لپاره، د جانز هاپکنز په مشهور پوهنتون کې د ۸ کلو لپاره تدریس کړی دی

اشرف غني د پالیسۍ جوړونې په برخه کې او د نړیوال بانک د ستراتېژۍ اړوند په یوه مهم سمت کې د ۱۰ کلو لپاره دنده تر سره کړې چې په لومړني پنځه کلونو کې د سوېلي اسیا او ختیځې اسیا د هېوادونو لپاره یې کار کولو او په اخیرو پنځه کلونو کې د نړۍ د ډول ډول اقتصادي مسایلو په ډګر کې دخیل وو چې د هغه څخه د روسیې د اقتصادي ریفورم څخه نوم اخیستی شو.

اشرف غني په انګلیسي ژبه ډېرې مقالې لیکلې چې د افغانستان په اړوند دي چې د وخت په مشهورو رسنیو کې خپرې شوې دي.

د ډاکټر اشرف غني د څېړنو په اوږدو کې د هغه یو لوی کار دا دی چې د افغانستان د څلورسوه کلن تاریخ په اړوند یې څېړنې کړې او د میلادي پنځلسمی پیړۍ اکثر مواردو څخه نیولې تر میلادي نولسمې پېړۍ پورې یې د څېړنو په اوږدو کې شامل کړي دي چې دا څېړنه یې د لسو کلونو په موده کې سرته رسولې.

په دې وروستیو کې د ډاکټر اشرف غني یو کتاب چې نوم یې (د هغوی ناکامه ډول او بریالۍ ستراتېژي) دی، د انګلستان د اکسفورډ د پوهنتون لخوا په اروپا کې خپور شوی چې نړیوالو رسنیو پر هغه تبصرې درلودې.

ډاکټر اشرف غني د ۲۰۰۱ زکال د سپټمبر د یولسمې څخه وروسته چې په افغانستان کې د یوې بلې لوی ناورین امکانات موجود وو، له نړیوال بانک څخه یې بې معاشه رخصتي واخیستله او د نړۍ په یو شمېر ازادو رسنیو کې یې خپلې مقالې خپرې کړې او مرکې یې وکړې. په دې وخت کې نړیوالو د افغانستان په اړوند ډېرې اندېښنې درلودې. د هغه وخت د ملګرو ملتونو سرمنشی ښاغلي کوفي عنان له ډاکټر غني څخه غوښتنه وکړه چې د افغانستان د بحران لپاره د ملګرو ملتونو د لوړپورو سره او د ددې سازمان د باصلاحیت استازي لخضدر ابراهیمي سره د مشاور په صفت همکار شي. ډاکټر غني د ښاغلي عنان دغه وړاندیز ومنلو او د کوښښونو او کارونو په پایله کې په دې بریالی شو چې د بن د کنفرانس په جوړښت کې برخه وال شي او نړیوالو ته دا په ګوته کړي چې افغانان کولی شي چې خپل مسایل د دودیزې جرګې له لارې حل او فصل کړي او قدرت د یوې سیمه ییزې ډلې څخه (سمتي) چې نشي کولی د ټول هېواد استازیتوب

وکړي، د همدغې جرگې له لارې ملت ته انتقال کړي، او د همدې پوهنی په رڼا کې مراحل وټاکل شول او وروسته موقته اداره جوړه شوه.

ښاغلی اشرف غني د موقت اداري د ختمېدو څخه یو میاشت وروسته د گران افغانستان لسو ولایتونو ته کاري سفرونه وکړل. او روان حالات یې تر څېړنې لاندې ونیول چې وروسته بیا د موقت ادارې په غوښتنه د نړیوال بانک او د ملگرو ملتونو څخه د خپلې دندې څخه استعفی ورکړه او د هېڅ مالي امتیاز څخه پرته د ولسمشر مالي ځانگړی مشاور شو، هغه دا کار د یوې مودې لپاره په ډېر بریالیتوب سرته ورسولو او وروسته بیا د افغانستان لپاره د مرستو د انسجام د ادارې رییس وټاکل شو. غني په دې اداره کې ډېر مهم کارونه سرته ورسول چې د هغوی څخه تر ټولو اول د ملي بیا جوړونې بنسټیز کول چې د ټول هېواد لپاره وو او د هغه اصول او مقرراتو جوړول وو.او وروسته بیا د افغانستان لپاره د نړیوالو مرستو د جذبولو کنفرانس لپاره چې د همغې کال په حمل کې په کابل کې جوړ شو، لپاره یې چمتووالی وکړ، په دی کنفرانس کې ډاکټر غني نړیوالو ته د افغانستان د حکومت او د خلکو اولویتونه تشریح کړل او یوه ساله زماني طرحه یې هغوی ته وړاندې کړه. د کنفرانس څخه وروسته ډاکټر اشرف غني د همدغې ادارې لخوا د مالیې د وزیر په صفت لویې جرگې ته ورمعرفي شو چې د هغوی دغه وړاندیز د جرگې د اراکینو لخوا قبول او هغه په انتقالي حکومت کې د مالیې د وزیر په صفت وټاکل شو.

د برلین په کنفرانس کې نړۍ دا غوښتل چې افغانستان ته یو میلیارد ډالر مرسته ورکړي، مگر د مالیې وزیر د نه ستړې کېدونکي فعالیتونو په پایله کې، په همدې کنفرانس کې نړۍ دې ته حاضره شوه چې افغانستان ته د ۸.۲ میلیارد ډالرو مرستې ژمنه وکړي او په همدغه وخت کې نړۍ ومنله چې په افغانستان کې ۲٦.۲ میلیارد ډالرو پانگې اچونې ته اړتیا شته. د افغانستان د تاریخ په لړۍ کې دا یو بې سابقې او بې نظیر کنفرانس وو چې یو غریب او جنگ ځپلی هېواد، خپلې بیا جوړونې پروگرامونه نړیوالو ته تشریح او هغوی ورباندې قانع کړي.

د ډاکټر غني د دې بریالیتوبونو په پایله کې، په ۲۰۰۳ ز کال کې،د اسیا په کچه تر ټولو د بریالي مالیې وزیر په حیث معرفي شو چې د کال د وزیر جایزه یې هم واخیستله.

کله چې د ۲۰۰۴ ز کال کې انتقالي دوره سرته ورسېده،ډاکټر اشرف غني نور ونه غوښتل چې په کابینه کې برخه ولري، او د هېواد د لوړو زده کړو په برخه کې د اصلاحاتو په موخه د هېواد د تحصیلاتو په نظام کې او د کابل پوهنتون د بیا رغونې برخې ته یې مخ واړولو او د یو کال لپاره یې د کابل پوهنتون د استادانو او محصلینو سره کتنې او کاري غونډې وکړې.

ډاکټر اشرف غني په ۲۰۰٦ ز کال کې د نړیوالو رسنیو لخوا د ملگرو ملتونو د سرمنشي د کاندیداتوری په چوکۍ د ناستې په اړوند مطرح شو او وروسته بیا دغه وړاندیز د افغانستان د حکومت لخوا په رسمي توگه ملگرو ملتونو ته ولېږل شو. په ۲۰۰۷ ز کال کې نړیوالو رسنیو هغه د نړیوال بانک د ریاست لپاره وړاندیز وکړ. همدا راز د ۲۰۱۰ کال په نومبر میاشت کې د هغه څخه غوښتنه وشوه چې د امنیتي مسولیت د انتقالولو د برنامې مسولیت د نړیوالو ځواکونو څخه افغان ځواکونو ته، په غاړه واخلي، چې دا دنده یې هم په ښه شکل سره سرته ورسوله.

اشرف غني د ۲۰۰۹ کال د ولسمشرۍ په ټاکنو کې برخه واخیستله، مګر بریالی نشو، د هغه څخه وروسته د ولسمشرۍ د ټاکنو د نهایي پایلو په موجب ۲۰۱۴ میلادي[15]،هغه د ۵۵.۲۷ سلنه رایې لاسته راوړې او ۴۴.۷۳ سلنه مقابل کې د خپل ټاکنېز رقیب څخه چې عبدالله عبدالله وو او د تاجکانو او هزاره ګانو له محوریت څخه نوماند وو، ټاکنو کې بریالی شو. د رایو د شمېرلو په اوږدو کې، کله چې عبدالله عبدالله د خپل شرمناکې ماتې څخه خبر شو،د ۲۰۰۹ ز کال د ټاکنو په شان،د ټاکنو پایله یې و نه منله او خپله ماتې یې د پراخ بنسټ ټاکنیزو درغلیو په پایله کې د خپل رقیب لخوا وګڼله، او د خپل ځان لپاره د امتیاز د ګټلو په موخه یې، پراخ بنسټه مبارزه د جمعیت اسلامي او د نظار شورا په برخه اخیستلو د دولت په اداره کې، پیل کړه.

## د ۱۳۹۳ هجري لمریز (۲۰۱۴ زېږدیز کال) ولسمشرۍ ټاکنې

ډاکټر اشرف غني احمدزی د ۲۰۱۴ ز کال د ولسمشرۍ په ټاکنو کې د نوماند په شکل، د جمهوري ریاست مقام ته په یو ټاکنېزه ټکټ کې د جنرال عبدالرشید دوستم (ازبک) د لومړي مرستیال په حیث او سرور دانش (هزاره) دوهم مرستیال په مقام کې برخه واخیستله. د دوستم برخه درلودل په داسې حال کې چې د قضایي جنګي جرمونو تور وربانديې د سیوري پشان موجود وو، د اشرف غني د ډېرو ملاتړ کونکو او پلویانو د نارضایتی علت وګرځېد، چې د هغه نوماندي هغه یې د مخالفت له مورچل څخه د جنګسالار مافیاوو او مالي او اداري فساد په ډګر کې یې هغه ته کتل. مګر ښکاره وه چې د دوستم شهرت او پېژندنه د رایو د بانک په شکل د اشرف غني په تصمیم مستقیمه اغیزه نه درلوده.

[15] د ۲۰۱۴ کال د ټاکنو نهایي پایله د ۲۰۱٦ د فبروری په ۲۴ نیټه د ټاکنو د خپلواک کمیسیون لخوا اعلان شوه.

**د ۲۰۱۴ کال د افغانستان د ولسمشرۍ ټاکنو د لومړي پړاو پایلې**

| نوماند | قومیت | د رایو شمېر | سلنه د رایو شمېر |
|---|---|---|---|
| عبدالله عبدالله (۱) | تاجک | ۳۰۹۷۲۷۴ | ۴۴.۹٪ |
| اشرف غني (۲) | پښتون | ۲۱۷۲۹۲۱ | ۳۱.۵٪ |
| زلمی رسول | پښتون | ۷۹۳۲۸۹ | ۱۱.۵٪ |
| عبدرب الرسول سیاف | پښتون | ۴۸۹۷٦۹ | ۷.۱٪ |
| قطب الدین هلال | پښتون | ۱۸٦۲۵۰ | ۲.۷٪ |
| محمدشفیق‌گل اقا شیرزی | پښتون | ۱۱۰۳۷۱ | ۱.٦٪ |
| داوود سلطان زوی | پښتون | ۳۴۴۹۱ | ۰.۵٪ |
| هدایت امین ارسلا | پښتون | ۱۳۷۹٦ | ۰.۲٪ |
| | د رایو مجموعه | ٦۸۹۸۱٦۱ | ۱۰۰٪ |
| | **د تاجک /هزاره مجموعه** | ۳۰۹۷۲۷۴ | ۴۴.۹٪ |
| | **د پښتون/ترک ټبر مجموعه** | ۳۸۰۰۸۸۷ | ۵۵.۱٪ |

(1) عبدالله عبدالله د هزاره ګانو رایې هم د خپل دوهم مرستیال محمد محقق د نوماندۍ په خاطر خپلې کړې

(2) اشرف غني ترک ټبرو رایې د لومړي مرستیال د نوماندۍ په خاطر د جنرال عبدالرشید دوستم له خاطره خپلې کړې

سرچینه: ۱۳۹۳ د ثور ۰٦ – ۲۰۱۴ د اپریل ۲٦ نېټه بي بي سي

عبدالله عبدالله د ۴۴.۹ سلنه رایو په ګټلو او اشرف غني د ۳۱.۵ سلنه د رایو په ګټلو د تر ټولو مخته نوماندان وو چې په دې و نتوانېدل چې ۵۰ + ۱ رایې خپلې کړي او په لومړي پړاوو کې بریالي شي، نو د ټاکنې دوهم پړاو ته داخل شوې.

## ټاکنې او د قومي کرښو ښکاره کېدل

د دې سره سره چې عبدالله عبدالله د هېواد د قومي جوړښت په پوهېدو، د ۲۰۰۹ کال د ټاکنو پر خلاف، خپل ځان يې پښتون معرفي کړ[16]، مګر هغه په خپل سياسي ژوند کې، په عملي توګه د تاجکانو د سياسي او ټولنيزو غوښتنو د محور په مرکز کې ښکاره کېدو.د دې سربېره عبدالله د پښتنو د ټولنې د غير پښتون ټولنو په وړاندې، د افغانستان دننه او بهر د هېواد څخه د يو تاجک شخص په شکل پېژندل شوی وو، او د پښتنو ضد پېژندل شوی څېرو ټولنه، لکه مجيب رحيمي، د هغه د وياند په صفت، لومړی مشاور او همکار هم دغه پېژندګلوی ته مشروعيت ورکوي، عبدالله عبدالله يوازېنی تاجک ټبره نوماند وو، نور ټول نوماندان د پښتنو قومونو څخه وو.

د افغانستان د ۲۰۱۴ کال د ولسمشرۍ ټاکنو پايلې، د رايو د تقسيم بندۍ له مخې، قومي او نژادی کرښې ښکاره کوي:

1 . هغه ولايتونه چې اکثريت اوسېدونکي کسان يې **غير پښتون قومونو** څخه وو، د وردګ ولايت څخه (۲٪ رايې) **عبدالله عبدالله** ته رايې ورکړې وې. لکه څنګه چې ليدل کېږي **ښاغلی محمد محقق د** رايې ورکونکو په جلبولو کې ډاکټر عبدالله ته ډېر مهم رول درلود په داسې حال کې چې د دوهم مرستيالۍ په بست کې وو. د لومړي مرستيال د **عبدالله** د کانديد په پرتله چې د هغه لپاره د رايو په ټولولو کې، ډېر لږ رول ولوبولو. لکه څنګه چې ليدل کېږي محمد محقق حتی د سرپل د خلکو رايې له جنرال دوستم څخه خپلې کړې او عبدالله ته يې وګټلې. د **پنځه څلوېښتو سلنه په رايې عبدالله عبدالله ته ورکړل شوې.**

2 . په هغه ولايتونو کې چې اکثريت اوسېدونکي يې **پښتنو قومونو** څخه وو، په استثنا د پښتون مېشتو ولايتونو څخه لکه کندهار، اکثر رايې ورکونکي **ډاکټر اشرف غني** ته رايه ورکړې. **د جنرال دوستم د دې سربېره** په دې برياليتوب چې د جوزجان او فارياب ولايتونو هم اشرف غني لپاره وګټې (پنځوس سلنه رايې). **يوازې د وردګ پښتنو مېشت ساحې له دې جريان څخه مستثنی وې چې د هغه لپاره زه دليل نلرم. د ښکاره معلوماتو په اساس د دوه دېرشو سلنه په حدودو کې** د رايو مجموعه اشرف غني ته ورکړل شوې.

3 . د **کندهار په پښتون مېشت ولايت کې** اکثر رايې ورکونکي **ډاکټر زلمي رسول** ته رايې ورکړې چې هغه وتوانېد چې **دولس سلنه** مجموعي رايې خپلې کړي.

4 . محمد شفيق ګل اغا شيرزی، ۱.۴ سلنه، مجموعي رايې لاسته راوړل چې اکثر يې د پښتون مېشتو ولايتونو څخه وې.

---

[16] د عبدالله عبدالله قومي پېژندنه يو د اختلاف وړمسئله ده. په ټولنيزو رسنيو کې د خپرو شويو معلوماتو پر بنسټ، هغه پنجشيری تاجيک والدين، د ده په وړکتوب کې،يو له بل څخه په رسمي ډول سره بېل شوي او د هغه مور ورسته بيا د يو پيژندل شوي کندهاري شخص سره واده وکړ، او عبدالله عبدالله دخپل پښتون پلندر د ځارنې لاندې، ستر شو.

5 . د نورو ولایتونو په پرتله، **د پښتون مېشتو ولایتونو کمتره سلنه خلک** ختیځ، سوېلي، او سوېل لوېدیځ کې چې د پاکستان سره هم سرحده دی **د طالبانو د تروریزم له خطره یې په ټاکنو کې برخه وانه خیستله**

6 . رایې د **پښتنو رایې ورکونکو (۴۵ سلنه په مجموعی ډول سره د ازبکانو د پنځه سلنه رایو سربېره او د جوزجان او فاریاب د ترکمنانو د راییو څخه سربېره)** د اشرف غني، زلمي رسول، گل اغا شیرزی، رسول سیاف او هدایت امین ارسلا منځ کې تقسیم شوې وې، په داسې حال کې چې **ډاکټر عبدالله ټولې هغه رایې چې تمه یې درلود د پښتنو ملیتونو څخه چې په هغه کې تاجک، هزاره، بدخشي، ایماق، نورستانی، ازبک او ترکمن (په استثنا د جوزجان او فاریاب د پنځه سلنه رایو)،ټول وگټلې.**

7 . د ریاضی د ساده حساب په اساس په دوهم پړاوو کې باید انتظار مو درلود چې اشرف غني حد اقل ۵۵ سلنه رایې خپلې کړې وی. **او هر کله چې په دې وتوانېږي چې د پښتون مېشتو سیمو مېشت کسان د رایې ورکولو لپاره په دوهم پړاوو کې وپاری،** د ۶۰ **سلنه ډېرو** رایو لاسته راوړل د ډاکټر اشرف غني لخوا، د احتمال څخه لرې خبره نه ده.

د دې واقعیت په پوهېدو، د ډاکټر عبدالله پلویان د دې څخه چې ټاکنې دوهم پړاوو ته تللې، ډېر ناراضي وو. ډاکټر عبدالله په لومړي پړاوو کې د خپلو ټولو پلویانو ممکنه رایې تر لاسه کړې. د اته پښتنو نوماندانو د رایو په متمرکز کېدو سره د ټاکنو په دوهم پړاوو کې د ډاکټر اشرف غني لپاره، بریالیتوب حتمی وو. باید توجه وکړو چې د گل اغا شیرزي او زلمي رسول چې پښتون ټبره نوماندان وو، حمایت په اول کې له ډاکټر عبدالله څخه وو، بیا په دوهم پړاوو کې، یوازې په سمبولیک شکل وو،په دې مانا چې پښتون رایې عبدالله ته انتقال کړي.د لومړي پړاوو یو بې طرفه او باخبره تحلیل د یو مبصر لخوا، چې د هېواد د قومي ترکیب په هکله پوه اوسي، په ډېر ساده گی سره د ټاکنو په دوهم پړاوو کې د اشرف غني بریالیتوب وړاندوینه کولی شی. په اتفاقي ډول سره، دا ډول وړاندوینه په یوه مقاله کې د ۲۰۱۴ کال د اپریل په ۲۷ نیټه ما په فېسبوک کې خپره کړه.

## د ټاکنو د دوهم پړاو نهایي تفتیش شوې پایلې

په داسې حال کې چې پښتون او تاجک قومونه د خپلې برخې له لحاظه، د هېواد تر ټولو ډېر سلنه د نفوذ جوړوي، د افغانستان د ۲۰۱۴ کال د ولسمشری د ټاکنو په دوهم پړاوو کې دوه نوماندان، یو د پښتون قوم څخه او بل د تاجک د سیاسي غوښتنو ممثل، یو د بل په وړاندې ودرېدل. د دې سربېره، ډاکټر اشرف غني تکنوکرات، اقتصادي متخصص او د نړیوال سیاست په ډگر کې د دې څخه پرته چې کوم جهادي تنظیم سره تړاوو ولري د عبدالله عبدالله په وړاندې، چې د نا مشروع جنگسالارانو د ثروت او د قدرت او د تنظیمي تباهیو او جگړو یو سمبول وو، یو د بل په وړاندې شول. د نوي نسل لپاره چې رایه ورکولو لپاره او د تنظیمي جگړو څخه یې ښه خاطره نه درلوده او مافیایي سیاستونو څخه په تنگ راغلي وو، د دوو تر منځ انتخاب ډېر ساده کار وو.

په هغه ډول سره چې د لومړي پړاو څخه وروسته ما وړاندوینه کړې وه، اشرف غني د ټاکنو په دوهم دور کې، د پښتنو د رايوو په راټولولو سره، د ۵٦.۴٪ سلنه رايو په ګټلو د عبدالله لخوا، د ۴۳.٦۰ سلنه رايو په مقابل کې بريالی شو او د جمهوري رياست مقام يې خپل کړ.

**د ۲۰۱۴ ميلادي، ۱۳۹۳ هجري لمريز کال، د افغانستان د ولسمشرۍ ټاکنو د دوهم پړاوو نهايي پلټل شوې پايلې**

| | مجموعه | اشرف غني | عبدالله عبدالله |
|---|---|---|---|
| **د رايو شمېر** | 7,509,245 | 4,258,740 | 3,250,505 |
| **سلنه** | **۱۰۰.۰۰٪** | **۵٦.۴۰٪** | **۴۳.٦۰٪** |

سرچينه:د ټاکنو خپلواک کميسيون

د پښتنو په سيمو کې د رايو څخه صرف نظر کولوسره، د کابل ولايت ډېره ښه هینداره ده، چې کولی شو په هغه کې د تقلب کاريو د فريادونو څخه پرته د خلکو رايې وګورو. د ټاکنو په دوهم پړاوو کې، د ډاکټر اشرف غني تکنوکرات، متخصص د سياست او اقتصاد، او د ډاکټر عبدالله تر منځ، چې د نامشروع جنګسالارانو د قدرت او د ثروت او د تنظيمي جګړو او تباهيو يو ښه سمبول وو، د کابل اکثريت خلکو، اشرف غني ته رايه ورکړه.

اشرف غني د خپل رياست جمهوري د ټاکنو بريالیتوب، د ملت د رايو مديون وبللو او خپل قاطع بريالیتوب يې د ۲۰۱۴ ز کال په ټاکنو کې يې بولي. لکه چې پوهېږو د پښتون قوم د يولاسۍ په اساس بريالیتوب، د نورو قومونو او مليتونو د روڼ اندو د جنګسالارانو او د قدرتمندانو د استيلا تداووم څخه نارضايتي او د هېواد د ترکتې برو په ملاتړ له جنرال دوستم څخه چې د غني په ټاکنيز ټکټ کې شامل وو د لومړي مرستيال په صفت، سرته ورسېدې.

په داسې حال کې چې عبدالله عبدالله، د جمعيت ګوند او پخواني جنګسالار عطا محمد نور په موجوديت کې، محقق، سياف، اسماعيل خان او نورو سره، د سياسي پېژندنې، ټولنيز او اقتصادي لاسته راوړنې يې چې په تير ديارلس کلو کې خپل کړي وو، د لاسه ورکولو خطر وليد، دې سياسي نا مشروعيت ته په حقيقت کې مشروعيت ورکول د پښتنو د سياسي برترۍ د دورې په بيا بېرته راتللو په ټولنه کې پيژنې او هغه په رسميت نه پيژني.

په همغه ډول چې موږ وليدل د ټاکنو څخه په وروسته مياشتو کې د دې خلکو د نارو او رسوايي په پايله کې د افغانستان د دولت په ټولو زاويو کې او خبري رسنيو کې او د هېواد په مدني او خبري سرچينو کې د حامد کرزي د سازشکارانه سياستونو له برکته، يو طرفه نا متعدله برخه يې درلوده، په ارګ په ښکاره يرغل کول او په ښکاره بغاوتونه پيل کول، رييس جمهور حامد کرزي ته بدې خبرې کول، د افغانستان د دولت د ارکانو تخريب او تحقير کول چې په هغه کې د

ټاکنو خپلواک کمیسیون شامل وو، حتی نړیوال سازمانونو ته بد ویل،د دې څخه وروسته چې د نړیوال تفتیش لخوا بشپړ تفتیش سرته ورسېد، بلاخره د ایتلافي دولت د جوړېدو سبب شو د اشرف غني او عبدالله عبدالله تر منځ افغانستان داسې یو هېواد دی چې ډېر شمېر قومونه پکې اوسېږي او د ټولنیز او سیاسي نظره یو ژور هېواد دی چې پر قومي او دودیزو اصلونو باندی تکیه لري. د دې سربېره، پنځه دیرش کاله داخلي جګړې، تنظیمي فرقه بندی او بهرنی لاسوهنی، قومي اختلافات، سمتي او ژبني دا ټول یې په افغانستان کې لا نور ژور کړي. په یو دودیز هېواد کې، هر کله چې اوسېدونکو ته د ټاکنې حق ورکړل شي، بې له ځنډه، د خپل قوم نوماند ته رایه ورکوي. د ولسمشری اخیري ټاکنو پایله دا حقیقت ښکاره کوي. د روڼ اندو د څو شمېر څخه سربېره، پښتنو پښتون ته رایه ورکړې، تاجکانو تاجک ته، هزاره ګانو هزاره ته، او ازبکانو ازبک ته. حتی ډېر شمېر پېژندل شوي روڼ اندو د دې قاعدې څخه مستثنی نه دي.

د ۲۰۱۴ ز کال د ټاکنو د دوهم پړاو د رایو د پایلو تفکیک، د قومیت د جوړښت له مخې چې د ولایتونو د نفوذ پر بنسټ د لیکونکي لخوا اټکل شوې:

| ولایت | مجموعه | اشرف غني | عبدالله عبدالله |
|---|---|---|---|
| د رایو مجموعه | **7,509,245** | **4,258,740** | **3,250,505** |
| د پښتون مجموعه | 43.20% | 61.20% | 19.60% |
| د تاجک مجموعه | 28.40% | 17.70% | 42.30% |
| د ترک تبرو مجموعه | 13.60% | 12.70% | 14.90% |
| د هزاره ګانو مجموعه | 9.40% | 5.40% | 14.70% |
| د نورو قومونو مجموعه | 5.40% | 3.10% | 8.50% |
| سلنه مجموعه | **100.00%** | **100.00%** | **100.00%** |

(ارقام د ولایتونو په تفصیل په وروستي جدول کې ذکر شوې)

د ټاکنو نتایجو په عملي ډول سره ښکاره کړ چې د افغانستان خلک، د ټاکنیزو درغلیو د شورماشور سره سره، په عمومي ډول سره د قومیت او نژاد په اساس یې رایې ورکړلې. د پورتني جدول د اټکلونو په اساس د ۶۱.۲ سلنه شاو خوا رایې د غني، د پښتنو رایې، ۱۷.۷ سلنه تاجکانو، ۱۲.۷ سلنه ترک تبران، ۵.۴ سلنه هزاره ګانو او ۳.۱ سلنه یې د نورو قومونو څخه وو.په مقابل کې یې د عبدالله ۴۲.۳ سلنه رایې د تاجکانو، ۱۹.٦ سلنه د پښتنو رایې، ۱۴.۹ سلنه د ترک تبرو رایې، ۱۴.۷ سلنه رایې د هزاره ګانو او ۸.۵ سلنه رایې د نورو قومونو څخه وې. بل مهم مطلب دادی چې د غني په ملاتړ کې د ۳۹ سلنه څخه لږ کم رایو کې د غیر پښتون رایې شاملې دي په داسې حال کې چې د عبدالله په رایو کې  غیر تاجک ډېر دي له ۵۷ سلنه د هغه ټولو رایې دي.په بل عبارت عبدالله په ډېره اندازه مدیون د محقق د ملاتړو دی چې د ده په

ټاکنېز ټکټ کې  هزاره کس وو، دی د هغه نسبت ته چې غني مديون د دوستم دی. دا حقيقت د غني په کړنو کې د ۵ کلونو په اوږدو کې د رياست جمهوری په اول دور کې او د همکارانو په انتخاب کې د ټکټ لپاره په ۲۰۱۹ کال کې مشهود دی.

پښتانه او ترک تبران اشرف غني او جنرال دوستم ته رايې ورکړې په داسې حال کې چې تاجکانو او هزاره گانو ډاکټر عبدالله او محقق ته رايې ورکړې. حتی يو غير مسلکی شخص په عاميانه پيژنگلوی د افغانستان د خلکو څخه هم کولی شي حساب وکړي چې په افغانستان کې پښتانه او ترک تبران د تاجکانو او هزاره گانو څخه په شمېر کې ډېر زيات دي. حتی د ټاکنو د لومړي پړاوو د پايلو په څېړنه کې چې په هغه کې اته پښتانه نوماندان شامل وو،د دوهم پړاوو پايلې د پېشبينی وړ وو. د دې مقالې ليکونکی د ۲۰۱۴ کال د اپريل په ۲۷ نېټه په فېسبوک کې په داسې حال کې چې تمرکز يې د پښتنو رايی ورکونکو پر رايو وو، داسې وړاندوينه  يې کړې وه چې اشرف غني به په دوهم پړاو کې د ټاکنو د ۵۶ سلنه رايو څخه تر ۶۰ سلنه رايې لاسته راوړي او بريالی به شي.

د پاملرنې وړ ده چې د ۲۰۱۴ ز کال په ټاکنيزو رقابتونو کې د ډاکټر عبدالله د جهت له لوري هېڅ ډول مباحثه د ډاکټر اشرف غني د سياسي، امنيتي، اقتصادي،ټولنيز او يا نورو سياستونو او پلانونو په اړوند مطرح نه شوه. بر عکس د ډاکټر عبدالله د پلويانو د تېرې چارې څوکه د ډاکټر اشرف غني په شخصيت وژنې پسې رايستل شوې وه چې د کوچي، قومپرست، متعصب پښتون،فاشيست، ژبپرست، د طالبانو ملاتړکونکی او نور يې ورته ويل چې دا په خپله ښايي چې د ډاکټر عبدالله پلويان د دوهم پړاوو رقابت د يو تاجک نوماند رقابت د يو پښتون نوماند په  وړاندې منلی وو.

د ډاکټر عبدالله پلويان په داسې حال کې چې د هېواد د قومي جوړښت پېژندنه يې درلود پوهېدل چې هر کله چې ټاکنې دوهم پړاوو ته په ډيموکراتيک فضا کې  لاړې شي او د خلکو د رايو صندوقونو ته لاس ورنه وړل شی، اخيري پايله به يې د ډاکټر عبدالله په گټه نه وي. ډاکټر عبدالله دې تريخ حقيقت ته په هم هغه شپه د ټاکنو د دوهم پړاو د ختمېدو سره سم د رايو د شمېرل کېدو د پيل څخه دې حقيقت باندې په ټولو ټاکنيزو حوزو کې پوه شو. که دی په ديموکراسی باور درلود، نو تليفوني به يې هم هغلته ډاکټر اشرف غني ته د برياليتوب مبارکي ورکړې وه. مگر دا کار،د ولسمشر پراخ بنسټه صلاحيتونو ته د اساسي قانون په برخه کې په توجه،د جمعيت د گوند د مشرانو له نظره او د وحدت د گوند، د سياسي قدرت د بيا انتقاليدو د پروسې پيل بېرته د پښتنو اکثريت ته وو، سياسي قدرت چې د پروفيسور امين صيقل په وينا په ۲۰۰۱ کال کې د امريکايي ځواکونو پواسطه غير پښتون اقليتونو ته ورکړل شو. همدلته وو چې د ټاکنو د خپلواک کميسيون د بې اعتباره کولو کمپاين او د افغانستان د دولت د نورو مقاماتو او اورگانونو د ډاکټر عبدالله د ټاکنېز ټيم لخوا او د هغوی د پلويانو پواسطه په رسنيو کې  پيل شو.

افغانستان د پنځه ديرش کاله جگړو له امله په يو جنگسالاره حوزه د نفوذ بدله شوې ده.د ټاکنو د خپلواک  کميسيون لپاره د ټاکنو پر پروسه لازم نظارت په دې منطقه کې يو ناممکن کار دی. اکثر ټاکنېزې حوزې د بلخ په ولايت کې د مطلقه جنگسالارانو په کنټرول کې دي چې په محلي شکل سره معلم عطا محمد نور پورې اړه لري. په بدخشان کې د رباني کورنی په بشپړحاکميت حکومت کوي او په هرات کې   جنگسالاران چې اسمعيل خان پورې تړلي، په

پروان،پنجشیر او کاپیسا کې د احمد شاه مسعود او د جمعیت ګوند د منازعې څخه پرته بشپړ کنټرول په ټولو چارو لکه امنیتي چارې، سیاسي، ټولنیز او ټاکنیزو چارو باندې لري. د هېواد مرکزي سیمې لکه په بامیان او دایکندي کې د محمد محقق پلویانو د هزارستان نوم ورکړی او د مرکزي دولت حاکمیت په دې سیمو کې  نه منل کېږي. کله چې څوک د ټاکنو پایلې په خوست او پکتیا کې د تقلب سره مل بولي او نه یې مني،څنګه کولی شي چې د همشکله تقلب څخه په پنجشیر، بلخ، بدخشان،هرات،بامیان او دایکندي کې انکار وکړي؟په حقیقت کې  نړیوال څارونکي د تقلب نسبي میزان د هېواد په ټولو لرې پرتو سیمو کې   یو شان موندلی دی.

**د غني – عبدالله د ملي وحدت حکومت**

په دی حقیقت باید پوه شو چې د جمعیتیانو او د نظار د شورا د مغرضانه تبلیغاتو سره سره، د ملي  وحدت حکومت مشروعیت د ټاکنو د پایلو څخه وو نه د یو سیاسي هوکړې پر بنسټ،ځکه دا هوکړه د ټاکنو د دوه نهایي نوماندانو تر منځ د ولسمشرۍ په ټاکنو کې سرته ورسېده د ټاکنو څخه د باندی کسانو لخوا و نه شو.

په یاد یې راولو چې د امریکا د بهرنیو چارو وزیر جان کیري، په کابل کې د یو منځګړي رول ولوبولو د اشرف غني او عبدالله په حضور کې   یې په واشنګټن کې ټینګار پر دې وکړ چې جمهور رییس اشرف غني په خپله خوښه،په داسې حال کې   چې هېڅ ډول فشار او اجبار هم ورباندې نه وو،د ملي  وحدت د حکومت په جوړېدو موافقت وکړ. همداراز په یاد کړو چې د ملي  وحدت د حکومت له جوړېدو څخه وروسته د ټاکنو خپلواک کمیسیون د ټاکنو نهایی پایلې چې د نړیوالو لخوا تفتیش شوې وې یې خپور کړ چې د هغه پر بنسټ اشرف غني د ۵۷ سلنه رایو په ګټلو د ټاکنو بریالی اعلان شو. اشرف غني او عبدالله عبدالله د ټاکنو د دوهم پړاوو دوه نوماندان وو.د دې سربېره چې عبدالله عبدالله د ټاکنو پایلې په اول سر کې و نه منلې، د دی سره سم چې اشرف غني جمهوري ریاست مقام ومنلو او په خپله د جمهور رییس په فرمان د اجراییه رییس مقام ته مقرر شو، په عمل کې دا په خپله د اشرف غني د ټاکنو د بریالیتوب منل دي. د دی په اساس که د که ټاکنې په نظر کې و نه نیسو، یو ملي  وحدت حکومت،د دوه ثالث اشخاصو تر منځ چې په دوهم پړاوو کې  یې برخه نه وه اخیستې، د جان کیري په منځګړیتوب، مو درلودلی شو، په هغه صورت کې  د ټاکنو څخه بهر حاصله حکومت او د اساسي قانون د چوکاټ بهر، د سیاسي جوړې په اساس یو حکومت بلل کېدو!

نا سم تبلیغات چې ګنې د ملي  وحدت د حکومت په جوړېدو، د جمهور رییس صلاحیتونه د اساسي قانون په اوږدو کې محدود شول، او یا دا چې د ایتلافي ملي  وحدت حکومت څخه د عبدالله عبدالله ممکنه وتل، د نوي بربېښنايي تذکرو د تطبیق په بهیر کې  پر افغان ملیت،د ریاست جمهوري مقام خپل مشروعیت له لاسه ورکوي، په بشپړ توګه مغرضانه تفکرات دی، دا فتنه اچونکی او ناسم دي.

د ملي وحدت حکومت د هوکړې د لاسلیک څخه د مخه، د اشرف غني تر ټولو لویه سهوه دا وه چې د عبدالله لخوا یې ټاکنو د نړیوال تفتیش کېدو څخه وروسته، د ټاکنو د پایلو د منلو د اعلانولو غوښتنه باندې یې ټینګار ونکړ. په هغه وخت کې زما مشوره اشرف غني ته داسې وه::د ملي  اتحاد د حکومت د جوړېدو شرط د سم دستي او بی قید او شرط

د ټاکنو د پایلو منل د بایلونکی نوماند لخوا دی. که نه نو د دولتي چوکیو خرڅلاو او پلورل به د ټاکنو د پایلو د منلو په قېمت وپېژندل شي او د یو متزلزله حکومت بنسټ به ممکن کېږدي.؛

د ۲۰۱۴ کال د ولسمشرۍ ټاکنې د نیږدې اووه میلیونو افغانانو په قهرمانانه ډول سره برخه اخیستلو د پاکو او د نړیوالو لخوا تفتیش شوې رایو پواسطه چې د یو میلیون څخه اضافه مشکوکی رایې یې باطلې کړې،د یو وروسته پاتی او جنګ ځپلي هېواد په دننه کې یو بهترین ډول د ټاکنو محسوبېدی شی.که په خوست او کندهار کې تقلب سرته رسېدلی وي په هم هغه اندازه پنجشیر او مزارشریف کې هم ممکن تقلب شوی وی.باید له هیره و نباسو چې د خوست او پکتیا د ټولو رایو په باطل کولو، بیا هم غنی بریالی وو.

دا د شرم ځای دی چې د جمعیت او نظار شورا مافیا، د خپل نوماند پایله و نه منله او د ټاکنو په بدنامه کولو یې پیل وکړ او پر ارګ د یرغل او شورماشور له لاری یې مصنوعی بحران منځ ته راوړ.

سیاسي ایتلافونه په اکثر ډول سره د سیاسي سازمانونه تر منځ، منځ ته راځي او د هغه دوام د ذیدخله سیاسي اړخ د سیاسي قدرت او موقف ته د احترام په ټولنه کې او په مشترکه اصلاحي موخو او انکشاف او پر مختګ پورې اړه مومي. د افغانستان د ملي وحدت د حکومت د دوه قطبونو پېژندنه د یو بل د قدرت او ټولنیز موقف – او سیاسي موقف څخه یې او په دولتي نظام کې د اصلاحاتو په لرلید کې د ذاتی نواقصو درلودونکی دی.

د دوه قطبي دولت د ژوند په اوږدو کې ؛ملي وحدت؛ په کراتو د سیاسي اتحاد نشتوالي د ایتلاف د طرفینو تر منځ ښکاره شو. د دې سره سره چې ډاکټر عبدالله، د دولت د اجرایي رییس، په ټولو تصمیمونو کې برخه درلود، د هغه پلویان، نه یوازې دا چې د دولت په خارجي سیاست، او په کورني سیاست کې د هېڅ نوښت څخه ملاتړ نه کولو، د هغه سربېره په ښکاره یې نوښتونه تحقیرول او نیوکې یې پرې کولې. د ټولو څخه بده دا وه چې حتی د کوچني مشکل په موجودیت کې، نیوکې ټول جمهور رییس اشرف غني باندې کولې او خپل ځانونه یې د مسولیت څخه بهر ګڼل.

د ملي وحدت د حکومت د ژوند څخه دوه کاله لا نه وو تېر شوي چې عبدالله عبدالله او پلویان یې په دولت کې د دوهم نقش د لوبولو څخه ستړي شول، ویې غوښتل چې خپله یو حکومت جوړ کړي. د هغوی بهانه داوه چې د ملي وحدت د حکومت هوکړه باندې عمل نه کېږي. د دې هوکړې تر ټولو اساسیترینه ماده،د هېواد د ټاکنو د سیستم اصلاح وو.د دوی وړاندیزونه د ټاکنېز سیستم د اصلاح لپاره څه وو؟ د دوی لپاره د ټاکنو د سیستم ټوله مانا دا وه چې د دوی پلویان د د ټاکنو د خپلواک کمیسیون په چوکیو کښېني او په همدې اصلاح مکملېږي. هغوی ډېر کوښښونه وکړل چې د هغه معاملو په اساس چې په قانوني ډول یې د اداري مفسیدینو سره کړې وې، د مثال په ډول بسم الله محمدي،ضیا مسعود، عطا محمد نور، او نورو سره یې مخالفت وکړ او د هر هغه شخص په تقرر یې رضایت نه درلود،څوک چې د نظار د شورا یا د جمعیت د ډلې څخه نه وو.د عبدالله تفاهم د یو مقام د تقرر لپاره یا د یو اصلاحي عمل سرته رسول، په بهترین حال کې، میاشتو په اوږدو وخت نیولو. هغوی د شبه نظامي شبکو د ډلو له خلع سلاح کولو څخه وېره درلود او یو قانوني حکومت دخپل ارمانونو او هیلو ضد بولي.

جمعیت او د نظار شورا د تاجک د لوی، روشنفکر او شریف قوم استازي نه دي په هم هغه ډول سره چې تروریست طالبان د منځنیو پیړیو دي او د پښتون د قوم استازیتوب نشي کولی او د پښتنو په لمنه یو ننګین داغ بلل کېږي.دا ډله په اخیرو کې عام اصطلاح ؛سقوي؛ ته یې د یو سیاسي خوځښت په شکل چې د شلمې پیړۍ د اولې نیمايي له وخت څخه دی چې خصلت یې د پرمختګ ضد، د تمدن ضد او د حکومت د قانون ضد دی او په ټولنه کې د ؛سقوي؛ جنبش په نامه پېژندل کېږي، د حبیب الله کلکاني په یادولو،په هغه افتخار کوي،که نه نو بیا زه هېڅا ته داسې لقب نه غواړم ورکړم.له یاده و نه باسۍ چې سقویانو په تیره زمانه کې د داسې موخو سره چې د ښځو د ازادۍ ضد، د ښوونې او روزنې ضد، د تمدن او د حکومت او قانون ضد مرام یې درلود،د قدرت واګې یې تر لاسه کړې وې.

د رباني – مسعود د دولت، غم انګېزه او د فاجعو څخه ډک لاسته راوړنه یې دا وه چې د افغانستان د دولت جوړښت وپاشي او د هېواد مسلکي او وسله وال ځواکونه خلع شول، د تنظیمي نښتو پیل او د هزاره قوم په خلاف د جګړو پیل هلته وو چې تر اوسه یې د افغانستان ملت په یاد لري. د نن ورځې سقویان دیموکراسی او د حکومت قانون ته احترام نه لري او ورته پابنده نه دي. عبدالله د هېواد د دوهم شخص په رول کې، خپله ولسمشر ته یې د بې کفایت خطاب وکړ، یو والي د عطا محمد نور په شتون کې جمهور رییس ته ویل چې ته زما د دندې څخه د لرې کولو صلاحیت نه لرې او وروسته بیا امان الله ګذر اعلان وکړ چې کابل به په خاورو او وینو ورنګوي! د دې څخه اضافه انارشیګیري هېڅ دولت نشي زغملی او باید یې و نه مني. سقویانو د اغتششاش زمزمې کولې، کودتا او د موازي حکومت د جوړولو خبرې یې په کراتو پیل کړې. د سقویانو د بیا په قدرت رسېدلو څخه مخنیوی کول د افغانستان د هر روشنفکر انسان دنده ده.

سیاسي ایتلافونه په اکثر ډول سره د سیاسي سازمانونو تر منځ، منځته راځي او د هغه دوام د ذیدخله سیاسي اړخ د سیاسي قدرت او موقف ته د احترام په ټولنه کې او په مشترکه اصلاحي موخو او انکشاف او پرمختګ پورې اړه مومي. د افغانستان د ملي وحدت د حکومت د دوه قطبونو پېژندنه د یو بل د قدرت او ټولنیز موقف – او سیاسي موقف څخه یې او په دولتي نظام کې د اصلاحاتو په لرلید کې د ذاتي نواقصو درلودونکی دی. په داسې حال کې چې د جمهور رییس اشرف غني وړاندیز شوی اصلاحاتي او انکشافي برنامې د فساد د مخنیوي په منظور، د هغه کسانو څېړنه او قانون ته یې سپارل، ځوک چې لویو مالي فسادونو کې د دولتي موقف څخه په استفاده په تیره زمانه کې لاس درلود، د مرکزي دولت د حاکمیت تامین کول پر محلي قدرتونو باندې،د نیمه خپلواکو قدرتونو ختمول چې محلي جنګسالارانو پورې تړلي دي، د محلي ادارې او مالي ارګانونه ځواب ورکول مرکزي دولت ته او نورو نووښتونو ته ضرورت لري،دا ډول نووښتونه په اکثرو مواردو کې د اجراییه رییس او د هغه د پلویانو په تناقض کې قرار نیسي او د اجراییه د رییس په شدت مقاومت او ولاړې سره مخ او همغلته له منځه وړل کېږي. د مثال په ډول عطا محمد نور د بلخ د ولایت اوسنی سرپرست چې د تېرو یوولس کلو راهیسې په بشپړه خودمختارۍ د بلخ ولایت مخته وړلو، په ښکاره ډول د بل شخص د تقرر مخنیوی یې دې مقام ته وکړ او ډاکټر عبدالله د هغه د دې بغاوت څخه ملاتړ وکړ.

**د ملي  وحدت په حکومت کې د دخيلو سياسي ځواکونو دوه دريځونه**

| عبدالله عبدالله | اشرف غني: |
| --- | --- |
| هغه کسان چې د اجرائيه رييس عبدالله عبدالله په محور کې  دي، د هغه څخه په فعال يا غير فعال ډول سره ملاتړ کوي د سياسي، تاريخي او د هېواد په ټولنيزو مسايلو کې لږ يا ډېر، لاندې  دريځونه لري:<br>١. په ټاکنو کې د ماتې علت، د پراخبنسته تقلب موجوديت بولي او د ټاکنو پايلې نه مني<br>٢. د اشرف غني تقرر د ولسمشرۍ مقام ته، يو سياسي توافق بولي<br>٣. د افغانستان نوم نه مني او غواړي هغه په خراسان بدل کړي<br>۴. د افغانستان دولت،د انگلستان د استعمار څخه جوړ بولي<br>۵.اعتقاد پر دې لري چې د افغانستان نوم انگليسانو په نوولسمه پېړۍ کې  پر دې هېواد اېښودلی دی<br>٦. د افغان ملت پر موجوديت اعتقاد نه لري، خپل ځانونه افغان نه بولي او د افغان ملت د پښتون معادل بولي او په دې برخه کې  د اساسي قانون د تعريف ملاتړ نه کوي.<br>٧. د افغانستان تير دولتونه په استثنا د حبيب الله کلکاني د دولت او د مجاهديونو دولتونه،د قبيلو پر اساس | هغه کسان چې د جمهور رييس اشرف غني په محور کې دي، د هغه څخه په فعال يا غير فعال ډول سره ملاتړ کوي د سياسي، تاريخي او د هېواد په ټولنيزو مسايلو کې لږ يا ډېر، لاندې  دريځونه لري:<br>١.د ټاکنو پايلې مني<br>٢. د اشرف غني تقرر د ولسمشرۍ مقام ته د ټاکنو د قاطع برياليتوب پايله بولي<br>٣.د افغانستان نوم نه بدلېدونکی بولي<br>۴. د افغانستان د خپلواک دولت جوړېدل يو سياسي طبيعي تکاملي پروسه بولي او د افغان ملت د فداکاريو او په اصل کې  د دې هېواد د بنسټ اېښودونکو بولي، او د هغه دوام تر نن پورې د افغان مليت د قهرمانانو مبارزه او سرښيندنې بولي چې د انگليس پر ضد يې درې جگړې او د ملي  منافعو پيوستون د دې هېواد د ټولو مېشتو قومونو بولي<br>۵. اعتقاد لري چې افغانستان نوم د تاريخي سابقې په اساس په طبيعي شکل سره په عام استعمال راغلی او په سياسي قاموس کې  داخل شو، او نړۍ گرځېدونکي او مورخين دا هېواد او دولت يې په اتلسمه ميلادي پېړۍ کې د افغانستان په نوم ياد کړی دی<br>٦. د افغان ملت په موجوديت اعتقاد لري او د تعريف څخه يې |
| فاشيست يې بللو او باور په دې لري چې دا دولتونه د پښتون نيشنلېزم او د پښتون ملي  ستم د اعمالو ممثل د هېواد پر نورو قومونو دی. | د اساسي قانون په چوکاټ‌کې، ملاتړ کوي<br>٧.د افغانستان تير شوي دولتونه ملي  دولتونه بولي، د دولتونو د کوښښونو په نظامي برخه کې په ولايتونو کې |

| | |
|---|---|
| ٨.د افغانستان د دولت د بنسټ ایښودونکو څخه، میرویس خان هوتک، احمد شاه ابدالي او نور افغان مشرانو څخه په حقارت او توهین یادونه کوي.<br>٩. د افغان ملیت تاریخي افتخاراتو ته،پښتون نشنلیزم پېژندنه ورکوي، خپل ځان پکې شریک نه بولي<br>١٠. د پښتون قوم د فرهنګ له رویه، پس مانده بولي<br>١١. پښتانه د نفوس له مخې د هېواد تر ټولو لوی قوم نه مني<br>١٢.د پښتنو مشران، سیاستمداران او لوړپوړي چارواکي د پښتون له قومه د اوسیدو په اساس، د طالبانو ملاتړ کونکي بولي<br>١٣. د دري ژبه د فارسي ژبې سره یو مني، د دري له نوم څخه کار نه اخلي<br>١٤. افغانستان د ایران فرهنګ او قلمروو پورې تړلی ګڼي<br>١٥. په ایران کې مروج نومونو او اصطلاحاتو څخه تر هغه نومونو او اصطلاحات چې افغانستان کې مروج دي، ډېره استفاده کوي.<br>١٦. په هېواد کې د تنظیمي ملیشو،جهادي تنظیمونو څخه ملاتړ کوي<br>١٧.د دولت د هر ډول پالیسۍ او اقدام سره چې د ملیشه او پخواني جهادي قومندانانو د تضعیف سبب ګرځي، سره مخالفت کوي.<br>١٨. د دولت د هر ډول اقدام او پالیسۍ په وړاندې د محاسبې په اړوند د مالي فساد، د دولتي ځمکو د غصب، د ملیشه او جهادي تنظیمو د قومندانانو لوی اختلاسونو چې د دولتي مقاماتو د لاسته راوړنې څخه وروسته کړي، سره مخالفت کوي. | د مرکزي دولت د بنسټ د استواره کولو په موخه، د ملوک الطوایفی نظام د له منځه وړلو په موخه او د یو موثرې دولتي ادارې د جوړولو په شکل لیکي<br>٨. د افغانستان د دولت بنسټ ایښودونکی، میرویس خان هوتک او احمد شاه ابدالي ملي قهرمانان او واجب د احترام مني<br>٩. د افغان ملت تاریخي افتخارات، د هېواد ټولو قومونو او قشرونو پورې متعلق ګڼي<br>١٠.د پښتون قوم د هېواد د ورونو قومونو څخه یو قوم بولي چې د یو لوی ټولنیز او فرهنګي ارزښتونو وارثین دي د هغوی د پنځه سوه کاله څخه اضافه سیاسي او نظامي استیلا،د هند په نیمه وچه کې او د هغوی مهمه برخه درلودل د افغانستان د دلوت په جوړولو او دری سوه کاله تداوم کې،د دې فرهنګی، ټولنیز او سیاسي ارزښتونو ممثل بولي<br>١١. پښتانه د نفوس پر بنسټ د هېواد تر ټولو لوی قوم مني د هېواد پښتون مېشت ولایتونه د کنړونو څخه تر ارزګان او هلمند پورې د دې حقیقت ښکاروندوي بولي<br>١٢. پښتانه لوړ پوړي چارواکي، سیاستمداران، مشران اساسي قانون ته ژمن دي او د طالبانو د سیاستونو او افراطي افکارو سره مخالف دي<br>١٣. د اساسي قانون په اساس، د دري ژبه د هېواد د رسمي ژبو څخه یوه بولي د هېواد د ملي هویت څخه یې نه بېلېدونکی بولي<br>١٤. افغانستان به لرغوني اریانا د فرهنګ او قلمرو پورې تړلی منلی |

| | |
|---|---|
| ۱۹. په ښکاره او پټه تهدیدونو، د پخواني جهادي قوماندانانو د ولایت له مقاماتو څخه د لرې کولو مخنیوی کوي.<br><br>۲۰.پر ولایتونو د مرکزي دولت د حاکمیت څخه مخنیوي کوي<br><br>۲۱. د یو فدرالي او د ولایتونو د محلي خپلواکی د مرکزي دولت څخه غوښتونکي دي.<br><br>۲۲. د لومړي وزیر د چوکۍ د جوړېدو او د جمهوري ریاست د مقام د اختیاراتو د کمېدو غوښتونکي دي.<br><br>۲۳. د طالبانو سره سوله نه مني او د طالبانو په دولت کې برخه لرل نه غواړي<br><br>۲۴. د افغانستان دولت څخه غواړي چې د ډیورند کرښه په | ۱۵. په افغانستان کې د مروجو دري نومونو او اصطلاحاتو څخه د ایراني فرهنگي یرغل په مقابله، خپله یو ملي دنده بولي<br><br>۱۶. په هېواد کې د تنظیمي جهادي ملیشوو تقویت لړۍ ادامه لرل، د هېواد د اوسېدونکو د مصالحو خلاف بولي<br><br>۱۷. په دولت کې د ملیشه قوماندانانو د رول تضعیف کول چې پخواني جهادي تنظیمي مشران وو، یو مهمه دنده او اړینه موخه د مسلکي او نظامي سالم او د قانوني حاکمیت څخه ډک دولت په جوړولو کې مهم بولي<br><br>۱۸. د دولت څخه غواړي چې پالیسي طرح کړي او ضروري اقدامات د مالي فساد، د دولتي ځمکو د غصب، د پخواني دولت د کارمندانو د لویو اختلاسونو،د جهادي تنظیمو د قومندانانو ملیشوو چې د دولتي مقامونو د تر لاسه کولو څخه یې وروسته کړی وو، غوښتنه کوي<br><br>۱۹. د پخواني جهادي قوماندانانو د دندې لرې کول له ولایت او محلي ادارو څخه، د |
| رسمیت ومني | ټولنیز عدالت او د حکومت د قانون د جوړېدو لپاره ضروري گڼي<br><br>۲۰. د مرکزي دولت حاکمیت پر ولایتونو او محلي ادارو باندې د قانون د حاکمیت لپاره، مهم بولي<br><br>۲۱. د ریاستي اداره د تداووم د اساسي قانون پر بنسټ پلویان دی<br><br>۲۲. د لومړي وزیر د پوست جوړول په دې شرط مني چې د ولسمشر صلاحیت او اختیارات د دولت د رییس په چوکۍ کې، محفوظ او خوندي پاتې شي<br><br>۲۳. د طالبانو سره سوله، د اساسي قانون په چوکاټ کې، د دیموکراتیکو ازادیو په رڼا او ښځو د حقوقو په خوندي |

| | |
|---|---|
| | کولو مني او د طالبانو په دولت کې د برخه اخیستلو پلویان دي<br>۲۴. د افغانستان د دولت لخوا، د ډېورنډ د کرښې د په رسمیت پېژندنې مخالف دي. |

دوه کاله د مخه د وسلو په یوه لویه ډیپو کې چې د جمعیت گوند د پخواني قوماندان لخوا د پروان ولایت د بایانو په کلي کې د بگرام د مرکز سره نیږدې ساتل کېده، د امریکایي ځواکونو لخوا وچول شوه. دا کار باید په ټول هېواد کې سرته رسېدلی وی او د پخواني جهادي قوماندانانو ډیپوگان باید ټول له منځه تللی وی. په داسې حال کې داسې برنامې د جمهور رییس اشرف غني د اصلاحاتو د پروگرامونو سره په مطابقت کې وو او د امریکایي ځواکونو دا عمل په ډېر امکان سره د هغه په غوښتنه سرته ورسېد، مگر د دې ډیپو له منځه وړل د ډاکټر عبدالله او د نظار د شورا جهادي قومندانانو او مشرانو لخوا سخت وغندل شو. مالي تفتیش کول د لویو اختلاسونو چې د ملي دفاع وزارت په پخواني قراردادونو کې د جنرال بسم الله خان د وزارت په وخت کې شوی وو،د جمعیت د گوند یو پخوانی جنگسالار، کیسه کوي، مگر دا ښکارېږي چې دولت د ډاکټر عبدالله د فشار لاندې د دې اختلاسونو د پوښتنو قدرت نه لري.

د عبدالله عبدالله او اشرف غني تر منځ د سیاسي ایتلاف تزلزل د ایتلافي دولت د سیاسي بی توازنۍ له وجهې وو.یوې خواته ډاکټر عبدالله د اجرائیه رییس د یو نظامي – سیاسي سازمان څخه جوړ د جمعیت د حزب په موجودیت کې او د وحدت گوند او جهادي ملاتړ کونکي یې د دولت په دننه کې، دیارلس کاله په ورسره تړلې رسنیو، مدنی ټولنو،د ولسي جرگه د هغه استازو په شتون چې دوی سره تړلي وو او نور هغه ټول عناصر چې په اخیرو دیارلس کلونو کې د دولتي قدرت څخه په استفاده قدرت او مقاماتو ته رسېدلي، سره تړون لري. په بل قطب کې ډاکټر اشرف غني د دې څخه پرته چې یو سیاسي حزبي سازمان څخه ملاتړ ولري، د روڼ اندو په ملاتړ او د کوچنیو سازمانونو په ملاتړ چې غیر جهادي وو او د ملت عام وگړي وو چې د جنگسالارانو د استیلا څخه په اخرو ۲۴ کلونو کې نور په تنگ وو،زړه یې ورته ښه کړی وو.

د دې سربېره، د اشرف غني سخاوتمندانه امتیاز ورکول ډاکټر عبدالله ته په سیاسي هوکړه کې او د پنځوس – پنځوس حکومت کې شریک کول،د پښتنو د اکثریتو د نا خوښۍ سبب شو او اشرف غني یې د ډېرو پښتنو سیاستمدارانو او ضرورت وړ ملاتړ څخه محروم کړ.دغه د امتیازاتو ورکول،نن ورځ په عملي توگه د هغه حکومت فلج کړی او د عبدالله په گروگان کې یې اچولی دی. د اشرف غني له ویناوو څخه د سیاسي هوکړې د جوړېدو په اړوند په هغه وخت کې داسې ښکاریده چې عبدالله ته د امتیازاتو په ورکولو، چې هغه د ولسمشرۍ د صلاحیتونو په صراحت څرنگه چې په اساسي قانون کې یې ذکر شوی او د نړیوالو پر ملاتړ ډېره تکیه کوله.

په داسې یو هېواد کې چې د قانون پلې کول لا تر اوسه د ماشومتوب په دوران کې دی او بهرني ځواکونه هغه منافعو پورې تړلې چې د مشخص سیاسي – نظامي ډلو پورې په هېواد کې اړیکه لري، په پورتنیو عواملو باندې حساب کول، مطلوب کار نه دی.د ملګرو ملتونو د استازي اخطار ورکول د ټاکنو د تفتیش شویو پایلو د سیاسي جوړجاړي د اعلان کولو د مخه په اړوند، باید اشرف غني ته د بهرني ملاتړ کوونکو په اړوند او د هغوی د سازشکارانو رول په اړوند هېڅ شک باید ورته نه وو پرېښی. په اخیر کې لکه چې موږ ولید د اشرف غني ټاکنېز بریالیتوب چې د نړۍ تر ټولو لوی ټاکنېز تفتیش، هغه تایید کړ،د امریکا متزلزل او سازشکارانه موقف د ۵۰ – ۵۰ ایتلافي حکومت سبب شو پر اشرف غني باندې چې د هغه بدې پایلې تر نن ورځې په هېواد کې وینو.

د یو واقعي ملي اتحاد دولت منځته راتلل، دې ته ضرورت لري چې په هغه کې په نسبی ډول سره متوازن سیاسي ځواکونه د دولت په قدرت کې دخیل وي. نن هم د سیاسي توازن منځته راوړل د روڼ اندو او د پښتون مېشتو ولایتونو د سیاستمدارانو په غاړه دی.د نن څخه تر بل ځل دولسي جرګې تر ټاکنو پورې، پښتون مېشتو ولایتونو سیاستمدارانو او روڼ اندو ته یو ښه فرصت دی چې د ترقي غوښتونکې موخو په تعیینولو ملي ارمان ته د رسېدو په موخه چې په هغه کې د هېواد د ټولو قومونو سعادت نغښتی وي جوړ کړي او په هغه کې د خپلو ولایتونو مېشتو قومونو موخې په نظر کې ونیسي د سیاسي ترقي غوښتنه په یوې متحدې جبهې کې راتلونکې ولسي جرګې ته انتقال کړي.یوازې په داسې یو حالت کې کېدی شي چې په ولسي جرګه کې د نورو احزابو د استازو سره لکه د جمعیت،وحدت،ملي جنبش او نورو وطنپرستو ځواکونو سره په یو ایتلاف کې، یو واقعي دولت چې بریالی او د ملي وحدت، د هېواد د قومونو او ملیتونو د مشروع ګټو ضامن وي،جوړ شي.

د هېواد سیاسي اوضاع دومره خرابه ده چې هېڅکله حتی په بدترینو خوبونو کې مې هم فکر نه کولو چې داسې ورځ به راشی چې د هېواد په سیاسي ژوند کې د ګلبدین حکمتیار په قیادت کې د اسلامي ګوند برخه اخیستل او د افغانستان په دولت کې، دې ته د یو لازمی وزن په سترګو د دولت لپاره یې مفید وبولم او ښه راغلاست یې وکړم.نن هم د سیاسي توازن جوړښت د پښتون مېشتو ولایتونو د سیاستمدارانو او روڼ اندو په غاړه دی. د هر ډول طالباني طرحو او تفکرونو څخه لرې والی د هر روشنفکر پښتون دنده ده. .د نن څخه تر بلې ولسي جرګې تررټاکنو پورې، پښتون مېشتو ولایتونو سیاستمدارانو او روشنفکراتو ته یو ښه فرصت دی چې د ترقي غوښتونکي موخو په تعیینولو ملي ارمان ته د رسېدو په موخه چې په هغه کې د هېواد د ټولو قومونو سعادت نغښتی وي جوړ کړي او په هغه کې د خپلو ولایتونو د مېشتو قومونو موخې په نظر کې ونیسي د سیاسي ترقي غوښتنه په یو متحدې جبهې کې راتلونکې ولسي جرګې ته انتقال کړي. یوازې په داسې یو حالت کې کیدی شي چې د نورو احزابو د استازو سره په ولسي جرګه کې، د جمعیت،وحدت،ملي جنبش او نورو وطنپرستو ځواکونو سره په یو ایتلاف کې، یو واقعي دولت چې بریالی او د ملي وحدت، د هېواد د قومونو او ملیتونو د مشروع منافعو ضامن وي،جوړ شي

## د ۲۰۱۹ کال د ولسمشرۍ ټاکنې او د کړکېچ زیاتوالی

د افغانستان خپلواک ټاکنېز کمیسیون (نوټ:د د ولسمشرۍ د نوماندانو په اکثریت رایو تعیین شوی وو) د ۱۳۹۸ د دلو په ۲۹ چې د ۲۰۲۰ د فبروری ۱۸ سره سمون خوري،محمد اشرف غني یې د ۲۰۱۹ کال د ولسمشرۍ په ټاکنو کې بریالی اعلان کړ او د ریاست جمهورۍ قانوني وثیقه یې هغه ته وړاندې کړه . په تاسف سره چې د هغه اصلي ټاکنیز رقیب ښاغلی عبدالله، د ثبات او همپالنې د ډلی نوماند، د دی په ځای چې په نارینتوب د ټاکنو پایلې ومني او منتخب جمهور رییس ته مبارکي ورکړي چې د دیموکراسۍ نړیوال عرف اساس دی. د ټاکنو پایلې یې لکه د دوه مخکنۍ ټاکنو د پایلو په شان ؛تقلبي؛ و بللې او په خپل ښکاره پاڅون او غبرګون یې د بریالیتوب اعلان وکړ او ویې ویل ؛ټول شموله حکومت؛ جوړوم. د افغانستان د ولسمشرۍ د ټاکنو د پایلې د اعلان څخه دری اونۍ وروسته، محمد اشرف غني په رسمي توګه د جمهور رییس په صفت په ؛ارګ؛ کې سوګند ادا کړ. په عین حال کې عبدالله عبدالله،پخوانی د اجراییه رییس چې خپل ځان یې بریالی اعلان کړی وو، هم په یوه ښکاره پاڅون کې چې د قانون د پروسې پر خلاف وو په بېلو مراسمو کې، د سپیدار په ماڼۍ کې (د ښاغلي عبدالله د کار په ځای کې) د تحلیف مراسم ونیول.د ؛ثبات او همپالنې؛ د ډلې د ټاکنېز اصلي شریکان د جمعیت ګوند د صلاح الدین رباني په مشرۍ،جنبش د جنرال عبدالرشید دوستم په مشرۍ او وحدت ګوند د محمد محقق په مشرۍ څخه جوړ وو.په ۲۰۰۱ کال کې دغه ډلې ؛د شمال اتحاد؛ منځ ته راوړی وو چې د طالبانو د ځپلو او سیاسي قدرت څخه د لرې کولو په موخه، له امریکا څخه یې ډېر مالي او نظامي مرستې لاسته راوړې چې د بن د کنفرانس په اوږدو کې نظامي او سیاسي قدرتونه په عمومي ډول سره دوی ته ورکړل شو.

حقیقت دا دی چې ټاکنې سرته ورسېدې، او بریالی د اساسي قانون د احکامو تر سیوري لاندې د ټاکنو د خپلواک کمیسیون لخوا اعلان شو او د اشرف غني منتخب جمهور رییس د تحلیف مراسم سرته ورسېدل او د ولسي جرګې رییس،د مشرانو جرګې رییس، قاضی القضات او د سترې محکمې غړي، بهرني دیپلوماتان چې په هغه کې د امریکا د جمهور رییس استازی او افغانستان کې د ناټو د ځواکونو قوماندان د تحلیف په مراسمو کې ګډون درلود، سرته ورسېدل. دا چې د قدرت انتقال د قانون د لارو او د دیموکراسۍ له لارو سرته ورسېد او نه دا چې د معاملاتو له لارې او د پردې شاته د تحمیل له لارې لکه موقت دولت او یا د ملي وحدت د حکومت دوام، دا د هېواد د ملي منافعو سره سمون خوري. په دې شکل سره د نظام تمامیت ادامه وموند‌ه او احترام ورته وشو.عبدالله او ډله یې چې د بغاوت په شکل د تحلیف مراسم د قانون په خلاف نیولی وو، د عدلي معرض په تعقیب سره د ملي خیانت په جرم کې اخته مجرمان دي. د افغانستان د دولت د تحلیف د مراسمو سرته رسېدو سره سم، هغه په یو مستحکم موقف کې د طالبانو سره د سولې د خبرو کولو لپاره شته . اوس طالبان د دې څخه برسیره چې د دولت سره مذاکره وکړي، بل چاره نه لري! د حکومت جوړښت په اړوند هر تصمیم چې د تحلیف څخه وروسته د جمهور رییس په موجودیت کې سرته ورسېږي، معامله نه ګڼل کېږي مګر هغه د ملي مصالحو په خاطر د جمهور رییس مشاور د اساسي قانون په اساس د هغه د صلاحیتونو څخه منل کېږي.

داسې ویل کېږي چې جمهور رییس غني د عبدالله د پاڅون د تطمیع لپاره، حتی دې ته حاضر شو چې د ثبات او همپالنې ډلې ته د ریاست پوست او د سولې د پروسې مشرتابه چې د جمهور رییس د یو مرستیال د امتیازاتو سره مساوي دی،عبدالله ته وړاندیز وکړ په دې شرط چې عبدالله د ټاکنو رسمي اعلان شوې پایله ومني (د ۲۰۲۰ ز کال د اپریل اوومه). د دې سره سره چې د جمهور رییس غنی ملاتړ کونکي دا باور لري چې باید په هېڅ قیمت د ټاکنو د پایلو درې ځلې نه منل د تقلب په پلمه د روزګویي په یو سنت بدل د سیاسي باج ګیرۍ په موخه او د ټاکنو په بدنامه کولو بدل شي، د دې سره سره هم د جمهور رییس دغه وړاندیز د دې سره چې د قدرت د مشارکت د احیا په نامه نه وو،یو ډېر سخاوتمندانه وړاندیز ګڼل کېدو او د امریکایانو غوښتنه چې یو ټول شموله حکومت باید موجود وي، هم رفعه کولی شي.مګر د ثبات او همګرایی د شورا مشرتابه د ټاکنو د پایلو په لغوه کولو باندې ټینګار وکړ. په داسې حال کې چې د اساسي قانون په اساس هېڅوک د جمهور رییس په شمول، د ټاکنو د پایلو د ابطال صلاحیت نه لري. یوازېنی امکان،د جمهور رییس استعفا ده!

د ثبات او همپالنې د ډلې موقف په دې کې یې اصلی پریشاني دا وه چې ټاکنېزه ماتې په دې مانا ده چې د سیاسي قدرت څخه د شمال اتحاد (جمعیت – جنبش – وحدت) لرې کېدل او د سیاسي تنظیمونو پر تابوت اخري مېخ ټکوهل به همدا وي. د دوی تشویش په دې کې دی چې دا ماتې د قانوني پلټنو پیل او د ځواب ورکولو پیل د بشري حقوقو تر پښو لاندې کولو په اړوند،د دولتي ځمکو د غصب په اړوند،په دولتي قراردادونو کې د اختلاس پوښتنې، بهرنیو مرستو حیف او میل کول او نورو لپاره به د پیل ټکی وي.

د عبدالله او هغه د ټیم ټینګار د ټاکنو د پایلو د ابطال کولو دا ښکاره کوي چې خپلو غوښتنو ته د رسېدو په موخه،قانوني پروسې ته هېڅ احترام او اعتنا نه لري! په داسې حال کې چې جمهور رییس غني د قانون څخه دباندې اقداماتو او د اساسي قانون د نه په نظر کې نیولو برخې رد کړې دي. باید په یاد ولرو چې حتی د پخواني ملي وحدت د اجرایې ریاست د اساسي قانون په چوکاټ‌کې د جمهور رییس غني په لومړني فرمان د تحلیف د مراسمو د سرته رسېدو څخه وروسته د جمهور رییس په حیث، منځته راغی. مګر څنګه چې لیدل کېږي، د ټاکنو د پایلې د باطل کولو پر موضوع ټینګار، د عبدالله ډله د سیاسي تفاهم ټولې لارې تړلې او په پایله کې یې دولت یو اخیري مقابلی ته بللی دی!

د دې خیالپردازانو په شور ماشور کې د طالبانو سکناریستي تجزیه، باید روشنفکر تاجک، هزاره او ترک ټبر له یاده وباسي چې د افغانستان د خلکو باعزته، او مترقي راتلونکی د دوی په پیوستون کې د پښتنو روڼ اندو سره نغښتی دی نه داچې د دوی سره په مقابله او مخاصمت کې

اوس د امریکا د بهرنیو چارو د وزیر د منځګړیتوب ماتې سره په ښکاره لیدلی شو چې د افغانستان د دولت سیاسي نظام د دوه مهممو خطرونو سره مخ دی.د جنګسالارانو جهادي مافیایي خطر چې د نظام د جوهر سره او د قانون حاکمیت سره به مخالفت کې دی او د طالبانو د امارت دوزخ ته د سقوط خطر.

په دې حساسو تاریخي شرایطو کې د وطندوستانو ملاتړ چې د اساسي قانون حاکمیت باندې باور لري او د خلکو د اساسي حقوقو د دفاع په یو جمهوري نظام کې کوي، د دولت ملاتړ کول د ټاکنو د اعلان شویو پایلو باندې تکیه منل،یو ضروري امر دی.

## د سیاسي حاکمیت په بیلانس کې ستراتیژیک بدلون

د دې ټاکنو پایله د هېواد لپاره ډېرې گټې درلودط او په سیاسي حاکمیت کې د بیلانس لپاره ستراتژیک بدلون حسابېږي. په اخیر کې نوی روشنفکر ځوان نسل په دې وتوانیدو چې د یوهدفمنده اکاډمیک مشر څخه په ملاتړ، مافیایي قومي جهادي ټوپکي ته د ټولو شتمنیو سره او بې حسابه مزدور ملیشه په شتون سره سره یې د خلکو په ملاتړ،د قلم او دیموکراسۍ په مرسته د سیاسي صحنې په ډگر کې شاته وغورځوي! ټوپکي جهادي مافیایي قومي ډلې او د هغوی کاسه څټونکي د دې ستراتیژیک تحول او بدلون څخه ډېر خپه او ناراضي دي،بې ځایه نه ده چې عبدالله د خپلې ؛ملي مصالحې؛ په طرح کې د قدرت بېرته سپارل ټوپکیانو او قومي مافیاوو ته وړاندیز کړی وو؛د ټول شموله دولت د عالي شورا مشري،د سیاسي تاثیر کونکي احزابو او ملي اشخاصو څخه جوړه ده؛. د دې په منظور لازم دا ده چې روڼ اندي دې بریالیتوب ته احترام وکړي او اجازه ورنکړي چې تیاره فکره زورمندان چې د دیموکراسۍ او د قانون د حاکمیت څخه پردي دې بیا سیاسي قدرت په خپل لاس کې ونیسي!

زموږ په هېواد کې، د فرید بهمن په وینا ؛د سیاسي میراثي اشرافیت بې شرف ترین ډول؛ جوړ شوی دی(۲۰۲۰ ز کال د فرید بهمن د فېسبوک له پاڼې). وسله وال د جنگسالارانو ټاپې د ټبر، دین، مذهب او ژبې په لیوالتوب د ۲۰۰۱ ز کال څخه راپدیخوا هر کله چې په سیاسي قدرت کې حاضر او د سیاسي قدرت او د قاروني چور غلا کړې شتمنیو د حفظ لپاره یې د هېڅ ډول زور زیاتي څخه او د معاملې او قرار او مدار څخه یې ډډه نه ده کړې.

په تاسف سره، تر کومه ځایه چې دغه سیاسي اشرافیت د عبدالله عبدالله په محوریت قومي د پښتون ضد رنگ لري، د پښتون-څخه-نفرت کونکو تاجک او هزاره لخوا په ړندو سترگو په ټولنه کې او په رسنیو کې د ایراني پانگې په مټ، هم د ټولنیزو رسنیو په داخل کې، په یوه ژبه ټولو پښتنو ته چه په هغه کې د ارگ پښتون ټبر مشران هم شامل دي، ته فاشیست،طالب او طالب پرست او طالب روزونکي ویل کېږي. په اتفاقي شکل سره، همدغه د پښتون-څخه د کرکې خصلت قومي-سیاسي-اشرافیت د عبدالله محور، د پښتنو په ټاکنو کې د یو لاسه کېدو او د روشنفکر پښتنو د ملاتړ د طالبانو ضد په سیاسي قدرت کې د ټاکنیزو ډېرو ښکاره ماتو لپاره کېدی شي همدا قومي – سیاسي – اشرافیت د عبدالله محور وي.

د تعجب خبره دا ده چې نور داخلي او د افغانستان بهرني سیاسي بازیگران چې به هغه کې امریکایان،پاکستانیان، روسان او ایرانیان شامل دي، د دې روشنفکر پښتون ټبر ډلې شتون د افغانستان په سیاسي قدرت کې، سره مخالف او د هغوی پلویان د قومي-تنظیمي-سیاسي-اشرافیت د عبدالله محور کې یو موټی دي.

د دې نامقدسه اتحاد یوازېنی ګډ دلیل د دوی د یوشان پوهې د روانې جګړې څخه په افغانستان کې دی چې هغه قومي جګړه د طالبانو لخوا د پښتنو په استازیتوب او د شمال ایتلاف (جمعیت-جنبش-وحدت) د غیر پښتنو په استازیتوب د قدرت د ترلاسه کولو په موخه او په افغانستان کې د سیاسي برترۍ په موخه ګڼي. په دې حساب سره،د قدرت په دې مبارزه کې پښتون تېره روڼ اندي چې په سیاسي قدرت کې حاضر دي د طالبانو مخالف او د سیاسي قدرت څخه دباندې پښتون روڼ اندي د هغوی ملاتړ، لکه د شپږمې ګوتې په څېر، یو خوځېدونکي ځواک په شکل، د شمال اتحاد لپاره په یو شکل او طالبان او د هغوی بهرني ملاتړ کونکي چې په هغه کې امریکا او پاکستان شامل دي، بدل شوي دي.د حامد کرزي د دولت نه منل او د هغه څخه وروسته د اشرف غني دولت د طالبانو لخوا د افغانستان د قضیې د یوې خوا په شکل، باید د همدغې زاویې څخه وڅېړل شي.

د نامعلومه دلایلو پر بنسټ، دغه قومي-تنظیمي-سیاسي اشرافیت د ښکاره ټاکنیزو پایلو سره سره، د امریکایانو د ښکاره هڅونې او ملاتړ څخه برخورداره وو.شاید د طالبانو پښتون محوریت ته په نظر کولو، د امریکا په اند، ستراتیژیکي موخه د افغانستان په راتلونکي سیاسي ژوند کې  د بن د کنفرانس د تېروتنو د جبران کولو سره تر ټولو د دوی د منافعو ښه ساتونکي به وي.

په داسې حال کې چې امریکا دا برتري او سیاسي تفوق د افغانستان د قومي جوړښت او د هېواد د سیاسي زعامت د تاریخ په پام کې نیولو څخه پرته، د بن په کنفرانس کې د شمال اتحاد ته په مفته ورکړ،د ۲۰۰۹ کال څخه دیخوا په ښکاره توګه د شمال اتحاد د سیاسي تفوق او د پایو کمزوري کېدو څخه یې په سیاسي قدرت کې ناراضی دی.د دیموکراسۍ د تګلارې د ستنو په کلکېدو په هېواد کې د قومي جوړښت عیني واقعیتونه د افغانستان په قوم محوره سنتي ټولنه کې د ټاکنو په پایلو کې ښکاره شو او د عبدالله د پرله پسې په ټاکنو کې د نوماند په صفت د ماتې سبب شو چې د شمال د اتحاد د خوښې نوماند په درې پرله پسې ټاکنو کې دی وو. امریکایان په ښکاره ډول سره د دې پروسې څخه ناراضي وو، د بلې چارې د نه لرولو په اساس د طالبانو څخه وروسته د دولت د خصلت د روحیې د ملاتړ په خلاف د دیموکراسۍ د څرنګوالي او ودې په مخالفت په هېواد کې پاتې شول. امریکایانو په ۲۰۰۹ ټاکنوو کې په ښکاره توګه د حامد کرزي د ماتې په موخه پانګونه وکړه  او مداخله یې وکړه چې د دوی دغه مخالفت د مسولو او دخیلو مقاماتو په پرله پسې لیکنو او کتابونو کې ذکر شوی او تایید شوی. امریکایانو دغه مداخله په ۲۰۱۴ کې تر هغه سرحده چې د ملي وحدت حکومت او د عبدالله شمولیت ۵۰/۵۰ د اشرف غني د جمهوري ریاست په اول پړاوو کې، ته یې ادامه ورکړه. په دې اخیرو کې د اشرف غني په ښکاره بریالیتوب کې د ۲۰۱۹ کال په ټاکنو کې، د غني پر سر د فشارونو جوړول او پرې ټینګار کول د همه شمول دولت د جوړېدو په موخه په دې مانا چې عبدالله یو ځل بیا شریک او ملاتړ کوونکی یې په راتلونکې پنځه کلنې سیاسي قدرت کې د ټاکنو د پایلو په پام کې د نه نیولو په حال کې پاتې شي، خپل ښکاره ملاتړ یې د عبدالله محوره-پښتون ضده قومي-سیاسي-اشرافیت ښکاره کړ.

په اخیر کې یو د شورای نظار څخه چې اصف منصوري نومېږي د خپل فېسبوک په پاڼه کې (۲۰۲۰ ز مارچ ۲۴) نقاب او فرېب ؛ټاکنېز تقلب؛ د عبدالله د ټیم څخه یې لرې کړ او د دې ډلې د قومي تعصب په هکله یې واضیح او ښکاره

ولیکل چې ؛داخلي او جهادي مشران باید د دوه لسیزې ...نزولي سیر څخه عبرت اخیستی وی چې په دې هېواد کې قدرت د ټوپک له میل څخه...لاسته راځي نه د مدني ونډو او د ولسي جرګې له لارې، چې موږ تر په واټونو لرې یو، یو څوک د دې ښاغلی ته یادونه وکړي چې نزولي سر د شمال د اتحاد په سهم کې، د هېواد په اداري او سیاسي قدرت کې،د سیاسي مخالفینو لخوا د ټوپک د استعمال له وجهې نه دی مګر دا نزولي سیر په ټاکنو کې د خلکو د اګاهۍ او د ورځ په ورځ اضافه تره نفرت له جنګسالارانو مافیایي قدرتمندانو څخه په ټولنه کې دی.

دا د عبدالله او د نظار شورا د تفکر د طرز څخه یو داسې برداشت وو چې ریښتیا لیدونکي تحلیګرانو د غیر ډیموکراتیک موضع ګیریو د توجیه په خاطر د دوی، پر دې یې ټینګار کولو او اوس یې د دوی د ژبې څخه اورو. د جهاد مافیا او جنګسالاران او په ځانګړې توګه بیا د نظار شورا چې د ۲۰۰۱ څخه وروسته سیاسي قدرت، اقتصادي، نظامي او اداري قدرتونه یې قبضه کړي وو د دې سره چې شرمناکه ماتې یې په دریو ټاکنو کې پرله پسې خوړلې وه،هېڅکله په دې قانع نه دي چې دا قدرت یې د رایو د صندوقونو تر پایه او د خلکو د ارادې په اساس له لاسه ورکړې په زرګونو حیلې او توطیې یې وکړې او ځانونه یې قدرت پورې ونښلول،په داسې حال کې  چې د یو نظام جوهر چې پر اساسي قانون ولاړ وي،د خلکو خپلواکه اراده او د خلکو لخوا ټاکنو څخه جوړ دی.

د عبدالله د تخیلي همه شمول دولت پس منظر او د ملا تیر د جمعیت تنظیم، وحدت او جنبش څخه جوړ وو. په ځانګړې توګه د جمعیت په نسکورېدو، دا د جنبش او د وحدت ملېشې، داسې خیالپلوونه ووهل چې ګنې بېرته به د خپل نفوذی سیمو په دننه کې به د خپلې خوښی بشپړ په خپل سر دوران به د عبدالله د بغاوت په تکیه ځای او پشتوانه بدل  شوی دي . د دې بغاوت اصلي دلیل اصف اشنا چې یو هزاره فعال دی داسې په لنډه لیکي:؛د خبرو اصل دا دی چې که په دې حساسه تاریخي مرحله کې، ولاړ او مقاومت ونه شي، څه کم و زیات دوه نور نسلونه باید موږ په ذلت او حقارت کې ژوند وکړو. نو راځئ، په هر قېمت او هره لاره چې امکان لري، سره په حرکت راشو.؛

په غیاب کې تاجک مطرح څېرې دي لکه احمد شاه مسعود، قسیم فهیم، قانوني او داسې نور د دې ستمي سکتاریست عناصرو څخه دي چې د پښتون ضد او د افغان ضد طرحو سره او د مرکز څخه په تیښته یې، د بغاوت او پاڅون شرایط د عبدالله ته یې رنګ او شکل ورکړی او مشري  ورکوی. دا د بغاوت دری متشکله عناصر، هر یو په ځانګړو موخو درلودلو چې داغونه او جنګي تجربې او د فرقو د پورته صلاحیتونو او قدرتونو غوښتنه چې د دوی تر منځ شوي وو،هغه تر اوسه دوی په خپل یاد لري او له یاده نه ده ایستلې د یو تاریخی سازش په خاطر د طالبانو سره د افغانستان د دولت د تمامیت په قېمت، د خلکو خپلواکي، دیموکراسی، او ترقی لپاره بشپړتیا او چمتووالی ورته لري. بی ځایه نه دې چې د پاکستان د بهرنیو چارو وزیر قریشي د افغانستان په راتلونکي کې  د عبدالله د مهم رول څخه یادونه کوي.

**د جمهور رییس اشرف غني او عبدالله عبدالله تر منځ سیاسي هوکړه**

تر کومه ځایه چې د جمهور رییس اشرف غني او د عبدالله عبدالله تر منځ د ۲۰۲۰ ز کال د می په اوولسمه د سیاسي هوکړې په اړوند په عامه توګه د هېواد د روڼ اندو د عظیم قشر منځ کې تشویشونه شته، دا لازمه ده چې دا هوکړه هم وڅېړو.لکه چې مخکې هم وویل شول عبدالله یو موازي حکومت اعلان کړی وو، د ټاکنو د پایلو د باطل کولو غوښتنه

یې درلوده او د ټاکنو د خپلواک کمیسیون د غړو د محاکمې غوښتنه یې وکړه، خپل سازش یې د غنی سره په دې شرط وکړ چې شپیته سلنه دولت او د لومړي وزیر اجرایي مقام دې ده ته ورکړل شي. مګر بلاخره د ملي مصالحې د شورا د ریاست په چوکۍ په تقرر او ۵۰ سلنه د خپلو همکارانو برخه اخیستو باندې په حکومت کې او دوستم ته د اعزازي مارشالۍ رتبې د ورکولو په اساس او د هغه په کابینه کې او په ملي امنیت شورا کې یې په داخلیدو،ومنلو.

اول – دا چې د جمهور رییس غني او ډاکټر عبدالله عبدالله تر منځ سیاسي هوکړه وشوه، دا بحران د ریاست جمهوری د ټاکنو د پایلو د نه منلو له وجهې د عبدالله عبدالله لخوا، په مسالمت امیزه فضا کې سرته ورسېد او د هغه په پایله کې یو قادر دولت په بشپړ توجه سره خپلو اصلي دندو ته د هېواد څخه د بهر مېشتو افغانانو د پیوستون د شورا د تایید وړ وګرځېد.

دوهم – د دې هوکړې لاسلیکېدل، او د غني د مقام منل د هېواد د جمهور رییس په صفت،په حقیقت کې د ریاست جمهوري د ټاکنو د رسمي اعلان شویو پایلو منل دي چې ډاکټر عبدالله عبدالله لخوا له دې لارې ومنل شو، چې د هېواد څخه د بهر مېشتو افغانانو د پیوستون د شورا د تایید وړ وګرځید او هغه یې د افغانستان د جمهوري نظام د استحکام ورکولو په خاطر یو مثب امر او جهت ته تایید او مني یې.

دریم – په عین حال کې د بهر مېشتو افغانانو د پیوستون شورا پریشاني دا ده چې که چېرې حکومتونه د سیاسي هوکړې په اساس جوړشي، د ټاکنو اصل او د هغه ډېر مصرفونه او لګښت د پوښتنې لاندې راځی. د دې په اساس بیا د پیوستون شورا د دې هوکړې انعقاد، د اساسي قانون پر بنسټ د ډیموکراتیکو اساساتو مخالف بولي چې د ټاکنو د خپلواک کمیسیون د مدیریت لاندې پر ټاکنو ولاړ او رهبري شوی وی.

څلورم – د هېواد څخه د بهر مېشتو افغانانو د پیوستون شورا د دې هوکړې لاسلیکول، د شورش او بغاوت په مقابل کې د بدل ورکولو په نحوه، د دولت او حکومت په اداره کې د ونډې اخیستو په موخه د فشار لاندې منځ ته راغلی، دا یو مصنوعی بحران بولي او دا په هېواد کې د دیموکراسۍ پروسی مخالف او د حکومت د قانون د تحکیم خلاف یې ګڼي او د یو بد دود د پیل کولو سرچینه یې بولي.

پنځم – د هېواد څخه د بهر مېشتو افغانانو د پیوستون شورا **دری اساسي مادې** د ملي **مصالحې د عالي شورا د جوړېدو په اړوند،د عبدالله عبدالله تقرر د رییس په صفت** د ملي مصالحې د شورا او هغه ماده **د شورا تصمیمونو او تصاویبو سره د مصالحې د عالي ملي شورا** چې په دې هوکړه کې شامل دي، د قانون د چوکاټ څخه بهر بولي او په دې ډول د دې د پایلې په اړوند، خپل ژوره پریشاني ښکاره کوي.

شپږم – په هوکړه کې لیکل شوي: **د دې سند په لاسلیک کولو د ملي مصالحې شورا د سیاسي هوکړې پر بنسټ د طرفینو تر منځ منځ ته راځي. محترم ډاکټر عبدالله عبدالله د ملي مصالحې د شورا د رییس په نامه د سولې د پروسې مشرتابه په غاړه اخلي.** د پورتنیو مادو پر بنسټ ؛**د ملي مصالحې شورا؛** او د عبدالله عبدالله تقرر ؛**د ملي مصالحې د شورا د رییس؛** په نامه، د جمهوري ریاست د مقام څخه د کوم فرمان د صادرولو څخه پرته سرته رسېږي.

په حقیقت کې،ډاکټر عبدالله عبدالله، خپل ځان، پخپله مقرر کړی دی. دا دوه کارونه د اساسي قانون له چوکاټ څخه بهر دي او غیر قانوني اعمال دي.د دې خطر موجود دی چې د افغانستان د سترې محکمی عالي مقام هر وخت د لازم حکم په صادرولو د دې شورا تشکیل او د ډاکټر عبدالله مقرري د هغه د رییس په صفت یو غیر قانوني عمل ګڼلی شي او دا شورا له منځه وړلی شي.

اووم – د سیاسي هوکړې په یوه ماده کې دا ذکر شوي چې ؛**د ملي مصالحې د شورا تصمیمونه او تصاویب نهایي دي او د هېواد د اساسي قانون په رڼا کې پر هغه عمل کول لازم ګڼل کېږي**؛. د بهر مېشتو افغانانو د پیوستون شورا دا ماده په خپل ځان کې متضاد ګڼي هغه د اساسي قانون د دایرې څخه دباندې ګڼي. د ملي مصالحې د عالي شورا تصمیمونه او تصاویب د هېواد د اساسي قانون په رڼا کې نه دي هېڅ مقام د جمهور رییس په شمول د اساسي قانون خلاف، نشي کولی یو دولتي ارګان ته داسې صلاحیت ورکړي چې اساسي قانون کې حکمي موجودیت نلري هغه ته داسې صلاحیت څنګه ورکولی شي

اتم – د ملي مصالحې د عالي شورا تصمیمونه او تصویبونه د جګړې پای ته رسولو جدي مسئلې او اړینو وړاندیزونو سره د نظام د تعدیل کولو لپاره د طالبانو د شمولیت لپاره په سیاسي او د هېواد په ټولنیزو پروسو کې سر او کار لري. دا ډول تصمیمونه او تصویبونه په اول درجه کې د ولسمشر په منظوری او بیا د مجلسینو په تایید ملي شورا او د هغه تصویب ته د لویې جرګی لخوا ضرورت لري. د سیاسي هوکړې دغه ماده په واضح ډول سره د ریاست جمهوري د مقام د صلاحیتونو نقض کول دي تجرید او درسته کنټل شوي نه دي او د هېواد ملي شورا په مهمو مسایلو کې له نظره لوېدلې او د هېواد د راتلونکي نظام د جوړېدو په اړوند یوه مسئله ده.

نهم – کله چې پورتنیو توضیحاتو ته ځیر شو د ملي مصالحې د شورا تشکیل د ریاست جمهوري د مقام د صلاحیتونو سره په مغایرت کې او د افغانستان د ملي شورا د مقام په خلاف دي، د اساسي قانون د چوکاټ څخه دباندې او غیر قانوني دی.

# اوومه برخه: د نظار شورا سياسي فرصتپالنه

لکه چې مخکې مو وليدل چې د بن د هوکړې په اساس په ۲۰۰۱ ز کال کې اسلامي جمعيت او د نظار شورا چې د شمال د اتحاد مهم ضلع د امریکا په جګړې کې د طالبانو پر خلاف ترې جوړ شوی وو، د طالبانو څخه په وروسته دولت کې مهم رول لاسته راوړ چې د حامد کرزي په کابينه کې فهيم د دفاع وزير، قانوني د کورنيو چارو وزير او عبدالله د بهرنيو چارو د وزارت پوستونه خپل کړل.

دا ډله په دې وتوانيده چې په هم هغه اولو کلونو کې د طالبانو څخه په وروسته دولت کې د هېواد اقتصادي قدرت د تجارتي، ترانسپورتي، بانکي، ساختماني، مخابراتي، خدماتو او د نورو په منځ ته راوړلو د خپلې کورنۍ د غړو او خپلوانو په نامه، د خپلو همکارانو او ملاتړو په نامه ؛د نظار د شورا شرکتونه؛ په خپل لاس کې واخلي او د بهرنيو د ډېر شمېر ډالري مرستو څخه په استفادې او د دې پيسو کښته پورته کول د مرستې، اعانې او بلاعوضه مرستو په نامه، لوی او واړه قراردادونه د نظار شورا شرکتونو ته په قاروني سرمايو ورکړل شول.

مګر د مرکزي حکومت دغه نامتعادل جوړښت نشي کولی تر ډېره ادامه ولري او بې له بلې لارې، د وخت په تېرېدو د نظار شورا نقش او رول په خپل مهم دولتي پوستونه په کراره کراره له لاسه ورکړل او د زوال خواته شوه او په همدې وخت کې د نظار شورا او جمعيت د دې ډاره چې د بازخواست او د پوښتنو ورځ او حساب ورکولو ورځ له ډاره، په دې پلټنه شول چې د قدرت او دولتي مقامونو په چوکيو ځانونه په هر قيمت چې وي، بايد ونښلوي دا د نظار د شورا او د جمعيت اول نمبر پاليسي ده. په داسې شرايطو کې چې خلک د ديموکراسۍ څخه په استفادې او د ټاکنو له لارې د مخکې څخه لانور هم د همه شمول او برخه ورکولو لا نور ټينګار کوي، د مصنوعي بحرانونو منځ ته راوستل په پرله پسې ډول او د دې بحرانونو مديريت کول د افغانستان د مرکزي دولت د تضعيف کولو په موخه د جمعيت او د نظار د شورا د مافيا اعلان شوې ستراتيژي ده.

په هر بل هېواد کې د تروريستي جګړو په شرايطو کې، سياسي ځواکونه او اجتماعي ځواکونه د جګړې په خلاف، خپل اختلافات يوې خواته پرېږدي او يو بل ته لاس ورکوي يوه واحده جبهه د ترقۍ او د پرمختګ د دښمنانو مقابل ته خلاصوي.

په عين زمان کې خپل ټول کوښښونو به يې کول څو د نارسايیو په پوهېدو، د سولې او د دولت د جوړولو پروسه په ۲۰۰۱-۲۰۰۳ کلونو کې د نواقصو په اصلاح پيل وکړي، د افغانستان نوی دولت د ټولو د منلو وړ وي او ټولو پکې ونډه همه شمول وي. مګر نه!

په افغانستان کې هغه کسان چې د ۵۲ بې د الوتکو د امريکايی بمونو پواسطه، د سی ای اې ډالرونه، د امريکا د ځواکونو بې حد او اندازې وسلې د قدرت واګې يې تر لاسه کړ، نن ورځ، سياسي – اقتصادي فرعونانو باندې په هېواد کې بدل

شوي دي، ټول شمولۍ ته راضی نه دي، د نورو برخه اخیستل په قدرت کې نه مني او ټول قدرت د خپل ځان لپاره غواړي او غوښتو يې.

**د طالبانو څخه وروسته دولت او د اسلامي جمعیت تنظیم**

په ۲۰۱۸ کال کې جمعیت دا کوښښ وکړ څو د منځته راغلي حالت څخه په بده ګټه اخیستلو تروریستې يرغلونه او د معینو ډلو د فشار لاندې سیاسي امتیازونه لاسته راوړي او د ولسمشر څخه وغواړي چې د ولسمشر څخه د امنیتي مشاور او د نورو امنیتي ارګانونو د مشرتابه مقامات له دندو لیري کړي

مګر معادله په بل ډول سره بدله شوه. د جمعیت اخرنۍ څرګندونې او حرکات نه یوازې چې د دی ګوند د سیاسي لیدلور قومي اوسپدل يې ښکاره او په ګوته کړ، مګر دا یې هم په ګوته کړ چې جمعیت لا تر اوسه هم یو ملي او د خلکو د اعتماد وړ ګوند شوی نه دي.

کله چې جمعیت د خپل لویوالي سره راځي او د یو غیر اجرایي مشاور د ولسمشر د استعفا غوښتنه کوي په داسې حال کې چې هېواد په کړکیچن حالت کې دی او د خلکو هیله د جمعیت څخه د منطقي حل لارو موندل دي څو د دې کړکیچ څخه بهر شو او هم د خلکو تر منځ اتحاد او اتفاق ساتل د خلکو غوښتنه وه، نه یوازې د جمعیت سیاسي ماته بلکې د جمعیت یو ضعیف او قومي تصویر يې پرېښود.

صلاح الدین رباني،د جمعیت ګوند يې د ملي وحدت حکومت د یو اړخ په شکل معرفي کړ،په داسې حال کې چې د ملي وحدت حکومت د اشرف غني او ډاکټر عبدالله عبدالله تر منځ لاسلیک شو او د جمعیت نوم په دې هوکړه لیک کې نه دی ذکر شوی او په دې ورستیو وختونو کې،د جمعیت ګوند، ډاکټر عبدالله يې د خپلې مشرۍ په هیئت کې نه دی شامل کړی.

د ښاغلي صلاح الدین رباني لخوا،پر امنیتي ځواکونو نیوکه هم د هغه ملت لپاره چې قربانیان یې ورکړي ډېر د خوښې نیوکه نه وه او د مخالفینو د ملاتړ بوی تر راتلو.په اخیر کې هغه شخص چې په حکومت کې د وزیر په صفت دنده درلود، د روانو حالاتو په اړوند نیوکه کول په داسې حال کې چې د جمعیت استازي په حکومت کې موجود دي او د حکومت څخه ملاتړ کوي، هېڅ انتظار یې هم نه کېدو.

د افغانستان د اطلاعاتي رسنۍ د شبکې د راپور په اساس، داسې ویل کېږي چې د جمعیت د ګوند لوړپوړي مقامات د ګوند د مشرتابه د لاسته راوړلو لپاره، غاښونه تېره کړي وي. په راپور کې، یو شخص د منجم زاده په دې وروستیو کې داسې لیکي چې لکه چې په مجازي رسنیو کې لیدل کېږي او اوریدل کېږي د جمعیت مقامات هره ورځ د یو شخص کور کې سره راټولېږي او په اصطلاح ستراتیژي جوړوي او د یو بل په خلاف جبهې جوړوي او یو بل د اشرف غني سره په همکاري تورنوي.

جمعیت اسلامي چې په وروستیو لسیزو کې د زورواکانو او وحشت او دهشت له وجهې داسې یوه ډله ده لکه د قلدران معلوم الحال (اکثر) پنجشیري، خپل حیثیت او سیاسي محبوبیت يې د عامو خلکو په منځ کې په شدت سره له لاسه

ورکړ، اوس باید د پخوا څخه ډېر وډار شي! د دې ګوند عیني تجرید د خلکو لخوا او د ګوند په دننه کې موجوده کړکیچ، نور هغه عوامل دي چې مشرتابه یې د پخوا څخه لا نور فکر کې غرق کړي څو خپل ځان راټول کړی شي.

داسې وېل کېږي د اسلامي جمعیت مشرتابه، هر یو بیل ځانته خپله عملیاتي ډله لري او د دولتي معاملو سره په برخورد کې هم د همدوی څخه استفاده کړې ده. د کورنیو د غړو ځای پر ځای کول، خپلوان، دوستان او بلاخره د خپل همفکرانو سره د جمعیت د مشرتابه لخوا د دولت په بنستېونو کې نور دلایل دي چې دا ګوند یې د پوښتنې لاندې راوستی او د محبوبیت کچه یې تر یو یا دوه ولایتونو راکښته کړې. په داخله وزارت کې، د مثال په ډول، د مقاماتو ټول اکثریت او پوستونه د پنجشیر د اوسېدونکو لخوا،تخار او پروان لخوا اشغال شوي دي. .

## د اسلامي جمعیت په ګوند کې کړکېچ

د دولت سره د حکمتیار د سولې د هوکړې لاسلیک، د حکمتیار نوم د ملګرو ملتونو د امنیت د شورا د تور لست څخه لرې کول او د اسلامي حزب غړي د افغانستان د محبسونو څخه ازادول، نور کړکیچونه دي چې اسلامي جمعیت یې لانور بحران او کړکیچ خواته راکښلی دی په داسې حال کې چې جمعیتیانو دا خبره په خپل ځان نه د نیولې او دا کوښښ کوي چې د ناکامه کوښښونو له لارې د خپل ګوند سیاسي موقف بېرته سم کړي، مګر معلومه نه ده چې د دې متفرق ګوند مشرتابه پر دې وتوانېږي چې خپل پاشلی ګوند، حد اقل راټول او راجمع کړي؟

جمعیت اسلامي چې یو وخت ښي اړخی افراطي مذهبي ګوند وو، اوس لیدل کېږي چې ښي اړخي افراطي مذهبي موضعګیري یې یوې خواته پرېښې او موضعګیري یې ډېره قومي او سمتي ده او کوښښونه یې د سکتاریستي ډلو په ملاتړ کولو دي او که د دې کار لپاره شمال، بدخشان او تخار کې علاقه موجود وي، سیاسي حیثیت ته یې د هېواد په نورو ولایتونو کې ډېره صدمه رسېدلې ده. داسې ویل کېږي د ګوند ځینې غړي چې سیکولار تمایلات لري کوښښ وکړ چې د اسلامي پسوند د جمعیت د نامه څخه لرې کړي.

دا کار اسلامي جمعیت په دوه لاري کې پرېښود او د تشکیلاتو انزوا یې حتمي کړه . بې مایه سکتاریستان چې شمار یې د ګوتو په شمېر وو اکثر پخواني پرچمیان وو او د فعالیت سیمه یې د شمالي یو یا دوه ولایتونو څخه اضافه نه وو، د اسلامي جمعیت دا وضیعت یې د خپل ځان لپاره یو طلایي چانس و بللو او کوښښ کوي چې د اسلامي جمعیت د کړکېچ څخه په خپله ګټه کار واخلي، مګر سکتاریستات (پروني چپګرایان) چېرته او جمعیتیان (ښي اړخي افراطیان) چېرته؟ په دې وروستیو کې لطیف پدرام اعلان وکړ چې افکار یې د احمد شاه مسعود سره ډېر همغږي او هم ډوله دي.

ایا په هم هغه ډول سره چې ځینې ادعا کوي اسلامي جمعیت د پاشلو خپلې نهایې مرحلې ته رسېدلی دی؟

د ګوند په دننه کې ستونزې، د مشرتابه څو ډلې کېدل او د ټولو څخه مهم داچې د پلویانو او غړو ځان لرې ساتل د حزبي تشکیلاتو څخه دا ټول مسایل او فرعي هغه عوامل دي چې جمعیت یې وپاشلو، او د یو حباب شانتې موجودیت څخه اضافه نور څه په خپل ځان کې نه لري. مګر د دې ګوند او د نورو جهادي ګوندونو د ماتې او پاشل کېدو اصلی علت، د هېواد څخه د باندې رېښې او ولې لري. دوی په وارداتي افکارو طرح شوي دي په لوېدیځ استخباراتو کې او نه

د ټولنې د غوښتنو او ضرورت په اساس، په ټولنه کې یې لکه مرخیړي (ځمکنۍ غوښه) سر راپورته کړ او که د لوېدیځ او په ځانګړې توګه د امریکا اوږد مهاله ملاتړ نه وی، د نامه څخه سرېېره به په ټولنه کې د دوی څخه نور هېڅ هم نه وی پاتې.

د افغانستان د اسلامي جمعیت لپاره، یوازېنی لاره چې ورته پاتې ده هغه د قومي، سمتي او د خلکو د ژبنیزو احساساتو سره لوبې کول دي څو د یوې مودې لپاره دوی په خپل دام کې را ګیر وساتي.

رزاق مامون چې د جمعیت د مشهورو فرهنګیانو څخه دی د جهادي تنظیمونو سره په نیږدې اړیکو لرلو سره، د ټولو څخه بهتر د جمعیت د ګوند د مسایلو څخه با خبره وو په خپل شخصي وېبلاګ کې داسې ولیکل:

په ظاهري ډول سره په رسمي توګه د اسلامي جمعیت ګوند پاشلی نه دی، مګر د عملي نظر څخه یو ټوټې ټوټې شوي ته ورته والی لري چې هره ټوټه یې د ؛څو؛ کسانو په قصابخانه کې ځوړنده ده، داسې یوه نښه چې په نوررو جهادي جریاناتو کې نه لیدل کېږي. د هغه فاجعې ځانګړتیا چې په جمعیت کې روان دي، بېلا بېل حزبونه او سیاسي جوړښتونو څخه مشري کوي او د اسلامي جمعیت څخه د کړکېچ او ماتې په وخت د تبلیغاتي انبار په شکل استفاده کوي؛؛

دا نخبه کسان څوک دي؟

عبدالله عبدالله د اوباما څخه په پېښې کولو ؛بدلون او هیله؛ یې د خپل نوي تشکیل لپاره نوم کېښود، مګر هېڅ څوک یې پوه کړی نه شو.

امر الله صالح چې نظر نورو ته ډېر د امریکا او سي ای اې د پاملرنې لاندې دی، یو خوځښت د ؛؛زرغون خوځښت؛ په نامه پیل کړ،چې ډالر یې پرې ولګول او یو شمېر ځوانان یې وغولول چې کله دلته او کله هلته لوکس کمپاینونه پیل کوي

یونس قانون یو شی د ؛نوي افغانستان؛ په نامه جوړ کړ،داسې یو ګوند، چې په هغه کې د پخوانیو جمعیت بنسټپالانه افکارو څخه بل ؛؛نوی؛ هېڅ نه وو موجود

ضیا مسعود د یو څو نورو کسانو سره ؛ملي جبهه؛ جوړه کړه چې خلاصه یې د ډالرو په بادولو په یو څو ناستو او غونډو کې د ځواک د ښکارولو کېږي

ولي مسعود ؛احمد شاه مسعود بنسټ څخه؛ په تجارت بوخت وو،چې د مسعود د مړینې څخه وروسته د دې کورنۍ د شتمنیو اصلي مرجع ګڼل کېږي

عطال محمد نور د جمعیت د مکمل غصب په فکر، په داسې حال کې چې کوم ګوند یې جوړ نه کړ، مګر د وسله والو کسانو سره په یوځاي کېدو خپلې امپراتوري یې په بلخ کې بنسټ کېښود او د پیسو په ټولولو بوخت شو.

اسماعیل په هرات کې ؛د مجاهدینو شورا؛ جوړه کړه او د فهیم سره یو ځای د خپلو کسانو د ځای پر ځای کولو په موخه د ولایتونو په ګټورو پوستونو، ریاست، ګمرک، د امنیې قوماندانې او د افغانستان په نورو سیمو کې باندې بوخت شول.

یو شمېر جمعیتیان هم د ولسي جرګې د چوکیو د زور څخه په استفادې او د تقلب له لاري چوکۍ غصب کړې د دې لاري خپل ستم او معاملو ته ادامه ورکړه

؛نخبهګان؛ د جمعیت په ډېر ښه ډول سره پوهېږي چي په موجوده پېژندنه او په سلګونو د جنایت او انسان وژنې او قتل او لوټماریو سره نور نشي کولی د ؛جمعیتي؛ تر نامه لاندې نوي نسل ته فرېب ورکړي او د جهاد د دوران په شان د هغوی پر اوږو ورسپاره شي. له همدي کبله دوی پرله پسې نوي بنستونه جوړوي او د ؛ملي؛ د کلمې په اضافه کولو د نوي بنستونو په نومونو کې،غواړي خلک وغولوي د خپل حرکت قومي او ملي ضدیت د هغه کلمې شاته پټ کړي.

حامد کرزی په دولس کلو کې د جهادي اجزابو په روزلو او پر دې ډول ډلو خپل سیوری ساتلو او د دې ډلو د مشرانو قدرت کې داخلول،یې ډېره هڅه وکړه چې د جهادي مشرانو پخواني جهادي جنایات پټ کړي او د هغوی څخه د شخصي قدرت د ساتلو په موخه په ارګ کې کار واخلي. هغه اول سر کې ضیا مسعود خپل مرستیال کړ او وروسته بیا فهیم او وروسته قانوني یې خپلې خواته کښېنول او نوی منځ ته راغلې اردو یې د جمعیت د جهادي قوماندان تر امر لاندې،هغه ته د لوړې نظامي رتبې په ورکولو راوستله. مګر داسې ورځ راغله،چې د همدغه کسانو د فحش او بدو خبرو سره مخ شو، د هغه تصویرونه یې وشکول او د نړیوال تلویزیوني شبکو د پردو څخه، د مجیب رحیمي شانتې کسانو لخوا، ورته بې احترامۍ وشولې. (۲۰۱٦ سپتمبر ۲۷) د پنجشیر د ځوان نخبه ګانو شورا د افغانستان د پخواني ولسمشر حامد کرزي د محاکمه کېدو غوښتنه په دې تور چې ( د طالبانو د تروریستي ډلې ملاتړ کونکی؛ دی) وکړه.د حامد کرزي مصلحت کول، بلاخره یې لمنه ونیوله.

په اتفاقي ډول سره زه هم موافق یم چې باید محاکمه شي مګر په دې اتهام نه چې د طالبانو پلوي او ملاتړ یې کوی، مګر د مصلحت په جرم او دا چې د شر او فساد د نظار شورا ډلې د عناصرو د ودې سبب شوی وو.

## د اسلامي جمعیت ګوند، قومي او سمتي سیاستونه

په ښکاره ډول سره لیدل کېږي چې د اسلامي جمعیت ګوند تر اوسه هم د قومي او سمتی نظار شورا د سیاستونو په بند کې دی کوم چې د طالبانو د منځنیو پېړیو د رژیم په وخت کې هم وو. په تاسف سره چې د هرې ورځې په تېرېدو،د طالبانو په تروریستي فعالیتونو کې په اضافه والي، د اسلامي جمعیت ګوند، د مخه څخه لا نور د قومي او سمتي سیاستونو په ګرداب کې د غرقېدو په حال کې دی او که دا شان سیاستونه ادامه ولري، هېواد به د فاجعې او مصیبتونو خواته روان کړي. د طالبانو په وړاندې د مقاومت د دوران د سیاستونو څخه استفاده کول د اوسني دولت په وړاندې، چې خپله پنځوس سلنه په قدرت کې شریک دي، د رېښې څخه نادرسته ده.

د جمعیت مشکل دا دی چې د هېواد تر ټولو لوی نفوذ پښتنو دی او جمعیت په عملي توګه د پښتنو په خلاف عمل او مبارزه کوي.

په حاضر حال کې د جمعیت اسلامي سیاسي ستراتیژۍ کې لاندې تخریب کونکي عناصر شامل دي

د پښتون قوم، د پښتو ژبې او د پښتنو د فرهنګ په ښکاره تحقیرول

د پښتون قوم د طالبانو سره مساوي ګڼل

د طالبان او داعش سره د همکارۍ په نوم دولت کې د پښتنو مشرانو متهم کول

د تشنج او تاوتریخوالي لمنې لا نوره لویول د تل لپاره د خپلو شریکانو سره په ایتلافي ملي وحدت دولت کې

د دولت په دننه کې، د اپوزیسیون نقش ته دوام ورکول

د خپل ۵۰ سلنه برخه لرولو څخه په دولت کې نا خوښي ښودل او د خپل نفوذ د ودې په موخه، هره ورځ مبارزه کول

د هېواد د دښمنانو د هر ډول تروریستي عملونو څخه ګټه اخیستل او د خلکو شور ماشور ته تحریک کول او د دولت په وړاندې د پاڅون پارول،

او بلاخره د یو سیاسي-نظامي مرام نه موجودیت چې د تروریزم سره د مقابلې په ډګر کې روښان وي

په دې حال کې، لرې یې بولم چې داسې یوه ورځ به راشي چې جمعیت په ډیموکراتیک پروسه کې، د قدرت واګې لاسته راوړي.

د دې ډول سیاستونو ادامه د اسلامي جمعیت د موقف په تحکیم کې، په ټولنه کې، د یو څو ؛قومپرستو؛ کسانو په استثنا،چې ژبپالونکي او اوباشان دي، نورو ته مرسته نه کوي. که دا ګوند غواړي چې په داسې یو ګوند باندې بدل شی چې د خلکو د ضروریاتو مطابق او ملي وي، د خپل سیاسي اولویتونو په اړوند، باید ژر تر ژره بیا یوه کره کتنه وکړي

د ناظرو سرچینو څخه د افغانستان خبرپاڼې ته د رارسېدلي اطلاعاتو پر بنسټ چې د اسلامي جمعیت د فعالیتونو په اړوند دي، داسې یو تصویر ښکاره کوي چې کړکېچ او د مشرانو څخه د سیده لارې د ورکېدو منظر پکې ښکاري.

داسې ښکاري چې د کړکېچ اصلي غوټه، په لومړي قدم کې،حساب اخیستل، شفاف برخورد کول د ؛تنظیم؛ د زېرمو څخه دی مګر دغه مسئله یوه ډېره کلکه او نه اعلان شوې مخالفتونو ته لمنه وهلی دي.

په راپور کې راغلي چې د جمعیت د مشرتابه دایره د څو ټکو څخه ماته شوې ده او صلاح الدین رباني د کورني کشمکشونو په جنجال کې د ګیرېدو په علت، د مبارزې او مشرتابه د تجربې په نه لرلو او د بهترین کدرونو څخه د کار اخیستلو د هنر چې د دې جوړښت لپاره په دننه او بهر کې، دا ټول د تصمیم نیولو لاره لاتنګ او سخته کړې ده .د دې سربېره، لومړنۍ ماته د صلاح الدین په ولس جرګه کې، چې هغه یې ګنګس کړی دی.

تر بحث لاندې د موضوع ناظر وایي، چې د صلاح الدین انتصاب ؛؛موقت ریاست؛ د یو غلي کشمکش زمینه مساعده کړې چې په ظاهر کې د اولې کربښې د کسانو تر منځ دوستانه ښکارېده، د دې علت شو او پنجشیری شخصیتونه د همغه لومړي ګام څخه د جمعیت د مشرتابه مقام ته د صلاح الدین په مصلحتي نصب کولو،په مخالفت کولو یې لاس پورې کړی وو.

بلې خواته د قضيې، په داسې حال کې چې د کشمکشونو د طومار سر د استاد عطا محمد ؛؛نور؛؛ په لاس کې وو او بل سر يې د امیر اسماعیل خان په لاس کې دی. د جمعیت د ګنګرې د جوړېدو پروسه د څو ځلې سبوتاژ سره مخامخ شوه. په دې لړ کې،د ځینو ارمان ګرایانو او پېژندل شوي جمعیتي څېرې چې د افغانستان څخه په بهر هېوادونو کې مېشت دي، د نیول شوي او نه نیول شوي تصمیمونو څخه او د هر ډول تحولاتو څخه، لکه چې باید وي، هغه شان خبر نه وو او په دقیق ډول سره نه پوهېدل چې دغه کښتۍ به بلاخره کومې خواته لنګر واچوي .

صلاح الدین په دوه لارې کې پاتې دی چې د دې نیمې پېړۍ نظامي -سیاسي جوړښت مشري د کومو شرایطو او په کوم تضمین، کوم شخص ته تحویل کړي.

په راغلي خبر کې راغلي دي چې امیر اسماعیل خان چې د جمعیت د سپین ږیرو څخه دی، دا غواړي چې د کړکیچ حل او د یو نوي نظم لپاره د جمعیت د بیا رغولو په موخه د جمعیت د بېل شویو اړخونو لخوا د د مشرتابه تر حده راپورته کړی شي. د اسلامي جمعیت په داخلي غونډو کې یو شمېر منځمهاله کدرونه، د اساسنامې په متن کې د بدلون بحث پیل کړی او حتی ځینې په داسې دلایلو چې لا په عامه افکارو کې څرګند شوی نه دي د ؛اسلامي پسوند؛د ګوند د نامه څخه د لرې کولو ملاتړ کړی.په دې ډول سره ښکاري چې د جمعیت په ګوند کې سیکولاریستی تمایلاتو لاره موندلې ده. د طالبانو تجدید نظر،د هغه څه څخه چې د څو جګړو څخه زده کړه یې شوې ده چې په تېرو پنځه ویشتو کلونو کې یې زده کړي. د سیکولارانو لپاره، ممکن غوره ټاکنه ډاکټر عبدالله وي.

اوس هغه خطر چې جمعیت مخته،د حکمتیار صحنې ته داخلېدل دي. حکمتیار ممکن د اسلامي حزب لا پخوا غوځې شوې څانګې سره بېرته راټولې کړي او جمعیت په خپل اصلی ټاټوبي ؛شمال؛ کې نفس تنګ او له منځه یوسي. دا په داسې حال کې ده چې جمعیت، د فکري سنت او مدنیت پالنې تر منځ د قدرت څخه وروسته، په تېښته کې دی، مګر د اسماعیل خان څانګه،د کوهدامن ځینې پراخ بنسټه قومندانان او ځینې منځمهاله پنجشیر څخه ستنیږي د اسلامي اتحاد د ګوند سره (اسلامي دعوت) د استاد سیاف په مشرۍ، سره یو ځای شي.

په راپور کې لیکل شوي چې عطا محمد نور په دې بوخت دی چې تر خپل قیادت لاندې یو سیاسي ګوند جوړ کړي څو وشي کولی د رقیبو اړخونو سره ګونډه په ګونډه په معاملو کې کښیني.

د حکمتیار سره سوله، په عملي توګه جمعیت یې لا نور سره وپاشلو او بلاخره د جمعیت د مشرانو د ډېرو ناستو او خبروو څخه وروسته، جمعیتیانو غوښتي دي چې یو سلسله بدلونونه په ګوند کې راولي څو د اسلامي ګوند سره رقابت وکړی شي.

په داسې حال کې چې د جمعیت د مشرتابه تر منځ د نظر یووالی کول په اوسنیو شرایطو کې ډېر ګران کار په نظر راځي، مګر دوی په ظاهري ډول سره کوښښ وکړ چې یو سیاسي یووالی منځ ته راولي. دوی د جمعیت د مشرتابه شورا د لا نور پراخه او لویولو تدابیر ونیول څو خپل ځان لا نور لوی ښکاره کړي، مګر د دی څخه خبر نه وو چې یو بل سیاسي ستراتیژیکې تېروتنې باندې یې عمل کړی دی:

د مشرتابه شورا لویول یو نا سم عمل دی: لوی او قدرتمند گوندونه هېڅ وخت د خپل مشرتابه شورا د لویولو پلویان نه دي. په هره اندازه چې د مشرتابه شورا وړوکې وي، گوندونه ډېر کولی شي یووالي ته ورسېږي او د پرستیژ لرونکی وي.د مشرتابه د شورا لویول،نه یوازې داچې د نظر د یووالی او د اجماع په پړاوونو کې خنډونه ډېروي، مگر په عملي ډول سره د گوند په منځ کې د توطیو او د پاشل کېدو امکانات هم برابروي.

## ایا جمعیت یو قومي گوند دی؟

که تاسو د جمعیت د مشرتابه شورا د مطالعې لاندې ونیسئ، په دې به پوه شئ چې،جمعیت د هغه ادعا گانو پر ضد،چې خپله یې کولې، ښکاري چې یو قومي گوند دی.د مثال په ډول سره، د مشرتابه شورا په دننه کې ۲ هزاره شته او ۱۷ پښتانه په داسې حال کې چې د جمیعیت پښتانه هم ټول پلورل شوي کسان دي او یو ازاده مفکوره د هغوی سره نشته.په همدې ډول سره ازبک، ترکمن او د افغانستان نور قومونه په جمعیت کې، لازمي ځای نه لري.د جمعیت د مشرتابه شورا لوی لیست قومي اوسېدل د دې گوند په عملي ډول سره ثابتوي. دا موضوع د دې گوند سیاسي مشروعیت او شهرت لپاره ډېر تاوان رسوي.

جالبه دا وه چې هغه څېرې،لکه ډاکتر عبدالله عبدالله او امر الله صالح د مشرتابه هیئت په ډله کې شامل نه وې.

## د نظار د شورا او جمعیت په تن کې د پدرام روح غځېدل

په فېسبوک کې یو سوال وشو چې ولې جمعیت د پدرام سکتاریزم شاته روان شوی او دوی څه د یو بل څخه توپیر لري؟ د پدرام د ملي  سمبولونو ماتولو او د هغوی ماتول او بدلولو غوښتنه، د جمعیت د گوند او د نظار د شورا په سیاسي موخو بدل شوي؟د افغانستان تاریخ نه مني، ملي بیرغ نه قبلوي، افغانیت نه مني،د افغانستان نوم نه مني، ملی سرود نه مني،د ولسمشر حکمونه نه مني،مرکزي دولت نه مني، په ښوونځیو کې د پښتو تدریس نه مني، ملي  یووالی نه مني،  د هېواد اساسي قانون نه مني، د طالبانو سره سوله نه مني، د دري ژبه نه مني؟په لنډه، هر هغه څه چې افغانستان پورې اړه لري، نه یې مني!

په ځانگړې توگه، که د شهید فهیم قسیم موضیع گیریو ته د هغه په خبرو کې غوږ شو، هغه ډېر ملي  فکر کولو، افغانستان یې منلو او د فدرالېزم او د تجزیې پالنې مخالف هم وو. څه واقع شول چې د قسیم فهیم همقطاران د پدرام شا ونیوه؟

تر اوسه رسېدلي ځوابونو څخه په دې شکل کولی شو جمع بندي وکړو: فطرت افغان لیکي چې پدرام پرچمی وو، وروسته د رباني د جمعیت غړی او د نظار په شورا کې شامل شو، اوس د تاجکانو د کنگرې د گوند رییس او د ولسي جرگې وکیل دی.

د سپنتا په تایید سره، پدرام د ایران د اخوندي رژیم سر ورکړی ملاتړ دی او لیدل شوي دي چې د مهمو مسایلو څخه وړاندې، د ایران د سفارت څخه لارښوونې ورته کېږي. هغه په عین حال کې پوه او ځیرک دی. ځکه د نظار شورا په خپله کومه تیوري یا تگلاره نه لري، د دی په اساس، هر هغه څه چې پدرام ورته وایي، هغوی یې مني. مگر اکثرو ځواب

ورکونکو د جمعیت او د پدرام تر منځ یو توپیر بربنډ کړ چې هغه دا وو، جمعیت پیسو پسې او پدرام خپلو ځانګړو سیاسي موخو پسې ګرځي. لکه چې تجربو دا ښکاره کړې ده جمعیتیان د قدرت او د شتمنۍ په خاطر د هر کار سرته رسولو ته تیار دي.

احمد شاه داسې لیکي، اسلامي جمعیت او د نظار شورا، قدرت ته د رسېدو او د قدرت د بقا په خاطر، څلورو ګوندونو باندې مدغم شوي دي چې هغه ملي ستم، پرچم، ماوویست او اخوانیان د جمعیت د ګوند دي. نورالله عماد د جمعیتی ډلې اختلاف هم د دې فرصتپالنو څخه سرچینه اخلي او د جمعیت او د نظار د شورا د زرو د راټولو ښکارندوی دي.

مهجان دو داسې لیکي چې اصلي موضوع دا ده چې جهادي ډلې (اووه ډلې هفتګانه +اته ډلې هشتګانه) په سیاسي لوبو کې، د تل لپاره د دوو کارتونو څخه کار اخلي، یو یې ؛جهاد؛ او بل یې ؛قومپالنه؛ ده. د نړۍ په ننني شرایطو کې او افغانستان کې ؛جهاد؛ شعارونه ډېر موثره نه دي، نو د دې له کبله دوی د قومپالنې د کارت څخه د خپلې بقا په خاطر کار اخلي.

ځینې ځواب ورکونکي دې پوښتنې ته دا هم وایي چې اصلا د جمعیت کړنلاره د قومي تعصب پر بنسټ منځ ته راغلې ده، مسعود لومړنی هغه کس وو چې تاجک قومپاله مفکوره او د پښتنو ضد احساسات یې د مجاهدینو په صفوفو کې منځ ته راوړل.

باید له یاده یې ونه باسو چې احمد شاه مسعود د ثور د اتمې د کودتا سره د پرچمیانو او دوستم په مرسته د ډاکټر نجیت د حکومت څخه د مسالمت امیزه قدرت د انتقال د مجاهدینو منتخب حکومت ته د جینیوا د معاهدې څخه مخنیوی وکړ او د یو تاجک ټبر څخه یې حزبي حکومت منځ ته راوړ چې د کابل د تنظیمي جګړو سبب شو.

د فرید بهمن په وینا "د حزب او دولت لپاره خلق-پرچم-وطن د دولتي حزبي جوړښتونو سقوط یو ایډیالوژیک کړکېچ منځ ته راوړ او دوی د خپل اصلیت یوه برخه بربنډه ولیده. د ډېرو مجاهدینو لپاره د قدرت لاسته راوړل، د پېژندنې یا د هویت د کړکېچ د منځ ته راتللو سبب شو او هغه اسلام ته چې دوی تعریف کولو، ته یې یوه کلکه لغته ورکړه. د دواړه خواوو دا تشې – د ډېرو اسانو او بی سردردیو ایدیولوژیانو ډک کړ، د ټبرپالنې نتیجه دا شوه چې د ټبر څخه کرکه منځ ته راوړي. په دې خاطر، د بریالیتوب په سهار کې، جنګي سپی په کابل کې د ؛قومونو؛ په استازیتوب پیل وکړ. اوس، د وارداتي دیموکراسۍ په دوران کې، د قومونو د ؛مشرانو؛ تر منځ هوکړې او قراردادونه، سیاسي محور جوړ کړی چې هغه ته ؛د هوکړې دیموکراسي؛ (د یعقوب ابراهمي څخه) یو قرارداد ویلی شو، علت یې همدا دی. د سیاست ټېري د بازار غوښتنه همدا ده."

غرزی لایق په دعوت میډیا کې داسې لیکي:؛د ټبرپالنې او د قومونو تر منځ د شرم اورو جګړو په پیل کې، ځینې تاجک ټبره ؛؛پوه شوي؛ او باخبره کسان، ډېر ځانګړی معرفت له ځانونو ښکاره کړل او د افغان ضد په چارو کې، د مرکز څخه په تیښته او بیلتون غوښتنه کې، د نورو څخه، په واټونو مخ ته شول. دا ډله تاجک ټبر مکتبي، د ؛؛کینې؛ افراطي څخه تر ؛؛ښې؛؛ افراطي، د ؛؛پرچمي؛؛ او ؛؛خلقي؛؛ او ؛؛شعله یي؛؛ او ؛؛جمعیتي؛؛ څخه تر ؛؛اخواني؛؛ او ؛؛ستمي؛؛ او

؛؛جهادي؛؛، ؛؛افغانستاني؛؛ یا ؛؛خراساني؛؛ او یا ؛؛اریایي؛؛، دولتي یا غیر دولتي، ټول یا لږ افغاني، یو همغږه سمفوني ته پناه وړي یا تر ټولو بدو اسلوبو ته او د خبرو او وینا وو تر ټولو ټیټ فرهنگ د چټلې ژبې، د حاکمیت د تل پاتې استناد او د افغانستان خپلواکی او یوغږی د یرغل لاندې راولي، د مېشتو کسانو لوېې ډلې زموږ ټاټوبی د نیوکو او جزا لاندې راولي.؛

غرزی ادامه ورکوي او لیکي: ؛پر پښتنو یرغل کول او کینه،د د همدې فاسد شوي مکتبي تاجک ټبرو اصلی جوهر او بېلاري بدنه جوړوي چې د جعلي او غلطو مفکورو په تولید او بیا تولیدولو د خلکو د غولولو په لار،تاریخ، معنویت او زموږ د هېواد د اوسېدونکو سرلوړی باندې ټوکې ټکالې کوي... لږه موده وړاندې، د ناټو ځواکونو د یرغل په سهار کې چې د متحده ایالاتو په مشری یې یرغل وکړ په ۲۰۰۱ کال کې تر نن ورځ پورې، بدنامه او پېژندل شوې څېرې د تاجک ټبرو، کله چې پر سنتونو، ارزښتونو، تاریخ، ثقافت، او د پښتنو پر سرلوړیو په پوره لیوالتیا د یرغل سره، د هغوی سره د کینې په درلودلو او سیالی کولو، د تاجکانو شریف معنویت او فرهنگ یې د ؛؛سقاوي؛؛ غلو په پښو کې په ډېر سخاوت سره لاندې وغورځول او د حبیب الله کوهدامني د ننگیني کیش څخه، چې د انسان او انساني ژوند دښمن وو،صرف د عقیم کولو په پایله ؛؛د پښتنو دری سوه کلن حاکمیت؛؛ هیکل ؛؛د رسول الله د دین خادم؛؛ یې وتراشولو او په ؛؛اعزاز؛؛ د هغه په تور مخ، د باغیانو او یاغیانو د پرستش سنت ته یې نوی ژوند ور وبخښلو.دا شان څېرې او باندېونه،د عمل او فکر په پوهه کې،د افغانستان د با فرهنگه تاجکانو د غرور څخه ډک تیر تاریخ د غلو او انسان وژونکو څخه په اړخپالنې چې ؛؛جهادي؛ معروفیت یې درلود او مافیایي ټبره قارونونه، داغداره کړ او د افغانستان سرلوړو تاجکانو ته یې ذلت د شرمساری زمینه محیا کړه.دوی، زموږ د ټاټوبي د تاجک ټبرو عظمت د څو چورگرو او څو حرقوي غلو په سطحه راټیټوي.؛ لایق لیکي: د تاجک ټبرو بی لارې شوې، همدغه ډله چې د پښتون ضد په ناجوړیو او رنځونو اخته شوي دي، ... په دې باور دي چې طبیعي اړخونه په انساني ژوند کولو د جگړې او یرغل په ژبه او مردار او چټل ادبیاتو، د فرېب او بې لارې کولو کندې ته،د ټولو د پېژندنې او هویت په قېمت، د خپل کوڅې او بازار په گټه حرکت او سمت ورکوي.د دې ډلې په روانو کړنو کې،د ژوند د قانونمندیو پوهنه او مدني دولت ته د عقل څخه کار اخیستل او د خلکو د سالاریت ضمانت کول لارې یې ټیټې او سر په تیرو ووهل، تاوتریخوالی او د جوړې او بحث د خبرو څخه تیښته کول او د نورو په وړاندې د بدو خبرو،ځیاړو او کنځلو څخه استفاده کوي او نور تحقیر کوي.د ریښتیا په مقابل کې لجاجت کول او د قانون څخه تېښته د افغاني ټولنې د حقیقتونو په وړاندې او ډېر غوښتل او اضافه ښه ویل د حاکمیت په سختو شرایطو کې، د دې شان خلکو اصلیت او سرشت او د دوی گنگ ضمیر ورڅخه جوړ دی... دا د افغان ضدیت یو ښې سره خوځښت او د مرکز څخه تېښته او د حاکمیت څخه سرکښي او بغاوت کول د قدرت د پښتونیزم کولو له لارې او د دې شان نارواییو په پلمه، بد گمانی، د بهرني لاسوهنو ته ادامه ورکول په موخه او د جگړې ادامه درلودل او زیاتېدو په خاطر په لا نورو نویو اړخونو کې، په ښه ښکاره شکل سره ښکارېږي؛.

## ایا د تاجکېزم په نامه د سیاسي تفکراتو ټولګه شته؟

ډېر شمېر تاجک سیاسي لیکونکي د پښتونېزیم او پښتونیزه د اصطلاحاتو څخه بېدریغه استفاده کوي. په دې برخه کې یو تیوریسن چې تاجک او ضد د پښتنو دی د عبدالحی خراساني په نامه په فېسبوک کې لیکلي:...د افغانیزم مشرتابه،هم اشرف غني او هم حامد کرزی په دې کلونو کې د طالبانو سره یې ارتباطي شبکې منځ ته راوړې او حتی حکمتیار د طالبانو سره په منظم ارتباط کې ژوند کوي.د دې په منځ کې موږ تاجکان...تاجک طالبان مو له یاده ایستلي دي او د دوی سره مو هېڅ ډول سیاسي اړیکې نه دي ساتلې او د دې وخت را رسېدلی دی چې دا ارتباط او شبکه هر څومره ژر چې امکان لري،جوړه شي او د هغوی څخه ملاتړ وشي...په دې وخت کې د سولې اولویت د ولسمشرۍ د ټاکنو څخه ډېر مهم دی، زموږ ستراتیژیک ضرورت د ټولو جهادي ځواکونو او مقاماتو سره یو موټی کېدل دي او وروسته نظامي او سیاسي دی... بهتره به وي یو د سیاسي،نظامي فکر کوټه، او د لاربښوونې جوړ شي. زموږ محترم لنډکروزر چلونکي د پوه شي چې که په خپلو حواسو رانشي، سبا ممکن دی د دوی د لنډکروزرو قطار به د طالب خرسوارو لخوا د تاریخ ګورستان ته لار وموموي.؛

فرید بهمن په ځواب کې ولیکل ؛د جهاد او امارت او طالب او افغانیزم او تاجکیزم خبیثه دایرو څخه خوشې ؛کېږي نه؛.خلیل دهقانزاده د ؛تاجکیزم؛د عنصر د موجودیت څخه په انکار کولو داسې لیکلي ؛تاجکیزم یو نوې استعمال شوې کلمه ده چې د لومړي ځل لپاره ستاسو لخوا استعمال شوې ده مگر په حقیقت کې داسې کوم حرکت وجود نه لري.؛ فرید بهمن په ورته ځواب کې وویل ؛موجود دی، خو تاسو نه غواړئ چې هغه ووینئ؛! دهقانزاده په ځواب کې ولیکل ؛که موجود وي، حتماً غواړم چې ویې وینم!؛

پوښتنه په دې کې ده چې ایا داسې یو چلند یا دکتورین شته چې تاجکیزم یې نوم وي؟ که داسې چلند او لید لور موجود وي، د هغه اصول، موخې او موازین یې څه دي؟

## د تاجکېزم پېژندل شوي عناصر

لومړی عنصر:کله چې احمد شاه مسعود ویلي وو چې ؛تاجکان د دې هېواد اصلي اوسېدونکي دي؛!(د احمد شاه مسعود د هغه ویدیو په نقل چې خپلو زده کونکو ته غږېږي).دا فکر کولی شو د ؛تاجکیزم؛ لومړنی عنصر وبولو.

دوهم عنصر:د پښتون قوم ته بې فرهنګه ویل (د احمد شاه مسعود د هغه ویدیو په نقل چې خپلو زده کونکو ته غږېږي)، د تاجک ادیبانو لخوا د پښتو ژبې، ادب، او ادیبانو پرله پسې تحقیر کول،

دریم عنصر: د افغانستان سره مخالفت، د افغان ملیت، د افغانستان د تاریخي بنسټونو سره د ایراني نیشنلېزم له لیدلوري کتل،

څلورم عنصر: د دري/ فارسي ژبې د تاجک قوم پورې منحصر ګڼل او د ایران فرهنګي یرغل سره مرسته کول د افغانستان د خپلواک ملي دري ژبې د کم راوستلو په موخه او د هغه عوض کول د ایران مروج فارسي سره،

پنځم عنصر:د سیاسي قدرت انحصار کول او د هغه په نشتون کې د دولتي قدرت په دننه کې حضور او د هغه ساتل چې د غیر مشروع شتمنیو د لاسته راوړلو او ساتلو په موخه،په هر قېمت چې وي.

شپږم عنصر:د زرو په بې باکه اندازه راټولول د فساد، قدرت او د دولتي امکاناتو څخه په استفادې

اووم عنصر: د ډیموکراتیکو لارو څخه ناامیدي، د قدرت انحصار، د تاجک جهادي مشرانو په منځ کې د دوهم نقش منل، د دې ناامیدۍ ښکاره کول د تاجک روڼ اندو په منځ کې ښکاره کول د خراسانپالنې په غیر عملي شعار کې.

اتم عنصر:د پرله پسې کړکېچ د منځته راوړلو سیاست او د کړکېچ مدیریت کول زورگوییي کول، خپل ځان د قانون څخه پورته گڼل، پر ارگ د یرغل کولو، تنظیمي اوباشي کول، اوباشانه او مسلح یرغلونه په ښار او د پرله پسې کړکېچونو د رامنځته کولو له لارې!

نهم عنصر:د پښتون روڼ اندو یوشان بلل او مساوي حسابول د طالبانو سره

لسم عنصر:د ؛جهاد او مقاومت؛ په شعارونو نښتل د نظار شورا او د جمعیت د مشرتابه د استمرار په موخه او د ملي روشنفکر تفکر څخه د تاجک په قوم کې مخنیوی کول.

یوولسم عنصر: د ؛جهاد؛ او د قوم‌پالنې د کارتونو څخه کار اخیستل، په ځانگړې توگه دا چې د نړۍ او د افغانستان په اوسنیو شرایطو کې ؛جهاد؛ شعارونه ډېر موثر نه دي، نو د دې له کبله د قوم‌پالنې د کارت څخه د نظار شورا او د جمعیت د بقا په موخه کار اخیستل.

د پورته عناصرو د ښکاره کېدو اضافه والی په لیکنو، کړنو او تفکر د ډېرو لیکوالانو، سیاستمدارانو او د تاجک د ټولنې فعالینو، د افغانستان د خلکو د ملي وحدت په منځ ته راتللو او تقویت کې د تروریزم او بی امنیتی په مقابله کې دی.

په داسې حال کې چې د طالبانو تروریزم تر ټولو ډېر تاوان په اول قدم کې پښتون قوم ته رسولی دی او د پښتون مېشتو سیمو د اقتصادي او ټولنیزې پراختیاوو مخنیوی یې کړی دی، پښتون روڼ اندي د خپلې لارې په سر خنډ بولي، د دې حقیقت لاسي په نظر کې نه نیول او ترې انکار کول د تاجک سیاستمدارانو او لیکوالانو لخوا د طالباني طاعون سره په مقابله او د هغه د ماتې په موخه کې هېڅ مرسته نه کوي او حتی په راتلونکې سولې مذاکراتو کې هېڅ گټه نه کوي.

پښتونیزم د قومي تفوق د غوښتنې په مفهوم او تاجکیزم دواړه د یوې روپۍ دوه اړخونه دي او د یو بل د موجودیت څخه تغذیه کېږي. د افغانستان د خلکو په وړاندې، یوازېنی لارې ملي فکر کول دي چې د هېواد د اساسي قانون پر بنسټ وي.

## اسلامي جمعیت، د نظار شورا او څلورمه سقاوي

### *د "سقاوي" د اصطلاح نوی مانا*

داسې بریښي چې اکثر د ؛سقوي؛ د اصطلاح په مانا نه پوهېږي، او کمنټونه لیکي. سقوي اشاره هغه سیاسي خوځښت ته ده چې د حبیب الله کلکاني په مشری د امان الله خان د دولت د ځپلو په موخه، د هغه د اصلاحاتو برنامو د له منځه وړلو په موخه، د ارتجاعي مذهبي سلطې پر پښو درولو په موخه وو چې د ټولو خلکو په منځ کې چې په هغه کې تاجک، پښتون، هزاره او ازبک شامل دي، د نیږدې سل کاله وړاندې په همدې نامه مشهور وو.د فیض محمد کاتب هزاره، غلام محمد غبار او هروي او نورو تاریخي کتابونو ته مراجعه وکړئ. دا خوځښت سیاسي او ټولنیز موخې درلود لکه بلشویکي جنبش، پرچمي، مجاهدین، باسمچي، طالبي او نور. هرکله چې ځینې خلک په دې پسی وي چې حبیب الله کلکاني لپاره قبر او زیارت جوړ کړي، د دې په اساس د هغه د خوځښت د موخو او پایلو سره او یا د سقوي د جنبش سره موافق دي او د سقوي د لقب استعمالول د دوی لپاره کاملا مجازي دی د ګیله او د شرم ځای نه دی.

دوه کاله مخکې د نظار شورا او د اسلامي جمعیت لخوا په رسمي ډول په رسمي لمانځنه کې د امیر حبیب الله کلکاني، د ؛سقاوي؛ اصطلاح یو ځل بیا په ژبو راغله. دا موضوع د نظار شورا د مشرتابه او تیوري جوړونکو لپاره دا یې واضیح کړه چې نشي کولی چې دا سل کلنه اصطلاح چې په افغانستان کې د عامو خلکو او د ټولو قومونو او ټولنیزو قشرونو په وړاندې د تور مذهبي خصلت او څرنګوالي سره د ترقی ضد او د هر ډول ټولنیز پاڅون مخالف او د معارف ضد سره یې کلکه غوټه خوړلې ده، د خلکو له خولې او ژبو څخه لرې کړي. د دې په خاطر لکه چې معلوم دي داسې یې وکړل چې دا تاریخي ؛ستونزه؛ یې په یو فرصت بدله کړخ د ؛سقاوي؛ ؛ارتجاعي او د ترقی ضد؛ خصلت او څېره ته په سینګار او د څېرې په تغیر ورکولو د خلکو په غولولو روشنفکری بڼه ورکړي، لکه څنګه چې رزاق مامون وایي، یو جنبش ؛... د سیاسي فرصت څخه په استفادې په تاریخ کې د حذف او غدر؛ لقب ورکړ. په دې اړوند رزاق مامون لیکي: ؛د میر غلام محمد غبار څخه تر فیض محمد کاتب پورې په خوب کې هم نه لیدلو چې یوه ورځ، د سقاوی څخه وروسته نسلونه، په ډیجیټلي عصر او زمانه کې، داکلمې په یو عظیم سیاسي اراده به ترجمه شي؛.

په داسې حال کې چې کینې پاله سکتاریستان چې د ۷۰ زیږدیز کلونو په سر کې یې کوښښونه کول چې سقاوي پاڅونونو ته طبقاتي اړخ ورکړي د بزګریز جنبش په نامه یې انقلابي ځوانانو ته تبلیغ وکړ، تیوري لیکونکي د نظار شورا نن، د هېڅ معذرت او معافی د غوښتنې او د خجالت ایستلو څخه پرته، د دې پاڅون د قومي څرنګوالی ښه یادوي او د ژور ارتجاعي د ترقی ضد ژور خصلت څخه یې هېڅ ډار نه لري.

زراق مامون د ۱۳۹۵ هجري لمریز د سنبلې په ۱۳ د شنبې په ورځ په خپل انټرنیټي سایټ؛د افغانستان ګزارشنامه؛ کې په یو مقاله کې چې سرلیک یې ؛حبیب الله ته تقدیم، د زر کالو څخه وروسته د ماتی لومړنی کرښه؛ د ؛سقاوی؛ اصطلاح یې د یو سیاسي خوځښت ؛د سیاسي فرصت څخه په استفادې د تاریخ په غدر او حذف کې؛ توضیح کوي.

هغه لیکي ؛په حاضر حال کې، نوی ؛سقاوي؛ نسل د څلوېښتو کلو د نارساییو په مقابل کې د مبارزې او مقاومت څخه نسبت اخلي او په دی شکل سره، د یوی داسې کلمې په واسطه چې دا ټول په ټوله کې په ترمینولوژی کې ځای شوي

د دې کلمې تفهیم ورڅخه کېږی. د ؛سقاوي؛ د کلمې منځته راتګ په دې خاطر وو چې د نادرخان په وخت کې د مخالفانو کم شمېرل، وروسته بیا راژوندي د طالبانو په دوره کې را ژوندي شو، د دې پر ځای چې د بغض او د خلکو د ځپلو په برخه کې په لسیزو کې په کار یوړل شي، په قدرت، بیا کتنې، د جعلي تاریخ د ولاړولو،د ؛؛تاج او تخت؛؛ په ډګر کې د بازي کولو په موخه او د ابدیت لپاره د خپل ځان په هکله د سیاسي تفکر د عزم لپاره په کلمه بدل شوی. داکلمې په اوسنیو شرایطو کې او د ؛عدالت لپاره د عصري؛ مطالباتو د اوج په وخت کې، د زهرو د طعن او ډار څخه پاک کړل شوي دي. رزاق مامون ؛د ډار څخه پرته ؛د طعن ډار؛ خپل نسل ؛د سقاوی څخه وروسته نسل؛ ځان بولي چې دنده یې ده چې ؛سقاوي ؛د سیاسي هویت او پېژندنی د تېرېدو رمز او تاریخی رېښه لرونکې خبرو اترو او ځان ځانی قطبي؛ باندې واړوي.

د شک څخه پرته د رزاق مامون اشاره ؛سقاوی؛ته چې د حبیب الله کلکاني عامه شهرت دی د ؛سقاوی؛ د رېښې په ارتباط، د هغه پلار وو، چې د افغانستان د عامو وګړو په منځ کې د ؛سقا د زوی؛ په نامه د امان الله خان او نادرخان په زمانه او وروسته وختو کې پېژندل کېدو او د هغه پاڅون ته یې ؛سقویان؛ ویل. د هغه د اشارې په اړوند د ؛د زر کلو څخه وروسته؛ د هغه زمانط تقریبي فاصله ده چې د ساماني د دولت د حاکمیت له دوران څخه وروسته په ماورالنهر کې تر د حبیب الله کلکاني د نهو میاشتو حاکمیت پورې تېرېږي. په ؛ویکي پیډیا چې د پوهې ازاد لیکنځای دی؛ کې د یو ایراني له لیکنې لولو چې ؛امیر حبیب الله خان کلکانی، د افغانستان تاجکان د نیږدې زر کالو څخه وروسته، د سیاسي قدرت په محور کې داخل کړل، د دې له مخې ډېر مهم تاریخي ارزښت د پېژندنې له مخې لري، امیر حبیب الله کلکانی د نادر افشار څخه وروسته، دوهم شخص وو چې د پښتنو قومي حکومت یې مات کړ او د خلکو له منځه یې یو حکومت جوړ کړ.؛ نادر افشار ته اشاره، که د پښتنو د حاکمیت د نړولو له موضوع څخه تیر شو، نادرسته اشاره ده ځکه نادر افشار په خپله ترکمن وو هغه تاجک او فارسیوان نه وو.

حبیب الله کلکانی په ۱۳۰۸ ه ل کال کې (۱۹۲۹ ز) د امیر امان الله خان دولت چې د افغانستان د عامه وګړو تر منځ تر نن ورځې د خپلواکی د غوښتنې، تجددپال او د ترقی غوښتنې شاه په نامه مشهور دی د ؛کفر؛ او ؛لاتي؛ په شعارونو ونړولو.د امیر حبیب الله کلکانی په ۹ میاشتنی حاکمیت دوره کې د ؛رسول الله د دین خادم؛ تر لقب لاندې یې د امان الله ټول اصلاحي او انکشافی پروګرامونه ودرول،عصري ښوونه او روزنه، معارف او ښوونځی یې وتړل. د افغانستان د تاریخ په لړۍ کې داسې یو ارتجاعي توره دوره د حاکم دولت د رسمي سیاست په شکل یوازې د طالبانو د استبدادي حاکمیت دوران په ۱۹۹٦-۲۰۰۱ ز کې کولی شو وګورو د دی سره سره چې د دوی د حاکمیت په دوران کې حد اقل معارف او ښوونه او روزنه د نارینه او هلکانو لپاره منع شوی نه وو.

په هم هغه ډول سره چې د افغانستان د قاطع اکثریت خلکو لپاره چې په هغه کې ټول قومونه شامل دي د امیر امان الله خان محبوبیت د خپلواکۍ د غوښتنی، تجددپالنی او ترقۍ خوښوونکي خصلت په اساس وو،نه د هغه د قومي تړون په اساس، چې حتی د پښتنو په ژبه یې خبرې هم نشو کولی، په هم هغه اندازه د افغانستان د قاطع اکثریت خلکو نفرت د طالبانو څخه چې په هغه کې هم ټول قومونه شامل دي، د ارتجاعي د تجدد ضد او د ترقی ضد خصلت د دوی پر اساس

وو نه د دوی پښتون سنتي عناصرو قوم پورې د دوی له تړون څخه. لکه څنګه چې نن لږ شمېر د ؛سقاوی؛ د ارتجاعي پاڅون په خاطر، د حبیب الله کلکاني او نورو مشرانو څخه یې د تاجک د قوم سره د تړاو په خاطر ملاتړ کوي، داسې کسان هم شته چې د طالبانو څخه د دوی د پښتون اوسېدو په لحاظ پلوي او ملاتړ کوي.

د شک څخه پرته د رزاق مامون منظور د ؛تاریخ څخه د حذف؛ د زرو کلونو،چې ؛سقاوی؛ پاڅون هغه ته د پای ټکی کېښود، د تاجک د قوم بیا ظهور په سیاسي قدرت د ماوراالنهر د سامانیانو د حامیت څخه وروسته، د دې سره سره چې لنډ او د نهوو میاشتو لپاره وو.ایا د تاجکانو دغه د تاریخ څخه حذف چې زر کلن د سیاسي قدرت څخه د پښتون قوم پواسطه بلل کېږي، عملي شوی وو؟ دا واضیح دی چې د دې سوال ځواب منفی دی ولې چې د پښتنو د سیاسي زعامت احراز څخه دری سوه کاله تیرېږي.په اووه لس کلونه مخکې د دوی کوم کسان د تاجک د قوم څخه د سیاسي قدرت څخه حذف شوي وو؟ سامانی حاکمیت چې په اتفاقی ډول سره د اوسني افغانستان په ټوله خاوره هم نه وو،غزنویانو په ځانګړې توګه بیا سلطان محمود غزنوي ورته د پای ټکی کېښود.غزنویان ترکمن اوغوز وو د نننی افغانستان د سرحداتو څخه راغلی وو او د دوه سوه کلو څخه ډېر (۹۷۷ ز څخه تر ۱۱۸٦ ز) په دې سیمو یې حکومت وکړ.د هغه څخه وروسته غوریان قدرت ته رسېږي چې د پښتنو سره په سیاسي او نظامي اتحاد کې،خپل حاکمیت د ٦٧ کلو لپاره (۱۱۴۸ز څخه تر ۱۲۱۵ ز پورې) نه یوازې د نننی افغانستان په ټولو ساحو، بلکه ټول شمالي هندوستان ته هم اوږد کړی وو. د غوریانو سره یو وخت او د هغوی څخه وروسته، سلجوقیان چې ترک ټبر وو د قدرت واګې یې په خپل لاس واخیستې او د ۱۵۷ کلونو لپاره (۱۰۳۷ څخه تر ۱۱۹۴ ز پورې) د نننی افغانستان په لوېدیځ سیمو او ټوله منځنۍ اسیا، کوچنۍ اسیا او فارس باندی یې حکومت وکړ.د هغوی څخه وروسته خوارزم شاهان قدرت ته ورسېدل چې د ماورالنهر څخه د نننی افغانستان په لوېدیځ باندی یې حکومت کولو او د دوی حاکمیت د ۱۱۲۰ ز کال څخه د چنګیز خان مغول پواسطه له پښو پریوت. مغولان او د هغوی څخه وروسته ترک ټبره تیموریان تر ۱۵۱۰ ز کال د ازبک شیباني خان د مړینې سره سم په مروه کې د صفوي شاه اسماعیل په لاس پر ټول ماورالنهر او د نننی افغانستان په سیمو حکومت کولو. د دی څخه وروسته د نننی افغانستان سیمو د لوېدیځ څخه تر کندهار پورې دفارس د ترک ټبر صفویانو پواسطه او د ختیځ او سوېل څخه د بابري کورنۍ لخوا ډهلی اداره کېدو.

پښتنو د لومړي ځل لپاره په ۱۷۰۹ ز کال کې د میرویس خان هوتک پواسطه، د صفویانو او بابریانو دوه سوه کلن تسلط ته د پای ټکی کېښود او په دی هېواد کې یې یو پښتون دولت جوړ کړ چې د نادر افشار د دورې په یو توقف سره،د احمد شاه ابدالي د دولت په جوړېدو او وروسته بیا د هغه زوی تیمور شاه د ملي دولت په نامه،تر نن ورځې ادامه لري. تیمور شاه پلازمېنه د کندهار څخه کابل ته چې تاجک مېشت ښار وو، انتقال کړه څو دولت یې د پښتون فیوډالانو د نفوذ څخه لرې شي. د دی کار په کولو سره د څو نسلونو د ودونو په نتیجه کې د دري ژبې پښتنو نور نسل منځ ته راغی چې د فرهنګ له مخې څومره چې د تاجکانو سره نیږدې وو په هم هغه اندازه د سنتي پښتنو څخه لرې وو.دا نوی نسل بیروکرات دی چې په حقیقت کې د افغانستان د دولت چارې یې د امیر دوست محمد خان څخه راپه دیخوا د تاجک روڼ اندو او نورو قومونو سره په همکارۍ، په خپل اختیار کې لري. په دې اساس د افغانستان دولتونو ته د امیر

دوست محمد خان له زمانې راهیسې پر قبیلو ترل،د لیکوالانو ناپوهي د سیاسي فشار او ټولنیز فشار او د هېواد د حاکمو اقشارو څخه بې خبری څخه استازیتوب کوي.

پوښتنه دلته ده چې، د رزاق مامون په قول، ؛د تاریخ څخه حذف کېدل؛ او یا بهتره یې ووایم د تاجک کمرنگه برخه اخیستل د دې هېواد په زر کلن تاریخ کې له څه وجهې کېدی شي؟ ایا دا د دوی د نفوس د کموالی په خاطر دی؟ معلومه ده چې د تاجکانو نفوس نظر پښتنو ته کم دی مگر د تاجک نفوس د ترک ټبرو څخه په کراتو ډېر دی په داسې حال کې چې ترک ټبران ډېر مهم او د ملاحظې وړ برخه د دې هېواد په تاریخ کې لوبولې دخ.د دی په اساس د دې علت په نورو برخو کې د پلټنی وړ دی چې په خپله یو لوی او جدي بحث ته اړتیا لري او د تاریخي پیښو د دقیق څېړنې او د ټولنیز او تاریخي پیښو دقیق څېړنه باید وکړل شی او عوامل یې په گوته شي. مگر هغه څه چې د منطقې د زر کلن تاریخ د څېړنی څخه لیدل کېږي هغه د پښتون قوم د زور او تشدد او د اعمالو د سیستماتیک تخویف څخه نه وو.

د رزاق مامون د لیکنې په اساس د ؛سقاوي؛ پاڅون کولی شو په لاندې څلورو مرحلو ووېشو:

اوله سقاوي (۱۳۰۷ جدی – ۱۳۰۸ میزان هجري لمریز) یا د حبیب الله کلکاني د حاکمیت دوران

دوهمه سقاوي (۱۳۷۱-۱۳۷۵ هجري لمریز) د رباني – مسعود حکومت

درېیمه سقاوي (۱۳۸۰ – ۱۳۹۳ هجري لمریز) د طالبانو ضد د نظار شورا دوران

څلورمه سقاوی (۱۳۸۱ هجري لمریز) د نظار د شورا بېرته راتگ او په سیاسي قدرت کې یې برخه اخیستل

## اوله سقاوي (۱۳۰۷ جدی – ۱۳۰۸ میزان هجري لمریز)

یا د حبیب الله کلکاني د حاکمیت دوران

د رزاق مامون په وینا ؛د ؛؛لومړی سقاوي؛ پیدایښت د اولې لسیزې ۱۳۰۰ ه ل په ځانگړي سیاسي او ټولنیز شرایطو کې، داسې یو شی وو چې د لومړي ځل لپاره د نیم بنده او توان سوزه تاریخي (کم خبری) په حال کې په عدالتپالونکې جگړه کې د حضور او په قدرت کې د برخه اخیستلو په موخه وه.لومړی سقاوي، د قهر د تیتولو او پارولو، د خپل راتلونکي کرښه، خاص پلان نه درلود، اوس چې د هغه څخه نیږدې نوي کاله تېر شوي دي، اوس هم د نیوکې پر اساس له خاص پلان د درلودلو څخه لا اوس هم محروم دي.په هغه وختونو کې، د نقد وسیلې ضعیف او د مقابله کولو لارې، د مذهبي قواعدو یوې رشتی سره د ملاترکونکو سرته رسیده.؛

ایا دا پاتې شوي پلانونه او تگلارې سمې دي؟ایا پاڅون د ؛لومړی سقاوی؛ په حقیقت کې ؛عدالتپالونکې جگړه د حضور د اثبات او په قدرت کې د ونډې د تر لاسه کولو په موخه وو؛یا داسې یو چلند د پاڅون وو چې د ترقی ضد او د تور مذهبي ارتجاعي او د تجدد ضد یو حرکت وو چې د وخت د بدلون په موخه او د ښوونې او روزنې د لړی بېرته

دمنځنیو پېړیو تیارو افکارو ته د راګرځولو په موخه وه؟ دا پاڅون د ګوډ ملا د پاڅون سره چې په ۱۹۲۴ کې په پکتیا کې وو، څه توپیر لري؟

باید په یاد ولرو چې په ۱۳۰۳ (۱۹۲۴ ز) کال کې، یو شمېر ملایان او افراطي روحانیون د انګلیس په پارولو د امان الله خان د دولت پر خلاف په تبلیغاتو پیل وکړ خلک یې پاڅون ته اړ کړل. دوی د امان الله خان د دوران ټول اصلاحات د دین په خلاف وګڼل، دا مترقي او په وطن مین شاه یې کافر او د هغه په وړاندې جهاد فرض اعلان کړ. مګر دا ملا په یو لاس کې قران او په بل لاس کې یې د امان الله خان د جزا قانون نیولی وو او د هغو قبایلو تر منځ چې په ډېر تاسف سره پوهه او زده کړه یې نه درلوده، چیغې وهلې: کوم یو یې منی! قران که قانون؟ په طبیعي شکل سره چې خلکو به ویل:قران منو. باید په یاد ولرو چې انګلیسانو چې خپل ځانونه په دی توطیه کې بریالی ګڼل په مستقیم مداخله یې پیل وکړ او یو هندو د عبدالکریم په نامه یې چې د امیر یعقوب خان د زوی په نامه په پکتیا کې د ځدراڼو په قوم کې اوسیدو او د پاڅون مشرتابه یې په خپل لاس کې واخیست. د جګړې په پیل کې د پاڅونکونکو په نفع یې کار کولو، ځکه د یوې خوا د دولت بودیجه خلاصه شوه او له بلی خوا ۸۰۰ دولتي سرتیري په یو ځل ووژل شول، چې دا د اماني رژیم پر نوي جوړ شوي وجود باندی لویه ضربه وه.په همدغه دوران کې وو چې عبدالکریم د انګلیس په ملاتړ په پکتیا کې د امارت دعوه وکړه.ځکه د افغانستان اکثریت د اماني دولت د خدماتو څخه راضی وو، یوه لویه غونډه په یو غږ د جاهلانو په خلاف په پاڅون راغله چې د هغه د ځپلو په پایله سرته ورسېده. میر محمد غبار په ؛؛افغنستان په تاریخي بهیر کې؛؛ (۸۰۹ مخ، اول جلد) کې لیکي: ؛؛...همدا چې پوه شول چې د پکتیا پاڅون مذهبي ماهیت نه لري، مګر یو سیاسي ماهیت او څرنګوالی هغه هم د انګلیس په لاسوهنه لري، ټول د دولت په ملاتړ وپارېدل او د بهرني نفوذ په وړاندې سره متحد شول.؛ د دې پاڅون مهار چې د یو کال څخه اضافه دوام یې وکړ.د اماني پر دولت باندی لوی او دروند بار وو.نیږدې د یو کال مالیات په هغه کې بې ځایه ولاړل او وروسته د پغمان په لویه جرګه کې شاه امان الله خان دې ته اړ شو چې مرتجع روحانیونو سره د ورکړې له لاری چلند وکړي او د اصلاحاتو خپل ځینې پروګرامونه معطل کړي.د خلکو د پراخبنسټه او همکاریو او ملاتړ په پایله کې، پاڅون وځپل شو او باغی مشران یې وتښتېدل.په دې کې وو چې ګوډملا او ملا عبدالرشید چې غرونو ته یې پناه وړې وه د خلکو لخوا ونیول شول او دولت ته تسلیم شول.د ۱۳۰۴ د جوزا په ۴ نېټه ګوډملا او ملا عبدالرشید د ۵۱ ملګرو سره د دې څخه وروسته چې د اعدام سزا باندې محکوم شول، د مراسمو په لړ کې د مرنجان په غونډۍ کې اعدام شول او څو سوه نور کسان شمالي ولایتونو ته تبعید شول. اوس که موږ د ؛لومړی سقاوی؛ پاڅون یو ؛عدالتپالنه جګړه؛وبولو نو ایا د ګوډملا پاڅون هم عدالت غوښتونکو دی که نه؟یا دا چې افتخار د ؛عدالت غوښتونکې جګړې؛ یوازې یو تاجک کولی شی ولري او نور قومونه نه؟

## دوهمه سقاوي (۱۳۷۱-۱۳۷۵ هجري لمریز)

د رباني – مسعود حکومت

رزاق مامون لیکي ؛ ؛؛دوهمه سقاوي؛؛ دری شپیته کاله وروسته د ؛؛لومړی سقاوی؛؛ د بېړني دولت د ځپلو څخه وروسته په یو سرنوشت سازه جګړه کې، د سیاسي قدرت واګې په خپل لاس کې واخیستلې. خپل بیا ظهور یې د جګړې له لارې

تعریف کړ او د څلور کلو حکوملۍ دوره یې هم په جګړه ختمه شوه او پنځه کلن فاز ته ؛تاریخي مقاومت؛؛ ته تیر شو، هغه مقاومت چې حبیب الله لویه تېروتنه،پای ته رسولې اعلان کړې وه.

دا برخلیک ټاکونکې جګړه؛ چې دوېمې سقاوي د هغه په بریالیتوب ؛سیاسي قدرت یې په خپل لاس کې واخیست؛ کومه جګړه وه؟ایا دلته منظور د جګړې حزب دیموکراتیک خلق د دولتونو سره او د هغوی د سور ملاتړ کونکې ځواکونو څخه دی؟ په حقیقت چې داسې نه ده .د حزب دیموکراتیک خلق په ۱۴ کلن حاکمیت کې، اته کاله حاکمیت د ببرک کارمل وو، او سیاسي بیرو هم په اکثریت کې غیر پښتون وو او سیاسي قدرت واګې یې په لاس کې وې، او د هغه وخت د اکثرو مجاهدینو په ګواهۍ او محرم اسناد چې نن د محرمیت څخه ایستل شوي دی په اساس، احمد شاه مسعود د دې دوران ډېر کلونه د سور ځواک سره د اوربند په حال کې تیر کړل.

د رزاق مامون په تعریف ؛دوهمه سقاوي؛؛ خپل بیا منځته راتګ یې د جګړې سره تعریف کړ؛. د احمد شاه مسعود څخه په یوټیوب کې  ویدیو شته چې په هغه کې په ډاګه اعلان کوي چې د ډاکټر نجیب څخه د قدرت د انتقال په ترڅ کې، مجاهدین د جینیوا د هوکړې په اساس، د یوازخیز اقدام په کولو د خپل دولتي قدرت د لاسته راوړنې په موخه د جنران دوستم په مرسته ؛د یو نړیوالې توطیې څخه یې مخنیوی وکړ؛. په دې ډول احمد شاه مسعود د دولتي قدرت د شریکولو څخه د نورو ایتلافي جهادي ګوندونو سره یې مخنیوی وکړ ټول نظامي قدرت یې په خپل لاس کې واخیست په کابل کې د تباهیو څخه ډک د یوې داخلي جګړې سبب شو چې د کابل د زرګونو اوسېدونکو په بیه د افشار جینوسایډ او د ښار په ورانولو تمامه شوه.په دې په اساس لکه چې وینو، د لیکوال منظور ؛د برخلیک ټاکوونکې جګړې؛ څخه هغه جګړه ده چې احمد شاه مسعود د نورو جهادي ډلو په خلاف چې په هغه کې اسلامي حزب او د وحدت ګوند شامل دي، څخه یې مقصد دی. د ویلو څخه پرته معلومه ده چې د کابل د ښار په ورانولو کې او د زرګونو بې ګناه اوسېدونکو په قتل او وژنه کې د ګلبدین حکمتیار نقش او د ډېرو راکټونو اورول پر ښاریانو چې بې دفاع خلک وو، هغه هم باید له کتنې هېر نه کړو.

د ؛؛دویمې سقاوي؛؛ حاکمیت د درد، رنځ، بې عدالتیو، غلا او چور او بې امنیتیو او د ملوک الطوایفي حکومتونو د بیا جوړېدو چې ارتجاعي وو، پس پاتې او د ترقۍ ضد لاسته راوړنو څخه پرته، نور د هېواد د خلکو لپاره د پښتون، تاجک، هزاره، او ازبک او نورو قومونو په شمول لپاره، یې بل هېڅ وړاندې نه کړ. بی ځایه نه وو چې دا انارشي رژیم نه انکارکونکی سقوط د هېواد د اکثریتو خلکو په تایید، سره مخامخ شو.

باید له یاده ونه باسو چې د طالبانو د خوځښت اسانه او ساده بریالیتوب د انارشي ؛؛دویمه سقاوي؛؛ په مقابل کې د هر بل څه څخه د مخه د خراب کارانه،غلا او چورپالنې، شورماشور، انارشي، بې امنیتي،بې حرمتي، د دولت نشتون، بې قانوني او د افغانستان په داخل کې د ؛؛دویمې سقاوی؛؛ حاکمیت په وخت کې د ملوک الطوایفی حکمفرما اوسېدلو له کبله وو.د افغانستان خلکو له دولت څخه،تر هرڅه د مخه، امنیت غوښت او دا امنیت ورته د طالبانو دولت د منځنیو پېړیو د یو استیلایي رژیم په بیه برابر کړ د هغو کسانو هیلو ته یې چې د اسلام د صدر د حاکمیت استقرار یې غوښت،د عمل جامه ور واغوستله.

## دریمه سقاوي (۱۳۸۰ – ۱۳۹۳ هجري لمریز)

د طالبانو ضد د نظار شورا دوران

رزاق مامون داسې لیکي:؛د ؛؛سقاوی؛؛ په دریم فاز یا برخه کې، د طالبانو د قومي – نظامي جبهې د سقوط سره په یو وخت کې،د لا پوخ راتلونکي د محتوا په موخه، د ربښه درلودونکې جګړو څخه منظر ښکاریدو.د ؛؛پښتون؛ پخوانی یا کلاسیک اردوځای کې توپیر رامنځ ته شو.د پاکستان جوړ شوي ملایان، په ختیځ او د هېواد په سوېل کې د قبیلوي جوړښتونو مشري چې د تل لپاره د جرګو او ځان ګردانیو پر قومي بنسټ ولاړ وو، یو پر بل ونړول او د کلي د مشر پر ځای، افراطي ملا کښېناست.د مقاومت د ځای پر ځای پاتې کېدو یو علت ؛؛دریمه سقاوي؛؛ یوازې د جګړې بیداري او تجربه نه وو، دا ټکی هم مطرح وو چې پښتون ملایان، غني شوي مذهبي  فقاهت یې د کلیوالي مفکورو او اصولو او قوانینو پر ځای عوض کړل.؛

د رزاق مامون په دې تفسیر کې  د طالبانو د سیاسي حاکمیت او ټولنیز خصلت او فاحش اختلاف د دوی د کلاسیک یا پخواني اردوځای د قدرت ؛؛پښتون؛؛ یو په زړه پورې ټکی، یا بهتر یې ووایم یو مهم اعتراف باندې ختمېدو. هغه د ناغوښتل شوې تګلارې سره دا تایید کوي چې په داسې حال کې  چې د ؛؛پښتون؛؛ د اردوځای پخوانی یا کلاسیک قدرت هر کله د جرګو او خپل ځاني قومي اصولو د کلیوالی تدبیرونو او قوانینو او اصولو د کلي د مشر په مشرتابه ولاړه وه. بې له بلې لارې څخه دا قوانین او کلیوالي تدبیر  مهم عامل په قومي او مذهبي  د سني او شیعه مذهبونو د جګړو په تېرو دری سوه کلونو کې حساب کړ. د دې برعکس د طالبانو په رژیم کې دا ټولنیز نظم ویجاړ شو د کلی د مشر په ځای ځای ملایانو ځای ونیولو، د پاکستان د مدرسو روزل شوي افراطي پښتون ټېره د ؛مذهبي  غني شوي فقهاوو؛ سره کښېناستل چې د مدارا او تدبیر د کلیوالي سنتي د هغه پښتنو چې د قومي او مذهبي  سني او شیعه جګړو له امله او د مقاومت ؛؛دریمې سقاوی؛؛ د ادامې څخه وو، په حساب راتلل.

## څلورمه سقاوي (۱۳۸۱ هجري لمریز)

د نظار د شورا بېرته راتګ او په سیاسي قدرت کې  یې برخه اخیستل

رزاق مامون لیکي چې: ؛د ؛؛سقاوی؛؛ څلورم پړاو، همدا اوس نیم قدرت په خپل اختیار کې لري او د تیوری له لحاظه، او د کار کولو د طریقو له مخې د مقاومت د د قدرت د عادلانه تقسیم کولو لپاره په راتلونکې باندی تکیه کړې ده.؛ هغه لیکي چې:؛د نوې ؛؛سقاوی؛؛ ستراتیژي د تل پاتې سیاسي هویت یا پېژندنې تسجیل د قدرت په شخړه کې، په داسې حال کې دی چې پر منفي او مثبتو ؛؛لومړی سقاوي؛؛پر زده کړو تکیه کوي، که نه نو، د یو قومي حاکمیت د ۱۳۷۱ کال د اوړي څخه وروسته خاورو ته وسپارل شو.؛ رزاق مامون په یوځلې ډول سره د ؛تک قومي؛ د پنځه کلنې حاکمیت د طالبانو له یاده ویست په ډېر بې اعتنایی د هغه لویې مرستې څخه چې د امریکا بي ۵۲ الوتکو، د امریکا ځانګړي ځواکونو، د سي ای اې په میلیونونو ډالرو، وسایط او تجهیزات د امریکا نظامي ډګر کې  د ؛؛څلورمې سقاوی؛؛ په بیا منځ ته راوستلو او قدرت ته یې د رسولو په برخه کې په هکله مننه نه کوي.

رزاق مامون اضافه کوي چې ؛په اوسنیو ورځو کې، ټولنه د انجماد د حالت څخه دباندې وتلې او د حکومتگرۍ تک قطبي د پوښتنې لاندې راغلې دی.؛ هغه وایي:؛نننی ټولنیز-ښکاره کېدل مانور ؛؛سقاویانو؛؛ پام او نظر یې د سیاسي فرهنگ څخه د زده کړو کولو باندی د پخواني ورسته پاتې سیاسي فرهنگ او کوښښونو لپاره د هغه د انجماد په خاطر دی څو یو ځل بیا تکرار نه شي.حبیب الله د خپل موقعیت له مخې سیاسي پوهه نه درلوده، ...د هغه تاریخي شهکار، د قدرت یوطرفه منلو دمفکورې ماتول وو او هغه په ډېرې ساده گی ثبوت کړه چې ؛؛د پاچاهی؛؛ حق چا ته او یا کسانو ته نه دی نازل شوی. د هغه د کارنامو تر ټولو مهم او تل پاتې برخه، په کلکه تر وورستۍ سلگۍ پورې جگړه کې مقاومت کول وو، په هم هغه پېمانه چې ناڅاپه تسلیمېدل یې نادرخان ته، ډېر بې ځایه او جبران ناپذیره وو. په دی قضیه کې ښکاره کېږي چې د حبیب الله کلکاني برعکس،د هغه هم فکر او هم نظر د عقیدي گوډ ملا او د هغه ملاتړ کونکي تسلیم نه شول، مگر ونیول شو او د کلکاني او د ملاتړ کوونکو په شان یې اعدام شول. نو په دې اساس که د کلکاني تاریخي شهکار، د قدرت د یو طرفه منلو د بنسټ ماتول وو، د دې قدرت په ماتې ورکولو کې، گوډ ملا او د هغه ملاتړ کونکو هم کوښښونه وکړل مگر د پاچاهۍ د پایلی څخه پرته او د حیثیت د بیا تر لاسه کولو د پایلی د لاسته راوړلو او مجدد تدفین څخه پرته.

رزاق مامون لیکي ؛موږ شاهد وو چې ؛؛دویمه سقاوی؛؛ د مذهبي او سیاسي نظره د حبیب الله په هم هغه کرښه یې قدم کېښود، مگر د تسلیمېدو د داستان اخیرنۍ برخه د هغه دښمن ته، یې له خپل کارنامې څخه حذف او لیری کړ. احمد شاه مسعود یو ځل د امیر حبیب الله خان په اړوند د دریغ څخه په ډکو الفاظو داسې وویل:؛؛انسان دښمن ته تسلیمېږي؟که هېڅ جگړه د نه وی کړې، د شمالي د غرونو په لمنو به دې قدم وهلو او د هر یو یا دریو میاشتو څخه وروسته د توپک یو ټک به د کړی وو، په افغانستان کې د نظام او د سیاست راتلونکی په مکمل ډول سره د یوې کورنۍ لاس کې به نه وی پاتې.؛؛]

## ***د څلورمې سقاوی سیاسي کړنلاره***

مگر هغه څه چې رزاق مامون یې نه وایي، هغه دا دي چې ؛؛سقاوي؛؛ څلورم پړاوو، اوس په ظاهر کې نیمایي قدرت په خپل لاس کې لري او د کړنلارې له نظره، د ټول قدرت د لاسته راوړنې په موخه چې د ؛؛دویمې سقاوی؛؛ په دوران کې یې په اختیار کې وو، په یو اوږدمهاله مبارزه کې د وخت د حرکت پر ضد په جریان کې دی.د ۲۰۰۹ کال د ټاکنو بدنامه کول او د هغه څخه وروسته د راتلونکی ۲۰۱۴ کال د ټاکنو او د ۲۰۱۹ د تقلب په پلمه، پر ارگ د یرغل په تهدید، د مسلح اوباشانو پورته کښته کول د احمد شاه مسعود د مرگ په کلیزه کې، د زرغون پاڅونونو تهدید، نارنجي او گلابي. کابل ته د سل زره کسانو د راوستل تهدید، د سیاسي ایتلافونو جوړول د نظار شورا د بازیگرانو سره، د سیاسي نظام د بدلون شعارونه، فیوډالي سیستم او نور ټول د قدرت د تامیین لپاره په هژموني ډول د سیاسي اعمالو یکه تازي کېږي.

باید له یاده و نه باسو چې د نظار شورا قدرت ته د بیا رسېدو څخه وروسته په ۲۰۰۱ کال کې د امریکا په نظامي مداخله، څلورمه سقاوي، که د رزاق مامون د ترمینالوژۍ څخه استفاده وکړو، حقیقي مطلقه سیاسي قدرت، په افغانستان کې نظامي او فرهنگي ټول په لاس کې واخیست او تر نن پورې یې په لاسونو کې دی. د مثال په ډول په یو مرحله کې

احمد ضیا مسعود د ولسمشر لومړی مرستیال وو، فهیم قسیم د دفاع وزیر، یونس قانوني د کورنیو چارو وزیر، ډاکټر عبدالله د بهرنیو چارو وزیر او امرالله صالح د ملي امنیت رییس. څلورمه سقاوي د حامد کرزي د چپنې شاته، چې د کوم سیاسي جوړښت کوم سیاسي گوند او یا جهادي تنظیم ملاتړ یې شاه ته نه وو، د خپل مطلقه قدرت کارونه یې سرته رسول. په ولایتونو کې د محلي قدرتونو اقمار بیا جوړ شول، چې پایله یې مالي پراخ بنسټه فساد، اقتصادي، د دولتي ځمکو غصب، د دولتي قراردادونو څخه سو استفاده کول، د گمرکي عوایدو غلا، د بهرنیو مرستو میلیارد ډالري چور د غیر دولتي سازمانونو په جوړولو(ان جي او گانې) چې مرستې یې تطبیق کولې، د نظار شورا مشرتابه یا څلورمې سقاوی د زمانې په فرعونانو بدل شول.د رباني،مسعود، فهیم، عطا محمد نور، اسماعیل خان، قانوني او د نورو کورنۍ د سلگونو خصوصي شرکتونو په جوړولو، د مېشت ځای ښارگوټي، لوړ پوړي تعمیرونه، ترانسپورتی شرکتونه، تلویزیوني دستگاوې او رسنۍ او نور د هېواد اقتصاد یې په مکمل ډول سره په خپل اختیار کې درلود.

د ؛سقاوي؛؛ د نوي نسل ټول ستراتیژیگانې، د سیاسي قدرت تحکیم په تاجک قومي یکه تازي جوړ شوي وو د هر ډول بیا مجدد جوړېدو او د پښتنو په قدرت کې شریکولو سره یې مخالفت کولو. په دی ارتباط باید چې د لطیف پدرام اخطارونه له یاده ونه باسو چې ؛د هغه امکاناتو څخه په استفادې چې نړیوال ځواکونو موږ ته برابر کړي، باید کار یوې خواته کړو او په افغانستان کې لوی ملي سمبولونه بدل کړو او افغانستان له جرړې عوض او بدل کړو.؛

په دې کش مکش کې څلورمه سقاوي د افغانستان د ټولو ملي سمبولونو د ماتولو په موخه، له هغې جملی څخه د نوم، ملیت، هویت او تاریخ، ژبه، لهجه،ملي مصطلحات او ځمکنۍ بشپړتیا په برخو کې یې گامونه اوچت کړل شعارونه داسې دي چې که ټول سیاسي قدرت بیا لاس ته رانشي، قومي فدرالیزم او د هېواد تجزیه او ټوټه کېدل دوېمه د حل لاره به وي.

په دې هیله یم چې هېڅکله د فاشېزم او قومي استبداد استیلا تجربه نکړو

په یوه لنډه مقاله کې په فېسبوک کې می لیکلي وو چې په اکثر پښتنو مېشتو سیمو کې، چې په هغه کې شامل د ننگرهار خوگیانې، د ټولو کلیو په جوماتونو کې ماشومانو ته چې په هغه کې هلکان او نجونی شامل دي د نورو کتابونو تر څنگ لکه قران شریف، پنج کتاب، د سعدي شیرازي بوستان او گلستان کتابونه او همدا راز د حافظ شعرونه تدریس کېدل او ملایانو حافظ او سعدی ته د حضرت په القابو خطاب کولو.

زما د دې لیکنې څخه مقصد د یو بل د فرهنگ منل، یو صادقانه کوښښ د هېواد د ورونو قومونو نیږدیکول وو. دې موخی ته د رسېدو په منظور، د ښه فرهنگ عامه کول او د یو بل لا ښه پېژندنې د کوچنیوالی له دورې څخه لازم دي. په پښتنو مېشتو سیمو کې د ښه تعامل یو ښه مثال وو چې د هغې په اساس د سل کلونو څخه راهیسې پښتو ژبې زده کونکي د قران شریف او پنج کتاب تر څنگ،د سعدي گلستان او بوستان کتابونه او د حافظ اشعارو سره اشنا کېږي.کاشکې چې داشان په غیر پښتون مېشتو کلیو او باندو کې هم عملي شوی وی او زده کوونکو د هغه پښتنو لیکوالانو اثار لکه رحمان بابا او خوشحال خان سره هم اشنا وی.

په تاسف سره د سلهاوو کامنتونو څخه چې ما ته راورسېدل،حتی یو پېژندل شوی روشنفکر تاجک پیدا نشو چې د پښتو مېشتو مناطقو د مدارسو تجربی ته د تحسین په سترګو وګوری.د دی لپاره د پښتو د قوم ضد متعصبین، پښتو او پښتون یو د دری د ژبې او د تاجک د قوم سره یو شان نه دي او نه غواړي چې د یو بل د منلو پروسه وجود ولري. دا متعصبین داسې فکر کوي چې د یو برتره او د یو بهتر نژاد څخه دي او پښتنو ته د حقارت په سترګه ګوري. د خدای څخه شکر کوم چې پښتانه د یو ډېر شریف قوم څخه دي، باادبه او برده بار خلک دي او ۱۵ کاله کېږي چې هره ورځ يې سپکاوی د همدغو متعصبینو لخوا کېږي مګر بیا يې هم تحمل کوي.

د دري ژبه د پښتنو لخوا پراخ بنسټ شوله، د خپل ځان سره يې هندوستان ته یوړه (د غزنویانو د ځواک اکثریت او د غوریانو له پښتنو څخه تشکیل شوي وو)، په افغانستان کې يې دري رسمي اداري ژبه کړه. که پښتانه متعصب او فاشیست وی او خپله ژبه يې په غیر پښتنو خلکو تحمیل کړی وی، نن د ۳۰۰ کاله حکومت څخه وروسته په افغانستان کې به د چا دري ژبه زده نه وی ټول به مجبور وو چې پښتو وغږېږي. لکه عربان چې د دوه سوه کلونو فاشیستي استیلا له لارې يې پر فارس د هغوی ژبه، پهلوي، يی د استفادې څخه وویستله تر دی چې فارسیان د خراسان د خلکو ژبه، د دري ژبه يې خپله ژبه کړه. په تاسف سره چې ایرانیان نن همغه کار ترکانو، کردانو او عربو سره کوي،په ټول ایران کې ترکي، کردي او عربي نشرات نشته دي، پوهېږئ چې ولې؟ د دې له خاطره چې د فارس فاشیزم کردي، ترکي او عربي ته اجازه نه ورکوي. په ایران کې هزاره ګان ځینو پارکونو او حتی ښارونو ته د داخلیدو اجازه نه لري، د ایرانیانو په هدیرو کې ښخیدل او د دفن اجازه نه لري، په روغتونونو کې د هغوی سره په تعصب چلند کېږي.

له نیکه مرغه پښتانه متعصب نه دي، د دري په ارزښت د نننی نظاریانو څخه ډېر ښه پوهېږي او د هغه څخه يې استفاده وکړه.په تاسف سره چې دا ټول د خپلې ژبې د پرمختګ په نظر کې د نه نیولو په بیه سرته ورسېدل او دا په حقیقت کې د پښتنو واکمنو خیانت د خپلی ژبې ته وو.که پښتانه واکمنو په ۳۰۰ کلونو کې متعصب او فاشیست وی نو دا ټول هنرمندان، لومړني طرز جوړونکي، پوهان، ډاکټر، انجینیر، متخصص، دولتي لوړپوړي کارمندان، ديپلوماتان، سفیر، وزیر او لومړی وزیر چې غیر پښتون دی په هېواد کې به نه وو. دا د غیر پښتون کورنیو سره خیښی به سرته نه رسېدلې.

د ۳۰۰ کلونو په اوږدو کې  افغان حکومت د هزاره جاتو د پېښې په استثنا د عبدالرحمن خان په زمانه کې، هېڅ داسې د ذکر وړ پېښه د قومي ځپلو په هېواد کې سرته نه ده رسېدلې.د هېواد ټول قومونه د یو بل تر څنګ په ورورولۍ او سوله کې يې ژوند کړی دی. پښتون مېشت کلی او ښارونه، نه یوازې دا چې د غیر پښتون مېشتو کلیو او ښارونو څخه بهتر رنګ او رونق نه لري مګر د هغوی په پرتله حتی خرابتره هم دي.په پښتون مېشتو سیمو کې  د ښوونې او روزنې سطحه نظر نورو سیمو ته بهتره نه ده، ثروت او دارایي د پښتنو په اختیار کې  نه ده . نو دا فاشیزم د پښتون چې دوی وایی په تیر ۳۰۰ کلونو کې ځای پر ځای دی، نن په کومو ځانګو کې ښکاره شوې او ښکاره کېږي او په کومو مواردو کې د پښتون قوم په نفع تمام شوي دي چې تاجک روڼ اندي او هزاره ډولونه تر غاړې کړی ورځ او شپه په کوڅو کې جار وهي؟ هغه څه چې په افغانستان کې  موجود وو استبداد او بې عدالتي وه، د دیموکراسۍ نه موجودیت وو، اداري

فساد وو،ورسته پاتې د اقتصاد او د فرهنګ په برخو کې  وو، جهل او ناپوهي وه چې د هغوی پایلو د هېواد ټول ورونه قومونه تجربه کوله.

د ۱۵ کلو راهیسې، د مثال په توګه،چې په هزاره جاتو کې محلي قدرت په عملي ډول سره خودمختاره د هرازه جهادي ګوندونو په لاس کې  دی او د نړیوالو مرستو څخه یوه لویه برخه یې هم د دوی په اختیار کې وه، د افغانستان د تېرو واکمنو په پرتله، کوم د ملاحظې وړ لاسته راوړنې دوی نن د ځانه څخه ښودلی شي؟

ځینې  د پښتنو ناقلینو یو ځای کېدل د شمال صفحاتو سره د فاشیستي عمل په شکل یادوي.دغه کسان له یاده ویستل چې په عین حال کې کله په سلګونه زره تاجک، ازبک او ترکمن ناقل یا کډواله کورنۍ د بخارا او سمرقند څخه د استیلا وروسته خیوې او مرو ته په دوه څپو کې، اول د روسیې د یرغل څخه وروسته چې تزاري پر دې سیمو وکړ او د دوهم ځل لپاره د بالشویکي روسیې د انقلاب څخه وروسته د هېواد شمالي صفحاتو ته پورته کښته شول او د افغانستان واکمنو هغوی په خلاصه سینه ومنل کور او ځمکې یې ورته ورکړل. ما تر اوسه یو تاجک روشنفکر نه دی لیدلی چې د دې ناقلینو څخه یادونه وکړي.

که د مصلحتپاله حامد کرزي په ځای بل پښتون سیاستمدار، لکه اشرف غني، د روښانه سیاسي ستراتیژیک لیدلوري د درلودلو سره په قدرت کې  وی نن دا د نظاریانو شورا به قاروني ګنجونو ته لارې له غیر قانوني لارو لاس نه وی پیدا کړي، نن دغه متعصبین دولتي قدرت د پښتنو په نظر کې  د نه نیولو په بیه، ازبکان،ترکمنان او پلوڅان او نورو قومونو په اختیار کې نه درلود،نن جهادي جنګسالارانو به شخصي وسله تون او ځواکونه به یې نه درلود، نن تلویزیونونه، راډیو ګانې، ورځپاڼې او شخصي مجلې د ایران د انقلابي سپاه په پیسو د خپل فرهنګي یرغل سره به زموږ په هېواد کې  فعال نه وو.

د ښاغلي شفیع اعظم په وینا چې یو فېسبوکی ملګری دی ؛په ۱۵ کلو کې  په متواتر شکل د افغان او بهرنیو لخوا بمبارد شوي یو زموږ کورونه ماشومان او راتلونکی د زده کړې څخه لرې پاتې او دوی لا تر اوسه په دې فکر دي چې موږ پر دوی حاکمیت لرو او حکمرانی پرې کوو. ای کاش چې ژوند یو ځل بیا پښتانه ازمایل او معلوم کړی وی چې موږ مظلوم یو که حاکم!؛ښاغلی روښان خادم لیکي: ؛ټول کمنټونه مې ولوستل په دوه شیانو می افسوس راغی لومړی دا چې په تنګ نظر او فاشیستي او د ځینو غیر پښتنو د اخلاق څخه لرې توب او دویم تاسف په دی چې د پښتنو په خوش باوریو چې تر اوسه هم تاسو پوچ مغزه غیر پښتون کسان برابر ګڼی.یوه ورځ به دا پړانګ له خوبه راویښ شي؛.

هغه کس چې موږ هغه غیر پښتون روشنفکر ګڼلو ورځ او شپه یې د جعلیاتو په لیکلو تېروي څو د پښتنو فرهنګي څېرو شخصیت وژنه وکړي، څو د پښتون قوم د فرهنګي پرمختګ څخه مخنیوی وکړي، څو د دوی فرهنګ باندی ملنډې ووهي.تر کله به دا فتنه ګرۍ ادامه لري؟هغه بل د خپل هېواد پر تاریخ ملنډې وهي، د دې هېواد د بنسټ ایښودونکو توهین کوي ځکه په اتفاقي ډول سره هغوی پښتانه وو.

کله چې دا وضیعت ادامه ولري، په پایله کې یې د پښتون ضد تعصباتو لمن وهل، په ډېر احتمال سره په راتلونکې ټاکنو کې به یو پښتونپال وپېژندل شي د جمهوري ریاست د مقام ګټل به یې د دوه میلیونو څخه په اضافه رایو به د ولسمشرى چوکۍ وګټي او دا ځل به د تقلب پلمه هم د شپون او د لیوه د کیسې په شان، اوریدونکی غوږ و نه لري چې وایېوري.حتی که پښتانه سره متفق شي او یو نوماند د اول دور لپاره معرفي کړي، نو راتلونکې ټاکنې به په اول پړاوو کې ختمې شي. داسې ویل کېږي چې د بې پیر ځواب بې مذهب ورکولی شي.هغه وخت د دیموکرات معتدل پښتنو ارزښتونو ته لکه ظاهر شاه، میوندوال، اعتمادي،شفیق، ډاکټر نجیب،کرزی او اشرف غني باندې به پوه شي.

ممکن همدا نوی جمهور رییس به اسماعیل یون یا حکمتیار وي!

دري سپوتنیک په یوه مقاله کې د جوزا په اول کې لیکي، د هندي رسنیو په خبره هورامانپرید په کابل کې د هند سفیر د ګلبدین حکمتیار سره یوه کتنه درلوده او دا کتنه یو ؛یوه نه هېرېدونکې؛؛ کتنه او تاریخی ګڼل کېږي او ویلي یې دي چې حکمتیار اوس د هند او پاکستان لپاره د رقابت اصلي مرکزیت دی.

دا هندي ناظر په صراحت لیکلي دي چې د ؛؛حکمتیار د بېرته راتګ لپاره؛؛ لس کاله پانګه اچول  شوې ده. او هغه به په افغانستان کې تر ټولو لوی قدرت باندې بدل شي. مګر د پانګه اچونکو څخه یې څه نه دي ویلي چې څوک دي.

هندي لیکوال ویلي دي چې د هند د سفیر کتنه د اسلامي ګوند د مشر سره د ای اېس ای د حیرانېدو سبب نه ده شوې ځکه ای اېس ای هره ورځ د حکمتیار د فعالیتونو څخه په منظم ډول خبر دي او هغه د نظر لاندې  ساتي.

هغه د حکمتیار کابل ته د بېرته راتګ زمانه د حکومت د سیاسي ضعف په دلیل ؛؛ملي وحدت؛؛ د امنیتي وضع بدلون د طالبانو په نفع،د امریکا د افغانستان په جګړه کې د نه بریالي کېدو نتیجه ګیرۍ په اړوند او د یو قدرت مند څېرې ضرورت، یې ډېر د اهمیت څخه ډک وبللو.

دا سرچینه د سفیر او د حکمتیار د کتنې اصلي موضوع او جزییاتو په اړوند معلومات نه دي ورکړي؟ مګر د اسلامي ګوند د مشر کتنه د هند سفیر سره په کابل کې یوه تاریخي کتنه بللې ده.؛

په تاسف سره د تاجک  او هزاره متعصبینو په وینا او اعمالو کې، یوه ورځ زموږ د هزاره ورور په وینا احمد سعیدي:؛دا دې پښتون دیو به هرو مرو راویښېږي؛  او هغه ورځ به تاسو د استبدادي او فاشیزم سلطه په مانا پوه شئ او د فاشیست انسان تفاوت به د دیموکرات انسان سره ووینئ. خدای د وکړي چې هېڅکله هم د استیلا د استبداد او قومي فاشیزم تجربه نه کړو.

**ولې یو شمېر کسان د نظام د بدلون په اړوند بیړه کوي؟**

سیاسي فرصتپالان د دې حالت څخه ګټه اخلي د ؛بدلون قیامت؛ د حرکت په پیل، د دولت ځپل یې خپل شعار ګرځولی دی،د دروغو شعارنو له لارې، تفتین، د خلکو غولول او پاڅون ته یې پارول، د نظم پاشل او عامه امنیت پاشل پاروي او د خپلو فعالیتونو لړۍ ته لا نور پراختیا ورکوي.

لکه چې ليدل کېږي، د حکمتيار سره سوله او د هغه بيا کابل کې ښکاره کېدل په افغانستان کې د قدرت معادلاتو کې توپير منځته کړی دی. اسلامي جمعيت،د نظار شورا، د ملي ستم سکتاريستان د مدني ټولنې په همکاری چې ترلي او مطبوعات او سياسي ترلي مبصرين د نظام د بدلون لپاره بيړه لري. د لطيف پدرام په وينا غواړي ؛چې وخت تير نه شي کار يوطرف ته کړئ!؛

هغه د روان کال د ثور د مياشتې په دوېمه نېټه، د ايراني تسنيم خبري اژانس سيمه ييز دفتر ته يو مطبوعاتي بيانيه ور استولې او په هغه کې يې د لاندنيو مواردو په اړوند د نورو مسايلو تر څنګ يادونه کړې ده:

؛د دولت د انحصارګريانو په وړاندې ودرېږئ او د افغانستان سياسي جوړښت بايد تغير ومومي

د افغانستان حکومت پرېږدئ چې د دې هېواد قومونه د خپل مېشتو سيمو د ساتلو مسوليت په خپلو غاړو واخلي.

کله چې د افغانستان د سياسي جوړښت د تغير په اړوند خبري کېږي او د سولې او ثبات لپاره لارې پېژندل کېږي، په خپل ځانونو کې بوخت او انحصارپالونکي د ټاکنو د کېدولو وعدې ورکوي

په داسې يو هېواد کې چې ډيموکراتيک بنسټ پکې لا تر اوسه شکل نه دی نيولی،څنګه هغه ټاکنو ته چې دوی يې تبليغ کوي، کولی شو اميدواره اوسو

د افغانستان په ټاکنو کې په لسګونو زره پردي خلک د پاکستان له خاورې، برخه اخلي او د دې هېواد د ټاکنو راتلونکي ته تغير ورکوي

داسې کوښښونه هم روان دي څو د افغانستان په راتلونکو ټاکنو کې د ولسي جرګې د قومي کېدو لاری هواره شي،

د يو سراسري مقاومت لپاره تيارئ نيسو،؛

د هغه وړانديز د افغانستان د اجازه ورکولو په اړوند ؛د دی هېواد قومونو ته د خپل مېشتو ځايونو د حفظ مسوليت؛ د فدرالي سيستم ماهيت د دې څخه ښکاره کېږي. د يوې شيبې لپاره دا فکر وکړئ چې دولت دا اجازه د قطغن زون ته چې د کندز ولايت، تخار، بدخشان او بغلان ټول پکې شامل دي د يو فدرالي واحد په شکل اجازه ورکړې او په دې زون کې قومونو ځانونه مسلح کړي؟ ايا کولی شئ د دی څخه خرابتره وړانديز په تصور کې هم تطبيق کړئ؟

په داسې حال کې چې پدرام يې تاييد کوي چې په ټاکنو کې به برخه واخلئ، مګر څنګه يې چې له خبرو ښکاره دي، د همدې وخت څخه يې شرايط د ؛ټاکنيزو درغليو؛ شعارونو ته برابر کړي څو د ماتې په وخت کې خپله دی او ملاتړ کونکي يې يو مطلوب پلمه ولري.هغه د ټاکنو او ديموکراسی پروسې باندی عقيده نه لري.د دې له کبله له هر مصيبت څخه سو استفاده، په هره پېښه کې چې دی کولی شي چې د خلکو غصه له تروريستانو څخه د دولت خواته واړوي او دولت ضعيف کړي د دې لپاره غنيمت دی.

***د فیدرالي نظام اجنډا افغانانو ته د منلو وړ نه ده***

د جمعیت د ماتې او ناکامۍ علت، په هېواد کې د نه منونکو موخو څخه یې دی. د جمعیتیانو خراسان غوښتنه د دې مثالونو څخه یو دی چې د اساسي قانون د احکامو په خلاف دي د پښتون قوم سره په ضدیت د افغانستان د نوم بدلېدل غواړي، د افغانستان تاریخ ته بیا کتنه کول، د افغانستان ملي هویت دې ؛افغان؛ چې د دې هېواد د ټولو اوسیدنکو معرف وي نه مني. همدا راز جمعیت غواړي چې افغانستان د یو فیوډالي نظام لرونکی وي، په داسې حال کې چې اکثر خلک د جمعیت د دې اجنډا سره نه یوازې مشکل لري مگر هغه د خپل هېواد د تجزیه او ټوټې کولو کوښښ بولي.

## د گوندونو موقت یووالی

په افغانستان کې سیاسي کړکېچ په مصنوعي ډول سره جوړېږي، رېښه یې په قدرت غوښتنه او د انحصاري قدرتونو چې په اخیرو شپاړس کلونو کې لاسته راوړی د لاسه ورکولو ډار دی.

د رسنیو د راپورونو پر اساس عطا محمد نور د اسلامي جمعیت د گوند څخه او محمد محقق د اسلامي وحدت د گوند څخه د افغانستان د خلکو اسلامي وحدت د جنرال دوستم د اسلامي ملي جنبش حزب د مشر زوی باتور دوستم د کوژدې یا نامزدۍ په مراسمو کې،چې د انقره په ښار ترکیه کې وو، سره یې یو ایتلاف وکړ او په ټولنیز ډول یې وغوښتل چې خپل گډ واضع اعلان کړي.

دا درې کسان چې دا اوس د دولت غړي دي،د هغوی څخه جنرال عبدالرشید دوستم چې دا اوس په ترکیه کې مېشت دی، د ریاست جمهورۍ لومړی مرستیال، محمد محقق د افغانستان د اجراییه ریاست دوهم مرستیال او عطا محمد نور هم د بلخ والي دی. داسې ویل کېږي چې د افغانستان د بهرنیو چارو وزیر صلاح الدین رباني او احمد ضیا مسعود د اسلامي جمعیت د گوند غړي هم د ایتلاف څخه ملاتړ کوی.د احمد ولی مسعود د اخیرو خبرو څخه داسې بریښي هغه هم خپله خولۍ په ایتلاف کې د ؛د شمال د نوی اتحاد؛ خوښه ښورولې ده.

دا ایتلاف د هغه کسانو لخوا چې خپل ځانونه د حکومت په جوړښت کې ؛یوی خواته شوي او د انزوا په حال کې؛ بولی او محمد اشرف غني د افغانستان جمهور رییس باندی ؛د قدرت انحصار؛ تهمت لگوي، منځ ته راغلی.

د دې ایتلاف جوړښت دا ښکاره کوي چې د سپیدار ماڼۍ څخه هم نا امیده شوي او خپله هغه څه چې دوی خپل حق د نظام په جوړښت کې بولي، لپاره یې لستوڼي بډ وهلي. د اجرایی رییس چې خپله د ریاست جمهوري سره خپله مشکلات لري، تر اوسه د دې ایتلاف په اړوند خپل نظر نه دی وړاندې کړی.

په وضاحت سره ښکاري چې ټول اختلاف د قدرت د وېش پر سر دی. ټول دا اړخونه د خپلې برخې څخه په دولت کې ناراضه دي. دا ښاغلي نارینتوب او شهامت د دي نه لري چې له خپلو چوکیو څخه استعفاء ورکړي او یو سیاسي اپوزیسیون د دولت په وړاندې جوړ کړي او د راتلونکې ټاکنو لپاره کار پیل کړي.

هغه څه چې دا ښاغلي يې له ياده وباسی هغه دا دي چې په يو رياستي نظام کې د مرکزي دولت د ادارې برخه وال يوازې او يوازې د جمهور رييس په سليقه ټاکل کېږي څو جمهور رييس د دې توان ولري چې د خپل دولت برنامې په خپل خوښه عملي کړي.دا هغه سياستونه او برنامې دي چې بايد ملي وي او د ټولو قومونو منافع په نظر کې وساتي نه داچې يوازې د يو څو قومونو څخه يو څو کسان چې د خپل قوم د استازيتوب صلاحيت نه لري، د چارو په راس کې وي.

د ټولو څخه مهمه دا چې د موجوده دولت د ولينعمت لپاره، يانې د امريکا حکومت،د جمهور رييس غنې پېژندنه او د موقف تاييد کولو کې هېڅ مشکل نه لري ځکه دا نورمونه او سيستم د امريکا د حکومت د نورمونو او سيستم سره په مطابقت جوړ شوی دی.

دا نوی ايتلافي مثلث، کلونه يې د اتحاد او مخاصمو کې سره تېر کړي دي. دوستم، محقق او عطا محمد نور د طالبانو پر ضد د دريو مليشوو په مشرتابه د سی ای اې په پيسو او وسلو او د امريکا د ځانګړي ځواکونو په مرسته او د اف ۱۸ الوتکو د بمونو په مرسته د ۲۰۰۱ کال د اکتوبر څخه تر ډيسمبر پورې د باميان او سرپل د استقامتونو څخه پر مزار شريف يرغل وکړ. دوی نيږدې دهدادي ته رسېدلي وو چې طالبانو د مزار شريف ښار تخليه کړ او شاته شول او ښار يې د جګړې پرته دغه دری کسانو ته تسليم کړ. د هغې څخه وروسته دا دری جنګسالاران د تسليم شويو په وژلو او د زندانيانو د سلطان رضيه پو ښوونځی کې، د مزار شريف په جنګی قلعه او د ليلی په دښته کې، دری واړه متهمين د بشري حقوقو په نظر کې په نه نيولو او د جنګي جرمونو چې د مجازاتو قابل دي، نړيوال محکمې ته برابروي.

په ۲۰۰۳ کال کې د دې دريو اتحاد په مزار شريف کې دوام درلود او په همهغه کال کې په مزار شريف کې د قدرت په يوه لوبه کې د يو بل سره ونښتل چې عطا بريالی شو. د عطا محمد نور او د دوستم وروستۍ جګړه يو نيم کال د مخه وو.

### د ايتلاف کوونکو سياسي موقف څه و

دوستم د قضايي اتهاماتو د څيړنې لاندې د جنسی تيري په تور د هغه لخوا پر ايشچي چې د جوزجان پخوانی والي وو دی دوستم غواړي چې د غني د دولت د امنيتي پاليسيو طراح او استازی وي. په داسې حال کې چې جمهور رييس اشرف غني دی او حق لري چې د امنيتي ستراتيژيکي سياستونو خپله او د هغه د اجراييه ټيم هر ډول چې يې غواړي وټاکي. يو ماشوم هم پوهېدلی شي چې د دوستم حذف او د هغه تضعيف چې د جمهور رييس ملا يې په ټاکنو کې وتړله، د ټولو څخه د اشرف غني لپاره ضرر لري. په تاسف سره چې د ټوپکسالارانو دغه غير مسولانه کړنې د دوستم دي چې هغه يې د خپل قوم د خلکو سره په نښته کې او نن تجريد شوی د قضايی کړنو له ويرې په داوطلبانه تبعيد کې ژوند کوي.

محمد محقق د افغانستان د خلکو د اسلامي وحدت د ګوند مشر څو وخت دمخه یوه قصه وکړه چې مقامات پیسې نورو ته ورکوي. د هغه موقف د هزاره د قوم د سیاسي مشر په صفت د روښنایی د جنبش د منځته راتګ سره سم په خطر کې دی!

د عطا محمد نور د اختلافاتو د زیاتیدو سره وروسته د ډاکټر عبدالله سره او د عبدالله نه شاملولو د اسلامي جمعیت د ګوند په مشرتابه کې، عطا محمد نور تهدید وکړ چې د سل زره کسانو سره به کابل ته راشي څو د جمعیت غوښتنې سرته ورسوي! دا غوښتنې عطا محمد نور یو څو وخت وړاندې کړې وې چې ۳۰ سفیران، ۳۰ معینان، څو مستقل ریاستونه او ۱۵ انتصابي سناتوران د اسلامي جمعیت لپاره وو. د بلخ والي په دې ورستیو کې هم د دولت د لوېدو څخه (د وزیرانو په شمېر) یې خبرې وکړې چې ځینې به هغه نوماند کړي.

د دی پر بنسټ دا ایتلاف نه څوک بی خبره نیسی او نه ډېر وزن لري.

د کړکېچ حللاره څنګه وړاندوینه کېږي؟

د اشرف غني د ریاست جمهوری د پنځه کلنې دورې څخه یوازې دوه کاله پاتې دی او داسې پلان وو چې په راتلونکي کال کې د ملي شورا او د ولسوالیو د شورا ټاکنې وشي. که د سیاسي فضا خرابوالی که جمهور رییس اشرف غني د بېړني حالت د اعلانولو په کار اړ کړي د دولت د سیاسي مخالفینو په نفع نه دی.

زه فکر نه کوم چې د بېړني حالت اعلانول د جمعیت د ګوند لپاره، د نظار شورا، وحدت ګوند، د دوستم اسلامي جنبش او د روښنایی د جنبش لپاره او د دولت د نورو مخالفینو لپاره ښه وي، داچې خلک د موجوده حالت څخه او د سیاست د مانورونو څخه او د تېرپاله سیاست کونکو څخه په تنګ دي او بېرته عادي ژوند ته د راستنېدو هیله کوي د بېړني حالت د اعلان ښه راغلاست کوي.

د بېړني حالت په اعلانولو، جمهور رییس اشرف غني به هېڅ هم له لاسه ورنکړي. د ریاست جمهوری له اولې ورځې څخه تر نن پورې ده ته فاشیست، تول غوښتونکی، قومپرست، طالب او داعش ویل شوی او د دې څخه نور بدتره صفت پاتی نه دی چې دوی یې ورته نسبت ورکړی.

د دې په خاطر باید سیاسي وضع تر دې اندازې په مصنوعی توګه وخیم نکړی شی چې جمهور رییس دې ته اړ شي چې نهایي قانوني سلاحیت چې په اختیار کې دی، هغه څخه کار واخلي.

د خلکو د پوهې د کچې د ټیټ والي له کبله د ډیموکراسۍ او د مقاماتو د غیر ډیموکراتیک کړنو څخه په داسې حال کې چې د ډیموکراسۍ چېغې وهي، د ټولنې د دیموکراتیکه کولو په لار کې یو مهم او لوی خنډ همدغه دی. صلاح الدین رباني د بهرنیو چارو د وزارت د مقام د ساتنی سره، د یو نړیوالې غونډې څخه چې د ده خپله د هغې وړاندیز کړی وو، د برخه اخیستلو څخه ډډه وکړه. عطا محمد نور په پرله پسی ډول سره مرکزي دولت ته التیماتوم صادروي د ډول ډول پاڅونونو د پیل کولو اخطارونه ورکوي. دوستم د جمهوري ریاست لومړی مرستیال د لوی څارنوالۍ پرله پسی غوښتنه د ایشچی په قضیه کې د څېړنې او کتنې په برخه کې په نظر کې و نه نیوله او خپل ځان یې تبعید کړ.

زه په خپله د مناسبو قانوني میکانیزمونو چې د اقلیتو قومونو متناسب برخه اخیستل د قومي،ټولنیز، مذهبي  د دولتي ادارو په چارو کې، څه په ملي  او یا د ولایتونو په سطحه او محلي، سره مخالف نه یم.د مثال په توګه د امریکا په فدرالي ریاستي سیستم کې، جمهور رییس د خلکو د مستقیمو  رایو د جمع پر بنسټ نه ټاکل کېږي مګر جمهور رییس په غیر مستقیم ډول سره د یو ټاکنېز کالج لخوا ټاکل کېږي. هر یوه برخه د فدرال (ایالت) د ټاکنیز کالج په جوړښت کې   یو معیین شمېر برخوال لري چې د ایالت د نفوس د سلو سره متناسب نه دی او ارتباط ورسره نه لري. دا د تناسب نه موجودیت چې په ښکاره یوه بې عدالتي ده، د دې لپاره دی چې د هغه ایالاتو د حد څخه اضافه برخه وال درلودو څخه مخنیوی وشی، لکه د کلفورنیا،نیویارک، ساسچوسیت او نور ډېر نفوسه ایالات، د جمهوري ریاست پر ټاکنو وضع شوي او د دې شرایط یې برابر کړي چې مرکزي کم نفوسه ایالات هم د جمهور رییس په ټاکنه کې رول ولوبولی شي.

د افغانستان په موجوده اساسي قانون کې   لازم میکانیزم د لا ډېرو صلاحیتونو ورکول موجوده ولایتونو ته دی (کولی شو ملکي ادارو زونونه په سیمو کې  لکه مرکزي زون، ختیځ، سوېلی،شمالی، قطغن، ترکستان،هرات، هزاره جات یا هزارستان، سیستان، لوی کندهار منځ ته راشي).راتلونکې لویه جرګه کولی شي د ولایتي  او محلي شورا ګانو د ټاکنو سیستم تقویت کړي او د هر ولایت د اعلی وزیر مقامونه د ولایتي شوراوو د غړو څخه په نظر کې   ونیسي څو انکشافي او اجرایي چارې د محلي نیازمندیو په اساس مخ ته یوړل شي مګر د والیانو مقام باید د جمهور رییس په صلاحیت کې   پاتې شي.

د اساسي قانون د بدلیدو یا تعدیل په موضوع کې   د ؛اجرایې لومړی وزیر؛د مقام د منځ ته راړلو په موخه او یا په هغه شکل سره چې یونس قانوني تصریح کړی دی ؛ولسي جرګې نظام؛ جوړېدل، باید په ډېر مسولانه ډول سره پرې کار وشي.لازمه ده چې هر ډول اقدام د په دې برخه چې د هغه میکانیزم په لار چې د اساسي قانون څخه تصریح شوی وي، سرته ورسېږي. دا د ملي  وحدت د حکومت دنده ده څو یو کمیسیون چې د اهل خبر څخه جوړ وي په دې اړوند تعیین کړي دا کمیسیون د دې قضیې ټول اړخونه، موافق او مخالف نظریات او د هغوی پایلې د وڅیړي. دا کمیسیون باید:

اول: د ټولو سیاسي ګوندونو څخه، د مدني ټولنیز سازمانونو څخه، اهل خبره او ملي  شخصیتونو څخه غوښتنه وکړي چې خپل  وړاندیزونه د په دې اړوند په یو مشخص زمانی مقطع کې،کمیسیون ته تشریح کړي.

دوهم:کمیسیون د ټول لاسته راغلي  وړاندیزونه وڅېړي او جمع بندي د کړي د هغه د مجموع څخه یو څو مشخص امکانات د اساسي قانون په اړوند موادو کې  تنظیم کړي او ټول شموله بحث له لارې د یو معیین او محدود زماني مقطع لپاره د مستقیم خبرو اترو د ناستو له لارې په مرکز او په ولایتونو کې   او هم د رسنیو له لاری د سرته ورسوي

دریيم:کمیسیون د نهایي پایلې د بحثونو او عامه عکس العملونو کوم چې په رسنیو کې  خپاره شوي جمعبندي کړي او ویی څېړي او د هغو د مجموع څخه یو څو مشخص بدلونونه په اساسي قانون کې   چې ټولنه پرې تاکید او ټینګار کړي، تنظیم کړي او د ملي  وحدت حکومت ته دی  وړاندې کړي.

څلورم: ملي وحدت حکومت د کمیسیون د نظریاتو د څیړنې څخه وروسته، د اساسي قانون تعدیل، لازمه وړاندیزونه (د متقاوتو مواضیعو وړاندیز) د د بحث په موخه په لویه جرگه کې تنظیم کړي او لویه جرگه د بحث او تصمیم نیولو په موخه په دې اړوند راوغواړي.

د دې ډول یو ملي تفاهم د پروسې څخه په ملاتړ کولو،کولی شو ملي مسایلو لپاره د حل لارې ومومو.

## په افغانستان کې د جگړې د مذهبي اړخونو زیاتېدل

د اطلاعاتو پر بنسټ په دوه ځانمرگي بریدونو کې د کابل په لوېدیځ د الزهرا په جومات کې، د یو پولیس افسر د شجاعت په نتیجه کې، هغوی په دې و نه توانېدل چې د جومات منځ ته داخل شي، په پایله کې یې د دې یرغل کونکو څخه یو یې مړ شو بل یرغل کونکی د جومات په اشپزخانه کې خپل ځان منفجر کړ چې ۴ مړه او ۸ ټپیان شول. د یرغل کوونکو شمېر ځینو دوه او ځینو درې لیکلی چې د روژې مبارکې میاشتې د شلمې شپې په ماښام کې ځانمرگو د کابل په لوېدیځ کې د الزهرا د جومات په لمونځ کوونکو حمله وکړه .

د امنیتي ځواکونو د ویښتوب او هوښیارۍ په نتیجه کې، تروریستان په دې و نه توانېدل چې اصلي هدف ته چې موخه یې د لمونځ کونکو د جماعت پر سر حمله وه، ورسېږي، مگر د دې سره سره، یو شمېر نظامي او غیر نظامي، د هغوی څخه حاجی رمضان حسین زاده چې یو قومي متنفذ وو، د دې پیښې په ترڅ کې شهید شو.

داعش د عملیاتو مسولیت په غاړه واخیست.

د امنیتي ځواکونو د ویښتوب او هوښیارۍ په نتیجه کې، تروریستان په دې و نه توانېدل چې اصلی هدف ته چې موخه یې د لمونځ کونکو په نښه کول وو، و نه توانېدل، مگر د دې سره سره، یو شمېر نظامي او غیر نظامي، د هغوی څخه یو قومي متنفذ هم په شهادت ورسېد، د هېواد په گوټ‌گوټ کې یې بیدارۍ را منځ ته کړې

باید په یاد ولرو چې دا ډول یرغلونه کلونه د داعش د منځ ته راتلو څخه د مخه د تکفیري وهابي ډلې په لویېدو سره په پاکستان کې په تېرو دېرشو کلونو کې،په پرله پسې ډول سره سرته رسېدلي دي. اوس چې د داعش تکفیري وهابي جنبش افغانستان ته صادر شوی دی،د دې ډول یرغلونو شاهدان یو.

د دې ډول یرغلونو څخه مقصد او مرام د مذهبي جگړو یو ډول پیل کول په افغانستان کې دي. دا تر ټولو اصلي موخه ده چې تروریستي دښمن پر جوماتونو او مذهبي مرکزونو په پرله پسې یرغلونو په افغانستان کې لاس لري او د لاسته راوړنې لپاره یې کوي.

د حسیني عزادارانو حمله کول د سخي په زیارت کې په کابل او بلخ کې، د حسین د اربعین د عزادارانو پر سر حملې د باقرالعلوم په جومات په کابل کې،یرغل د هرات په جامع جومات، د الزهرا پر جومات کابل کې یرغل او نور څو یرغلونه په دې ډول سره په غزنی، ننگرهار او ...ټول په دې موخه سرته رسېږي چې شیعه او سني د اسلام د دوو لویو

فرقو په نامه په افغانستان کې، د یو بل پر خلاف شي او د فرقو د ترخو جګړو تجربه د عراق او لبنان او پاکستان، دا ځل په افغانستان کې هم عملي شي.

تکفیري سلفي او وهابیان، په کراتو په ښکاره ډول سره، داسې ویلي چې امام ابوحنیفه نه مني او د سنت حنفي د اهل سره په اساس او په اصولو کې مشکل لري.

په دې حساب،د اسلامي نړۍ یننی وضیعت او په دې ځانګړې برخه کې، د افغانستان د خلکو ګډ راتلونکی چې په هغه کې شیعه او سني شامل دي، تاریخي مقابله د تکفیري وهابیت سره دي.

یو شخص د قزلباش په نامه په فېسبوک کې ځومره ښه لیکلي:

؛د حنفي مذهب د اهل سنت په دننه کې تر ټولو بهتره او د افغانستان اهل سنت بیا د نړۍ د تسنن د اهل تر ټولو بهتره دي.

د یو شیعه په حیث تر ډېرو کلونو زه د شیعه او سنی تر منځ په توپیرونو نه پوهېدم او ټول ملګري مې د تسنن اهل خلک وو.

دا پخپله زمونږ د یوزړه توب او اتحاد ښکارندوی دی.

نن هم زما تر ټولو ښه ملګری سني دی او پر هر یو یې ویاړم.

نه په هېڅ ډول سره ایران زمونږ د افغان شیعه ګانو استازی کېدی شی او نه د سعودي وهابیان د افغان سنیانو مشرتابه تر لاسه کولی شي،ځکه دا دوو هېوادونو مذهب د سیاست سره یو ځای کړی،مذهبي تجربې کوي!؛

په واقعیت چې همداسې دی، که سیاسي اسلامپالونکي اجازه ورکړي، زمونږ خلک د هر مذهبه چې وي،یو د بل سره هېڅ مشکل نه لري.

په لومړي ګام کې باید دا حقیقت روښانه کړو چې تکفیري وهابیت او تروریزم چې د هغه څخه یې سرچینه اخیستې ده،نه شیعه پورې او نه سني سره ارتباط لري. هغه د استکبار کړنې، صهیونیزم او صهیونیستي مسیحت دی چې موخه یې په اخیر کې د اسلام د منځه وړل او د کفر حاکمیت د مسلمانانو په ټوله کې د راتلونکې پر سر دی.

له نیکه مرغه هغه غبرګونونه چې د پوهې له امله د مختلفو سرچینو او سیاسي او مذهبي د خلکو د ټولنو لخوا د هېواد په ګوټ‌ګوټ کې د ورستنیو وهابي تروریزم یرغلونو په اړوند چې د کابل په لوېدیځ کې د الزهرا په جومات وشو، دا ښکاره کړه، او هیلمندي یې جوته کړه چې شیعه او سني سره وروڼه دي او پوهېږي چې تکفیري وهابیت د دواړو ګډ دښمن دی او باید چې یو موټی د دې پراخ بنسټه تهدید په مقابل کې مبارزه وکړي، او دا د هېواد د پوه او با خبره ځوانانو خوځښتونو ته مهم دی،لکه هغه خوځښت چې د شیعه او سني محصیلینو لخوا د پولتخنیک په پوهنتون کې په کابل کې جوړ شو، ښکاره کوي چې صریح او ګړندي موضع ګیری، د علماوو بې پردې زړه ور توب او معتبره مسلمان سرچینې او د خلکو په وخت او ټول شموله برخه اخیستل، په چټکۍ سره به محقق شي او د صهیونسیت ملاتړ کوونکو

او د استکباري ایدیولوژۍ د ترور او انحرافي تکفیر او د مزدور رژیمونو لاس نښانه منطقي یې خپلو بدو موخو د لاسته راوړنې څخه د تل لپاره بې هیلې او نااميده کړل. باید ذکر کړو چې:

دا ایران نه دی چې سنیان حتی یو مسجد هم ونلري

دا عربستان نه دی چې شیعه ګان د عبادت حق ونلري

دا بحرین نه دی چې اکثر شیعه خلک د ټول سیاسي او ټولنیزو حقوقو څخه محروم او لرې پاتې وي

دا افغانستان دی چې د کلونو کلونو څخه جومات او تکیه خانه په یوه کوڅه کې جوړ شوي او خلک یې لکه ورونه د عبادت او پرستش په کارونو بوخت دي او د حقوقو د قوانینو په وړاندې ،د دواړو مسولیتونه او وجیبې، سره مساوي دي.

نو تل پاتې او ژوندی د وي افغانستان او ژوندي د وي د هغه شریف او نجیب اوسېدونکي، هر قوم او مذهب سره چې ترون لري یو د بل د سترګو تور دي.

## د حکمتیار عنصر

د دې سره سره چې ډېرو تحلیل کونکو او شنونکو، د حکمتیار سره د سولې په اړوند مختلف نظریات د مختلفو لیدلورو نه ورکړي دي او هر یو یې د هغو شنونکو د علایقو په نسبت د حکمتیار سره، د هغوی نظریات وړاندې شوي دي. .

د دې سره سره چې حکمتیار اعلان کړی دی چې په حاضر وخت کې په دولت کې د برخه اخیستلو په فکر کې نه دی مګر هغه څه چې واضیح دي هغه دا دي چې حکمتیار به هرو مرو کابل ته راځي دا به د ۵۰-۵۰ دولتي شراکت د فورمول د وېجاړېدو په اخیر کې وي او دا حتمي ده چې په دې لړۍ کې اسلامي جمعیت د اوس څخه نشي کولی د دې خپل جوړ شوي خاینانه فورمول د ورانېدو تحمل وکړی.

په عین وخت کې ځینې لوړ پوړي غړي د دولت په دننه کې، د دولت داخلي تمامیت پاشي په ښکاره، د خپل مقام په ساتنه په دولت کې، د اساسي قانون سره په مغایرت، حزبي فعالیتونه، او سمتي او قومي د دولت پر ضد فعالیتونه کوي او دولت ته اولتیماتوم ورکوي. امر الله صالح د وزارت د مقام په حفظ کولو پر ګلبدین حکمتیار ډېره کلکه نیوکه وکړه او صلاح الدین رباني د بهرنیو چارو وزیر د جمعیت له تربیون څخه دولت ته اولتیماتوم ورکړ څو جمهور رییس حنیف اتمر چې امنیتي مشاور وو او نور د مشرتابه مقامات د امنیتي ارګان څخه له دندو لرې کړی او همدا راز د جمعیت د ګوند د فیصلې پر بنسټ د سولې د نړیوالې غونډه کې د ګډون څخه یې ډ ډه وکړه.

# اتمه برخه: مهم سياسي مسايل او د هغو ربښې

**مهم سياسي مسايل کوم دي؟**

هغه پوښتنې چې په تکرار سره په مطبوعاتو کې، رسنيو او په ځانګړې توګه په ټولنيزو انټرنيټي رسنيو کې مطرح کېږي او بحث پرې کېږي دا دي چې:

د هېواد د سياسي بی ثباتيو ربښې کوم شيان دي؟

- ايا د طالبانو د تحميلي جګړې په شرايطو کې، د جمهوريت څخه دفاع کول او د ډيموکراتيک ارزښتونو څخه يې ارجحيت لري يا په ملي مسايلو پيل کول او سمتي، قومي او ژبنيزو نابرابريو؟
- ايا موږ يو واحد ملت د هېواد د قومونو څخه لرو که نه، لکه د ايران ملت، د پاکستان ملت، د هند ملت؟
- که دا ومنو چې يو واحد ملت د هېواد د قومونو څخه لرو چې په نړۍ کې د ؛افغان ملت؛په نامه پېژندل کېږي، ايا دا ملت د قومي،ژبني، مذهبي او سمتي قومونو د ځانګړتياوو په لرلو، ايا يو ګډ ملي هويت يا پېژندنه لري که نه؟
- که ګډ يا ګډ ملت ولرو، زموږ ملي پېژندنه کې کوم عناصر شامل دي؟
- ايا د واحد ملت د موجوديت څخه انکار کول او د ملي ګډ هويت څخه د تېرو ملي نابرابريو د مرتفع کولو په خاطر يو مناسب اقدام دی؟
- د ملي ضد موضعګيريو جرړې په څه کې نغښتې دي
- تاريخي واقعيتونه، اريانا، ايران، خراسان او افغانستان څه دي
- ايا د دې هېواد جوړښت ضروري وو؟
- ايا د افغانستان د دولت بنسټ اېښودونکی د هېواد د وړو قومونو د غوښتنو پر خلاف عمل وکړ؟
- ايا ممکن وو پر دې هېواد د جوړېدو په وخت،بل نوم اېښودلی وو؟
- ايا د پاچاهانو کړنې او اعمال د ګاونډيو هېوادونو څخه توپير درلود؟
- پښتانه د افغانستان په دولتونو کې څه رول درلود او ايا د هغوی رول د هېواد د نورو قومونو په وړاندې ظالمانه او خصمانه وو؟
- څنګه کولی شو د مذهبي افراطپالنې مخه ونيسو؟
- څنګه کولی شو دا تباه کونکې جګړه ختمه کړو؟

- څنگه کولی شو یو موثر دولت چې پکې ټولنیز مساوات، سیاسي خپلواکي او د قانون حاکمیت موجود وي تامین کړو،لاره د اقتصادي او ټولنیز پرمختگ لپاره هواره او منځ ته راوړو؟

دا هغه پوښتنو څخه دي چې زموږ ځوانان یې د با استدلاله ځوابونو د موندلو هڅې کوي. په دې مجموعه کې کوښښ کېږي چې د امکان تر حد پورې دې پوښتنو ته لازم ځوابونه او په لسگونو نورو پوښتنو ته ځواب ورڅخه وموندل شي.

## په هېواد کې د سیاسي بې ثباتی جرړې

د ۱۳۵۲ کال د چنگاښ ۲٦ نظامي کودتا ډېر عطفي ټکي زموږ د هېواد په معاصر تاریخ کې گڼل کېږي.

د دې کودتا له لارې مشروطه شاهي دولت د اساسي قانون سره په افغانستان کې وپرځول شو او یو جمهوري دولت په مطلقه ډول سره د سردار محمد داوود خان پخوانی لومړی وزیر او د شاه د کاکا زوی تر مشری لاندې منځ ته راغی. په راتلونکي پنځه کلو کې په داسې حال کې چې دا دوران د سیاسي ازادیو د ځپلو او ختمولو دوران حسابېږي، مگر د امنیت، ارامی او ټولنیزې رفاه او د بنسټ کېښودو لپاره په اقتصادي پراختیایي برخو کې یو استثنایي طلایی دوران په هېواد کې وو. په تاسف سره چې د دې دوران عمر د امنیت سره، لږ وو. د جمهوري نظام د بنسټ اېښودونکی داوود خان د داخلي ځواکونو جوړښت ته په پام کولو او د داوود خان دا په نظر کې نه نیول د هغه خطر چې دغه ځواکونه کولی شي د هغه رژیم ته خطر منځ ته راولي، کولی شو دې دوری ته د توپان څخه د مخه ارامه دوره ووایو. په ځانگړې توگه هغه اسانه لار ته په پاملرنې چې د ۱۳۵۷ د کودتا عاملینو وکولی شو چې د داوود خان جمهوري نظام له منځ یوسي، کولی شو چې ووایو چې د دې توپان مخنیوی امکان نه درلود.

که د داوود خان کودتا د هېواد د سیاسي دودیز – تاریخي نظام بنسټ چې د احمد شاه ابدالي له وخته ادامه درلوده، د یو ملیپاله ایدیولوژۍ سره له منځه یوړ، د ۱۳۵۷ د ثور اوومه کودتا د هېواد سیاسي او ټولنیز نظام چې په داسې حال کې چې پر یو طبقاتي ایدیولوژۍ یې تکیه کړې وه، تهدید کړ او د ناشیانه اقداماتو په کولو، ظاهري، او ادامه یې د سیاسي گنده شوي نظام په مثال د شوري اتحاد چې د یو حزب څخه وو، د افغانستان ټول جوړونکي عناصر یې په خطر کې واچول. په پایله کې یې د هغه په وړاندې مقاومت ټول شموله شو تر دې چې د کودتا څخه یو نیم کاله وروسته دولت په ۳۵ سلنه د هېواد خپل حاکمیت له لاسه ورکړی وو (د ۱۳۵۸ هجري لمریز د سرشمېرنې په دوران کې د حفیظ الله امین د حکومت په دوران کې د هېواد په ۳۵ سلنه سیمو کې امنیت نه وو). د ډاکټر نجیب اقدامونه ملیپالنې ارزښتونو ته د بېرته راتگ په لار کې په داسې حال کې چې نړیواله ټولنه بی تفاوته وه په هغه کې د شوري پخوانی اتحاد هم شامل وو، د شوروي اتحاد څخه د وروستني دولت د ملي سرچینو وچېدل،په افغانستان کې ډېر ځنډ او ډېر کم وو.

د دې په اساس د پرله پسې نظامي کودتاوو له امله د افغانستان سیاسي ثبات وپاشل شو او د یو سیاسي کړکېچ سره مخ شو چې نن ۴۲ کاله وروسته لا هم ادامه لري.

## د افغانستان د دولت څخه دوه متفاوت ليدلوري

د هېواد په ننني سياسي او ټولنيزه فضا کې چې ډېر صاف نه دی، دوه مختلف ليدلوري د افغانستان د دولت وجود لري. لومړنی ليد لور هغه ليد لوری دی چې د افغانستان د دولت په ژوند کې تر ننه د خلکو په نزد کې شته او د هېواد په پخواني او اوسني اساسي قانون کې ښکاره کېږي. په دې ليد لور کې د هېواد هېڅ قوم پر بل برتري نه لري.

د مقابل ليد لور څخه، يا د نظار شورا او د هغوی د پلويانو ليد لوری، چې په هغه کې ګڼ شمېر تاجک ټبره پرچميان چې نن لومړني طراز فاسيستانو باندې بدل شوي، دي. د هېواد سياسي تاريخ او دولت او د هېواد د قومونو مساوات د پوښتنې لاندې راځي.

لکه چې مخکې مو اشاره ورته وکړه، نن ورځ ځينې خلک ناسم برداشتونه د افغانستان د پخواني او نوي تاريخ په اړوند مطرح کوي. ځينې ننني افغانستان نه مني دې سيمو ته ؛د ايران ځمکه؛ وايي (مجيب الرحمن رحيمي، عزيز ارينفر،عبدالحی خراسانی، عبدل لعلزاد، اصف منصوري، حفيظ منصور، فضل احمد معنوي، او داسې نور) خپل ځانونه د لوی خراسام اوسېدونکي، حتی د لوی ايران او د کوروش کبير له اولادې څخه معرفي کوي د يو نوي هېواد د جوړولو په فکر کې د خراسان په نامه دي.

ځينې نور بيا د تاجک قوم اريايي بولي او پښتانه د هغه څخه بهر بولي. يو شمېر نور بيا د دې سره سره چې قومي تاتاري-مغولي رېښې يې ښکاره دی، يوازې د خبرې کولو په ژبه خپل ځان اريايانو پورې مربوط ګڼي. ځينې په بدو خبرو کولو ظاهر شاه په هکله په دې متهم کوي چې د ؛ايران؛نوم چې په افغانستان پورې تړلی وو د ايران شاه ته په ۱۹۳۲ کال کې تحفه ورکړ.دا کس د فردوسي د شاهنامه کيسی يې د ؛ايران؛ په اړه د تاريخی متون تېروتنه بللې دي د شاه فريدون په فکر کې دي.ځينې بيا کوښښ‌کوي چې د ؛لرغوني اريانا؛ تاريخي اصطلاح د باختري يونان د عصر د دود او رواج څخه لرې کړي په عوض کې يې شووينيستي نوم د ؛لوی ايران؛ او ؛د ايران پشته؛، ؛ختيځ ايران؛ د ايرانيستانو څخه کار واخلي (ډاکټر جاوي، ډاکټر روان فرهادي او داسې نور). په همدغه اساس لطيف پدرام په يوه مرکه کې د يو ايراني تلويزيون سره، پرله پسی د ؛لوی ايران؛ په اړوند غږېدو.

احمد شاه مسعود يو وارې خپل زده کونکو ته په يو خطابيه کې داسې وويل:؛تاجکان د دې سيمو لومړني او تر ټولو اصلي اوسېدونکي دي، وړوکی تمدن مومي او له همدې وجهې په ښارونو کې مېشت دي،هر ځای کې بازار د دوی په لاس کې دی. په اورګون او ګردېز کې بازارونه د دوی په لاس کې دي. پښتانه د هېواد په سوېلي سيمه کې مېشت دي او يو بې فرهنګه قوم دی چې د تمدن او پرمختګ څخه لرې پاتې دی او تر اوسه يې چلند په همغه ډول دی. په تېرو دوه دری سوه کلونو کې حکومتونه قومي، د کورنيو اړيکو پر بنسټ او ظالمانه وو، نور خلک هغه نه قبلوي، نن ټول خلک وسله لري.؛

بی ځایه نه دي چې په دي اخیرو کې د هغه یو زده کونکي، جاوید کوهستاني، په صراحت سره پښتانه بې فرهنګه بولي او دعوخ کوي چې په دې هېواد کې د اکثریت قوم نشته.دغه ښاغلي له یاده ایستلي دي چې ټول ټاکنېز ټیمونه په خپل راس کې یو پښتون نوماند کړی وو او حتی عبدالله عبدالله یو ناڅاپه خپله د پښتون نطفې په فکر کې شو!

ایا پښتانه په همغه ډول سره چې احمد شاه مسعود وایي یو بې فرهنګ او وروسته پاتې قوم دی؟په اتفاقي ډول سره د دې مسئلې څېړنه اسانه ده. د برتره فرهنګ انعکاس په کومو شیانو کې دی؟ ایا کرنیز سیستمونه په تاجک مېشتو سیمو پروان، کاپیسا،پنجشیر، غوربند، سالنګ او بدخشان کې د ننګرهار، کنړ، لغمان،پکتیا،کندهار او هلمند په پرتله پر مختللي او بهتره دي؟د دې پوښتنې ځواب منفي دی. ایا زراعتی ارتباطات په تاجک مېشته سیمو کې نظر پښتون مېشته سیمو ته بهتر دي؟ یو وار بیا د دې ځواب منفي دی.ایا هنري نو اوری او هنري خلاقیتونه په تاجک مېشته سیمو کې لکه پروان او بدخشان د ننګرهار او کندهار څخه بهتر دي؟یو وار بیا ځواب منفي دی.ایا ټولنیز او سیمه ییز ارتباطات په تاجک مېشته سیمو کې نظر پښتون مېشته سیمو ته بهتر دی؟پرله پسی،ځواب بیا منفی دی.

په دی اساس، دغه چې د تاجک فرهنګ د پښتون د فرهنګ څخه بهتر دی،دا په کومو عناصرو کې ښکاره کېږي؟لکه مخکې مې چې اشاره ورته وکړه، د احمد شاه مسعود مثال د تاجکانو ښارونو کې ژوند کول چې د اورګون او ګردېز چې پښتون مېشت ساحې دي، دا مثال یې راوستی. ایا دا درسته ده؟باید چې یادونه وکړم چې په اورګون او ګردېز کې تاجکان یو اقلیت نفوس دی او دا شانتې اقلیتونه د ځمکو خاوندان نه دي.تاجکان په اورګون او ګردېز کې لکه په هره ټولنه کې،چې اقلیت په فیوډالي ټولنو کې په ټوله نړی کې مجبور دي چې حرفوي کارونه لکه تجارت، او صنعت او بزګری باندې کار وکړي. تاسو هندوان او یا سیکانو ته وګورئ په ننګرهار،پروان او کندهار کې. یهودانو ته په ټوله نړی کې وګورئ. دا ټول اقلیتونه د ښارونو مېشته او تجاران دي دا ځکه چې ځمکې نشي اخیستی او ورته مهیا نه وي. په دې اساس دا فرضیه درسته نه ده.

اولیور روی په خپل اصلی او مشهرو کتاب کې د افغانستان په هکله (الیور روی، اسلام او په افغانستان کې مقاومت، کمبریج، دوهم چاپ ۱۹۹۰ز کال) د پښتنو مدني کود ؛ پښتونولي؛ یې ؛دموکراتیک؛بللی دی (۳٦ص) او داسې لیکي ؛په قومي زونونو کې یو مثبت مدني کود یا اساسه د پښتونولی په نامه شته چې سیستم یې د جرګو په اساس ولاړ دی.پښتنولي د یو خوا څخه یوه ایدیولوژي ده او د بلې خوا څخه د مدني حقوقو یوه مجموعه هم جوړوي.دا قبایلي مدني کود یا اساسه په خپل ذات کې غیر مذهبي دی او د قانون، پښتنولی او حتی شریعت سره هم په ځینې ابعادو کې مخالف دی؛.اولیور روی داسې لیکي چې په غیر پښتون ټولنو کې د جزایي قانون اصلي اصول د ؛شریعت؛ پر بنا ولاړ دي اما په داسې حال کې د شریعت څخه پیروي کول یوازې د یو شعار او معیار په نامه پاتي دي،نور هېڅ سیستم وجود نه لري چې د هغې ځای ونیسي؛ (۳۵ص). په طبیعي شکل سره په هغو کلیو کې چې غیر پښتانه هلته مېشته دی،د کلیو او سیمو د حاکمانو او زورورو لخوا او محلي رهبرانو او محلي دیني مشرانو مطلقه زورواکي هلته پلې شوې او د هغې افراطي شکله استعمال او پلې کېدل په هغه کلیو کې چې هزاره مېشته دي او هزاره جات کې ډېر لیدلی شو. د پښتنولی موجودیت خپله د پښتنو د غنی فرهنګ څخه قصه کوي.

مجیب رحیمي ادعا کوي چې د انګلستان امپراتوري او روسیه د حایل دولت د جوړېدو سبب شول چې نوم یې پرې افغانستان کېښود، د دې فکري طرز ملاتړ کونکي د افغانستان د دولت سیاسي پېژندنه د امیر عبدالرحمن خان د عصر څخه رادیخوا محاسبه کوي. موږ په مخکني فصل کې د دی تفکر د ډول نا سموالی مو ثابت کړ.

لطیف پدرام په یوه تلویزیوني مصاحبه کې داسې ښکاره کړې چې ؛افغانستان باید په راډیکال ډول سره بدل کړو او د نړیوال یا بین المللي ځواکونو د موجودیت څخه په استفادې، ملي سمبولونه مات کړو، د افغانستان د دولت ساختمانونه مات کړو، محلي ځواکونه منځ ته راوړو او په غیر پښتون سیمو کې د خودمختارۍ اعلان وکړو؛

د یادولو وړ ده چې د ملکي جوړښت او د افغانستان د دولت نظامي جوړښت انحلال او د ماتولو تیوري د مجاهدینو د قدرت د نیولو وروسته دولت پواسطه د لومړي ځل لپاره، تر هغه ځایه چې زه ترې خبر یم،د ډاکټر امین صیقل په لیکنو کې تاجک ټبر او د استرالیا د ملي پوهنتون استاد د کانبیرا په ښار کې د ۸۰ ز لسیزې په اخیر کې وړاندیز وشو او وروسته بیا د رباني – مسعود د حکومت لخوا عملي شو. باید په یاد ولرو چې ډاکټر امین صیقل د تېرو کلونو په ترڅ کې د اسلامي جمعیت د ګوند د یو ملاتړ کونکي او نظرورکونکي په صفت پېژندلی شوی دی او د هغه سربېره د لوېدیځ دولتونو لپاره د یو مشاور یا سیاسي مشاور په شکل د افغانستان په اړوند، او منځني ختیځ کې ګڼل کېږي او د هغه کشر ورور محمود صیقل د ډاکټر عبدالله عبدالله د ملاتړ کونکو د لومړني لاس څخه دی،په تیرو ټاکنو کې په ملي وحدت حکومت کې د څو کلو لپاره یې د افغانستان د استازي په صفت په ملګرو ملتو کې دنده سرته رسوله.

زموږ د روڼ اندو لپاره تریخ حقیقت دادی چې دې سیاسي اختلاف اصلي رېښه د سیاسي پالیسیو،تولنیز او اقتصادي پالیسیو کې د دوو خواوو د نظر اختلاف د ملي وحدت دولت او د ملاتړ کوونکو او د دواړو اړخوونو تر منځ نه دی، مګر د حکومت په قومي جوړښت او دغه جوړښت کې د قدرت پر سر دغه اختلاف ولاړ دی. د عبدالله عبدالله اړخ،حتی که د تاجک د قوم افراطیان هم شامل نه وي، کوښښ کوي چې د پښتنو د بیا نفوذ څخه په هره بیه چې وي د سیاسي او نظامي مقامونو څخه مخنیوی وکړي. د دې شان لید لوري دلایل د ټاکنو د کړکېچ په اوږدو کې په افغانستان کې ۲۰۱۴ کال د می په ۵ نېټه ډاکټر امین صیقل د سیاسي علومو پروفیسور د استرالیا په ملي پوهنتون کې، د استرالیا په اې بي سي نیوز کې داسې په لنډه بیان کړه:

؛دا تاریخي واقعیتونه یو لړ پښتون څېرو او مشرانو ته داسې یو فکر منځ ته راوړي دي چې داسې فکر کوي چې سیاسي حق د پښتنو طبیعي حق دی. د دوی لپاره د دې خبرې منل ډېر مشکل دی چې د امریکایانو نظامي مداخله او د هغوی د پلویانو مرسته د غیر پښتنو او اقلیتونو په افغانستان کې قدرت ته د رسېدو علت او سبب شي او دا اقلیتونه نور د تاریخي سیاسي تفوق د پښتنو منلی نه شي[17].

---

[17] دری ژباړه د لیکوال لخوا سرته رسیدلی دی

**په افغانستان کې د ملي مسئلې حل!**

د هېواد په نني ټولنيز او سياسي فضا کې، يو شمېر مخربې ليدلور يا کړنلاره د نظار شورا او د هغوی ملاتړ کونکي، په ډېر شدت سره اشاعه کوي چې اساس يې په فکري بنسټ د ؛ستميانو؛ (طاهر بدخشي) باندې ولاړ دی او د ؛ملی ستم؛ پر موجوديت په عقيده لرلو په هېواد کې اوسنی د ملي مسئلی حل د هېواد د کړاوونو په صدر کې ځای په ځای کوي. د دی ډول موضع نيولو اساسي موخه د افغانستان د دولت تاريخي، سياسي، او فرهنگي بنسټونو تخريب او د نفاق او د قومونو په منځ کې نه حليدونکي شخړو د هېواد د ورونو قومونو تر منځ د منځته راوړنې او د هېواد تجزيه يا ټوټې کول دي.

دا نننی صفبندي تر هغه اندازه مخته لاړه چې په وضاحت سره هغه څه چې د هېواد ملي هويت يې بولو، د پوښتنې لاندې يې راولي. ځينې په دې هېواد کې د ملت په موجوديت باور نه لري خپل قومي پېژندنه تر ټولو لوړه بولي خپل ځان ؛افغان؛ نه حسابوي د افغانستان نوم د يو فرد نوم پر ټولو بولي. دوی د افغانستان د مروج دري ژبې سره چې د افغانستان د خلکو د هېواد يو ملي هويت يو بنسټ دی ته د تحقير په سترگه گوري او د هېواد د مروجو دري اصطلاحاتو د استفادې څخه ډډه کوي، د ايران د فارسي مروجو تورو څخه کار اخلي. په عين زمان کې د تاسف ځای دا دی چې دا خلک د دري ژبې په حفظ کې کوښښ او په هېواد کې د مصطلحاتو متداول د ايران د دې فرهنگي يرغل په مقابل کې ؛پارسي ضد؛ بولي. د عجايبو څخه دا هم دی چې ډېر شمېر پروني نېشنليست پرچميان په يو وار سره د ؛ملی ستم؛په موضع کې طاهر بدخشي تاجک سکتاريست چې د پښتنو ضد دی سره ولاړ او ملاتړ يې کوي او د نورو په څنگ کې د عاميانه کلمې ؛اوغان؛خطابولو سره په ښکاره د پښتون قوم په وړاندې توهين او پر پښتو ضد اعمالو لاس پورې کوي.

د دې سياسي مفکورې د مبلغينو د نظر پر اساس، په افغانستان کې موجوده جگړه کې،يو خوا پښتانه او بلې خواته تاجکان او هزاره گان دي. دا هم هغه ليد لوری دی چې د پاکستان پخواني جمهور رييس پرويز مشرف يې تبليغ کولو او د هغه په اساس امريکا او انگلستان يې د په دې قانع کړل چې طالبان د دښمن نه گڼي.د دی سياسي تفکر د مبلغينو لپاره ټول پښتانه د طالبانو پلويان دي، ټول پښتون مشران په دولت کې طالب پلوي دي. د پښتنو څخه ملاتړ کول د طالبانو څخه د ملاتړ کولو سره مساوي بولي. د دې سياسي تفکر مبلغين د هېواد د اساسي قانون په اساس د ؛افغان؛ دکلمې تعريف چې د هېواد ټول ورونه قومونه پکې شامل دي، باندې عقيده نه لری د افغانستان د مليت څخه انکار کوي خپل ځانونه ؛افغان؛ نه بولي.

سليم ازاد د هشت صبح ورځپاڼه کې ۱۳۹۴ د سنبلې په ۴ نېټه وړانديز کوي چې عبدالله عبدالله او د هغه اړخ د د اساسي قانون لويه جرگه جوړه کړي څو د افغانستان نوم او د خلکو ملت ته تغير ورکړي. ايا دا ښاغلی هم هغه کسان نه وو چې د تل لپاره ؛لويه جرگه؛ يې يو مجمع، يو د پښتنون قوم عنصري قبيلوی دود بللو او د هغه جوړول په نني شرايطو کې بی لزومه گڼل؟ اوس چې د دوی منافع يې تقاضا کوي څنگه غواړي د لويې جرگې څخه سو استفاده وکړي؟

د طلوع د تلويزيون ويندويان او خبريالان کوښښ کوي د ايراني فارسي په لهجه خبرې وکړي، د هېواد د دوديزې دري ژبې د کاراخيستو څخه ډډه کوي، د ايران دوديز تورو څخه کار اخلي. ځينې هغه کوښښونو چې د دري د ژبې د مصطلحاتو په ساتنه کې سرته رسېږي، د ايران د فرهنګي يرغل پر ضد ؛ضد د پارسي؛ بولي. د حيرانتيا ځای دا هم دی چې يو شمېر نېشنليستان د پروني د افغانستان د ډيموکراتيک خلق ګوند هم په يو لاسي ډول سره د نظار شورا په موضع کې ؛ملي ستم؛ طاهر بدخشي چې د پښتنو ضد سکتاريست تاجک دی، سره يو ځای شوي ښه ښکاره توګه د پښتنو توهين او د پښتو ضد اعمال سرته رسوي.

د افغانستان په معاصر تاريخ کې درې دورې د ټولو څخه د تياره او مخربې ترينو دورو په صفت،ثبت شوې دي: د کلکانی حکومت (۱۹۲۹ ز)، د رباني حکومت (۱۹۹۲-۱۹۹۶) او د طالبانو حکومت (۱۹۹۶-۲۰۰۱ ز). حبيب الله کلکانی د امانی د دولت ټول اقدامات چې د يو متمدن هېواد د جوړولو په موخه او د علم او ټېکنالوژۍ په زېوراتو ښکلی وو، ودرول او د نهه مياشتني دولت په اوږدو کې يې، زموږ هېواد د پوهنې له پرمختګ څخه په لسيزو لرې او وروسته پاتی شو. د نظار شورا غير متوازن نفوذ د مجاهدينو په حکومت کې د مجاهدينو د ډلو تر منځ د وېجاړونکې او تباه کونکې جګړو سبب شو هر يو په دولت کې د خپل نفوذ د ډېرولو په موخه او د خپل کنټرول لاندې د سيمو د پراخولو په موخه، هېواد يې په کنډواله بدل کړ، د مرکزي دولت نفوذ او قانوني حاکميت له منځه ولاړ په عملي ډول سره هېواد د جنګسالارانو تر منځ وويشل شو. بی ځايه نه دی چې د طالبانو ظهور په ۱۹۹۵ کال کې او د دوی ډېره لاسته راوړنې او برياليتوب د مجاهدينو د حکومت په نړولو او د کابل او نورو ولايتونو نيول په ۱۹۹۶ ز کال کې اکثرا د جګړو څخه پرته سرته ورسېدل،په حقيقت کې د پښتنو نېشنلېزم عکس العمل د يوی خوا څخه او د خلکو د انارشي او په هېواد کې د مستولي بی امنيتيو څخه نارضايتي له بلې خوا پر اساس وو. مګر په تاسف سره طالبانو يو اختناقي مذهبي رژيم د منځنيو پېړيو په هېواد کې ځای پر ځای کړ چې د هغوی ځپل په ۲۰۰۱ کال کې د امريکايي ځواکونو لخوا د محلي مليشوو په مرسته دهېواد د اکثر په ځانګړی توګه د روڼ اندو خلکو په ښه راغلاست مخ شو. د طالبانو د فاشيستي او د منځنيو پېړيو د مذهبي دولت استيلا د ۱۹۹۶-۲۰۰۱ کلونو د پاکستان په مستقيمه مرسته، د افغان ملت پر لمنه يو ننګين داغ په ځانګړې توګه د پښتون قوم لپاره ګڼل کېږي او د دې ډلې د جهل پرستيو او د تروريزم د ادامې تر ټولو لويه قرباني په ديارلس اخيرو کلونو کې ټول د پښتون مېشتو ولايتونو پښتنو چې د پاکستان په سرحداتو کې مېشت دي، ورکړل.

د طالبانو د دولت نړېدل په ۲۰۰۱ کال کې د امريکايي هوايي ځواکونو لخوا د محلي مليشوو په مرسته د ميليونونو نقد ډالرو په بدل کې،د تسليحاتي مرستو او د امريکايي ځانګړي ځواکونو په مرسته يو ځل بيا يې افغانستان د جنګسالارانو د نفوذ په حوزو بدل کړ. په بلخ، سمنګان، جوزجان او فارياب کې د دوستم مليشې، عطا محمد نور او محمد محقق د قدرت واګې تر لاسه کړې، په هرات کې اسمعيل خان، په کندهار کې د حامد کرزي او د ګل اغا شيرزي مليشې، په ننګرهار کې د ختيځې شورا مليشې (حاجی قدير، حضرت علي او نور) او طالبانو د کابل څخه په ډېر چټکۍ د وتلو په پايله کې، د نظار شورا مليشې ښار يې د جګړې څخه پرته ونيولو او د قدرت واګې يې په خپل لاس ونيولې. د بن د کنفرانس څخه لاسته راغلی دولت د دې سيمه ييز قدرت د وېشلو انعکاس په هېواد کې دی او تر نن ورځې د ۱۴ کلو

څخه وروسته مرکزي دولت په دې نه دی توانېدلی چې مرکزي حاکمیت په هېواد کې ځای پر ځای کړي. د کابل په نیولو د نظار شورا او د محلي ملاترو کوونکي لخوا یې او د نړیوال ملاتړ کوونکو د متداومو مرستو په پایله کې یې د دوی لپاره شرایط د دې لپاره اماده شول چې د نظار شورا او پلویان یې یو ځل بیا په غیر متوازن ډول سره په هېواد کې په یو تر ټولو قویتره نظامي او سیاسي ډله بدله شي. د نظار شورا ټول جهادي قوماندانان د ملي اردو جنرالۍ چوکیو ته ارتقا وکړه او سیاسي، اداري او نظامي مهمې چوکیگانې د تېرو ۱۴ کلو په ترځ کې د دوی په اختیار کې شولې او لکه چې د ۲۰۱۴ ز کال د ریاست جمهورۍ ټاکنې ښکاره کړه، په هېڅ وجهه د دې سیاسي، اداري او نظامي قدرت د لاسه ورکولو لپاره حاضر نه دي او حتی د هغه متناسب شراکت هم نه مني.

په دی ورستیو کې شواهد دا ښکاره کوي چې د نظار شورا د عبدالله عبدالله په مشری په دولت کې د دوهم رول د لوبولو څخه په تنگ راغلي، غواړي خپله یو حکومت جوړ کړي. دا ډله دیموکراسۍ او د حکومت قانون ته احترام او ورته پابندي نلري. عبدالله د هېواد د دویم شخص په رتبه کې جمهور رییس ته بې کفایت خطاب کوي، یو والي د عطا محمد نور په شتون کې جمهور رییس ته ویل چې ته زما د دندې څخه د لرې کولو صلاحیت نه لرې او وروسته بیا امان الله گذر اعلان وکړ چې کابل به په خاورو او وینو ورنگوي! د دې څخه اضافه انارشیگیري هېڅ دولت نشي زغملی او باید یې و نه مني. سقویانو د اغتششاش زمزمې کولې، کودتا او د موازي حکومت د جوړولو خبرې یې په کراتو پیل کړې. د سقویانو د بیا په قدرت رسېدلو څخه مخنیوی کول د افغانستان د هر روشنفکر انسان دنده ده!

د افغانستان مشکل بی عدالتي، فساد، وروسته پاتې کېدل دي نه قومي او ژبنیز! فوزیه افشاري په دې ورستیو کې په فېسبوک کې ولیکل:؛یو ځای مو واوریدل چې اسلامي جمعیت او ممکن هم حبیب کلکاني، د افغانستان د فارسي ژبو مشران وو.که د فارسي ژبې کم او یا بیسواده برخه په نظر کې ونیسو، ممکن دا یو واقعیت ته نیږدې خبره وي مگر د فارسي ژبو د روڼ اندې طبقې لپاره چې ډېر لوی هم دی لپاره د مشر درلودل او د چا پر شاه تلل ډېر چندان د احترام وړ هم نه دي؛. زما لپاره دا پورته لیکنه هیله راژوندۍ کړه چې تر اوسه هم ویښ وجدانونه او روڼ اندي چې د تنگو قومي نظریاتو څخه دباندې فکر کوي، لا اوس هم موجود دي. داسې می په فېسبوک کې لوستي وو چې په سلگونو روڼ اندي پښتانه ځینې عناصر لکه امین، ملا عمر او حکمتیار د خپل استازي په صفت نه مني. په دی هیله چې یو شمېر روڼ اندي د غیر پښتون قومونو څخه د فوزیه افشاري سره همغږي شي او د ډیموکراتیک ضد ارتجاعي عناصرو څخه، جگړه مارانو څخه، زورواکانو،غلو او لوټمارانو څخه ځانونه لرې وساتي، ورووليږ،خویندي توب او همکارۍ په اړوند د دې هېواد د ځورېدلو قومونو تر منځ په اړوند تبلیغات وکړي.د دې هېواد مشکل قومي او ژبنیز نه دی، مگر بې عدالتي،فساد، ارتجاع او وروسته پاتې والی دی.په هم هغه اندازه چې زموږ هزاره خلک په بامیانو کې د وروسته پاتې او بیعدالتۍ څخه زجر وړي، په هم هغه اندازه پښتانه او تاجکان خلک هم په ننگرهار، پکتیا،پروان،بلخ او بدخشان کې هم ترې زجر وړي.

**قومي دودیز تړاوونه**

ډېر دقیقې جینیتیکي څېړنې د افغانستان د نفوس په اړوند د انګلستان د پورت سموث د پوهنتون د پوهانو لخوا چې د افغانستان پر قومونو په دې ورستیو کلونو کې سرته رسېدلې دي او پایلې یې په یوه تحلیلي مقاله کې د پلوس وان په جریده کې ۲۰۱۲ ز کال د مارچ په اتمه نېټه په خپره شوه، ښکاره کوي چې د افغانستان د پښتون او تاجک قومونو د جینیتیک له مخې د هېواد د شمال او لوېدیځ هند یو بل سره ډېر نیږدې دي نظر د قفقاز شمال، اروپا او نني ایران...دې پایلی ته رسېږي چې مخکنی د کډوالی تیوري د اریایانو د قفقاز د شمال څخه نني افغانستان او د هغه ځایه څخه هندوستان ته نا سمه ده. دا څېړنې، برعکس د قضیې ثبوت کوي په دې مانا چې پښتون او تاجک قومونه د افغانستان د هند شمال خلکو سره ډېر ورته والی لري نظر خپل ګاونډیانو ته په لوېدیځ او شمال قفقاز ته.

د پښتنو قبیلوي مناسبات د افغانستان د دولت د دوام یوه پشتوانه د تېرو دری سوه کلو لپاره ده. په دې کې شک نشته چې جرګې او لویې جرګې د پښتنو د قومونو دودونه دي.هېڅوک هم دا ادعا نه کوي چې ټولنیز سازمانونه د د لوېدیځ ټولنو د اصولو پر بنسټ منځ ته راشي او پر مختګ د وکړي.مګر د تاریخ په اوږدو کې،دغو جرګو د افغانستان ملت پورې شاملو قومونو ته لازمه فرصتونه ورکړي چې پر مهمو ملي موضوعاتو باندې په ګډه له دې لارې تصمیمونه ونیسي. د نیږدې کلونو مثالونه په نظر کې ونیسو. د بن د کنفرانس تصمیم د دې څخه وروسته چې تصویب یې د یوې لویې جرګې لخوا تصویب شو،مشروعیت یې وموند او د هغه څخه وروسته د ۲۰۰۴ ز کال د افغانستان د اسلامي جمهوریت اساسي قانون یې تصویب کړ. زه حتی یو تاجک،هزاره او یا ازبک مشر نشم په یاد راوستی چې دغه لویې جرګې یې د وروسته پاتې دود او سنتونو په نامه تحریم کړې وي. مګر دا ډول تحریم د ډاکټر عبدالله عبدالله لخوا په ۲۰۱۳ کې د مشورتي لویې جرګې په وړاندې چې د جمهور رییس حامد کرزي لخوا غوښتل شوې سرته ورسېد او د هغه پلویانو د لویې جرګې په تحقیر او ذلیل کولو پیل وکړ او د ملي شورا په موجودیت کې یې راغوښتل غیر لازم او یو قبیلوي دود وپېژندلو. عبدالله او پلویانو یې فکر کولو چې حامد کرزي لویه جرګه راغوښتې چې د هغې له لارې د امریکا سره کړل شوې امنیتي هوکړه رد کړي. د دې سره سره چې حامد کرزي داسې یوه غوښتنه درلود، مګر د هغه د هیلې پر خلاف لویه جرګه د امریکا امنیتي هوکړه تایید کړه او ښکاره یې کړه چې کولی شي په خپلواک ډول سره د وخت د حکمران څخه پرته تصمیم ونیسي. د روزګار د حیرانونکو پېښو څخه دا ده چې په همدې ورځو کې همدغه ډاکټر عبدالله عبدالله او پلویان یې دي چې په بې صبرۍ سره د راتلونکې لویې جرګې د جوړېدو په انتظار دي څکه یوازې او یوازې یوه لویه جرګه کولی شي د هېواد اساسي قانون کې تغیر راولي او د ؛لومړي وزیر؛ مقام د افغانستان په دولت کې منځ ته راولي او د هغه شخصیت ته د افغانستان په دولت کې مشروعیت ورکړي.

هغوی چې د طالبانو خوځښت یو د پښتنو د قوم ځانګړی خوځښت بولي د داخلي تضادونو له امله د مدني کود د ارزښتونو ؛پښتونولی؛ او د طالبانو د خوځښت د ژورو مذهبي څرنګوالي څخه بی خبره دي. صاحبنظر مرادي لیکلي دي چې ؛احمد خان ...د خپلو قبایلو د مشرانو د رهنمایی په خاطر د دې ډول دیني، سیاسي او نظامي اساسنامې څخه استفاده وکړه. د دې ډول مقرراتو څخه په ښکاره ډول جوته ده چې احمد خان یوازې او یوازې په فقهې او اسلامي شرعي

احکامو اکتفا ونکړه د خپلو قبایلو د مشرانو د خاصو مقرریو ضرورت یې د خپلو قبایلو مشرانو او د دوی په مدیریت کې احساس کړ.؛ د احمد شاه ابدالي لخواد مقرراتو او قوانینو د وضع کېدو علت دا وو چې د ؛پښتونولۍ؛ اصول لکه چې پورته پر هغه د اولیور روی له ژبې مو هم ولوست،د قانون په سطح د ؛شریعت؛ سره په تضاد کې دی. د پښتنو په سنتي ټولنو کې پښتانه، په کلیو او بانډو کې، د ملا په سطح نه دی، لکه د غیر پښتون کلیو او سیمو کې په افغانستان کې په ځانګړي توګه بیا په هغه سیمو کې چې هزاره قبیلې هلته مېشته دي. د دې نښانې ټوله ورځ د هزاره وو لخوا او د دې د پلویانو لخوا د محمد محقق د لاسونو د مچې کولو عینی شاهدان د تلویزیونو له لارې موږ ټول یوو.د ملا او د روحاني اشخاصو رتبه په هزاره جاتو کې، د شیعه افغانانو په سیمو کې، د رهبر، پیشوا رتبه صرف تقلیدي رتبه ده. بیا د پښتون په ټولنه کې ملا داسې یو زوررور مقام نه لري.د ملا نقش په سنتي پښتنو مېشته سیمو کې یو مشورتي نقش دی او تصمیم نشي نیولی.د دې لهاذه د طالبانو په داخل کې او د پښتنو د عنعنوي او دود او دستور په سیستم کې یو مرکزي تضاد موجود دی.

باید له یاده و نه باسو چې طالبان د مذهبي مدرسو تولید شوي عناصر دي چې د پاکستان په پښتون مېشته سیمو کې روزل شوي. اکثر دغه افراد د مهاجرینو په کمپونو کې په پاکستان کې زېږېدلي دي هلته لوی شوي په وهابیت او د هغې په اساساتو د ؛محمدي شریعت؛ د لارښوونو څخه لرې تربیه او تدریس شوي. دعربستان سعودي په پیسو او د سعودي او وهابي پاکستاني امامانو لخوا ورته درسونه ورکول شوي.د دوی د اکثریت په فکر او خیال کې د افغانستان سره تعلق، د افغانستان ملي شتمني او ارزښتونه، د پښتنولۍ اصول او د افغانستان نیشنلېزم نشته او وجود نه لري. د دی یو مثال د بامیان د بودایي مجسمې تخریب کول لیدی شو. د پښتنو دولتونو د دری سوه کاله راهیسې چې د پښتنولۍ د دود او دستور سره سم دولتونه وو، دا مجسمه د ملي شتمنۍ په نامه او په حیث لاس هم پرې و نه وهل شو. په داسې حال کې چې طالبان د مذهبي تعصب له مخې بالخصوص د ای اېس ای د هم لاسۍ پواسطه د هندوستانیانو په ضد د دې د ورانولو څخه یې خوند واخیست.د دې سره سره هم، د خپل حکومت په وخت کې طالبانو د هغو دودونو او عنعناتو چې په پښتون مېشت سیمو کې رواج او پلي کېدل، مخه و نشوه نیولی او غرض یې پرې و نکړ.

باید په نظر کې وساتو چې هغه دولتونه چې په یو قبیله باندې استواره وي، او هغه هم په داسې هېواد کې چې ډېرې قبیلې هلته موجودې وي لکه افغانستان چې په دې کې تاریخي ځایونه لکه خراسان، سیستان، بلوچستان، زابلستان،کابلستان، ترکمنستان، بدخشان، غرجستان، افغانستان او نور شامل دي، په دې قادر وو چې د دری سوه کلو څخه اضافه د هېڅ کوم جدي جنبش او یا بیلتون غوښتونکي یا جدایي یا تجزیه طلبۍ څخه پرته، ادامه ولري.جالبه بیا دا ده چې د ریاست جمهورۍ په دی اخیر ټاکنو کې (۲۰۱۴م)، د لسو څخه ډېر نوماندانو بیا په خپل سیاسي او ټولنیز دربحونو کې د تجزیه طلبۍ او حتی د فدرالیزم موضوعات هم شامل کړي وو.د دې عوامل بیا توماس بارفیلد د خپل کتاب په سریزه کې د ؛د افغانستان فرهنګي او سیاسي تاریخ؛ تر عنوان لاندې ذکر کړي، چې سلاطین دورانی د ۱۷۴۷ څخه تر ۱۷۷۸ ز کال پورې سره د دې چې د پښتون ټولنیز نظام څخه یې سر پورته کړی وو، اما د خپل واکمنۍ اساس یې د حکومتدارۍ پر دې موډل کېښود چې د کورنیو په داخلي سلسله د مراتبو ولاړه او مستحکمه وه او په دې شکل یې تنظیم کولو.دا واکمنان د قبیلوي دموکراتیک موډل د تطبیق کولو څخه د پښتون د قبایلو په سطحه موجود

وو، جلوګیري او لرې والی کولو (توماس بارفیلد، ۴ ص).؛ په دې طریق پښتون واکمنو وکولی شو چې د سلطنت او واکمنۍ مدعیان او یا غوښتونکي د قوم او قبیلې د چوکاټ کېدو څخه د باندې کړي او په یو محدوده کورنۍ دایره کې داخل کړي او په دې ترتیب د ممکنه مخالفتونو څخه مخنیوی وکړي.

د افغان دولتونو نیږدې درې سوه کلن تاریخ، د هېواد د قومونو یو ځای اوسېدل او یووالي څخه کیسې کوي. په دې کې شک نشته چې افغان پاچاهان چې په هغه کې امیر عبدالرحمن خان او د هغه څخه د مخه پاچاهان او وروسته بیا د هغه کورنۍ مستبد خلک وو. دا استبداد پر ټولو مخالفینو بالذات او بالقوه د دې څخه پرته چې قوم او نصب ته یې وګوري، سرته ورسېدل. د پښتون قوم ډېر مشران له خپل کور او کلي څخه د هېواد نورو سیمو ته تبعید شول. حتی د نادر خان او د وروڼو په دوران کې یې داسې شخصیتونه لکه ملک قیس د ننګرهار د خوګیانیو څخه د هېواد په نورو سیمو کې په تبعید کې مېشت وو، ملک خان چې د مالیې وزیر وو خپل ټول عمر یې په بند کې تېر کړ. دولتونه ظالمان وو، اما دا ظلم پر ټولو قومونو او مذهبونو باندې شوی. د هېواد پښتون مېشت سیمې د تاریخ په لړ کې د واکمنۍ په اصطلاح د پښتون پاچاهانو د اقتصاد، او ټولنیز زیر بناګانو مواصلاتي او مخابراتي او انرژۍ له نظره د غیر پښتون د مېشت سیمو د هېواد څخه نه یوازې په بهتر حالت کې نه وو مګر د بهتر حالت یې هم نه درلود.

که افغانستان یو باسواده او پرمختللی صنعتي او غیر دودیز هېواد وي، د سیاسي حاکمیت انتقال د پښتنو څخه نورو قومونو ته کېدی شو چې د ډیموکراتیکو اصولو پر بنسټ سرته رسېدلی وي د خپلواکو ټاکنو له لارې. مګر په تاسف سره چې داسې نه دي د پروفیسور امین صیقل په وینا په افغانستان کې ژور دودنه شته ؛د امریکا نظامي لاسوهنه او د متحدینو یې د غیر پښتون اقلیتونو قدرت ته د رسېدو سبب شو؛ او اوس دا غیر پښتون اقلیتونه دې ته حاضر نه دي چې په هېڅ شکل سره، لکه چې په دې ورستیو کې ولیدل شو، چې د ا ؛سیاسي قدرت؛ د ټاکنو له لارې یو ځل بیا پښتنو سره شریک کړي. بې ځایه نه دي چې لطیف پدرام وایي چې د د نړیوالو ځواکونو د رامنځ ته کړل شوي فرصتونو څخه په استفاده، بهتره ده چې کار یوې خواته کړو او په غیر پښتون ولایتونو کې د خودمختارۍ اعلان وکړو.په ویبلاګ کې د محمد سعیدي څخه ؛هزاره پیوستون؛ کې لولو چې : تر څه وخته به غلي وو څو چې نه ویل کېږي چې دیو له خوبه راویښ شي. داسې دیو چې بلاخره به له خوبه ویښېږي؛. افغانستان د ټولنیز او سیاسي جوړښت له مخې په ژوره یو دودیز هېواد دی چې په قومي تړاوونو یې تکیه ده. د دې سربېره، پنځه دیرش کاله داخلي جګړې، فرقه یې، تنظیمي او د پردیو لاسوهنې قومي، سمتی او ژبني اختلافات یې په افغانستان کې لا نور ژوري کړې. په یو دودیز هېواد کې، هر کله چې خلکو ته د ډیموکراتیک ټاکنو شرایط برابر شي، دوی د څنډ څخه پرته، د خپل قوم نوماند ته رایه ورکوي. د ۲۰۱۴ د ټاکنو پایله د ریاست جمهوري لپاره دا حقیقت یې لا نور ښکاره کړ.د ټاکنیزو شور ماشورو څخه په صرف نظر کولو، د روڼ اندو ډلو د رایو څخه په صرف نظر، په عمومي ډول سره پښتون پښتون ته رایه ورکړه، تاجک تاجک ته، هزاره هزاره ته او ازبک ازبک ته. حتی اکثر پېژندل شوي روڼ اندي هم له دی څخه مستثنی نه وو. په داسې شرایطو کې کله چې غیر پښتون و نشي کولی د ټاکنو په لومړي پړاوو کې +۱ په اکثریت د ۵۰ څخه په ټاکنو کې رایې لاسته راوړي، د دې نوماند بریالیتوب په دوهم دور کې د یو پښتون ټېر نوماند په وړاندې ناممکن دی. د یو بې طرفه ناظر لخوا د ټاکنو د اول پړاوو پایلو ته کتنه، چې د هېواد د دیموګرافیک او قومي جوړښت څخه

خبر وي، د دوهم دور پايله د وړاندوينې قابليت او ممکن وو.ما په خپله د ټاکنو د لومړي پړاوو پايلې وڅېړلې په فېسبوک کې په ۲۰۱۴ ز کال د اپريل په ۲۷ نېټه مې وليکل: :... د ساده رياضي حساب په اساس په دوهم پړاوو کې بايد انتظار د دې ولرو چې اشرف غني حد اقل ۵۵ سلنه رايې به خپلې کړي. په هغه صورت کې د پښتون مېشتو سيمو اوسېدونکي دې ته وپاروي چې په ډېره اندازه په دوهم پړاوود ټاکنو کې برخه واخلي، د اشرف غني لخوا د ٦٠ سلنه اضافه رايوو لاسته راوړل د احتمال څخه لرې نه دی.:

لکه چې وليدل شوه په ظاهري ډول سره د رياست جمهورۍ مقام لپاره نوماندان په ۲۰۱۴ ټاکنو کې د هېواد د قومي او ديموگرافيک جوړښت له مخې او په ځانګړې توګه د پښتون قوم د عددي تفوق له مخې څخه خبر او د هغه له پايلې څخه په ټاکنو کې باخبره وو. همدا باخبري د دې باعث شو چې په ټولو ټيمونو کې د رياست جمهورۍ نوماندان د پښتون ټبر قوم څخه وو او دا يې مرستيالان وو چې د نورو قومونو څخه ټاکل شوي وو. ډاکټر عبدالله د خپل پلار د پښتون ټبر رېښې پر بنسټ خپل ځان يې پښتون معرفي کړ په داسې حال کې چې د فرهنګي او سياسي نظره هغه د پښتون قومونو په سترګو کې او په عمومي ډول سره په ټولنه کې په ټوله مانا يو تاجک دی او په ځانګړې توګه ټول د پښتنو ضد سياسي فعاليتونه يې او د افغانستان ضد فعاليتونو يې شاوخواته دايره وهلې ده لکه مجيب رحيمي چې د هغه وياند او د دفتر رييس دی.د دی ځايه څخه دي چې ډېر شمېر سياسي او مدنی شونيست تاجک او هزاره فعال خلک د ناچارۍ له مخې د فدرالېزم په تېروتنه او تجزيه پالنې خبرې مطرح کوي او د تاريخي، سياسي او فرهنګي شرايطو د مساعد کولو په خاطر او د ټولنې د غولولو په خاطر په ځانګړې توګه د روڼ اندو چې د يو شمېر ټولنيزو يوه برخه نابرابريو د مرتفع کولو غوښتونکي دي، د هېواد د تاريخ په جعل يې لاس پورې کړ، په افغانستان کې د ملت د شتون څخه انکار کوي. دا خلک پښتانه د طالبانو په اعمالو او افکارو په ګواهی، وروسته پاتې او غير متمدنه قبايل بولي، غير پښتون قومونه په يوه لوړه سطحه کېويني چې د بېلېدو څخه پرته بله لاره نه لري! په هر فرصت او په هر دليل پښتانه مجازات کول غواړي دوی توهين کوي څو د هېواد د ټوټې کېدو او تجزيې شرايط برابر کړي.

**قومپالنه او پښتون څخه کرکه، پر هېواد د يرغل تر حد پورې**

د ډېر شمېر تاجک روڼ اندو نيشنلېزم تنګ نظري او د پښتون قوم پر خلاف تر دې حده رسېدلی دی چې نن پر هېواد د يرغل پر شکل بدل شوی دی او د دوی موخه يوازې او يوازې ورانول، وېجاړول، ذليل کول او د هېواد او د افغانستان د دولت او په نهايت کې د هېواد د تجزيې څخه پرته بل څه نه دي. که موږ د دې ورانولو پروسه پيل د افغانستان د دولتي سازمان د ويجاړولو سره او د هغه د اردو ځواک د هغه زمان د رباني – مسعود قدرت ته رسېدل د همقوم او همفکرو روڼ اندو په مشوره او نړيوال مشاورين يی(د امين صيقل او بل ميلی ليکنو ته مراجعه وکړی،دواړه د استراليا د ملي پوهنتون څخه په ۱۹۹۰ ز کې) وګڼو، د دی تخريبکارۍ موخه نن د تاريخي هويت په پلورلو، جغرافيايي هويت او ملي هويت او ملي ارزښتونو، ادبي او فرهنګي د افغانستان د هېواد په پايله ختمه ده.

د دې خلکو د فکر فساد او سياسي ارمان هغه وخت د افغانستان د ملت لپاره لکه لمر روښانه شو چې په خپل تېرو وختونو سياسي تاريخي پلټنو کې تلسکوپونو کې يې يوازې حبيب الله کلکانی چې د سقاو د زوی په نامه مشهور دی يوازېنی

تاریخي ځلېدونکی ځېره وموند او د هغه هڅوکي یې په سر پورته کړل.ځینې بیا نور هم وړاندې ولاړل د نادر افشار په قهرمان جوړونه د خراسان د اخرین پاچا په نامه یې پایڅې بډ وهلې په داسې حال کې چې د سیمه ییزو سیاستونو په نړۍ کې نن خراسان ته د رسېدو یوازېنۍ هیله دا ده چې د داعش صفوفو سره یو ځای شي او د خراسان د ولایت جوړښت به وي!

پر پښتون او پر هېواد د یرغل پروسه او د هېواد د تخریب او د هر هغه څه چې په تیر کې د افغانستان په نامه او د افغان په نامه موجود وو په ځانګړې توګه د عبدالله عبدالله د ټاکنېزې ماتې څخه وروسته چې د تاجکانو د نظار شورا او د هزاره ګانو د وحدت د ګوند او د چپي او راسته ملاتړ کوونکو لخوا نوماند وو د پښتون ضد سیاسي ټريبيون څخه په داسې حال کې چې د ډېر شمېرو رسنیو چې بې حسابه مالي سرچینې او تړاوونه یې درلود، د لیونتوب تر حده پورې ورسېد.دا د پښتون او د هېواد په خلاف یرغل د تاجک قومپاله او افراطیانو منځ کې د دې له کبله دی چې هغه تریخ حقیقت نشي هضم کولی چې سیاسي قدرت په یو دودیز هېواد لکه افغانستان کې،چې په اکثر مواردو کې د نوماند قومي تړاو پورې اړه لری، یا د قومي اکثریت د لرلو له لارې د ټاکنو په صندقونو کې، یا د امریکایی بی ۵۲ الوتکو په مرسته یې لاسته راوړل (لطیف پدرام، امین صیقل) او ډاکټر عبدالله عبدالله په دې وتوانېدو چې د امریکا د بهرنیو چارو د وزیر په مستقیمه لاسوهنه د اشرف غني د جمهوري ریاست مقام نیمايي کړی او خپل ځان د هغه شریک کړی په دې ډول یو تقسیم شوي او بی وزله حکومت په داسې حال کې چې تر ټول وخته بدترینو سیاسي، امنیتي او اقتصادي شرایط کې دی، د افغانستان په خلکو تحمیل کړ.

یو شخص د فېسبوکي مولوي په نامه ؛عبدالبصیر بهراوي؛ د پښتون قوم ته په خطاب کې په یو کومېنټ کې داسې لیکلي:؛د څه بی شرفه قوم سره بند پاتی یو؛، بل سړی د پښتون ژبې څخه د ؛دوزخي ژبې؛ په نامه داسې یاده کړی ده. ځکه کومېنټ می لرې کړ نوم یې نه پوهېږم. زموږ هېڅ قوم او ژبې ته باید توهین ونشي. داسې یوه ورځ به راشي چې په دې هېواد کې داسې څوک به نه وي چې مو سره خلاص کړي!

محترم فرید بهمن په دې اړوند داسې لیکي:؛... هزاره ټبر او د تاجک ټبر څخه مشخصې فرقې د عظیم او لوی قدرت په درلودلو مجازي خپرونو ته لاسرسی او د خپل ټبر د قدرتپالو مافیاوو په ملاتړ او د ایران د سپاه پاسداران او ای اېس ای په ملاتړ د دروغو او د توهین سېل او تهمت او کنځل او کرکه د افغانستان د پښتنو خلکو په وړاندې بیولې او جارې کړې دي. دا کم شمېره فرقې مګر په شدت سره متعصب فرقې دي چې زاړه افکار لری. د دی ډلو د غړو تر منځ د ټبر د کرکې کچه مختلفې درجې لري، ځینې یې په روښانه او د هېڅ تامل د نه لرلو په حال کې د پښتنو د فرهنګي کتلې په وړاندې کرکه او بدې خبرې کوي او یو شمېر یې بیا په پټه ویلو د کرکی مسایلو څخه یادونه کوې. دې ته هم باید چې متوجه اوسو چې د پاکستان فرقه پال هزاره ګان په اول ګام کې او په دوهم ګام کې د استرالیا او د کانادا فرقه پاله هزاره ګان په دې برخه کې ډېر فعال دي. د ویلو څخه دې پاتې نه وي چې د افغاني پاسپورت یا تذکرې څخه په استفادې خپل ځانونه د افغان په نامه هلته رسولي دي. توجه وکړئ چې یوازې هغه هزاره ګانو څخه می مطلب دی چې فرقه پالان او د ټبر کرکه لري. (د فرید بهمن د فېسبوک پاڼه ۲۰۲۰ ز د مارچ ۱۵).؛

له بده مرغه دا په داسې حال کې ده چې هېواد د طالبانو د مذهبي  تروريزم په اور کې سوزي او په دې ورستيو کې د داعش تور ښامار په هغه اضافه شوی دی او سيمه ييز دښمنانو د دې هېواد د تجزيې په موخه خپلې تورې لا نورې تيرې کړې دي (د ضمير کابلوف ورستی څرګندونې چې د افغانستان پلان لپاره د روسيی استازی دی ؛ب؛ رابرت بلکويل د امريکا پخوانی سفير په ډهلي کې او نک کلګ د انګلستان د ولسي جرګې غړی په ۲۰۱۱ کال کې   او د ۲۰۰۸ ز کال پلان امريکا او اسراييل د منځني  ختيځ د نقشې د بدولولو په اړوند).

## د قومي کرښو پر اساس د فېدراليزم خپرول او د تجزيې غوښتنه

قومپالنه چې د هر ډول څخه وي او په هره نامه چې وي د ملي مسئلې حل سره، مخرب دی او په اخير کې د افغانستان د تجزيې شور ماشور منځ ته راوړي په ځانګړې توګه په روانو حالاتو کې  چې زموږ د هېواد تقسيمول پر موږ د غلبې لپاره اسانترينه لاره د خپل طالباني مقصدونو د ودې او استعمار په موخه تشخيص کړې دي.د دې پر بنسټ اوس په افغانستان کې ملي مسئله د قومپالنې له لارې نه، نه د هېواد د تجزيې له لارې، مګر يوازې د ديموکراسی او د خلکو سره د دوستی له لارې، واقعيت ته کتنه، اعتماد او د قومونو همکاری له لارې، د حکومت د قانون د تامين، د مافيايي جنګسالارانو يا پخواني جهادي قوماندانانو چې د خپلو کنټرول لاندې  سيمو کې د زمان په فرعونانو بدل شوي،برابر دي.

پوښتنه په دې کې ده چې د شمال ښېلتون د سوېل څخه د تاجک مېشتو ولايتونو لپاره او د هېواد د هزاره مېشتو لپاره چې د هندوکش په سوېلي غرونو کې مېشت دي،څه ګټه لري؟ د جغرافيې له لحاظه پنجشير،پروان، کاپيسا، باميان، دايکنډی او غزنی په عمومي ډول سره د هندوکش د غره په سوېل کې موقعيت لري. يوازې د سالنګ د تونل موجديت او د يو څو صعب العبورو ګردنو موجوديت دا ولايات د هندوکش شمال خواته ولايتونو سره ارتباط ورکوي. د هرات او بادغيس ولايتونو ته لاسرسی،له سوېل څخه په کراتو د هېواد د شمال – ختيځ پر پرتله اسانتره دی. د دې په اساس د دې ټولو ولايتونو مېشت کسان په طبيعي اجبار او د خپل جغرافيې له مخې له پېړيو څخه راديخوا د ختيځ پښتون مېشتو ولايتونو د خلکو سره د ودونو له کبله، د هېواد ختيځ او سوېل لوېديځ کې دی او د ابديت لپاره يو د بل د ښو او بدو ورځو شريکان شوی دي.هرکله چې د تاجک او هزاره ناسنجيده هيله د جدايی پالنې په حقيقت بدله شي، د هندوکش سوېل   خواته په ولايتونو کې هزاره ګان او تاجکان بی له کوم بل امکان څخه به بيا هم د افغانستان اتباع پاتې شي مګر دا ځل به د دوی د سلنه د نفوس په کمېدو په لا نور وړوکي اقليت بدل شي، په عين حال کې   د افغانستان په تقسيم شمال او سوېل باندې، په شمالي کې  مېشت تاجکان خپل ځانونه سم دستي، د ښار اوسېدونکي، د دوی په خپله وينا،د ؛ترکستان؛ نوی جوړ شوي هېواد څخه ممکن وګوري. هو ترکستان ځکه د دې ولايتونو تاريخی نوم په تير وخت کې  چې ډېر لرې  وړاندې  هم نه وو ؛افغاني ترکستان؛ وو.

له بلې خوا چې د تاريخ څخه په ناپوهی د خراسان جوړېدو ته يې په شمال کې زړونه ښه کړي، بايد پوه شي چې هغه څه چې د لرغوني او لرغوني خراسان څخه په افغانستان کې پاتې دي يوازې د بادغيس او هرات ولايتونه دي او يوه برخه د غور، په داسې حال کې چې بلخ  لرغونی تخارستان پورې تړلی دی. په حقيقت کې   د افغانستان په تقسيم کې

او د ؛ترکستان؛ د هېواد جوړېدلو څخه یوازېنی کسان چې ترې ښه برخه به ترلاسه کړي  ترک ټبر او مغولي ازبک ټبر قومونه، هزاره، ترکمن، ایغور، قرغېز چې د هندوکش په شمال کې  مېشت دي به وي. دا قومونو د مغولانو د تاریخ په شاهدۍ، سلجوقیان، خوارزم شاهان، شیبانیان،تیموریان ټول سرتیري او د اس تورې سره زېږېږي او د بل لارې د نه درلودو له کبله، خپل تاریخي حاکمیت به یوځل بیا پر دې  سیمو  لاسته راوړي. په عملي ډول سره به په دې سناریو کې واقعي بایلونکی د بدخشان تاجکان او مغولی دري ژبې د بلخ هزاره ګان وي چې د خپل هم نژادو د تنې څخه د بېلېدو له کبله د هندوکش په سوېل کې په ناڅاپی توګه په یو ډېر کوچني اقلیت د ؛ترکستان؛ په ترک ټبره هېواد کې به د نتني شیباني خانانو تر حاکمیت لاندې به خپل ځانونه ووینې.

اکرام اندېشمند لیکي: ؛که په یو فرضی ممکنه حالت کې په افغانستان کې یو فیډرالي نظام جوړ شي چې په طبیعي ډول سره هغه به قومي معیارونه د دې فیدرال په جوړښت کې به اصلی بنسټ وي، تاجکان او د دري فارسي ژبې خلک به رښتني بایلونکي په دې نظام کې وي. تاجکان د نورو قومونو په خلاف، د هېواد د جغرافیې په ډېرو نقطو کې مېشت دي. تاجکان په هم هغه کچه چې د کندز او بغلان په شمالي ښارونو کې ژوند کوي په همغه کچه د ګردېز او غزني په سوېلي ښارونو کې هم مېشت دي. تاجکان په همغه کچه چې په تخار او بدخشان شمالي ولایتونو کې مېشت دي د هغه څخه لا نور ډېر شمېر يې په لوېدیځ او شمال لوېدیځ بادغیس، فراه او هرات کې موجود دي. تاجکان په همغه ډول سره چې په شمالي ولایتونو کې فاریاب، جوزجان او سرپل کې   ژوند کوي په ختیځو  ولایتونو لکه ننګرهار، لغمان او لوګر کې   هم شتون لری. د تاجکانو حضور او مېشتوالی د افغانستان په مرکزي ولایتونو کې او مرکزي سیمو کې هم ډېر ګڼ دی. د فدرالي نظام جوړښت او د ولایتونو سرحد کښل په فدرالي ډول سره د تاجکانو لپاره ډېر سخت شرایط رامنځ ته کولی شي. په ډېرو سیمو کې   تاجکان په قومي اقلیتونو او د فشار لاندې راځي. په داسې حال کې چې تر اوسه په افغانستان کې د دې فدرالي نظام هېڅ اثرات نه لیدل کېږي، هغه سرحدونه چې د دې ډول نظام غوښتونکي يې د فدرالي نظام لپاره کاږي د بې عدالتۍ یو تصویر او د قومي منازعاتو او شخړو یو تصویر جوړوي. د فدرالي نظام زیان او ضرر د دري فارسي ژبې لپاره، د ډېرو قومونو د ژبې او د افغانستان د ملي  تفاهم د ژبې لپاره به جبران نه منونکې پایله ولري. د دري فارسي ژبې څخه کار اخیستل چې د تاجکانو او هزاره ګانو مورنۍ لومړنۍ ژبه ده او د افغانستان د ټولو قومونو لپاره دوهمه ژبه ده په یو فدرالي نظام کې به محدوده  شي. نه یوازې دا چې د دري فارسي ژبه په افغانستان کې خپله سیمه او قلمرو له لاسه ورکوي، مګر د نورو قومونو خلک د هېواد د علمي او لوی تاریخي ژبې څخه او د یوازېنی بین القومي ژبې څخه به محروم پاتې شي. دا محرومیت د نورو ټولنو د قومونو لپاره چې د پوهانو ظهور يې په پخواني او معاصر تاریخ سره په دې هېواد کې ارتباط لري د دري فارسي ژبې سره پیوستون لري دا به نه جبرانېدونکی وي؛.

د رزاق مامون په وینا (۲۰۱۱ کابل پرس جون) د هزاره ګانو مشکل په دې هېواد او په ګاونډیو هېوادونو کې ؛قومي؛ نه دی، ؛بې عدالتي؛ ده، د محلي مشرانو د ارادو پایله، د شیعه روحانیت مسلطه ټولنه ده، د دوی خپل معامله کونکي هم ټبره قومندانان دي، د طبیعي زیرمو نه موجودیت دی، د اقتصادي او مواصلاتي بنسټونو نشتوالی دی، د تعلیمي او فرهنګي بنسټونو نشتوالی دی، په اخیر کې د دوی د جغرافیې محصورېدل دي، د دوی فزیکي توپیر دی او ځینې هم د مذهبي توپیر د دوی په لویه سیمه کې چې دوی اوسېږي څخه یادونه کوي؛. ایا دا مشکل به د افغانستان سره د وفادارۍ په

قطع کولو حل شي؟معلومه ده چې ځواب منفي دی ځکه که حل کېدو د تېرو ۱۴ کلونو په اوږدو کې چې هزاره مېشت سیمې په عملي ډول سره د حزبونو او خپله د دوی د مشرانو لخوا په خودمختارۍ اداره کېدو په وخت کې به حل شوي وو ځکه لویو نړیوالو مرستو ته یې هم لاسرسی درلود. ښاغلی خلیلي د ۱۲ کلو لپاره د جمهور رییس کرزي مرستیال وو مګر هزاره جاتو ته برق ور و نه رسېد! په دې برخه کې د خلیلي ټوله لاسته راوړنه د هزاره جاتو لپاره یو څو لمریز د برق دستګاوې او ډیزلي جنراتورونه وو چې د هر یو قېمت یې فی کیلوات په ۴۵ افغانۍ دی په داسې حال کې چې په کابل کې ۲ افغانۍ سره مقایسه کوو. اوس نو ښاغلی خلیلي د افغانستان دولتونه مقصر نه بولي.

ملی هویت یو د تعلق درلودلو احساس یو ملت او د یو هېواد په وړاندې دی او د وطنپالنې غرور او د مباهاتو احساس د یو هېواد افتخاراتو ته په طبیعي او داوطلبانه ډول سره د خلکو په منځ کې منځته راځي. هر کله چې یو شخص او یا یو قوم د درې سوه کلونو اوسېدو څخه وروسته داسې د تعلق درلودلو احساس د افغانستان ملت ته او د افغانستان هېواد ته په خپل ځان کې پیدا نه کړ، د هغه خلکو مبارزې د خودمختارۍ په اوږدو کې او خپلواکي دې خلکو ته د افتخار وړ نه وي، د هېواد جګړې او د انګلیس د استعمارګرو په وړاندې مقاومت د دوی لپاره د وطنپالنې غرور شور منځ ته را نه ولی او بر عکس یې دا هېواد د استعمار څخه جوړ شوی او سم شوی ومني او کروش کبیر خراسانی و مني او په تخیل کې د کروش کبیر افتخارات او لوی ایران او ایران زمین د ایران د موجوده دولت په شتون کې چې زموږ ګاوند کې اوسېږي، په حسرت سره د نادر افشار او د صفوي د امپراتورۍ څخه یاد وکړي، د افغانستان د خلکو کوښښونه د دري فارسي ژبې په ساتنه کې چې په متداول ډول سره په دې هېواد کې د ایران د ؛پارسي یرغلي؛ په وړاندې فرهنګي یرغل ومني، په پرله پسی توګه د امیر عبدالرحمن خان د سل کلو څخه د مخه استبداد مخونو ته وکاږي او په عوض کې یې د افشار جګړه او په سرونو د میخونو ټکوهل او د مړو ګډا یې له منځه وړې وي، په دې شکل دی لکه دا شخص چې په عملي توګه به یو پردي هېواد کې مېشت وي او په یو ډېر خطرناکه لار ګرځي. دا لاره بن بست ته ورځي او په زړه پورې مقصد نه لري.

**د افغانستان جیوپولیتیک**

د افغانستان موجوده هېواد د طبیعي سختو شرایطو او د هغه د جغرافیې او د هغه د قومونو د تیت اوپرک مېشت ځایونو له کبله، د تجزیې وړ نه دی. که داسې یوه تجربه تر سره هم شي بیا هم د تاجک او د هزاره قومونو په ګټه چې د تجزیې اصلی غوښتونکي دي، نه تمامېږي او په عملي ډول سره به دوی په تر ټولو کوچنۍ اقلیت په هېوادونو کې ؛افغانستان؛ په سوېل کې ؛ترکستان؛ او د هندوکش په شمال کې باندې به یې بدل کړي.د زمانې جبر او طبیعي شکل باندې د پښتنو،تاجک، هزاره، ازبک او نورو قومونو موقعیت په دې هېواد کې یې د یو بل تر څنګ راوستی او باید یو د بل سره د ژوند کولو لارې ومومي. ښاغلی دستګیر روښنایي د خپل فېسبوک په پاڼه کې د روان کال د می په ۱۴ لیکي:؛تر اوسه امکان او ظرفیتونه د هغو پېښو د مخنیوی لپاره چې هېڅ څوک یې تمه هم نه لري او هېڅوک یې لا غواړي هم نه، موجود نه دی. قوم او قومیت باندې سیاست مه کوئ.دا کار د کرکې او کرکېچ راوستونکی دی. که په افغانستان کې داسې یوه پیښه وشي هغه کسان به په عمل کې داخل شي چې د ړوندو قومي او مذهبي کرکو تحریک کوي او هغه

کسان به ډگر ته راشي چې د انسان وژنه او د وینو تویولو په کار کې د لیونتوب مرحلې ته رسېدلي او دې ته چمتو دي چې په زرگونو انسانان چې په هغه کې ماشومان، ښځې او نارینه د قوم، مذهب، ژبه او سیمې په نامه ووژني؛. خپل شاته باید چې پلونه له منځه یو نسو.

به افغانستان کې د ملي مسئلی حل نه د قومپالنې له لارې، نه د هېواد د تجزیې له لارې،مگر یوازې د دیموکراسۍ او د خلکو سره د مینې له لارې، واقع لیدل، اعتماد او د قومونو د همکارۍ له لارې، د حکومت د قانون د تامین له لارې، د جنگسالارانو د مافیایي یا د جهادي پخوانیو قومندانانو د یرغل د ختمولو له لارې چې د خپل کنټرول لاندې سیمو کې د زمانې په فرعونانو بدل شوي امکان لري. د محلي اداري سیستم اصلاح، د محلي اداراتو د جغرافیا یې حدودو بیا کتنه د قومي،فرهنگي او د لازمه اختیاراتو ورکول د ولایتونو اوسېدونکو ته د هغوی د مشرانو په ټاکنه او د محلي چارو په سرته رسولو کې په داسې حال کې چې د مرکزي حکومت اقتدار او حاکمیت حفظ شي د مشترکه علایقو پر بنسټ دا د ملي مسایلو په حل کې مرسته کوي. هغه محلي اداري سیستم چې د هېواد په اساسي قانون کې شته ۱۳۸۲ نافذه د دلو شپږمه هجري لمریز،د ولایتونو د خلکو د لازمې برخه اخیستو په ډېره کچه د محلي چارو په اداره کې د هغه خلکو او د هېواد د مختلفو قومونو د هېواد په گوټ گوټ کې د خپل راتلونکي مالکان گرځولي د افغانستان د واحد ملت د پراختیا پروسې ته تحکیم ورکوي.

کولی شو په ملي تفاهم سره دا نقیضه د راتلونکې لویې جرگې له لارې مرتفع کړو.

د یو فاسد اقلیت کړنې او اقدامونه د دولتي اداري په تضعیف او بې اعتباره کولو کې، د دیموکراسی د نظام بې اعتباره کول او د دیموکراسۍ د جوړښتونو بې اعتباره کول دي په مستقیمه توگه په هېواد کې د طالبانو لخوا د تروریستي جگړې ادامه چې د پردي استخباراتو په مرسته جریان لري سره مرسته وکړي او همدا د بهرنیو ځواکونو د هېواد څخه د وتلو مرحله یې په تعویق غورځولې ده. پاکستاني استخبارات په افغانستان کې د تروریستي جگړو عامل ؛بین القومي جگړې؛ تعریف کړې دي (پرویز مشرف، ۲۰۱۳) او دا هم هغه برداشت دی چې د امریکایانو په ملاتړ قدرت ته رسېدلي اقلیتونه په افغانستان کې پردی جگړه کوي او دینامیزم د جگړې د تداوم جوړوي چې دا نه صادر شوی تروریزم د پاکستان د پوځ د استخباراتو لخوا د افغانستان د بدلولو په موخه یو تحت الحمایه دولت باندې، مگر ؛ملي مسایل؛ چې په هېواد کې حل شوي نه دي په ځانگړي ډول سره د پښتون قوم کوښښونه د سیاسي تاریخي زعامت د بیا تر لاسه کولو لپاره خپل بولي.

**د تېرو سلو کلونو پېښې او د هغه اړیکه د افغانستان د اوسنیو شرایطو سره**

په ورستیو سلو کلو کې په افغانستان کې د ښه او بد او زشت تر منځ مبارزه په واضېح توگه لیدل شوې ده.د خپلواکۍ له ورځې څخه ۱۹۱۹ ز کال څخه تر نن ورځې پورې د جگړه مارانو تر منځ او د محلي زورواکو او د مرکزي حکومت تر منځ او همداراز د بنسټپالو عناصرو او د روحانیونو د دودیز مشرانو او د ترقیپالو ځواکونو تر منځ مبارزه چې د هېواد د پرمختگ په هیله دي او غواړي هېواد د پرمختللو هېوادونو سره سیال شي، په پرله پسې

توګه جریان لري. د اماني د خوځښت ماته او د نړېدو عوامل شباهت يې د نننی ارتجاعي عواملو سره چې د دیموکراسۍ د پراختیا په وړاندې،د خلکو د مدني اساسي حقوق، د بشري حقوقو پراختیا چې په هغه کې د ښوونې حق او د روزنې او د لومړنیو خپلواکیو حق شامل دی چې فردي ازادي ده لکه د قانون په وړاندې مساوات، د کالیو اغوستل،کار او روزګار تر اوسه هم دا ټول د ورستیو سلو کلونو په شدت لا اوس هم پاتې دي. حتی نننی نسلونه په هم هغه متخاصم نقشو کې چې پلرونو او نیکان یې وو،کې قرار لري.د مثال په توګه که سلو کلو ته نیږدې پخوا خلیل الله خلیلی که د حبیب الله کلکاني په ملاتړ د هغه تر څنګ ولاړ وی، د هغه زوی نن د نظار شورا سره څنګ په څنګ ولاړ دی! نن هم داسې کسان شته چې جهادي مافیایي سلطې د ادامې په موخه، مجاهد انسان له نورو انسانانو څخه بهتر ګڼي د هغوی لپاره لا ډېر امتیازاتو غوښتنه کوي. دا یوازې طالبان نه دي چې د نننی نړیوال متداول فرهنګي مظاهر مخالف دي او د شریعت څخه پرته بل هېڅ قانون په رسمیت نه پیژني مګر شته د پخوانیو مجاهدینو باندونه چې په ښارونو، اطرافو او کلیو کې د هېواد د فرهنګ او د پرمختګ له څنډو سره په مخالفت صحرایي محاکمې جوړوي د خلکو د سنګسارولو قومانده ورکوي. داسې ښکاري چې وخت په افغانستان کې منجمد شوی دی!

د تېرو سلو کلونو په ترڅ کې مذهبي متعصب عناصر چې د پرمختګ سره یا د مودرنیزم سره په مخالفت کې دي، کې بنسټپال، اسلامپال، او په دې ورستیو کې تکفیري وهابي ډلې شاملې دي. هغه کسانو د اماني خوځښت سره مخالف وکړ د دیموکراسۍ په لسیزه کې ۱۹۶۴-۱۹۷۳ ز کې د فردي او ټولنیزو خپلواکیو سره په مخالفت یې پیل وکړ. په دې دوران کې د ښوونځیو د نجونو پر مخونو د تیزابو پاشل رواج شو او د عبدالرحمن د شهادت عامل په لغمان کې، په هرات کې د عبدالقادر او د سیدال سخندان د کابل په پوهنتون کې شو.

اسلامپالونکي د هغه څخه وروسته د فتواوو پر بنسټ چې ګڼې د اسلام دین په خطر کې دی، د داوود خان د جمهوریت په وړاندې یې بغاوت وکړ په ۱۹۷۵ کال کې د پاکستان څخه د ورانکارو وسله والو ډلو د اعزامولو کار یې پیل کړ چې د پلان وزیر علی احمد خرم ترور په کابل کې او د پنجشیر پاڅون څخه یادونه کولی شو.

په همدغه سلسله هغه کسانو چې د اماني د خوځښت سره مخالفت کړی وو په لس کلو کې ۱۹۸۰، ۱۹۹۰ ز پورې، یو ځل بیا ژوند وموند د بنسټپالو جهادي تنظیمونو په نامه او اسلامپالو په نامه د خلکو د پاڅونونو په صفونو کې ننوتل، د خلکو د مقاومت مشري یې د حکومتونو په وړاندې د ثور په کودتا کې د ځان لپاره استعال کړله په زرګونو ښوونځي یې وران کړل او اور یې ور بېرته کړ او په زرګونو بې ګناه ښوونکي او زده کونکي یې په شهادت ورسول.

په تاسف سره نن د ۱۹ کلو په تېرېدو د طالبانو د منځنیو پېړیو د حکومت د نړېدلو څخه وروسته او د قدرت تسلیمول جهادي بنسټپاله او اسلامپالو ډلو ته د افراطپالنې مذهبي تکفیري ذهنیت مجاهد پالنه په درسی نصاب کې دیني مضامین د ښوونې او د هېواد د روزنې په سیستم کې دننه کړل شوي دي او د دې ډول ذهنیتونو د مهمو ټروبیونونو له شاه څخه د ملي رسنیو له لارې په ټولنه کې خپرېږي. په همدې اړه میر عبدالواحد سادات لیکي:

جګړې په اعجازي سرعت په سادګۍ سره د هېڅ جګړې څخه پرته دی تول له کندهار څخه تر جلال اباد او کابل او هرات څخه تر مزار شریف پورې یې یوې خواته ووهل او د منځنیو پېړیو رژیم یې خپله جوړ کړ.

د طالبانو رژیم په سر کې د امریکا لپاره د منلو وړ وو مګر په کراره کراره د دوی د اقتصادي موخو د لاسته راوړنې په لار خنډ شول. د داعش منځ ته راتګ د مجاهدینو د جنبشونو او د طالبانو د ودې د اسلامي منطقوي خلافت د جوړولو تر ټولو عالیتره مرحله ده. که د داسې یو رژیم منځ ته راتلل د لوېدیز او د اسراییل منافع تامین کړي،له هغې به ملاتړ وکړي. مګر د یو ډېر قوي اسلامي خلافت د منځته راتللو له وجهي په ښکاره ډول سره د نفتو د ډېرو سرچینو سره چې منځنۍ اسیا او منځنۍ ختیځ په ځان کې د ننه ولري د لویدیځ او د اسراییل د علیا منافعو مطابق به نه وي. د دي په اساس د دې سره مخالفت موجود دی.

په تاسف سره د پاکستان د ستراتیژیک قدرتمندیو څخه یو د هغه هېواد موقف په تېرو اویا کلونو کې د لوېدیځ د یوازیني متحد په سرلیک په منطقه کې دی.د شوري د اتحاد د نړیدو څخه وروسته د شلو کلو لپاره پاکستان دا امتیاز له لاسه ورکړ،مګر د پوتین بیا د روسیه سیاسي او نظامي نړۍ صحنې کې ظهور،پاکستان یو ځل بیا خپل مهم ستراتیژیک مقام د لوېدیځ لپاره په منطقه کې لاسته راوړ.ما مخکې ولیکل چې امریکا هر وخت پاکستان د افغانستان په پرتله ټاکلی او ترجیح یې ورکړې او د امریکا او د روسیې د رقابتونو په شدت سره د دی خطر رامنځ ته شوی دی چې امریکا افغانستان یو ځل بیا پاکستان ته ورپرېږدي.

**د تروریزم سره مقابله**

په هېواد کې امنیتي وضیعت خورا خراب دی. په افغانستان کې د توپان د موسم په رارسېدو او د سختو لارو په خلاصېدو سره د جګړې موسم زیات شوی او امنیتي وضیعت خراب شوی دی. په افغانستان کې د امنیتي وضیعت په خرابیدو کې د پاکستاني طالبانو پر ضد د پاکستان د لوټماری د عملیاتو رول له پامه نشي غورځول کیدی. د ۲۰۱۴ کال د جون په میاشت کې د پاکستان پوځ د پاکستاني طالبانو سربېره د افغانستان پولې ته څېرمه له قبایلي سیمو څخه د غور، تاجک، چېچین او ازبک جنګیالي افغانستان ته وشړل. یاغیان له خپلو کورنیو سره د طالبانو تر کنټرول لاندې په افغانستان کې د شمالي ولایتونو په ګډون له بدخشان څخه تر فاریاب پورې د منځنۍ اسیا له هېوادونو سره پر پوله پراته دي، چې روسیه یې خپل خوندي پټنځای ګڼي د بدخشان په ولایتونو کې د اټکل له مخې شاوخوا ۵۰۰ بهرنیان له خپلو کورنیو سره مېشت دي، چې ډېری یې تاجکان او ورپسې د ازبکستان اسلامي غورځنګ، چېچنیا او ایغوریان دي.

که څه هم افغان طالبان د دوی تر واک لاندې سیمو کې له دغو یاغیانو سره همکاري کوي. او له دوی سره په ګډه د افغان امنیتي ځواکونو پر ضد عملیات کوي، خو ورو ورو د دواړو تر منځ ډېر اختلافات رامنځ ته شوي دي. بهرني افراطیان له یوې خوا ډېر تاوتریخجن دي او له بلې خوا په خپل ورځني چلند کې د طالبانو پیروي نه کوي.. په بدخشان کې د طالبانو نامنهاده والي مولوي امان الدین وایي چې :د کویټې شورا زموږ څخه غواړي چې د بهرنیو

جنګیالیو سره د میلمه په شکل چلند وکړو مګر موږ د دی جنګیالیو سره ډېر مشکلات لرو.له یوې خوا ځانونه ته مجاهد وایي او له بلې خوا د دوی ښځې له اسلامي حجاب څخه کار نه اخلي؛ مهمتره موضع دا ده چې په کراره کراره سره بهرن جنګیالي د داعش او د دوی هیلو سره لا نیږدې کېږي چې دا په خپل ذات کې د محلي طالبانو سره د اختلاف عمل ګرځي.

روسیه، د طالبانو د جنګیالیو او د بهرني جنګیالیو ترمنځ د هېواد په شمال کې په اختلاف پوه او غواړي له دې مسئلې څخه د افغانستان په شمال او بلاخره د دوی له نفوذ څخه د منځنۍ اسیا هېوادونو ته د داعش د پراخېدو د مخنیوي په موخه ورڅخه کار واخلي. که دا قرار وي چې طالبان د داعش د نفوذ په وړاندې منځنۍ اسیا ته، خنډ شي او د افغانستان په راتلونکي دولت کې هم سهیم شی،نو د دې پر بنسټ د طالبانو سره د روسیې پخوانۍ د ارتباطاتو موجودیت په کامل ډول سره طبیعي ښکاري. له دی سربېره پاکستان،چین، امریکا، سعودي او قطر ټول د طالبانو سره په تماس کې دي نو ولې د روسیې سره تماس درلودل یې شور ماشور منځ ته راوړي.

د ایران جوړې شوې د وسلو د ګدامونو کشف د طالبانو په سلاحکوټونو کې په بامیان کې او د طالبانو د پخواني مقتول مشر ملا اختر منصور پرله پسي د ایران د سفرونو کشف، د طالبانو سره د ایران د دولت د ډېرو نیږدې اړیکو او د ودي حکایت کوي.

د تروریستي اعمالو د ډېریدو سره په افغانستان کې باید په څه شکل مقابله وکړو؟د افغانستان دولت سره امکانات د طالبانو د تروریزم په وړاندې د مقابلې څه دي؟ایا د دی وخت رارسېدلی دی چې د افغانستان دولت د طالبانو جنبش ته د راجستر کولو تهدید وکړ چې د تېروریستي سازمان؛ په نامه یې د ملګرو ملتونو د سازمان په لست کې او هر هغه دولت چې دوی ته پناه ورکوي د تروریزم د سپانسر کونکي هېوادونو په نامه یې راجستر کړی؟ دا تهدید باید د طالبانو لپاره د یو ضرب العجل په ټاکنه سرته ورسېږي څو په هغه معیین وخت کې ټولې مسلحانه فعالیتونه مردود وبولې په افغانستان کې اوربند ومنې صلح امیزه پروسه کې دولت کې د برخه په اخیستو مخ واړوي. دا ډول تهدید به د پاکستان دولت او طالبان د تصمیم نیولو په دوه لاره کې راولې او د دي عملي کېدل د سیاسي، نظامي او اقتصادي وضع د بدلیدو خطر د پاکستان لپاره د ملګرو ملتونو د امنیت د شورا لخوا ګواښ به وي.

مګر د دي پالیسي د غوره کولو مشکل د افغانستان د دولت لپاره په عملي ډول سره دا دي چې د امریکا او انګلستان دولتونه د تل لپاره د افغانستان د جګړې په اړوند د پاکستان برداشت د افغاني بین القومي جګړې په سرلیک منلی دی او ترجیح یې ورکړې ده. ایا دا برداشت نن تغیر موندلی دی؟ایا انګلستان او امریکا له دي ډول موقف څخه به ملاتړ وکړي؟

مهمه پوښتنه دا ده چې ایا روسیه او ایران غواړي چې امریکا او لوېدیځ ته په افغانستان کې مزاحمت منځته راوړې او یا د دوی دا ټول کوښښونه په دې منظور دي چې د داعش له نفوذ څخه منځنۍ اسیا او ایران ته د مخنیوي په موخه د طالبانو په مرسته دي؟ زه دوهم موقف باندې عقیده لرم! په دي اړوند د روسیې او ایران د مناسباتو حدود د طالبانو سره باید پوه شو.د روسیه او ایران مسولانه چلند په دي اړوند لومړی درجه اهمیت لري.

په عين زمان کې کله چې د داعش په وړاندې د مقابلې په موخه د طالبانو د ملاتړ ستراتيژي، لکه څنګه چې د مړينې څخه يې څو ورځې د مخه د جنرال حميد ګل لخوا مطرح شو، د پاکستان د اردو د منلو وړ وي او تطبيق شي بې له بلې لارې،په افغانستان کې د جګړې په دوام يې پايله ختمېږي.شايد هم د پاکستان ضرب العضب عملياتونه او د بهرنيو جنګياليو ځغلول د افغانستان قبايلي منطقو ته د پاکستان د ډار څخه وي چې ګنی داعش په پاکستان کې نفوذ د دې جنګياليو له لارې ډېروي.

روسيه د طالبانو سره د سولې د څلوراړخيزو روان کوښښونه د امريکا په مشرتابه بې ځايه بولي. دا بې ځايه بلل له يوې خوا د طالبانو په منځ کې د يوې متحدې جبهې نشتون د ملا عمر له مړينې وروسته بولې او له بلې خوا د افغانستان د دولت او د نړيوالو متحدينو لخوا د يوې روښانه سياست نشتون، طالبانو ته د امتياز يا برخې د ورکولو په برخه کې بولي.

په هر صورت د پاکستان او د روسيې نقش په افغانستان کې د سولې په تامیین کولو کې او د طالبانو توافق ورسره، ډېر اهميت لري. د افغانستان د دولت ديپلوماسي بايد داسې شرايط منځ ته راولي چې د هغه پر بنسټ طالبان بايد دا احساس ونکړي چې د روسيه او د پاکستان په ملاتړ کولي شي د افغانستان د چارو واګې په غاړه واخلي.

## طالبان، داعش او د افغانستان راتلونکې

داسې کسان شته چې پيښې د يو علت له لاړې څېړي. دا ډول برداشتونه د راپيښ شوي قضيو په ساده کولو تماميږي او پايله يې د خپل ځان غولول او بې لارې کېدل دي. لکه چې پوهېږو په معمولي ډول سره د پېښې او پديدې د منشا او ډېرو علتونو وي چې حتی په ظاهري ډول سره يو بل سره متضاد ښکاري. افغانستان پورې مربوط پيښې او د هغه د بازيګرانو نقش هم بايد د دې علت له لارې يو بل پسې وڅېړو. له دې ډلې څخه ورستني مذاکرات د روسيه، چين او پاکستان په مسکو کې د افغانستان د دولت د برخه اخيستو څخه پرته. البته چې د افغانستان په تياره کې پرېښودل د تشويش وړ دي، مګر بايد ډول ډول جهتونو باندې يې پوه شو.

په اسلامي هېوادونو کې د تېرو پنځوسو کلو تجربه دا په ګوته کوي چې اسلامپالان يو د افراطي مظاعف د ودې لار وهي. که د افغانستان د مجاهدينو لويه هسته، اسلامي ګوند او اسلامي جمعيت ګوند، د مصر د اخوان المسلمين له مکتب څخه د اسلامپالو مکتبيانو څخه جوړ شوي وو، نو د طالبانو دغه محلي اسلامي دوديز او عوامپاله عقايدو پر بنسټ به زموږ نيکونو دا جوړ کړي وي.د اسلام څخه د دې دوو ډولو برداشتونو په مقايسه، داعش په کامل ډول سره يوه نوې متفاوته پديده ده.د داعش فکري بستر وهابي، سلفي، تکفيري جنبش جوړوي چې موخه يې د اسلام د پراخېدو د زماني د عقايدو او کړنلارو پراخول او منځ ته راتګ يې د اسلامي خلافت پر بنسټ ولاړه ده. د نړۍ په دوه برخو د کفر او اسلام وېشلې ده او د کفري هېوادونو اشغال د دې خلافت موخه بولې د موالې ګيرۍ عهد د بيا راتګ چې په هغه کې د کافرانو وژنه د مجاهدينو وجيبه بلل کېږي د هغوي د نارينه او د هلکانو اسير نيول او د ښځو او نجونو په وينځه بدلولو او د هغوي د شتمنيو غضب جايز بولي.داعش دا تګلاره په سوريه او عراق کې زره په زره تطبيق کړ او په څو تېرو

کلونو کې نړۍ د خلکو د ښځو او نجونو د پلورلو د بازارونو، جهادي اجباري نکاح کولو،تر ټولو حولناکترینو جنایاتو خاص د محمدي اسلام تر نامه لاندې د داعش لخوا شاهد وو.

د وهابي، سلفي جنبش تخم له دوه سوه کاله راهیسې په عربستان کې شته و چې پایله یې د ال سعود د وهابي ایدیولوژي پر بنسټ د دولت جوړېدل د انګلستان او امریکا په مرسته دي. سعودیان هر کال په سلګونه میلیون ډالر د وهابي ایدیولوژۍ د ودې په برخه کې په اسلامي نړۍ کې لګوي چې په دې پالیسۍ کې د پاکستان د سلګونو مذهبي مدرسو او جوماتونو جوړول دي.مګر د دې دولت مورثي سلطنت اوسېدل په خپل ذات کې د اسلام د سلفي ایدیولوژۍ سره چې بنسټ یې د اسلام خلاف دي ولاړ او سره تضاد لري.

د شک څخه پرته د داعش ورځ په ورځ د نفوذ ډېریدل په افغانستان کې د پاکستان، روسیې او د چین د تشویش سبب شوي دي. په دې کې هم شک نشته چې داعش یوازې د د دریو هېوادونو لپاره د امنیت جدې تهدید دي مګر افغانستان او د سیمې ټول هېوادونه د ایران په شمول لپاره هم بلل کېږي. د پاکستان لپاره داعش یو جدی تهدید دی په ځانګړې ډول سره چې داعش د پاکستان د اردو د استخباراتو څخه د باندې جوړ شوی دي او په منطقه کې یې ولې رېښې کړې او د پاکستان اردو یې د یو جدي تهدید سره مخامخ کړې ده. بې ځایه نه دي چې جنرال حمید ګل، د دې تروریزم د ډلو معنوي پلار په پاکستان کې مېشت، د خپل مرګ څخه څو ورځې د مخه په یوه مرکه کې د پاکستان اردو ته توصیه وکړه چې د افغانستان د طالبانو څخه د داعش د نفوس د مخنیوۍ په موخه په پاکستان کې کار واخلي. هغه فکر کولو چې داعش د ایران او افغانستان له لارې پاکستان ته نفوذ وکړي.نننی شواهد د دې خلاف ښکاره کوي.حنیف اتمر د افغانستان د جمهوري ریاست ملي امنیت شورا رییس په دې ورستیو کې تایید کړه چې داعشیان د پاکستان له خاورې څخه د ننګرهار ولایت کې نفوذ کړی او پاکستاني اتباع په هغه ولایت کې د داعش په مړیو کې شامل وو.

د پاکستان اردو د خپل ژوند په اوږدو کې د افراطي مذهبي ډلو څخه اول د هندوستان په ضد او ورسته بیا د افغانستان پر ضد استفاده کړي خپله خاوره یې د نړیوال تروریزم د هدایت او تربیې په مرکز بدله کړې. په کشمېر کې د افراطیونو په ماته او په افغانستان کې د بنبست په منځ ته راتللو، په تدریجي ډول سره خپله پاکستان د لا غوړې کپلي په شکل افراطي اسلام ته ښکاره شو او پاکستاني طالبانو د پاکستان اردو او دولت ته په مستقیم تهدید او ګواښ بدل شول.

په هېواد کې امنیتي اوضاع ډېره خرابه ده. هر کال د ګرمۍ د موسم په رارسېدو په افغانستان کې او د صعب العبورو لارو په راخلاصېدو، جګړې ډېرېږي او امنیتي وضع لا نوره خرابېږي. د افغانستان د امنیتي اوضاع په خرابېدو کې د پاکستان د ضرب الغضب عملیاتو نقش د پاکستاني طالبانو په مقابل کې نشو کولی له نظره وغورځوو. د پاکستان اردو د ضرب الغضب د عملیاتو په تر سره کولو، د ۲۰۱۴ کال د جون څخه راپدیخوا، د پاکستاني جګړه مارانو سربېره د ایغور، تاجک، چېچین او ازبک جګړه ماران د خپلو قبایلي سرحدي ځایونو څخه افغانستان خواته استولي دي. دا جګړه ماران،ځینې خپلو کورنیو سره،د طالبانو د کنټرول لاندې سیمو کې په افغانستان کې خپاره شول، له هغې ډلې څخه شمالي ولایتونه چې د منځنۍ اسیا د هېوادونو سره همسرحده له بدخشان څخه تر فاریاب پورې دي چې روسیه هغې ته د خپل امنیتي حوزې په په سترګه ګوري . د بدخشان په ولایت کې ویل کېږي چې د ۵۰۰ بهرني جنګیالي اکثر یې

د خپلو کورنیو سره مېشت دي چې ډېر شمېر یې تاجکان دي او د هغه څخه وروسته د ازبکستان اسلامي جنبش پورې تړلي جنگیالي، چېچینیان او ایغوریان دي.د دې سره سره چې افغان طالبان د دې جنگیالیو سره د خپل کنټرول لاندې سیمو کې مرسته او همکاري کوي او ګډ عملیات ورسره د افغان امنیتي ځواکون په مقابل کې سرته رسوي، مگر په کراره کراره ډېر اختلافات د دې دوو ډلو تر منځ منځته راغلي دي. تر ټولو مهمه موضوع دا ده چې بهرني جنگیالي په کراره کراره د وخت په تېرېدو د داعش او د هغو د موخو سره لانور نیږدې کېږي چې دا پخپل ذات کې د محلي طالبانو سره د اختلاف په پایله سرته رسېږي.

روسیه، د طالبانو د جنگیالیو او د بهرني جنگیالیو ترمنځ د هېواد په شمال کې په اختلاف پوه او غواړی له دې مسئلې څخه د افغانستان په شمال او بلاخره د دوی له نفوذ څخه د منځنۍ اسیا هېوادونو ته د داعش د پراخېدو د مخنیوي په موخه ورڅخه کار واخلي. که داسې وي چې طالبان د داعش د نفوذ په وړاندې منځنۍ اسیا ته، خنډ شي او د افغانستان په راتلونکي دولت کې هم سهیم شي، نو د دې پر بنسټ د طالبانو سره د روسیې پخواني د ارتباطاتو موجودیت په کامل ډول سره طبیعي ښکاري. له دې سربېره پاکستان،چین، امریکا، سعودي او قطر ټول د طالبانو سره په تماس کې دي نو ولې د روسیې سره تماس درلودل یې شور ماشور منځ ته راوړي. د ایران جوړې شوې وسلو ګدامونو کشف د طالبانو په دیپوګانو په بامیان کې او د طالبانو د پخواني وژل شوي مشر ملا اختر منصور پرله پسې ایران ته سفرونه، د طالبانو سره د ایران د دولت د ډېرو نیږدې اړیکو او د ودي کسیه کوي. لکه چې ښکاري دا هېوادونه د جنرال حمید ګل مشوره د طالبانو په ملاتړ کولو د داعش په مقابل کې ډېره جدي نیولې ده.

په تاسف سره د پاکستان دغه برداشت، چې جګړه په افغانستان کې یوه ژبنیزه او قومي مبارزه په عمومي ډول سره د پښتنو، تاجکانو او هزاره ګانو تر منځ ده، د پښتون قوم په مقابل کې د نظار شورا او د ملاتړ کونکو یې له موضعګیریو څخه سرچینه اخلي (د پاکستان د پخواني ولسمشر جنرال پرویز مشرف د طلوع تلویزیون سره وروستۍ مرکې ته مراجعه وکړئ). دا کسان او ډلې که په دولت کې دننه او یا ورڅخه د باندې دي،څه د مدني ټولنې په جامه کې او که د مطبوعاتو او ورتړلې رسنیو له لارې د پښتنو او طالبانو تر منځ کوم توپیر نه ویني او د پښتون قوم ټول مشران چې په دولت کې دننه او که ورڅخه دباندې دي د جمهور رییس غني په شمول،ټول طالب یا طالبپالان بولي او په همدې بنسټ‌د هېواد په شمال کې د جګړو لا پراخېدل د همدې کسانو له ملاتړ څخه بې برخې نه دي .

شواهد ښکاره کوي چې په افغانستان کې د طالبانو په اړوند موجوده ابهام یا عدم د توضیحاتو د امریکا په سیاست کې افغانستان کې د دولت له لورې د ملګري او د دښمن د رسمي تعریف د نشتون، ټول پکې برخه لري. دا د لارې ورکېدل د طالبانو د مسلحانه مبارزي د څرنګوالي او ډول پورې په افغانستان کې هم نغښتې دي. داسې ابهامات د افغانستان د دولت په نړیوال دوستي سیاستونو او پر طالبانو هم اغېزه کوي. د افغانستان په اړوند د امریکا په سیاستونو کې ابهام،د افغانستان په شان هېوادونه لکه پاکستان او عراق د دې هېواد د ابن الوقتي پالیسیو څخه سرچینه اخلي. هغه څه چې د امریکا نړیوال سیاستونو ته لارښوونه کوي ایدیولوژیک او سیاسي اصول دي،لکه د بشر حقوق، دیموکراسي، خپلواکي، د ژوند د چاپیریال ساتنه، مذهب او نور نو د دې هېواد ستراتیژیکي او تکتیکي منافع د نړۍ د هژمونۍ په تامیین کې

دي. امريکا په ډول ډول سياسي-نظامي ډلو په منځته راتللو او زوال هېوادونو کې لکه مجاهدين او طالبان په افغانستان کې، داعش او النصر په عراق او سوريه کې او د دوی نورو ډولونو سره مرسته کوي او کله کله بيا ورسره مخالفت کوي.

چې وهابي، سلفي،تکفيري جنبش په مسلمان ټولنو کې موجود نه وي لوي قدرتونه لکه امريکا او انګلستان د هغه په جوړولو قادر نه دي. د دې جنبش نطفې له دوه سوه کلو څخه راهيسې په عربستان کې موجودې دي چې پايله يې د ال سعود د دولت جوړېدل د وهابي ايديولوژی سره د امريکا او د انګلستان په مرسته په عربستان کې شو. اوس د دي دولت موروثي سلطنتي اوسېدل په خپله د اسلام د سلفي ايديولوژي سره چې اساس يې د اسلام پر خلاف دی، په تضاد کې دي. په حقيقت کې د ؛اخواني؛ جنبشونه د نننی طالبانو بستر او په پايله کې يې نننی داعش لپاره ځاله جوړوي او لاره هواروي.په افغانستان کې سياسي اسلامي جنبشونه لکه،د ګلبدين اسلامي ګوند، او د رباني جمعيت په کلونو خولې تويې کړې مګر داسې اسلامي جنبش لکه د طالبانو – چې د دوی ټول ايديولوژيګاني د اسلام او شريعت څخه د عاميانه برداشتونو پر بنسټ جوړ دي او د عامو خلکو په ذهن کې عام فهمه د جوړ نکړی شو. د جګړې په اعجازي سرعت په سادګی سره د هېڅ جګړې څخه پرته ټول له کندهار څخه تر جلال اباد او کابل او هرات څخه تر مزار شريف پورې يې يوي خواته ووهل او د منځنيو پېړيو رژيم يې جوړ کړ. رباني، ګلبدين او نور د سياسي اسلام مشران د طالبانو د اسلامي دولت د جوړېدو بستر برابر کړی دی. افراطي مذهبي تاجک او ازبک ډلو همدغه کار په منځنۍ اسيا کې وکړ. د طالبانو رژيم په سر کې د امريکا لپاره د منلو وړ وو مګر په کراره کراره د دوی د اقتصادي موخو د لاسته راوړنې په لار کې خنډ شول. د داعش منځ ته راتګ د مجاهدينو د جنبشونو او د طالبانو د ودې د اسلامي سيمنه ييز خلافت د جوړولو تر ټولو عاليتره مرحله ده. که د داسې يو رژيم منځ ته راتلل د لويديځ او د اسراييل منافع تامیين کړي،له هغې به ملاتړ وکړي. مګر د يو ډېر قوي اسلامي خلافت د منځته راتللو له وجهي په ښکاره ډول سره د نفتو د ډېرو سرچينو سره چې منځنی اسيا او منځنی ختيځ په ځان کې د ننه ولري د لويديځ او د اسراييل د لوړو ګټو مطابق به نه وي. په دې اساس د دي سره مخالفت موجود دی. همدا راز ايا د پاکستان اردو دې ته حاضر دي چې خپل خپلواک دولت لغوه کړي په يو اسلامي خلافت خراسان کې د افغانستان او منځنۍ اسيا سره مدغم شي؟ په  يقين چې د پاکستان اردو به داسې خيال په سر کې و نه لري.

مهمه پوښتنه دا ده چې ايا روسيه او ايران غواړي چې امريکا او لوېديځ ته په افغانستان کې مزاحمت منځته راوړي او يا د دوی دا ټول کوښښونو په دي منظور دي چې د داعش له نفوذ څخه منځنۍ اسيا او ايران ته د مخنيوي په موخه د طالبانو مرسته وکړي؟ زه دوهم موقف باندې عقيده لرم! په دي اړوند د روسيې او ايران د مناسباتو حدود د طالبانو سره بايد پوه شو.د روسيې او ايران مسولانه چلند په دي اړوند لومړۍ درجه اهميت لري.

په عين زمان کې کله چې د داعش په وړاندې د مقابلې په موخه د طالبانو د ملاتړ ستراتيژي، لکه څنګه چې د جنرال حميد ګل د مړينې څخه يې څو ورځې د مخه مطرح شو، د پاکستان د اردو د منلو وړ وي او تطبيق شي بې له بلې لارې په افغانستان کې د جګړې په دوام يې پايله ختمېږي. شايد هم د پاکستان ضرب العضب عملياتونه او د بهرنيو جنګياليو شړل د افغانستان قبايلي  سيمو ته د پاکستان د ډار څخه وي چې ګڼي داعش په پاکستان کې نفوذ د دي

جنګیالیو له لارې ډېروي. روسیه د طالبانو سره د سولې د څلور اړخیزو روان کوښښونه د امریکا په مشرتابه بې ځایه بولي. دا بې ځایه بلل له یوې خوا د طالبانو په منځ کې د یوی متحدې جبهې نشتون د ملا عمر له مړینې وروسته بولي او له بلې خوا د افغانستان د دولت او د نړیوالو متحدینو لخوا د یوې روښانه سیاست نشتون، طالبانو ته د امتیاز یا برخي د ورکولو په برخه کې بولې.

په هر صورت د پاکستان او د روسیه نقش په افغانستان کې د سولې په تامیین کولو کې او د طالبانو توافق ورسره، ډېر اهمیت لري. د افغانستان د دولت دیپلوماسي باید داسې شرایط منځ ته راولي چې د هغه پر بنسټ طالبان باید دا احساس ونکړي چې د روسیه او د پاکستان په ملاتړ کولی شي د افغانستان د چارو واګې په غاړه واخلي. دا چې په مسکو کې د پاکستان، روسیې او د چین په درې اړخیز کنفرانس کې تصمیم ونیول شو چې د افغانستان دولت ته په راتلونکې ناسته کې بلنه ورکړل شي په خپله د دي ښکارندوي دی او د افغانستان د دولت دیپلوماسي باید په فعالانه ډول سره د سیمې د نورو قدرتونو سره د داعش سره د مقابلې د تفاهم په جوړولو او د طالبان دې ته اړ کول چې د جګړې پای ومني او د یوې ملي مصالحي منل او په دولت کې د ونډه اخیستو په برخه کې یې کوښښ وکړل شي. دا ډول سیاست همدا اوس د روسیه په مرسته د سوریه د کړکیچ د حل لپاره په جریان کې دی.

**د طالبانو د تحریک د مشر ملا عمر مړینه**

(د ۱۹٦۰ ز کال زېږېدلی او د ۲۰۱۳ز کال وفات شوی؟)

د دي څخه وروسته چې د طالبانو د تحریک د کویټې د شورا لخوا د ملا عمر د مړینې خبر تایید شو، د هغه مرستیال ملا اختر منصور د مشر په صفت وټاکل شو.د ملا عمر د مړینې خبر ډېرې پوښتنې مطرح کړلې:

1. ایا داسې یو شخص اصلا شته و؟
2. ایا ملا عمر یوازې تش په نامه وو د دي لپاره چې د طالبانو اصلي مشر پټ وساتي چې هغه د ای اېس ای یو لوړ پوړی افسر وو؟
3. طالبانو څنګه وشوو کولی چې د ملا عمر د مړینې خبر د دوو کلو څخه د ډېر وخت لپاره پټ وساتي؟
4. ولې د ملا عمر د مړینې خبر اوس خپور شو؟
5. چا او ولې یې دا خبر اوس بربنډ کړ؟
6. ایا د ملا عمر د مړینې د خبر خپرول د طالبانو د جنبش د داخلي اختلافاتو د شتون له وجهې دي؟
7. ایا د دې خبر خپرېدل په دي وخت کې د دولت او د طالبانو تر منځ د سولې د نوي پیل شوې پروسي د ویجاړولو په موخه دی؟

8. ایا د دې خبر خپرول په دې وخت کې د دې ښکارندوی دی پاکستان طالبانو ته د خپل استازي په صفت په افغانستان کې نور ضرورت نلري؟

9. د ملا عمر د مړينې خبر کوم مقام د دوو کلو څخه د ډېر وخت لپاره مخفي وساتلو؟

10. ايا د طالبانو د ډلې په منځ کې داخلي اختلافات او په ځانکړې توګه د داعش ظهور او پراختيا په هېواد او سيمه کې د دې قابليت د افغانستان د دولت سره د يوې سولې توافق ته د رسېدو په برخه کې ضعيف کړی دی؟

11. ايا د ملا عمر د مړينې د خبر خپرېدل به په افغانستان کې د داعش د لانور خپرېدو او پراخېدو په پايله تمام شي؟

12. له هغه څه چې معلوم دي د طالبانو جنبش هم د ملا عمر د مړينې له خبر څخه په پاکستاني مطبوعاتو کې (ظاهرا د افغانستان د رياست جمهوری د اعلاميي څخه په نقل) وارخطا شول. هغوی تر ١٦ ساعته وروسته د خبر د نشرېدو څخه په پاکستاني مطبوعاتو کې، دا موضوع تاييد نه کړه.دا ښکاره کوي چې دوی هم نه پوهېدل چې د دي موضوع سره څنګه چلند وکړي.

د القاعده او د داعش برخلاف چې د مشرانو عوض کول يې تنظيم شوي دي. د ملا عمر مقام د ؛امير المومنين؛ په نامه بل شخص ته د انتقال وړ نه وو.

### د ای اېس ای دروغ ويل

د واشنګټن پوست د خبر په اساس يو پخوانی پاکستانی مقام وايي چې ای اېس ای د پاکستان اوسنيو مشرانو ته هم د ملا عمر په اړوند دروغ ويلي وو: ؛ای، اېس، ای د پاکستان مشرانو ته د روان کال د مارچ په مياشت کې خبر ورکړی وو چې ؛؛ملا عمر ډېر سخت ناروغ دی، او حالت يې لا نور خرابېږي.؛؛ ؛

### د طالبانو د بېلابېلو څانګو تر منځ نښتې

د افغانستان امنيتي سرچينی طلوع نيوز ته وايي چې د ٢۴ تېرو ساعتونو په جريان کې د طالبانو بېلا بېل څانګې کم نه کم دری ځلې په کويټه کې سره نښتې دي. دا سرچينه وايي چې لومړنی يرغل هغه وخت سرته ورسېد چې د طالبانو يو کاروان معاوون اختر محمد منصور بل ځای ته انتقالولو. دا سرچينه دا هم زياتوي چې مولوي هيبت الله د طالبانو د نوي مشر مرستيال له دې يرغل څخه سلامت راوتی دی. دا يرغل د نا پېژندل شويو وسله والو کسانو لخوا د پاکستان په بلوچستان ايالت کې شوی.

دا سرچینه چې نه غواړي نوم يې ذکر شي وايې چې د طالبانو پخوانی د ننگرهار والي او د مرکزي کميتي رييس هم په دي کاروان کې حضور درلود. دا يرغل د چمن ښار څخه به کويټي ته نيږدې ځاي کې شوی دی او دا سرچينه وايي چې د دې سره سره چې مولوي هيبت الله او مولوي عبدالکبير د دې يرغل څخه سلامت راوتلي دي د طالبانو نور دری مشران په دي يرغل کې تپيان شوي دي. داسې ويل شوي چې د طالبانو مشران د خلکو او د نورو ملايانو د ملاتړ د لاسته راوړنې په موخه دې منطقي ته روان وو چې د ناپيژندل شويو وسله والو کسانو يرغل لاندې راغلل.چمن د ملا عبدالرزاق د زېږيدو ځای دی، هغه کس چې د ملا منصور د ټاکني سره د ملا عمر پر ځای او د طالبانو د ډلې د نوي مشر په صفت سره په کلکه مخالف وو.په دوو تېرو ورځو کې دې ته ورته نښتې د طالبانو د اړخونو تر منځ د کويټه په ښار کې شوې دي او تر اوسه د دي يرغلونو څخه د تلفاتو شمېر لاسته ندی راغلی.

## داعش او د هغه پراختيايي زمينې

زما يو ډېر پخوانۍ ملګری Noor Nasheet نور نشيط د محمد محقق د مرکې په اړوند د داعش او د هغه د منځ ته راتللو او پراخېدو د شرايطو په اړوند، په يو کومېنټ‌کې ليکلي چې:؛زما قدرمن ورو محترم گران خالدي زما په اند داعش د داسې يو شخص په شکل چې د دوو ټيمونو تر منځ فوټبال کنټرول کوي او په اصطلاح د هر ټيم فولونه د خپلې سلطه او کنټرول لاندې لري او د کټونکو سره يو ځای د هغوی خطاوو ته پرله پسې پاملرنه کوي،د داعش ډله په همدې ډول تصور کړه، هغه مخفي پلانونه چې په منطقه کې يې قدرتمندان لري کله د يوې ډلې او کله د بلې ډلې په نامه نور خپلو موخو ته د رسېدو په خاطر په پاليسی کې د تغير له لاري عملي کوي، دا چې ويلي چې لوی او شتمن قدرتونه د ښځ شويو شيانو پر سر جنگېږي او د هر يو په اړوند د دې او د هغې په نامه د خپلو موخو په نظر کې نيولو سره په ځانگړې توگه افغاني ټولنه، پاليسي يې لا دمخه جوړه کړې ده او عملي به يې کړي دا ځکه چې تاسي محترم په هر څه پوهېږئ.؛

زما ځواب داسې وو:

محترم گران نشيط! په دي کې شک نشته چې نړيوال قدرتونه د جنبشونو، ايديولوژيک توپيرونو، سياسي، قومي،منطقوي او عقيدتي اختلافاتو څخه لکه شيعه، سني، په سلگونو نور د مذهبونو څانگې چې په هغوي کې نغښتي دي،لکه اسمعيلي،حنفي، شافعي او نورو څخه خپلو اقتصادي او سياسي منافعو ته د رسېدو په موخه استفاده کوي. په دي اړوند هېڅ پوښتنه نشته. دا توپيرونه بايد اول شتون ولري او تاريخي او زماني شرايط بايد ورته مساعد وي څو نړيوال قدرتونه وشي کولي له هغو څخه استفاده وکړي. هر کله چې وهابي، سلفي،تکفيري جنبش په مسلمان ټولنو کې موجود نه وي لوي قدرتونه لکه امريکا او انگلستان د هغه په جوړولو قادر نه دي. د دي جنبش نطفې له دوه سوه کلو څخه راهيسي په عربستان کې موجودې دي چې پايله يې د ال سعود د دولت جوړېدل د وهابي ايديولوژي سره د امريکا او د انگلستان په مرسته په عربستان کې شو. اوس د دی دولت موروثي سلطنتي اوسېدل په خپله د اسلام د سلفي ايديولوژۍ سره چې اساس يې د اسلام پر خلاف دي، په تضاد کې دي.زه د محمد محقق د هغو خبرو سره چې وايي جنبشونه ؛اخواني؛ د ننني طالبانو بستر او بلاخره د ننني داعش لپاره يې هواره کړې ده، سره کاملا موافق يم. په افغانستان کې اسلامي سياسي

جنبشونه لکه، د گلبدین اسلامي گوند او د رباني جمعیت  په کلونو خولې تویې کړې مگر داسې اسلامي جنبش لکه د طالبانو – چې د دوي ټول ایدیولوژیگانی د اسلام  او شریعت څخه د عامیانه برداشتونو پر بنسټ جوړ دي او د عامو خلکو په ذهن کې عام فهمه دي، یې جوړ نکړی شو. د جگړې په اعجازي سرعت په سادگۍ سره د هېڅ جگړې څخه پرته دې ټول له کندهار څخه تر جلال اباد او کابل او هرات څخه تر مزار شریف پورې یې یوې خواته ووهل او د خپل د منځنیو پېړیو رژیم یې جوړ کړ. گلبدین او نور د سیاسي اسلام مشرانو د طالبانو د سلفي اسلام د دولت لپاره بستر منځ ته راوړی دی.د طالبانو تاجک او اوزبک افراطي مذهبي ډلې همدا کار په منځنۍ اسیا کې سرته رسولی دی.د طالبانو رژیم په سر کې د امریکا لپاره د منلو وړ وو مگر په کراره کراره د دوی د اقتصادي موخو د لاسته راوړنې په لار کې خنډ شول. د داعش منځ ته راتگ د مجاهدینو د جنبشونو او د طالبانو د ودې د اسلامي سیمه ییز خلافت د جوړولو تر ټولو عالیتره مرحله ده. که د داسې یو رژیم منځ ته راتلل د لویدیځ او د اسراییل منافع تامیین کړي،له هغې به ملاتړ وکړي. مگر د یو ډېر قوي اسلامي خلافت د منځته راتللو له وجهې په ښکاره ډول سره د نفتو د ډېرو سرچینو سره چې منځنۍ اسیا او منځنۍ ختیځ په ځان کې د ننه ولري د لویدیځ او د اسراییل د لوړو گټو مطابق به نه وي. د دې په اساس د دې سره مخالفت موجود دی. د څېړونکی مرکه ډېره جالبه ده.

## ایا په عراق کې امریکا د داعش د ظهور او پراخوالي مسووله ده؟

د امریکا لوی درستیز جنرال اودیرنو چې پلان یې دا دی چې په راتلونکي څلورو اونیو او د ۴۰ کلو خدمت څخه وروسته د امریکا په اردو کې به دا مقام خوشی کړي، د امریکا د فاکس نیوز خبرې شبکې ته ویلي وو چې: ؛امریکا کولی شو چې په عراق کې د داعش له ظهور څخه مخنیوی وکړي، البته دا په هغه حال کې چې که د عراق سره یې ډېر پیوستون درلود.؛

هغه څه چې دا جنرال یې وایې یو ډېر ساده، بې خبره او بې لارې کوونکی تصویر  د داعش د ظهور او پراختیا د علتونو په اړوند دي. هغه وایي: که د امریکا ځواکونه په عراق کې پاتې شوي وو او په ۲۰۱۱ کې له دې هېواد څخه بیرون شوي نه وو ممکن وو چې له هغه څه څخه چې نن په عراق کې یې شاهد یو،په هېڅ وجهه مو نه لیدل.؛ ایا کولب شو دظز ته اعتراف ووایو؟په حقیقت کې دغه خبرې د جمهوریت غوښتونکي گوند کمپیاین سره د نوماندانو لپاره په ټاکنو کې د باراک اوباما د سیاستونو سره په مخالفت کې ویل شوي وي.

واقعیت هغه دی چې امریکا په عراق کې د داعش د پیدایش او د ودې مسوؤل ده مگر د هغه ځایه څخه د وتلو په خاطر نه، بلکې برعکس یې، عراق ته د تللو په خاطر! په حقیقت کې د عراق د اشغال اصل، د پیاوړې اردو انحلال،  د غیر مذهبي جوړ شوي ملي ځواکونو د ماتې لکه ؛بعث؛، د عراق د دولت د انحلال په ځانکړې توگه د هېواد د مرکزي قدرت، د هېواد او د قدرت وېش په شیعه او سني حوزو باندې وو .د انساني ضد اعمالو په سرته رسولو د امریکا د اردو د افسرانو لخوا د دې سبب شو چې د امریکا مذهبي افراطې ضد افکار،د لوېدیځ ضد او د ترقی ضد ظهور او پراخ بنسټ شي،  او په پایله کې یې داعش په عراق کې ښکاره شي.

## د سولې ډول غړول

باید په یاد ولرو چې د زمان جبر دا حکم کړی چې د سولې د شلېدلي ډول له وهلو څخه پرته زموږ د مشرانو لپاره بله لاره پاتې نه ده.په هغه زمانه کې روسانو فشار راوړلو چې د مخالفینو سره د جوړېدو لارې ومومی. او په دې زمانه کې د ناټو او امریکا لومړی شرط دا دی چې د افغانستان دولت د ملي جوړې لارې پیدا کړئ. موږ د دوو لارو څخه ډېر نور څه نه لرو:

- د سولې ډول وهل د هېواد څخه د دفاع په حال کې د ملي پخلاینې په هیله او دې ته هیله درلودلو سره چې د پاکستان دولت د خپل اوږدمهال اقتصادي او سیاسي گټې په سیمه او په منځنی اسیا کې د یو ترقیپاله افغانستان سره په ملگرتیا کې ویني، او
- بله لاره د سولې د پروسې د جوړولو هر ډول هڅو ختم، د جنگ ډېریدل او د طالبانو د مکمل ماتې هیله د جگړې له لارې.

په اوسنیو شرایطو کې یو ځانگړی تعریف د تروریست څخه په افغانستان کې نه غني کولی شي او نه عبدالله. امریکا او ناټو د کال ٥ میلیارد ډالر څخه ډېر افغانستان ته ورکوي مگر دوی په افغانستان کې د ملگري او د دښمن ځانگړې تعریف نلري. امریکا طالبان دښمن نه بولي. که جمهور رییس غني طالبانو ته تروریست ووایي نو د هغوی سره د هر ډول سیاسي حل لارو په مخه دروازې وتړي او نظامي بریالیتوب ته سترگې ونیسي. ایا دا بریالیتوب د افغانستان امنیتي ځواک په نظر کې نیولو سره امکان لري او عملي دي او یا امریکا به د هغه سره توافق وکړي؟

هر کله چې امریکا او ناټو طالبان تروریست اعلان کړي او پاکستان د افغانستان د جگړې د دوام مسوول اعلان کړي او دې ته حاضر شي چې د ملگروملتونو د امنیت د شورا له لارې لازم تعزیرات پر پاکستان وضع کړي په هغه صورت کې به افغانستان وشي کولی چې طالبان تروریست او پاکستان د تروریست ملاتړ کونکی دولت اعلان کړي او په جگړه کې بریالیتوب او د طالبانو نظامي ماتې ته هیله مند شي.

داسې کسان هم شته چې وایي، هرکله د افغانستان دولت یو روښانه سیاست په کار واچوي او طالبانو ته تروریست ووایي، امریکا،لوېدیځ او نور نړیوال ملگري د افغانستان د دولت په پیروی به گامونه اوچت کړي طالبان به تروریست وبولي. دوی وایي اوسني نړیوال سیاستونه د طالبانو په اړوند د افغانستان د مجهولو سیاستونو پر بنسټ دي. دا کسان نه پوهېږی چې په افغانستان کې دا سپی لکي خوځوي، بر عکس داسې نه ده لکه چې د پاکستان او امریکا مناسبات یې ښکاره کوي!

پر دې بنسټ د بلې لارې د نشتون په اساس د افغانستان دولتونه د ملي پخلاینې او د سولې د ډول په غړولو به ادامه ورکړي او دا هیله به کوي چې د پاکستان دولت خپل اوږدمهال اقتصادي او سیاسي منافع په سیمه او منځنی اسیا کې د یو ترقي پاله افغانستان سره په ملگری کې وگوري او نه د یو منځنیو پېړیو افغانستان په شتون کې.

د دې واقعیتونو او تاریخي جبر پېژندنه د سولې د لارې د مخالفینو لخوا د افغانستان د ملي وحدت د دولت په دننه او دباندې کې ضروري دي. باید هغه ناسالمو تبلیغاتو ته چې پښتون او طالب مساوي بولې، ته د پای ټکی کېښودل شي. د ملي او ژبنیز تفرقې ډول غږول او د نورو قومونو او ولایتونو د تجرید هڅې له سیاسي او اداري دولتي ځانګو څخه د خپل ځان په تجرید تمامېږي.لازمه ده چې د ملي وحدت د دولت په بریالیتوبونه او ناکامیو کې ځان شریک وبولو.امتیاز په خپل جوړښت کې مسولیتونه هم لري.د سیاسي قدرت، نظامي، اقتصادي او فرهنګي انحصار د ځانګړې ډلې لخوا چې اکثریت یې یو ځانګړې قوم او سمت پورې تړلې دي د امریکا او ناټو د قدرت او نظامي او لوژیستکي قدرت په سیوري کې تل لپاره موجود به نه وي. دا خبره امریکا او ناټو پوهېږي او د دوی سیاستونه دا ښکاره کوي. د سولې منځته راتلل او په سوله کې ژوند کول د ټولو قومونو یو ځای یو د بل تر څنګ مېشت کېدو د هېواد د اساسي قانون په احکامو کې ضرورت لري.

**دوهم – د سولې د پاره وړاندیزونه**

1 . زموږ مشوره دا ده چې طالبان دې داسې فکر ونه کړي چې د قطر د هوکړې په لاسلیکولو سره یې جګړه ګټلې ده او په دې کار سره د افغان حکومت ټول پاتې کېدل د طالبانو په راتلونکي حکومت کې د یو څو جهادي یو ځای کېدو پخاطر دي. امارت. دا ډول فکر، له شته واقعیتونو لرې او له طالبانو سره یوځای کېدل، د راتګ مخه نیسي او د سولې له بهیر سره مرسته نه کوي.

2 . د دې په پام کې نیولو سره چې امریکا، ناټو، اروپایي ټولنې او د افغانستان ټولو ګاونډیانو، د چین، هند، پاکستان، ایران، ترکمنستان، ازبکستان، روسیې، استرالیا او اروپایي ټولنې په ګډون د افغانستان په ولسمشریزو ټاکنو کې د اشرف غني بریا په رسمیت پېژندلې ده.، دوی ته دې مبارک وي.

3 . مګر پر دې معتقد یو چې د افغانستان د اسلامي جمهوریت شتون یو نړیوال واقعیت دی چې دا مطلب د قطر امیر د طالبانو استازو ته د قطر د هوکړې د لاسلیک کولو په وخت هم ورياد کړی دی.نړیواله ټولنه پر هغه د سلګونو بیلیون ډالرو ډېره پانګه اچولې ده.

4 . د دې پر اساس له هغه فرصت څخه چې د قطر د هوکړې لاسلیک کېدل سولې ته د رسېدلو په خاطر منځ ته راوړي، د عملي ګامونو د اوچت کولو په وخت د سولې د پروسې د پرمخ وړلو او د دې تګلارې د بېرته نه راګرځېدلو لاره کې،رسېدلې دي.

5 . زه وړاندیز کوم چې افغانستان ته د سولې د راوستلو په موخه،چې د افغانستان د ټولو خلکه هیله ده، طالبان لازم انعطاف ښکاره کړي، د دوي چلند د افغانستان د دولت په اړوند،د خپل مخالفتونو په ساتنه، باید دیپلوماتیک او پراګماتیکي وي.

6. موږ معتقد یو پر دي چې د امریکا او د ناټو د افغانستان څخه د وتلو شرایطو پورې اړوند اړخونه،د امریکا او د طالبانو تر منځ هوکړه وشوه او اوس داخلي اړخونه هغه داخلي معضله چې یو بین الافغاني توافق ته رسېدل دي د طالبانو د استازو د بحث لاندې د دولت،گوندونو او سیاسي څېرو او پخوانیو جهادي تنظیمونه ګډ هیئت په منځ کې د بحث لاندې ونیول شي

7. اوس د دې وخت رارسېدلی دی چې طالبان هم خپل چمتووالي د سولې د مذاکراتو د پیل په خاطر د هېڅ قید او شرط څخه پرته ښکاره کړي

8. که طالبانو غواړي چې د دوي پلویان د سولې په مذاکراتو کې برخه واخلي، چې د شک څخه پرته په هغه کې ځوانان، استادان،د پوهنتون استادان،ښځې، ډاکټران، انجینیران، سیاستوال او د اقتصاد عالمان او نور شامل دي، د ملایانو شمېر د خپل هیئت څخه کم کړي او د هغوی په ځای څو شمېر له دي قشرونو څخه خپلو استازو کې شامل کړي

9. دی سره چې د قطر د هوکړي له لاسلیک څخه د څلویښتو ورځو هم ډېر تیر شوې دي، چې د طالبانو ټینګار د پنځه زره بندیانو د هېڅ ډول قید او شرط څخه پرته په یو ځلي خوشي کول یې د هغو چې د دولت په زندانونو کې پراته دي عملي بڼه نه لري.په یقین سره چې د سولې مذاکراتو پیل په دې مشروطول چې دا زندانیان د د لسو ورځو په دننه کې د قطر د هوکړي د لاسلیک کېدو څخه وروسته ازاد کړلی شي،د دي څخه د مخه چې په اوربند توافق وکړي یو د تطبیق کولو وړ تعهد نه دی، دا ځکه چې د زندانیانو ازادول د افغانستان اسلام جمهوریت پورې اړه لري

10. واضیح دي چې د هېڅ قید او شرط څخه پرته په یو ځلې د طالبانو د پنځه زرو زندانیانو ازادول په داسې شرایطو کې چې امریکایان خپل ځواکونه له افغانستان څخه دباندي وباسي او طالبان خپل یرغلونه په هم هغه شکل سره د دولت پر امنیتي پوستو ته ادامه ورکړي د دولت لپاره ډېر جدی امنیتي خطر منځ ته راوړلی شي.

11. موږ د دې وړاندیز لاسلیک کونکي د دواړه خواوو د زندانیانو د ازادیدو له پروګرام څخه چې د بین الافغاني مذاکراتو په ترځ کې پر هغه توافق وشي، ملاتړ کوو

12. همداراز موږ معتقد پر دې یو چې د بین الافغاني سولې مذاکراتو موخې د دواړو اړخونو په منځ کې باید واضح شي

13. دا مذاکرات باید د یو بل فرصت په شکل و نه لیدل شي چې د طالبانو اسلامي امارت یو ځل بیا جوړ شي او یا د دیپلوماسۍ لارو څخه د موخو لاسته راوړنه باید و نه ګڼل شي چې د جګړو په ډګر کې یې لاسته راوړل. پر دي موضوع د ملګرو ملتونو د امنیت د شورا په فیصله نامه کې د قطر د هوکړې په اړوند هم ټینګار شوی دی

14 . باید ومنل شي چې د تېرو نولس کلو په ترڅ کې د نړيوالې ټولنې لخوا د میلیاردنو ډالرو د پانګه اچونې څخه وروسته په افغانستان کې او لاسته راغلیو پرمختګونو ته د پاملرنې سره په دې لاره کې د یو دیکتاتوري دولت، چې د تمدن، د معارف، د ښځو او د پرمختګ او ترقۍ ضد مذهبي دولت وي په افغانستان کې هېڅکله بیا عملي کیدي نشي

15 . طالبان د ټولنې د نورو ټولو اقشارو په شان د دې حق لري چې په سوله او کامل امنیت کې د هېواد په سیاسي، اقتصادي او ټولنیز ژوند کې په یو اسلامي جمهوري نظام کې په مساویانه توګه د ټولنې د نورو اقشارو سره برخه واخلي

16 . د دې وړاندیز د لاسلیک کونکو په اند، د سولې د مذاکراتو موخې د جګړې خاتمه،د سولې تامیین او د ټولو افغاني قشرونو لپاره د اشتراک د امکاناتو برابرول د طالبانو په شمول د هېواد په سیاسي، اقتصادي او ټولنیز ژوند کې په یو اسلامي جمهوري نظام کې دي

17 . د یو بې تعریفه او بې وضاحته اسلامي دولت جوړېدل او د دولتدارۍ د اصولو،ټولنیزو موخو، د خلکو د سیاسي حقوقو،قانونګذارۍ د نظام، قضایي نظام او نورو کې د ابهام په شتون، دا د افغانستان د خلکو لپاره د منلو وړ نه دي

18 . وړاندیز کوم چې د بین الافغاني سولې د مذاکراتو اساسي موخه د دواړو اړخونه د یو اسلامي جمهوري نظام پر سر په افغانستان کې د  نننی نورو ټولو اسلامي متمدن هېوادونو په شان لکه پاکستان، اندونیزیا،مالیزیا او ترکیه او نورو شانتې وي

19 . زموږ په اند یو اسلامي جمهوري متمدن نظام د مشرتابه او د حکومت د ټاکنو پر اصولو او، د خلکو په راییو،ټاکلې ولسي جرګې سیستم،مدني قضایي نظام، د ټولنیز عدالت د قانون تضمین او د هېواد د وګړو ازادي چې په هغه کې د ښځو مساوي حقوق په هېواد کې په سیاسي، ټولنیز او اقتصادي برخو کې پر بنسټ باندې به په هېواد کې ولاړ وي

20 . موږ معتقد پر دي یو چې په داسې یو اسلامي جمهوري متمدن نظام کې د دولت دنده د تمدن او معاصر پرمختګ او د نړۍ د راتلونکې د مزایاوو څخه کار اخیستل، د افغانستان د وګړو معنوي او مادي سطحه د ژوند لا ښه کول او دولتي نظامي دندې دي

21 . پورتنیو مواردو ته په پاملرنې، په بین الافغاني مذاکراتو کې د ټولو ذیدخیلو اړخونو څخه غوښتنه کوو چې د خپل تاریخي مسولیت په پام کې نیولو سره د لاسته راغلي فرصتونو څخه د جګړې د خاتمي،د سولې د تامیین او د مترقي او عادلانه اسلامي دولتي نظام په جوړونه په افغانستان کې لپاره ګامونه اوچت کړي

## له طالبانو سره د امریکا د سولې هوکړه

د متحده ایالاتو استازی (زلمی خلیلزاد) او طالبان (ملا عبدالغني برادار) د ۲۰۲۰ز کال د فبروری د میاشتې په ۲۹ نېټه (۱۳۹۸ حوت ۱۰) د سولې هوکړه د نیږدې دوو کلو د مذاکراتو څخه وروسته په قطر کې لاسلیک کړ چې د امریکایي مقاماتو په وینا د بهرنیو ځواکونو لپاره د افغانستان څخه د مکمل وتلو زمینه برابره او د بین الافغاني مذاکراتو لپاره هم لاره هواروي شي. د امریکا او طالبان تر منځ د هوکړې د لاسلیک سره په عین زمان کې په قطر، مارک اسپر، د متحده ایالاتو د دفاع وزیر او محمد اشرف غني، د افغانستان جمهور رییس ګډه اعلامیه صادره کړه چې په هغه کې د امریکا د ملاتړ ادامه له افغانستان څخه، په ځانګړې توګه د افغاني امنیتي او دفاعي ځواکونو پر سر ټینګار شوی دی.

د دې هوکړې څخه د څلوېښتو ورځو په تېرېدو، اوس په تدریجي ډول سره ښکاري چې زلمي خلیلزاد د هغه غوړو وعدو په اساس چې د ډونالد ټرامپ لپاره د سولې د نوبل جایزې د ورکولو په خاطر پریشانی موجودې وې او اووه میاشتې د مخه مخالفتونه موجوده مخالفتونه یې د دې هوکړې په هکله برطرف کړي دي! **د شک پرته په هغه صورت کې چې امریکایي ځواکونه او سرتیري په مکمل ډول سره له افغانستان څخه ووځي او د امریکا په تاریخ کې تر ټولو اوږد مهاله جګړه ختمه شي او ورسره په افغانستان کې د سولې په راوستلو او د یو ټول شموله دولت په جوړېدو په افغانستان کې د طالبانو په برخه اخیستو د امریکا د دولت په مشرتابه او نوبت د ډونالډ ټرمپ تر مشرۍ لاندې، د نوبل د سولې د جایزې د ورکولو ټول لازم شرایط به پوره وي.** مګر د قطر د هوکړې خلاوې او نواقص او د امریکایانو، پاکستانیانو او طالبانو تېروتنه فرضیې، ښکاره کړ چې د نوبل د سولې د جایزې د اخیستو هیله د ډونالډ ټرمپ لخوا په دې نیږدې کې شونې نه ده، ډانلد ټرمپباید انتظار وباسي.

**له ټاکنو څخه وروسته د دولت موقف**

حقیقت دا دی چې ټاکني سرته ورسېدې، او بریالی د اساسي قانون د احکامو د سیوري لاندې د ټاکنو د خپلواک کمیسیون لخوا اعلان شو او د منتخب جمهور رییس اشرف غني د تحلیف مراسم سرته ورسېد او د ولسي جرګې رییس،د مشرانو جرګې رییس، قاضي القضات او د سترې محکمې غړي، بهرني دیپلوماتان چې په هغه کې د امریکا د جمهور رییس استازي او افغانستان کې د ناټو د ځواکونو قوماندان د تحلیف په مراسمو کې ګډون درلود، سرته ورسېد.

دا چې د قدرت انتقال د قانون د لارو او د دیموکراسۍ له لارو سرته ورسېد او نه دا چې د معاملاتو له لارې او د پردې شاته د تحمیل له لارې لکه موقت دولت او یا د ملي وحدت د حکومت ادامه،دا د هېواد د ملي منافعو سره سمون خوري. په دې شکل سره د نظام تمامیت ادامه وموند او احترام ورته وشو.عبدالله او ډله یې چې د بغاوت په شکل د تحلیف مراسم د قانون په خلاف نیولې وو، د عدلي معرض په تعقیب سره د ملي خیانت په جرم کې اخته مجرمان دي، که وغواړي او که ونه غواړي د پاکستان او د طالبانو د ستراتیژیکو منافعو لپاره د افغانستان د حکومت سره په مخالفت او د هغه په ضعیف کولو کې دخیل دي.

پورته مو ولیکل چې د قدرت انتقال راتلونکي حکومت ته د ټاکنو د کار په ختمېدو په ۲۰۱۹ز کال کې د امریکا او د نورو د غوښتنو په خلاف د اساسي قانون د احکامو سره په مطابقت او د دیموکراسۍ له لارو سرته ورسېد نه د پردې شاته د تحمیلي معاملو له لارې لکه د موقت دولت او د یا ملي وحدت د حکومت د ادامې په شکل.په تاسف سره، لکه چې ورستنۍ پېښې یې ښکاره کوي د دې سره سره چې امریکا د ټاکنو د رسمي پایلې د اعلان په قبلولو اړ شو او د اشرف غني د تحلیف په مراسمو کې یې برخه واخیست او د موازي دولت د جوړېدو سره یې مخالفت وکړ،مګر په عین زمان کې د دې پر ځای چې عبدالله ته دا مشوره ورکړې چې د ټاکنو پایله ومني، او د دې دوه مخي سیاست په تعقیبولو د یو ټول شموله دولت پر جوړېدو یې ټینګار د عبدالله د شراکت په مانا په اجرایي قدرت کې په غیر مستقیم ډول سره د عبدالله په تشویق کولو د ټاکنو د رسمي پایلې د منلو په برخه کې پیل وکړ. د دې سیاست موخه د دې څخه پرته چې د یو ناروغ، ضعیف او غیر موثره پخواني ملي وحدت حکومت تجدد او ادامه وي، بل هېڅ هم نه دي څو په ځانګړې توګه د قطر د هوکړې د لاسلیک څخه وروسته د طالبانو او امریکا تر منځ د امریکا د بهرني سیاست په ادامه او استازیتوب په کابل کې د امریکا د ستراتیژیک منافعو لپاره عمل وکړي. مګر د جمهور رییس اشرف غني ملیپاله موضعګیري د طالبانو د بندیانو په خوشې کولو، د طالبانو سره د مذاکره کونکي هیئت او د سولې د مذاکراتو موخو دا په ګوته کړه چې دافغانستان د وګړو ملي منافع د امریکا د ستراتیژیکو موخو سره په سیمه کې مکمل سازګاري نه لري.

د ولسمشرۍ د تحلیف د مراسمو په پای ته رسېدو سره، چې د نړیوال پراخ پېژندنې سره بدرګه شو، او د دولت او د ګوندونو او مطرح سیاسي، اثر اېښودونکي شخصیتونو څخه د مذاکره کونکي ټیم د رییس او غړو په اعلانولو،د افغانستان دولت په یو مستحکم موقف کې د سولې د مذاکراتو لپاره د طالبانو سره قرار ونیولو. د امریکا، د اروپا د اتحادیې او حتی د عبدالله تایید د دولت د مذاکرې د هیئت څخه د ټولو خلکو او ډلو د ملي منافعو په لار کې یو سم عمل دی چې نوولس کاله تېرو کلونو کې د اساسي قانون د چتر لاندې د هغه له مزایاوو څخه یې استفاده کړې ده او د طالبانو د

غضب لاندې وو. **اوس د سولې توپ د طالبانو په میدان کې دی** او طالبان د دولت د هیئت سره د مذاکرې پرته، بله چاره نه لري!

د طالبانو ټینګار له یوې خوا د پنځه زرو بندیانو د هېڅ قید او شرط څخه پرته د خلاصېدو پر سر چې د دولت په زندانونو کې پراته دي، او له بلې خوا غیر اصولي مخالفت د بین الافغاني مذاکراتو د پیل لپاره د معرفي شوي هیئت د دولت او سیاسي ګوندونو څخه سره یوازې او یوازې د طالبانو په لانور زیاتېدو په نړیواله صحنه کې پاي ته رسېږي.

**د قطر د هوکړې ستونزې، نواقص او پایلې**

مګر د قطر د هوکړې خلاوې او نواقص او د امریکایانو، پاکستانیانو او طالبانو تېروتنه فرضیې، ښکاره کړه چې د نوبل د سولې د جایزې د اخیستو هیله د ډونالډ ټرمپ لخوا په دې نیږدې کې شونې نه ده، ډانلډ ټرمپ باید انظار وکاږي.

امریکا له دې وجهې په غوصه ده. د امریکا د بهرنیو چارو وزیر کابل ته راغی او د دندې د ماتې څخه یې وروسته په کابل کې د دې تهدید وکړ چې له خپلو مرستو څخه دوه میلیارد ډالره افغانستان څخه قطع کوي.وروسته یې وویل چې په خپلو ټولو لوېدیځ ملګرو باندې به هم فشار راولي څو هغوي هم خپلې مرستي کمې کړي. د جمهور رییس اشرف غني ځواب په دولتي مصرفونو کې صرفه جویي او کمی پکې راوستل او د دولت لا دمخه چمتووالی د دې مرستو د کمېدو په اړوند وو. دا ځواب امریکا لا نوره په غوصه کړه او د بهرنیو چارو وزیر مایک پومپیو تهدید وکړ چې د هغه هوکړې د معیاد څخه چې د طالبانو سره یې کړی په لا چټکۍ به خپل ټول سرتیري وباسي. د جمهوري ریاست د لومړي مرستیال امرالله صالح ځواب د یک تلویزیون سره د مرکې په اوږدو کې دا وو چې د نړۍ د مرستو د قطع کېدو په نتیجه کې ؛نه به د پنجشیر سیند وچ شي او نه د هلمند سیند او نه به د هندوکش د غره ملا ماته شي؛. (۲۰۲۰م اپریل نهمه)

د قطر د هوکړې په لاسلیک کېدو، طالبان او ملاتړ کونکي یې فکر کوي چې جګړه یې ګټلې ده، او د افغانستان د دولت څخه په انکار، هغه څه چې پاتې دي صرف د څو جهادي ډلو سره توافق د طالبانو په اسلامي امارت دولت کې دی. د عباس ستانکزي په حساب ؛په افغانستان کې کوم حکومت شتون نه لري موږ به د افغانستان د خلکو واقعي استازو سره مذاکره وکړو (د مارچ اول)؛.یه یقین سره په داسې فکر درلودلو سوله ناممکنه ده! په داسې حال کې چې په نظامي بیلانس کې هېڅ توپیر نه دي راغلي حتی د امریکایانو د وتلو څخه وروسته به جګړه د افغانستان د دولت د وسله والو ځواکونو او طالبانو تر منځ روانه وي او بې له بلې چاري څخه سوله هم د طالبانو او د دولت تر منځ باید ټینګه شي.هېڅ مقام، شخص او ډله د دولت پرته، نشي کولی د طالبانو سره د سولې او د ملي مصالحي شرایطو باندې توافق وکړي او عملي یې کړي. په دې اړوند د قطر امیر تمیم بن حمد بن خلیفه ال ثاني د ۲۰۲۰ د مارچ په اتمه نېټه وویل چې ؛د ډاکتر غني دولت منتخب، مشروع او قانوني دولت د افغانستان دی او ما دا طالبانو ته هم ویلي؛!

د هغه هوکړې تناقض چې په قطر کې لاسلیک شو او هغه ګډه اعلامیه چې له کابل څخه صادره شوه، د طالبانو او امریکا تر منځ د دې توافق د ګټو د پلي کېدو د سستۍ علتونو څخه دي.

په داسې حال کې چې زلمی خلیلزاد د قطر په هوکړه کې طالبانو ته وعده ورکوي د دوی پنځه زره بندیان به د لسو ورځو په دننه کې ازاد شي د خپل صلاحیتونو له حدودو څخه او د امریکا د دولت له صلاحیتونو څخه د افغانستان په اړوند تیرې کوي. جمهور رییس غني وویل چې د طالبانو د بندیانو د خوشي کولو موضوع،د افغانستان د دولت له صلاحیتونو څخه دي او په بین الافغاني مذاکراتو کې کېدي شي پر هغه بحث وشي. تاماس وست د جوبایدن پخوانی مشاور د ۲۰۲۰ د مارچ په څلورمه نېټه وویل چې د جمهور رییس غني موضع د بندیانو د خوشي کولو د طالبانو سره د سولې په خبرو کې عاقلانه دي. ؛دا د افغانستان د حکومت د فشار اهرام پر طالبانو د سولې په مساله کې دی او هغه کاملا (غني) حق لري چې دامسئله مطرح کړي.؛ د دولت د ملي امنیت مشاور حمد الله محب په وینا د طالبانو د بندیانو د خوشي کولو موضوع یوه مهمه موضوع او د افغانستان د دولت لپاره یو مهم خطر دی. د بندیانو د ازادی په موضوع کې د امریکا بهرنیو چارو وزیر مایک پومپیو د اشرف غني خبرې چې ویلي یې وو چې دا موضوع د افغانستان دولت پورې اړه لري نه ده رد کړې مگر ویې ویل چې هر څوک غواړي په دي شرایطو کې خپل ځانته پاملرنه راواړوي. هغه یوازې د هوکړې متن تکرار کړ چې امریکا د ذیدخیلو اړخونو سره د بندیانو د ازادولو لپاره د اعتماد جوړونې لپاره کار کوي او دا هم هغه څه وو چې غني په خپله مرکه کې پر هغه ټینگار وکړ چې کوم تعهد شتون نه لري.

ښکاري چې د تورو څخه د استفادې اختلاف یوه د وتنې لاره (راه گنجشکک) یې د طالبانو د مذاکراتو د نه منلو لپاره د دولت د رسمي استازو سره خلاصه پرېښې ده! د افغانستان د دولت په اعلامیه کې د امریکا سره ویل شوي دي: .... ؛د طالبانو او د متحده ایالاتو تر منځ په هوکړه کې لاره د طالبانو او د افغانستان د اسلامي جمهوریت تر منځ د مستقیمو مذاکراتو لپاره د یو سیاسي توافق او تل پاتې او جامع اوربند لپاره هواروي. د افغنستان اسلامي جمهوریت یو ځل بیا خپل چمتووالی د داسې مذاکراتو د گډون لپاره او د طالبانو سره د اوربند د توافق په اړوند اعلانوي؛

د طالبانو د امریکا سره په هوکړه کې ویل شوي: د دې هوکړې په موجب ؛د طالبانو اسلامي امارت چې د متحده ایالاتو لخوا د یو دولت په نامه نه پېژندل کېږي او د طالبانو په نامه پېژندل کېږي، بین الافغاني مذاکرات د افغاني اړخونو تر منځ د ۲۰۲۰ د مارچ په ۱۰ چې د ۱۴۴۱ هجري قمري د رجب ۱۵، او د ۱۳۹۸ هجري لمریز د حوت ۲۰ سره سمون خوري به پیل کړي. د بین الافغاني مذاکراتو د خبرو اترو د اجنډا یوه موضوع به تل پاتې او جامع اوربند وي. د بین الافغاني مذاکراتو برخه اخیستونکي به د تل پاتې او جامع اوربند او د پلي کېدو، په هغه کې د اجرایې میکانیزم بحث وکړي د مذاکراتو د نېټې او څرنگوالي په اړوند، د افغانستان د سیاسي راتلونکي د نقشې د تکمیل او توافق سره به اعلان شي. ښکاري چې د ؛د طالبانو او د افغانستان اسلامي جمهوریت تر منځ د مستقیمو مذاکراتو؛ جملې له دوه مختلفو ژبو څخه د دولت او طالبانو سره کار اخیستل شوې دي. دا اختلاف د تیښتې لاره (راه گنجشکک) یې د طالبانو د دولت د رسمي استازو د نه منلو لپاره خلاصه پرېښې ده! بې ځایه نه ده چې په دې اړوند عباس ستانکزي د طالبانو استازي د امریکا سره د هوکړې له لاسلیک څخه وروسته ویلي چې ؛په افغانستان کې کوم حکومت شتون نلري او موږ به د افغانستان د واقعي استازو سره مذاکره وکړو.؛!

ډېر وخت نه وو تېر شوی چې د طالبانو او د امریکایي ځواکونو تر منځ چې په افغانستان کې مېشت دي، د سولې د توافق په اړوند متفاوت تعبیرونه راښکاره شول. په داي حال کې چې عباس ستانکزي د مارچ په دويمه نېټه وويل چې ؛د امریکایانو سره جګړه متوقفه شوې ده او جګړه د افغانستان د امنيتي او دفاعي ځواکونو سره ادامه لري.؛ مګر په چټکۍ سره ښکاره شوه چې امریکایي ځواکونو په هوايي ملاتړ د افغاني همکارانو د مرستي لپاره ور ودانګل. د طالبانو د احتجاج په وړاندې چې ويلې يې وو چې دوی خپل يرغلونه د دولت پر لرې پرتو پوستو محدود کړي، په دې اړوند یو امریکایي قوماندان په افغانستان کې اعلان وکړ چې په هغه صورت کې چې طالبان د افغانستان د دولت د امنيتي ځواکونو پر پوستو يرغل وکړي، دوی به د امنيتي ځواکونو د همکارۍ لپاره ودانګي.

حسين حقاني، په واشنګټن ډي سي کې د پاکستان پخوانی سفير وايي چې د امریکا د طالبانو سره هوکړه یوه ؛بده معامله؛ده.(۱۳۹۸ حوت ۱۴ د امریکا غږ) د هغه په وینا د دې سربېره چې د معاملې دواړه خواوې د هغه په اړه متفاوت تفسير لري، د پاکستان مشکل په دې توافق کې حل شوی نه دی. ښاغلي حقاني وايي چې د دې سره سره چې متحده ايالات دې هوکړې ته د ؛سولې معامله؛ نوم نږدی ته د معرفي کولو په خاطر ورکړی دی، طالبانو هغه ته د ؛افغانستان څخه د امریکا د وتلو معامله؛ په سترګو ګوري او داسې فکر کوي چې ټولو ته يې ماتې ورکړې او اوس یو ځل بيا د قدرت واګې لاسته ورغلې دي او خپلې غوښتنې عملي کوي.

په همدې حال کې منوال راکيش سود، په افغانستان کې د هند پخوانی سفير وايي چې د امریکا او طالبانو تر منځ دا وروستنۍ هوکړه چې لاسليک شوه، د سولې یوه هوکړه نه ده بلکې د امریکايي سرتېرو د افغانستان څخه د وتلو هوکړه ده. (۱۳۹۸ هجري لمريز حوت ۱۴، د امریکا غږ)

ښاغلی سود د امریکا غږ سره په مرکه کې وويل:؛دا هوکړه له څلورو مندرج شويو عناصرو چې په هغه کې ذکر شوي، یوازې د دوو عناصرو په زماني مهالوېش بحث کوي چې د افغانستان څخه د امریکايي او د نورو بهرنيو سرتېرو د وتلو او همدا راز د طالبانو د ضمانت په اړوند چې دوی د خپل کنټرول په سيمو کې نړيوالو دهشت اچونکي سازمانونو ته لکه القاعده ته به پناه ور نکړي، سره ارتباط نيسي.؛

دا هندي ديپلومات د تل پاتې او جامع اوربند د منځته راتللو د اهميت په اړوند په افغانستان کې په ټينګار وايي چې هغه هوکړه چې د طالبانو او د امریکا تر منځ لاسليک شوې ده،د اوربند بحث يې بين الافغاني مذاکراتو ته پريښې دی، څو قاطع ضمانتونه په دې اړوند له طالبانو څخه واخيستل شي.

ښاغلی سود وايي چې په هوکړه کې چې په قطر کې لاسليک شوه او په ګډ اعلاميه کې چې له کابل څخه صادره شوه تر منځ يې تناقض شته.هغه وويل:؛هغه وخت د دې تناقض د شتون شاهدان وو چې جمهور رييس غني وويل چې د طالبانو د زندانيانو ازادول د افغانستان د دولت له صلاحيتونو څخه دي او په بين الافغاني مذاکراتو کې کولی شو پر هغه بحث وکړو.؛

راکیش سود چې د ۲۰۰۵ کال څخه تر ۲۰۰۸ ز کال پورې په کابل کې د هند د سفیر په توګه دنده تر سره کړې ده، همداراز یې ویلي دي چې د طالبانو ډله تر اوسه پوره په خپل منلي امارت د اعادي څخه په افغانستان کې لاس نه دی اخیستی.

په دې ارتباط لونید ایواشف د روسیې د ژیوپولیتیک مطالعاتو د اکاډمۍ رییس په یوه مرکه کې د ایراني ایرنا خبري اژانس سره (۲۰۲۰م د مارچ ۳) د طالبانو او امریکا تر منځ د هوکړې لاسلیک ته اشاره وکړه او هغه یې لا بله نښانه د واشنګټن د تروریزم او د دې هېواد د لرې تګ څخه ملاتړ وګڼلو.

د دې خپرونې د راپور په اساس، لونید ایواشف ویلي: د طالبانو ډله په کړاتو په خپلو کړنو دا ثابته کړې ده چې یو تروریستي ډله ده او په زرګونو د افغانستان خلک او افسران او د هېواد دولتي مامورین د طالبان له لاسه وژل شوي دي. هغه اضافه کړه: د طالبانو د ډلې مشران هېڅکله هم له خپلو کړو څخه پښیماني نه ده ښودلې او نه یې دي ویلي چې تروریستي لاره به یوې خواته پرېږدي او د نړیوالې ټولنې له نظره دا یو تروریستي ډله ده.

ایواشف وویل: د طالبانو د ډلې سره د هوکړې په لاسلیکولو، دا یو ځل بیا ښکاره کوي چې امریکا تروریستان په ښه او بد برخو ویشي او د هغه تروریستي ډلو سره چې د شر اچونکي یا ډلو کې دي هغوي سره مبارزه کوي او د نورو سره یې همکاري او مرسته کوي.

د روسیې د ژیوپولیتیک مطالعاتو د اکاډمۍ رییس په دې معتقد دی چې په ډېر احتمال سره امریکا د طالبانو له ډلې څخه د ژیوپولیتیک موخو ته د رسېدو په خاطر استفاده کوي. هغه په دې اړوند وویل چې د دې احتمال شته چې امریکا دې قصد ولري چې د طالبانو هغه ډله چې د افغانستان نوي دولت ته داخلېږي، د دې دولت سیاستونه د ایران او د روسیې پر ضد او په احتمال سره د چین په وړاندې خصمانه سیاستونه کړي. دایواشف په وینا، د طالبانو ډلې ممکن په هغه طرحو کې چې د منځنۍ اسیا د بې ثباتۍ په موخه دي هم په پټه برخه ولري. هغه وول چې له هېچا څخه پټ نه دي چې امریکا غواړي چې د منځنۍ اسیا سیمه چې د روسیې په څنګ کې دي بې ثباته کړي او د دې موخې د سرته رسولو په منظور څېړنې کوي. د هغه په اند واشنګټن ته د طالبانو د ډلې نیږدې کېدل د دې ډلې د مرستې امکان د منځنۍ اسیا د بې ثباته کولو په برخه کې برابروي.

ایواشف په دې باور دی چې د امریکا او د طالبانو د ډلې تر منځ د سولې د هوکړې د لاسلیک کېدو څخه په ورسته شرایطو کې باید د سیمې هېوادونه متوجه او بیداره اوسي او د دې ډلې خوځښتونه او هم د داعش د تروریستي ډلې چې په افغانستان کې یې نفوذ ډېر کړی او د افغانستان د همسرحدو سیمو د بې ثباته کولو په اړوند هڅې کوي، د نظر لاندې وساتي.

د دې مرکي خپرول د ایرنا خبري اژانس لخوا د ایران او د روسیه ګډه پریشاني د امریکا او د طالبانو تر منځ د سولې د هوکړې په اړوند ښکاره کوي.

**د سولې بین الافغاني مذاکرات**

د افغانستان د دولت او د طالبانو په نظر کې اختلاف د بین الافغاني مذاکراتو په تعریف کې موجود دی. طالبان د افغانستان دولت په رسمیت نه پیژني هغه ته د کابل د اداري نوم ورکوي چې حاضر نه دي هغه سره مذاکراتو ته داخل شي. د طالبانو لپاره بین الافغاني مذاکرات د اسلامي امارت او د گوندونو، سیاسي تنظیمونو او مطرح شخصیتونو لکه حامد کرزي او د کابل د اداري استازي د هرې ډلې په خپلواکۍ به سرته ورسېږي. هغوي د دولت او د گوندونو او سیاسي تنظیمونو او مطرح شخصیتونو څخه جوړ یو گډ هیئت د معصوم ستانکزي په ریاست چې د دولتي امنیت پخوانی رییس او د د دولت استازی دی څخه راضي نه دي.

د دولت لخوا د مذاکره کوونکو هیئت پېژندل شوی دی د ټولو مختلفو اقشارو، سره د پراخ بنسټو مشورو څخه وروسته د جهادي تنظیمونو او گوندونو او مدني ډلو څخه د دوی د استازو په برخه اخیستو جوړ شوی دی. دا هیئت د امریکا له نظره چې د طالبانو سره د هوکړې یو اړخ دی ټول شموله دی او کولی شي د طالبانو سره مذاکرات ؛بین الافغاني؛ سرته ورسوي. دا ډلې په تېرو نولس کلونو کې د اساسي قانون د حمایت لاندې او د هغه د امتیازاتو څخه په گټه اخیستلو په هېواد کې فعالیت درلود او د طالبانو لخوا د دښمن په سترگه ورته کتل شوي دي او اوس په یوه متحده جبهه کې د دولت سره د طالبانو سره د مذاکراتو په خاطر د سولې د تامین او د طالبانو د اشتراک د شرایطو د منځ ته راوړلو لپاره د هېواد په ټولنیز او سیاسي ژوند کې چمتو دي د دي موضوع پر بنسټ، دولت د یو مشروع، رسمي استازي په نامه د نظام په داخل کې د قومي ډلو، سیاسي گوندونو،مدني نهادونو او ضرر پذیره اقشارو لکه ښځو، اقلیتونو او د جگړې د قربانیانو د نظریاتو او لیدلورو د اصلي استازي په نامه حسابېږي مکلف دي چې د سولې د تګلارې په وړاندې وړلو او د دې مجموعې د اصلي پریشانیو او حساسیتونو د جوړونکي تعاملات په نظر کې وساتي. طالبان د خپل مقابل اړخ د هیئت د ویټو صلاحیت نه لري. دا اصل نړیواله ټولنې تایید کړې ده.

د دې لیدلور پر اساس، که طالبانو غوارې چې د دوی پلویان د سولې په مذاکراتو کې برخه واخلي،د شک څخه پرته په هغه کې ځوانان، ښوونکي،د پوهنتون استادان،ښځې، د طب ډاکټران، انجینیران، سیاست او د اقتصاد عالمان او نور شامل دي، د ملایانو شمېر د خپل هیئت څخه کم کړي او د هغوی په ځای څو شمېر له دې قشرونو څخه خپلو استازو کې شامل کړي د مذاکراتو په موخو کې هم د طالبانو او د دولت په منځ کې اختلاف شته. په داسې حال کې چې د سولې تامین او د طالبانو لپاره د هېواد په سیاسي او ټولنیز ژوند کې د برخه اخیستلو د امکاناتو منځته راوړل د دولتي هیئت د جوړېدو موخه دي، د طالبانو لپاره د فاتح ډلې تر نامه چې گټې دوی امریکا او نور متحدین وتلو ته اړ کړي، د برنامه او د مقتدر سره چې راتلونکي سیاسي نظام جوړ کړي او د هغه مشري په لاس کې واخلي. په دې فرضیه کې، طالبان تضمین کوي چې له افغانستان څخه د امریکا منافعوو ته کوم خطر متوجه نه شي او ژورو فرهنگي او سیاسي توپیرونو په پوهه چې په هېواد کې یې په تېرو ۱۹ کلونو کې شتون موندلی او د خلکو خوږې او ترخې خاطرې د دوي د حکومتدارۍ له تجربې څخه چې د ۹۰ ز لسیزه کې وو، هڅې کوي څو د انعطاف منل،نسبي فکري تحول او لا ډېر چمتووالی د نورو جریاناتو او قومونو د مشارکت لپاره د هېواد په اداره کې د خپل ځان څخه ښکاره کړي. مگر د طالبانو

فکري اساساتو ته په کتو د نورو مشارکت او فکري تحول به یوازې یو سمبولیکه جنبه ولري. د دې پر اساس د مذاکراتو د لړۍ اوږدوالی او سختوالی او د تګلاره یې په دې فرضیه چې پیل شي، کولی شو له همدې ټکي څخه پوه شو.

د دولت او د طالبانو تر منځ د مذاکراتو څخه پرته، بل هېڅ لاره د تفاهم، اوربند او د سولې په تامینېدو نه ختمېږي!

باید پوه شو چې سوله یوازې هغه وخت ممکنه ده چې طالبان ومني چې د دوی اسلامي امارت بیا جوړېدونکی نه دی بلکې د یو نننې موډرن اسلامي جمهوریت په جوړولو او پکې په اشتراک کولو چې داسې وي لکه اندونیزیا، ترکیه او مالیزیا چې په هغه کې د خلکو اساسي حقوق د ښځو د حقوقو په شمول محفوظ وي او د دولت سره په جدي مذاکراتو کې داخل شي.

په همدې اساس د قریب الوقوع سولې مذاکراتو سره باید د بن د ۲۰۰۱ کال د کنفرانس په شان چلند و نه شي. باید هېواد بې دولته و نه بلل شي او د طالبانو د نظر په اساس د افغانستان د دولت نقش د یو سیاسي تنظیم په سطحه محدود کړی شي او هغه د پوښتني لاندې راوستل شي. دا چې د طالبانو او د امریکا تر منځ په هوکړه کې له کومې ژبې څخه استفاده شوې ده، دا د افغانستان دولت د هغه په سرته رسولو او اجرا نه مکلف او نه مقید کوي. د هغه دوه اړخونو هوکړه یوازې د بهرنیو ځواکونو د ماموریت په موجودیت او ختم کې اعتبار لري.

که د مذاکرات د دې په موخه وي چې د طالبانو اسلامي امارت یو ځل بیا د پاکستان د تحت الحمایه دولت جوړېدل وي دا یو فرصت نه بلکې د طالبانو او د پاکستان بریالیتوب د دیپلوماسۍ له لارې د خپلو موخو د لاسته راوړنې په خاطر دي هغه چې د جګړې په ډګر کې یې لاسته رانوړلی شي.

د افغانستان دولت مجبور نه دی چې د سولې مذاکرات د طالبانو، پاکستان او حتی د امریکا لخوا د طرح شویو قواعدو په چوکاټ کې، سرته ورسوي. د امریکا او د ناټو د بهر ته وتلو پورې اړوند بعدونه په شرایطو د امریکا او د طالبانو په هوکړه کې ورباندې توافق شوی او اوس داخلي اړخونه د معضلې د طالبانو او د دولت د سیاسي ګوندونو تر منځ د بحث لاندې نیول کېږي.

ځینې نننې اوضاع د نجیب الله د دولت د سقوط شرایطو سره پرتله کوي، په داسې حال کې چې دا مقایسه کول سطحي او بې بنسټه دي. د نجیب الله دولت د افغانستان د ټولنې او د نړۍ د بې تفاوتۍ په شرایطو کې د پخواني شوروي اتحاد په شمول، او په افغانستان کې د شوروي اتحاد څخه وروسته د پاتې شوي دولت د مالي سرچینو وچېدلو څخه زوال باندې محکوم وو. د اشرف غني دولت د دې شرایطو سره مخ نه دی. د هغه دولت تر اوسه هم د افغاني او نړیوالو ټولنو د پراخ بنسټو ملاتړو څخه برخه مند دي.

ځینې بیا د افغانستان څخه د امریکا د وتلو پایله د ویتنام څخه د لاسته راغلې تجربې سره مقایسه کوي او وایي د امریکا وتل د نننې موډرن ویتنام د یو هېواد په شتون ختمه شوه چې په داخلي سیمه کې ویتنام په یو مترقي هېواد او مخ پر ودې هېواد بدل کړ او په نړیواله ټولنه کې د یو مسوول هېواد په شکل عمل کوي.

دا مفسرین دا له یاده وباسي چې افغانستان ویتنام نه دی او ملا هیبت الله او شریکان یې د هوچي سره هېڅ شباهت نه لري. هوچیمن د مسکو او پاریس تحصیل کړی وو موډرنېټه او پرمختګ باندې یې عقیده درلود او د هغه ګوند ننني پر مختللی ویتنام طرحه جوړه کړه او عملي یې کړه په داسې حال کې چې ملا هیبت الله او ملا برادر د پاکستاني سلفي د منځنیو پېړیو د دیني مدرسو فارغان دي د هېڅ موډرنیټي پذیره او د نړۍ پرمختګ او هېڅ د بشر حقوقو اصل او د دولتدارۍ موازین د موجوده عصر باندې عقیده نه لري. حتی له همدې ورځې څخه پاکستاني طالبان د افغان طالبانو په ملاتړ د یو طالبي پاکستان جوړولو ته سترګې نیولې دي.هغه مار چې د نورو د چېچلو په موخه یې ساتلو یوه ورځ په یو لوی ښامار بدلېږي چې خپل خاوند به وخوري!

د سولې مذاکرات لا تر اوسه نه دي پیل شوي او اساسي اختلافات د نظریاتو د هغه د ډول، عمل او د افغانستان د راتلونکي سیاسي او نظامي موخې تر اوسه د طرفینو د مذاکراتو په میز نه دي مطرح شوې. موږ تر اوسه هم د کړۍ په یو تاوو کې یو. ښکاري چې ښاغلی ډونالډ ټرمپ د نوبل سولې د جایزې د ترلاسه کولو په موخه باید لانور هم انتظار وکړي.

په دې شرایطو کې په داسې حال کې چې دولت د خپل مذاکرې هیئت او ګوندونه یې د ګوندونو په توافق سیاسي غمي معرفي کړي او همداراز د طالبانو د پنځه زره زندانیانو د خوشې کولو سره په پرنسیپ کې د سولې د مذاکراتو لپاره توافق کړی **اوس د سولې توپ یا پندوسکه د طالبانو په میدان کې دی.**

# څوارلسمه برخه: د اسلامي جمهوري دولت نسکورېدل

د ۲۰۲۱ کال د اگست په ۱۵مه نېټه محمد اشرف غني او د ارگ یو شمېر لوړ پوړي چارواکي، د ښاغلي محب په گډون، د هلیکوپترو پواسطه له کابل څخه ووتل او د دوی د وتلو څو ساعته وروسته طالب جنگیالي د ارگ ماڼۍ ته د ننه شول. اشرف غني او ورسره کسان یې لومړی د اموسیند پر غاړه د ازبکستان د ترمذ ښارگوټي ته په الوتنه کې له ۳٦ ساعته ځنډ وروسته د قزاقستان د یوې چارتر الوتکې په واسطه متحده عربي اماراتو ته ورسېدل. په دې توگه د افغانستان اسلامي جمهوري دولت له شل کلنې واکمنۍ وروسته نسکور شو.

د 13 ورځو په ترڅ کې، طالبانو د هېواد په گوټ گوټ کې د ولایتونو مرکزونه د لږ یا هېڅ مقاومت سره د مخ کېدو پرته په خپل تصرف کې راوستل. په دې توگه، د ۲۰۲۱ کال د اگست په ۱۵ نېټه، طالب جنگیالي د کابل په څنډه کې د چټکو عملیاتو په ترڅ کې چې د مې میاشتې څخه له افغانستان څخه د متحده ایالاتو او ناټو د ځواکونو او د هغوی د متحدینو له وتلو سره سم پیل شول، د کابل شاوخوا سیمو ته راورسېدل. طالب جنگیالیو له هېڅ مقاومت پرته د ولسمشرۍ ماڼۍ کلابنده کړه، دا په داسې حال کې چې د دوی له راتگ څخه مخکې ولسمشر محمد اشرف غني او د ملي امنیت سلاکار حمدالله محب او د ولسمشرۍ د ادارې مشر محمود فضلي په گډون د هغه نیږدې ملگري د ارگ له ماڼۍ څخه وتلي وو.

د دې څخه وروسته، د اگست د میاشتې په ۱۸ نېټه له متحده عربي اماراتو څخه په یوه ویډیویي پیغام کې اشرف غني داسې څرگندونې وکړې چې له هېواده وتلو ته اړ شوی دی ځکه امنیتي چارواکو ورته ویلي وو چې ده ته "د ځاني دسیسې" خطر موجود وو. هغه وویل چې طالبان د ده د وتلو څخه وروسته د ولسمشرۍ ماڼۍ یا ارگ ته ننوتي او په ده پسې کوټه په کوټه گرځېدلي دي: "طالبانو ویلي وو چې تر هغو چې زه په واک کې وم، سوله‌ییزه لاره به موجوده نه وي.ii ښاغلي غني وویل چې افغانستان کې د وینې تویولو او ممکنه ناورین د مخنیوي لپاره د افغانستان څخه وتلی، که نه د افغانستان وضعیت به د سوریې او یمن په څېر و.

د دې څخه وروسته د امریکا د ترانزیټي الوتکو په کارولو سره د کابل په هوایي ډگر کې د زرگونو کسانو زړه راښکونکې صحنې راڅرگندې شوې، چې د ۱۹۷۳ زکال د ویتنام په سایگون کې د امریکا له وتلو سره سم یې د هغه وخت د خلکو یادښتونه را ژوندي کړل. خو له افغانستان څخه د امریکایي او ناټو ځواکونو د وتلو لړۍ دوام درلود، له افغانستان څخه له شلو کلو د پاتې کېدو وروسته د ۲۰۲۱ کال د اگست په ۳۱ نېټه دوی له افغانستان څخه د خپلو ځواکونو د بشپړ وتلو پروسه تکمیل کړه.

وروسته له هغه چې طالبانو د مې په میاشت په ټول هېواد کې په پراخه کچه بریدونه پیل کړل، هېچا د 2021 کال د اګست تر 15مې پورې د افغان ملي اردو د ناڅاپي سقوط پېشبیني نه وه کړې. په افغانستان کې دننه او بهر هېڅوک، حتی طالبان، پاکستان او متحده ایالات د افغان ملي اردو د ناڅاپه سقوط او نسکورېدو تمه نه درلوده چې د افغانستان د تکړه او مسلکي اجیرانو کوم چې د امریکا، المان، انګلیس او د نورو غربي هېوادونو له خوا روزل شوي او سمبال شوي عسکر وو، راوپرځي.

د می، جون او جولای د میاشتو په لړ کې چې د بهرنیو ځواکونو د بشپړ وتلو نېټه رانیږدې کېده، طالبانو د افغانستان شاوخوا نیمایي ولسوالۍ تر خپلې ولکې لاندې راوستې، خو تر اوسه یې د یوه ولایت مرکز هم نه وو نیولی. په دې موده کې له تورخم او حیرتان بندر پرته له ګاونډیو هېوادونو سره د افغانستان ټول سرحدي بندرونه د طالبانو لاس ته ورغلل.

خو د اګست له 2 څخه تر ۱۵ نېټې په ۱۳ ورځو کې د افغانستان د ټولو ولایتونو د مرکزونو ناڅاپه د طالبانو لاس ته لوېدل په لاندې ډول سرته ورسېدل:

د اګست په ۲، طالبانو د رسنیو د راپورونو له مخې، د افغانستان درېیم لوی ښار هرات ونیول شو.

د اګست په ٦مه، له افغانستان څخه د راپورونو له مخې، طالبانو د نیمروز د ولایت مرکز د زرنج ښار نیولی دی. دا په تېرو پنځو کلونو کې لومړی ځل دی چې طالبان د یوه ولایت مرکز تر خپل کنټرول لاندې راولي.

د اګست په ۷مه، د جوزجان ولایت مرکز شبرغان ښار یې تر خپلې ولکې لاندې راوست. جوزجان د افغانستان په شمال کې یو له مهمو ولایتونو څخه دی.

د اګست په ۱۲، طالبانو بي بي سي ته وویل چې کندهار هم د دوی په کنټرول کې دی. د کندهار یو اوسېدونکي خبریال لیکلي چې د کندهار ولایتي اداري ماڼۍ ته یې نیږدې طالبان ولیدل.

د اګست په ۱۲، د غزني والي محمد داوود لغماني له خپل مرستیال او د دفتر له رییس سره د غزني ښار له سقوط وروسته د کورنیو چارو وزارت د امنیتي ځواکونو له خوا د وردګو ولایت کې طالبانو ته د دغه ولایت د سپارلو په تور ونیول شو.

د اګست په ۱۳، د لوګر ولایت هم سقوط وکړ/ طالبان د کابل د سوېل اړخ اویا کیلومترۍ فاصلې ته ورسېدل.

د اګست په ۱۳، امریکایانو په کابل کې د امریکا د سفارت ټول اسناد له منځه یوړل او اور یې ورته واچولو څو د طالبانو لاس ته ورنه شي.

د اګست په ۱۴، د اناتولي خبریال راپور ورکړ چې د ننګرهار د ولایت مرکز جلال اباد ښار د طالبانو لاس ته ورغلی. هغه زیاته کړه چې طالبان د جلال اباد په شاوخوا کې ځای پر ځای شوي وو.

چې د اګست په ۱۴، د رویټرز اژانس یو خبریال د یوه محلي چارواکي د وینا په اساس ویلي چې، طالبانو د مزارشریف د ښار کنټرول تر لاسه کړ او حکومتي ځواکونه د ازبکستان پولې ته وتښتېدل. ویل کېږي چې عطا محمد نور او مارشال دوستم چې د ښار په دفاع بوخت وو، د ازبکستان هېواد په لور د حیرتان بندر ته تللي دي.

په دې توګه د قلعه نو او هرات له سقوط  څخه وروسته د اګست له ۲ نېټې څخه د اګست ۱۴ مې نېټې پورې د افغانستان د ۲۵ ولایتونو مرکزونه د طالبانو لاس ته ورغلل.

د اګست په ۱۴،  د وردګو ولایت پلازمېنه میدان ښار د طالبانو ولکې ته ولوېد.

د اګست په ۱۴مه، اقتصاد نیوز د افغانستان د فارس خبري اژانس د یوه خبریال په حواله راپور ورکړ شو، چې " طالبان کابل ته نیږدې شول. ویل کېږي چې د کابل په څنډو او د پغمان او پروان په ښارونو کې نښتې روانې دي."

په همدې وخت کې سي ان ان خبري اژانس وویل چې؛ د افغانستان د ولسمشرۍ ماڼۍ ته امریکایي ځواکونه ننوتي او ځانګړي ځواکونه او د ولسمشرۍ ګارد یې خلع سلاح او بې وسلې کړی،؛ مګر دا خبر په مستقلانه ډول سره تایید شوې نه ده  او د سي ان ان په ویبسایټ کې هم موجود نه دی. د ولسمشرۍ ماڼۍ په محوطه کې درې الوتکې موجود دي. ویل کېږي چې د پغمان درې امنیتي پوستې طالبانو نیولې دي.

د اګست په ۱۵مه، طالب وسله والو ځواکونو، له هېڅ مقاومت څخه پرته د ولسمشرۍ ماڼۍ ونیوله، دا په داسې حال کې چې د دوی له راتګ څخه د مخه، ولسمشر محمد اشرف غني، د ملي امنیت سلاکار حمدالله محب او د ولسمشرۍ د ادارې مشر محمود فضلي له خپلو نیږدې ملګرو سره د ارګ له ماڼۍ څخه وتلي وو.

د اګست په ۱۵، په کابل کې د پاکستان لپاره د طالبانو پخوانی سفیر ملا عبدالسلام ضعیف وویل چې حامد کرزي هغه ته تېره شپه دوه ځله ټیلیفون وکړ او ټینګار یې وکړ چې ولسمشر اشرف غني دې له کابله ووځي او د طالبانو جنګیالیو ته د خبر ورکړي چې د کابل ښار ته راننوځي.

د دې ناڅاپي نسکورېدو لاملونه څه وو؟

له بده مرغه په افغانستان کې د دې ستر زوال د اصلي لاملونو او د اصلي لاملونو په لټه کې یو زیات شمېر تحصیل کړي خلک د موجوده ځوابونو منندوی نه دي، ځکه چې دوی د دې نسکورېدو لاملونه له وړاندې په خپلو ذهنونو کې موندلي او په اسانه یې د بدلون لپاره زړه نه ښه کوي.

د پښتون ضد او ملتپالنې ضد لیدلوري سره، د دې ډلو لپاره ټول پښتانه طالبان یا لږ تر لږه د طالبانو پلویان دي. دوی په دې باور دي چې په تېرو شلو کلونو کې د حامد کرزي او اشرف غني په ګډون پښتنو مشرانو د طالبانو ملاتړ کړی، طالب جنګیالي چې اکثره یې پښتانه دي، د افغانستان شمالي سیمو ته لېږدول او سمبالول او بلاخره د امریکا او ناټو

ځواکونو له وتلو وروسته حکومت او ملي اردو يې طالبانو ته تسليم کړې ده. د دوی لپاره د حامد کرزي لخوا طالبانو ته "ورونه" ويل او د هغو پښتنو بنديانو خوشي کول چې د اشرف غني له خوا د دوی په دوسيو کې کافي جرمي شواهد نه وو، د دې ثبوت دی چې دوی په خپله طالبان دي.

خو د افغان روڼ اندو لپاره اړينه ده چې د افغان حکومت او ملي اردو د ناڅاپه سقوط پر لاملونو او اساساتو پوه شي. په حکومت کې د ډېرو ستونزو او نيمګړتياوو سره سره، په ميليونونو افغان روڼ اندي د اسلامي جمهوريت او د ۲۰۰۴ کال د اساسي قانون په چوکاټ کې د يوه سوکاله، ډيموکراتيک او متمدن افغانستان د روښانه راتلونکې او هوسا افغانستان لپاره ډېرې هيلې درلودې. خو د طالبانو بريا د اسلامي شريعت د حاکميت په ايډيالوژۍ سره د طالبانو د تعبير له مخې چې د نړۍ په هېڅ هېواد کې حاکميت نه لري، دغه هيلې له خاورو سره خاورې شوې. نو ډېرو پوښتنو ته په دې برخه کې بايد ځواب ورکړل شي، څو زموږ راتلونکي نسلونه د دې پېښې په اړه روښانه تاريخي پوهه ولري.

که څه هم د پردې تر شا د راکړې ورکړې لاملونه چې د داسې ناڅاپي نسکورېدو لاملونه شول، په بشپړه توګه روښانه نه دي، او حقايق به د وخت په تېرېدو سره روښانه شي، دا مقاله هڅه کوي چې د دې پېچلې رمز لوی او کوچنۍ تيت او شنلې برخې سره يو ځای کړي څو يو روښانه انځور وړاندې کړي چې واقعاً څه پېښ شول.

د افغانستان د ولسمشر لومړي مرستيال امرالله صالح د طالبانو د وروستي تسلط د لاملونو يو لست په ګوته کړ، چې په کې د امريکا او د هغې د متحدينو له خوا د دغې ډلې د فعاليتونو د تحميل او د دوحې د خبرو له لارې د دې ډلې مشروعيت ته هم پکې اشاره شوې. د ايسنا د راپور له مخې، امرالله صالح د اګست په ۲۸ نېټه له هند نيوز ۱۸ تلويزيوني شبکې سره په مرکه کې وويل ii: دا څرګنده ده چې طالبان هېڅکله تر فشار لاندې نه وو. دوی له پاکستان څخه د خپل ملاتړ د اډې په توګه کار اخيستی دی. بلکې ټول پاکستان د طالبانو په خدمت کې وو. متحده ايالاتو هڅه وکړه چې پاکستان دې ته وهڅوي چې همکاري وکړي. څومره چې دوی پيسې ورکولې، په همغه اندازه يې پاکستانيان هڅول چې طالبانو ته خدمات او مرستې برابرې کړي، نو د دغه اتومي حکومت مسئله چې په افغانستان کې يې د خپلو لوېديځوالو متحدينو پر ضد د ترهګرۍ او تروريستانو ملاتړ کوي، هېڅکله ورته پام نه شو او د قطر په دوحه کې هم د بين الافغاني غونډې طالبانو ته د مشروعيت ورکولو په برخه کې مرسته وکړه. په خپلو ژمنو يې وفا ونه کړه او ټوله نړيواله ټولنه يې دوکه کړه.

حتی د امريکا د مسلح ځواکونو لوی درستيز، د دفاع وزير او د امريکا ولسمشر هم حيران شول؟ د امريکا د پوځ لوی درستيز مارک ميلي وويل: iii ما او نورو هېڅ داسې څه ونه ليدل چې د افغانستان د حکومت د نسکورېدو نښه وښيي.؛ دوی فکر هم نه کاوه چې د جګړې له ډګر څخه د امريکا وتل به د نسکورېدو لامل شي، ځکه امريکا له تېرو پنځو کلونو راهيسې له طالبانو سره په ځمکنۍ جګړه کې اصلاً ښکېل نه وو

د **ناټو سرمنشي ينس سټولټنبرګ** د ۲۰۲۱ کال د اګست په ۱۷ د دويچه ويله د راپور پر بنسټ، ويلي دي چې ivهغه په افغانستان کې د طالبانو د چټکې بريا له امله "حيران شوی" دی. هغه د دې غميزې پړه پر افغان حکومت واچوله. د ناټو سرمنشي د حکومت د نسکورېدو څخه وروسته د افغانستان په اړه وويل، "د افغانستان سياسي مشرتابه بلاخره د طالبانو په وړاندې په دربېدو او هغه سوله ييز حل ته په رسېدو کې پاتې راغلي چې افغانان يې په شدت سره غوښتونکي وو.؛ ستولتنرګ بيا وويل، ؛دا د هغې غميزې لامل شوی چې موږ يې نن شاهدان يو؛. هغه زياته کړه چې، په افغانستان کې د ناټو موخه د يوه تل پاتې حکومت په جوړولو کې مرسته وه، نه دايمي حضور. هغه له شل کلنې هڅې وروسته د طالبانو پر وړاندې د حکومت نسکورېدل يوه غميزه وبلله.

ولسمشر بايډن په چټکۍ سره د نسکورېدو پړه د افغانستان پر ملي اردو واچوله! بايډن له سقوط وروسته وويل، «امريکايي پوځيان نه شي کولی او نه بايد په داسې جګړه کې ښکېل وي او يا مړه شي چې افغان پوځيان په خپله د جګړې د کولو څخه ډډه کوي.؛

خو د افغان کوماندو د يو افسر په قول چې سرفراز نومېږي، په حقيقت کې د امريکا ولسمشر جوبايډن دروغ ويلي او بايد وشرمېږي. دغه افسر وويل: "موږ په جګړه کې 70,000 کسان له لاسه ورکړل، او له 2014 راهيسې موږ د ټولو جنګي عملياتو 95٪ په خپله ترسره کړي دي. لکه څنګه چې موږ پاکول، امريکايانو زموږ هوايي ملاتړ او د مخابراتي اکمالاتو سلسله قطع کړه. دوی زموږ لاسونه تر شا راوتړل."

خو هغه پوځ چې له ۲۰۱۴ کال راهيسې د ۹۵ سلنې څخه د زياتو پوځي عملياتو مشري په غاړه درلوده، څنګه يو نابېره د قند او ګوړې په څېر اوبو کې منحل او مات شو او طالبان په دې وتوانېدل چې د لږ مقاومت سره واک بېرته ترلاسه کړي؟

په حقيقت کې د ۱۵۰۰۰ بهرنيو تخنيکرانو او قراردادیانو په وتلو سره ملي اردو خپله عملياتي وړتيا چې د هوايي ځواک او پوځي تجهيزاتو د ترميم او چمتو کولو دندې يې پر غاړه درلودې، له لاسه ورکړه.

د جګړې بايلل هېڅکله هم د خوښۍ وړ نه دي، خو هېڅوا يې په دې پيمانه د ماتې، تېښتو او د ګډوډيو تصور هم نه و کړی. موږ ټول هغه انځورونه ليدلي چې د امريکا او افغان حکومتونو او په تېره بيا د امريکا د وروستيو دوو حکومتونو، ډونالډ ټرمپ او بايډن د غفلت، ناکامۍ او غير موثره مديريت دروند بار په ډاګه کوي.

**د نسکورېدو لاملونه څه دي؟**

موږ په څو مهمو فکتورونو تمرکز کوو چې په افغانستان کې د طالبانو د بيا راپورته کېدو لامل تشريح کوي. څلور سناريوګانې رامنځته شوې چې يو بل يې بشپړ کړل، دا عوامل دا وو:

لومړی: د افغانستان د ملي اردو ستونزې؛

دوهم: د امریکا په سیاسي او ستراتیژیکو لومړیتوبونو کې بدلونونه؛

درېیم: د افغانستان د حکومت د مشرتابه کمزورتیاوې او په دې کې د امریکا رول؛ او

څلورم: د پاکستان عامل.

پورتنۍ سناریوګانې یو د بل بشپړوونکې دي، په داسې حال کې چې د افغانستان د حکومت په ناکامۍ کې د دوی هر یو نسبي وزن او اغېز په یقین سره نشو په ګوته کولی، مګر موږ ټول پوهېږو چې دا ټول د هغه څه چې وشول په دغه لار کې یې پرېکړه کوونکو ونډه درلوده.

**لومړې: د افغانستان د ملي اردو ستونزې**

- **په تشکیل او د ادارې په مدیریت کې تېروتنې**

د افغانستان لپاره د امریکا د سرمفتش دفتر (سیګار) په وینا، د امریکا د حکومت له خوا د افغانستان په بیارغونه کې د شاوخوا 145 میلیارد ډالرو لګښت شوی، نیږدې 83 میلیارد ډالر د اردو او پولیس ځواکونو د پراختیا او ملاتړ لپاره ځانګړي شوي دي. دا 145 میلیارده ډالر د 837 میلیارد ډالرو سربېره دي کوم چې متحده ایالاتو په جګړه کې مصرف کړي. هغه جګړه چې د ۲۰۰۱ کال د اکتوبر په میاشت کې له یرغل سره پیل شوه.

په تېرو ۲۰ کلونو کې په افغان ځواکونو ۸۳ میلیارده ډالره پانګونه شوې چې د امریکا د سمندري ځواکونو د تېر کال د بودیجې په پرتله دوه برابره ده او د تېر کال د واشنګټن له بودجې څخه چې د ۴۰ میلیونو امریکایانو لپاره د خوراکي توکو د مرستو په برخه کې شوې وه لږ څه زیاته ده.

ښکاره ده چې د امریکا متحده ایالاتو په افغانستان کې ډېرې تېروتنې کړې دي. ښایي له دی تېروتنو څخه تر ټولو مهمه په افغانستان کې د داسې یوې اردو او امنیتي ځواکونو د رامنځ ته کولو ناکامي وي چې طالبانو ته ماتې ورکړي.

په ورته وخت کې یو شمېر شنونکو یوې ډېرې مشخصې موضوع ته اشاره کړې ده. د اردو او پولیسو ځواک جوړول په هېڅ ډول اسانه نه دي، په ځانګړې توګه په افغانستان کې د دې دندې سرته رسول اسانه نه دي. او سربېره پر دې، د تلفاتو له امله د کارپوهانو او پرسونل بدلون غمیزه هر څه لا نور خورا پېچلي کوي. د امریکا د ځانګړو عملیاتو د قوماندې پخواني قوماندان مایکل میکاتا په وینا: ،موږ امریکایي پوځیانو ته د قانون د رعایت، د بشري حقونو د درناوي او یا د رشوت د نه اخیستلو په برخه کې روزنې ته ضرورت نه لرو. دا اکثراً د سیاسي او ټولنیزو شرایطو سره په مطابقت کې د دوی د ځواکونو به صفونو کې د راننوتلو څخه وړاندې زده وي. موږ کوښښ وکړ چې د افغان نظامیانو هم داسې یوه فرضیه په افکارو کې ترسیم کړو، خو ممکن ده چې دا د سیاسي او ټولنیزو هغه شرایطو سره چې پوځیان پکې اخته دي، مطابقت ونه لري."

حقیقت دا دی چې کله د امریکا متحده ایالاتو په ۲۰۰۱ کال کې پر افغانستان یرغل وکړ او د تاسیس شویو جهادي تنظیمونو په مرسته یې طالبان مات کړل، په افغانستان کې یې د ملي اردو او ملي پولیسو جوړولو ته ډېره پاملرنه ونه کړه. په هغه وخت کې متحده ایالاتو خپله توجه عراق ته واړوله او له عراق سره د زیاتې لېوالتیا لامل په افغانستان کې د لګښتونو د کمښت لامل شو.

ولسمشر بوش او د دفاع وزیر یې ډونالډ رمزفیلډ دوه لویې تېروتنې وکړې:

لومړی، دوی د سیاسي حل د موندلو لپاره د خبرو اترو غوښتنې د ډېری طالب مشرانو لخوا رد کړله؛ او

دوهم، دوی ټینګار کاوه چې د 50,000 پیاوړې ملي اردو کولی شي د افغانستان په ځېر لوی هېواد کنټرول کړي.

برسېره پردې، پنټاګون غوښتل چې لګښتونه کم کړي، نو دوی په 2006 کې د رمزفیلډ تر وتلو پورې د سرتېرو د ساتلو څخه د معاشونو او لګښتونو په ساتلو ټینګار وکړ. په داسې حال کې چې طالبانو خپلو بریدونو ته زور ورکړ، یوازې 26,000 افغان سرتېري روزل شوي او تجهیز شوي وو. دا پرېکړه ځکه ګرانه وه چې په راتلونکو کلونو کې به د افغانستان د پوځ نیمګړتیاوې د هر کال د یو میلیون ډالرو په لګښت د امریکایي ځواکونو له خوا پوره شي.

تر ټولو بده خبره دا ده چې د افغانستان پوځ هېڅکله هم په دې قادر نه شو چې ځان په یوه عصري او مډرن اردو سمبال کړي چې د اړتیا وړ د تجهیزاتو ارګان ولري.. یو عصري اردو یوازې دا نه بلل کېږي چې سرتیري په لاس وسلې ولري. د مثال په توګه، په کمپ کې د هر ډول میکانیزم، مسلکي دفتر او د کمپ کارکوونکي، ډاکټران او طبي پرسونل نه شته وو. په افغان پوځ کې داسې څه نه دي شوي. په اصل کې، د بوش او رمزفیلډ پرېکړې په هېواد کې د فساد د پیاوړتیا لپاره تر ټولو غوره کلونه بلل کېږی چې مخکې مو ورته اشاره وکړه.

که افغان ملي اردو او پولیس د طالبانو پر وړاندې د مقاومت لپاره روزل شوي او مجهز شوي نه وو، د هغوی لاملونه څه وو؟ دا پوښتنه د ډېرو نړیوالو رسنیو له خوا هغه مهال راپورته شوه، چې افغان وسله وال ځواکونه له یوې ډزې څخه هم پرته د هېواد پلازمینه نوي واکمنانو ته ورپرېښوده.

مګر یوه اردو چې له 80 میلیارد ډالرو څخه ډېره پانګونه پرې شوې وه، څنګه کولی شي دومره ستونزې ولري؟ ښه، یو دلیل د اردو په ډول کې دی: متحده ایالاتو دا اردو په خپله خوښه او پلان ډیزاین او چمتو کړې وه او په ټول هېواد کې یې په وېشل شویو اډو کې په خپله خوښه ځای پر ځای کړي وو، د یوې شبکې په کارولو سره چې په بشپړ ډول پر لوژستیکي سیستم پورې تړلی دی چې الوتکې او چورلکې د هغوی د سمبالولو او اکمالاتو د برابرولو سم توان نه درلود. په پایله کې د مثال په توګه د یوه افغان سرتیري په وینا: ؛کله چې د کندز ولایت د طالبانو لاس ته ولوېد، ډېر عسکر ووژل شول، موږ محاصره شو، هوایي ملاتړ نه و، په وروستۍ دقیقه کې زموږ قوماندان وویل چې دوی زموږ لپاره نور څه نه شي کولای او تېښته بهترینه لاره ده. دوی ټولو جګړه پرېښوده او وتښتېدل (۲۹ کلن افسر عبدالقدوس).

خو دا کافي نه دي چې په بشپړه توګه پوه شو چې ولې د افغانستان پوځ دومره ژر او په دومره چټکۍ منحل شو، هغه څه چې حتی د امریکا د متحده ایالاتو حکومت یې هم حیران کړ.

په هرصورت، د ملي اردو او پولیسو ډېری غړي داسې ښکاري چې د متحده ایالاتو او ناټو لخوا ورسره د مرسته شوي جنګي تجهیزاتو د کارولو او ساتنې توانایي نه درلوده. فرانس 24 شبکه راپور ورکوي چې متحده ایالاتو چې په 2011 کې له افغانستان څخه د سرتیرو په ایستلو پیل وکړ، دا حقیقت له پامه غورځولی چې د دی هېواد ډېری وسله وال ځواکونه نالوستي وو.

متحده ایالاتو او افغان حکومت دواړو د 300,000 څخه جوړ پیاوړې اردو په اړه ډېره مبالغه کړې وه. د 1 تر 4 حکومتي عسکرو تناسب د طالبانو په وړاندې کارول شوی ترڅو د اسلامي امارت د جنګیالیو په وړاندې مقاومت وکړي. د امریکا د استخباراتو په راپور کې هم اټکل شوی چې د بهرنیو ځواکونو له وتلو وروسته ښایي افغان حکومت تر دوو میاشتو پورې مقاومت وکړي او بیا به نسکور شي.

بل خوا د امریکا ویسټ پواینټ پوهنتون پورې تړلې (د ترهګرۍ ضد مرکز) د ۲۰۲۰ کال په یوه راپور کې ویلي چې د افغان وسله والو ځواکونو یوازې ۱۸ زره غړي د دفاع وزارت په چوکاټ کې دي او پاتې نور یې د پولیسو او نورو امنیتي ادارو لپاره کار کوي.

سر بېره پر دې ټولو مسایلو، متحده ایالاتو په «عمدي» توګه د ملي اردو کمزورتیاوې او نیمګړتیاوې پټې کړې. د افغانستان د بیارغونې لپاره د امریکا د مفتش دفتر (سیګار) رییس جان سوپکو په آخرو کې دا برملا کړه چې: کله د افغان پوځ د ارزونې وخت راغی، پوځ هدفونه بدل کړل چې دا آسانه کړي چې ووایو موږ بریالي شوي یو. حتی کله چې دوی بریالي نشول، دوی د ناکامۍ معلومات په محرمانه ډول طبقه بندي کول ترڅو د افشا کېدو مخه یې ونیسي. دوی [د امریکا پوځي څارونکي] پوهېدل چې افغانستان پوځ څومره بد حالت کې دی.

د سیګار آخرنۍ تازه راپور کانګرس ته خبرداری ورکړی وو چې "د پرمختللو وسلو کارول، زغروال تسهیلاتو او د غربي پوځونو ملاتړ د افغانستان په لویه کچه بې سواده پوځ ته د لاسرسي او توان څخه ډېر زیات لرې دي."

د ۲۰۱۵ کال د مني په موسم کې ۵۰۰ طالبانو په کندز ولایت کې ۳۰۰۰ افغان سرتېرو او پولیسو ته ماتې ورکړه. بیا په هلمند ولایت کې شاوخوا ۱۸۰۰ طالبانو شاوخوا ۴۵۰۰ عسکرو او پولیسو ته ماتې ورکړه. دا په دې مانا نه ده چې د افغانستان پوځ په دې کلونو کې کومه هڅه نه ده کړې، افغانان تر ټولو ډېرې جګړې زغملې او جنګیدلي دي. یوازې د پوځ او پولیسو څخه شاوخوا ۷۰ زره کسان وژل شوي دي. حقیقت دا دی چې د انګېزو څخه ملاتړ کول او د موادو نشتوالی دواړه په دې امر کې دخیل وو.

د افغانانو له کلونو کلونو روزنې وروسته، د امریکا پوځي سلاکاران اوس دې نتیجې ته رسېدلي، چې دوی ته د افغان پوځ د رښتیني ځواک په اړه ښه او لا روښانه لید ته اړتیا ده، او دې هدف ته د رسېدو لپاره باید له ډېر صبر او زیار څخه کار واخلي.

دوی باید د ژباړونکو په مرسته قوماندانان دې ته وهڅوي چې هغه نظامي پوستې چې دوی نه غواړي هغه پرېږدي، خوشي کړي او د برید کوونکو په وړاندې د متحده ایالاتو د جنګي الوتکو په هوايي بریدونو باندې د تکیه کولو پرځای خپله د حل لارې د لټولو هڅه وکړي.

تورن یا کپیتان فونټانا وايي: "له دغو قوماندانانو سره د معاملې تر ټولو غوره او آسانه لاره دا ده چې په زرګونو پونډه مهمات د چورلکې په واسطه انتقال کړو او ټول یې هغوی ته وسپارو. په دې توګه به موږ بریالي نه شو. موږ دوی پر امریکا تړلی او تکیه کړی او دا یوه تېروتنه ده."

د امریکا د دفاع یوه چارواکي د نوم د نه ښودلو په شرط د اسوشیټېډپرس خبري اژانس ته وویل، "د افغانستان د حکومت نسکورېدل د افغانستان د دولت د ځواکونو د ثبات په اړه د شرمناک قضاوت یوه پایله ده. د امریکا د پوځ او استخباراتي او اطلاعاتي ادارو له خوا دا قضاوت شوی وو."

امریکایي تورن فونټانا چې د افغانستان په زابل او کندهار ولایتونو او همدا راز په عراق کې د کار تجربه لري، د افغان پوځیانو د جنګي روحیې ستاینه کوي، خو زیاتوي چې د امریکا پوځ د لوژستیکي، تجهیزاتو د ساتنې او ملاتړ په برخه کې له نه ختمېدونکو ستونزو سره مخ دی. هغه ستونزې چې کلونه کلونه یې د یوه متحد او وړ افغان ځواک د رامنځته کېدو مخه نیولې ده چې په خپلو دوو پښو ودرېږي.

هغه وايي، ؛هغوی له هېڅ څه نه وېرېږي او ښه جنګېږي او ډزې کوي... د هغوی کمزوري ټکي د اکمالاتو کمښت او د ماموریت د امرونو او لارښوونو نشتوالی دی؛

د افغانستان د پوځ ځینو عناصرو د طالبانو په وړاندې سخته جګړه وکړه، په شمول د کماندو چې د اتلانو هڅې یې لا تر اوسه په بشپړه توګه ثبت شوې نه دي.

**په دې مانا چې د افغانستان پوځ د دې پر ځای چې د خپلو ماموریتونو په سیمو کې د ترهګرو د ښکار او له منځه وړلو لپاره یو ښه ځواک وګرځي، د دې پر ځای په زرګونو دفاعي پوستو کې بې دفاع ښکار شول، او تل د هوايي ملاتړ او د ځانګړو قطعاتو د کماندو راتګ ته انتظار کې پاتې شول. دا نوبت د طالب جنګیالیو لخوا شوی و، او هرکله چې ممکنه وي طالبانو پر دې پوستو بریدونه وکړل، افغان سرتېري یې وژلي او د هغوی وسلې او مهمات یې لوټول.**

نو د ملي اردو د ماتې لاملونه په لاندې ډول موندلی شو:

د طالبانو د پوځي کمپاین پر وړاندې ناکافي عملیاتي ستراتیژۍ او تاکتیکونه؛

له افغان پوځ څخه د هوایي ملاتړ نه کول؛

پر طالبانو د امریکا هوایي بریدونه درېدل؛

د بهرنیو قراردادیانو په وتلو سره د افغان پوځ د لوژیستیکي ملاتړ اخلال او ګډوډول؛

د افغان ملي اردو د جنګي او عملیاتي وړتیا کمول؛

د افغان افسرانو او سرتیرو مورال او روحیه کمزوري کول؛

دا د افغانستان د ملي اردو د نسکورېدو له مهمو عواملو څخه ګڼل کېږي.

په ملي اردو او هېواد کې د پراخ فساد شتون

خو تر ټولو مهمه دا هغه څه پورې اړه لري چې شاید په وروستیو لسیزو کې د افغانستان د جګړو تر ټولو څرګند ځانګړنه او خصوصیت به وي چې هغه د پراخ فساد موجودیت دی. او تاسو ګورئ، سره له دې چې امریکایانو ډېر پیسی ولګولې، که افغانانو ښه معاشات نه درلودی، دوی کولی شوی څو میاشتې معاش څخه پرته ژوند وکړي، حتی د مهماتو د کمښت سره سره هم. ګومان کېږي چې طالبان له څو میاشتو راهیسې له سیمه ییزو پوځي چارواکو سره معاملې کولی شي.

هېڅ سیمه د ګرمې جګړې په پایله کې نه ده نسکوره شوې، رواني جګړې یې یوازېنی علت و. (توکلی، په افغانستان کې د ۲۱۷ اتل قول اردو قوماندان.) موږ له مرکزي دولت څخه هېڅ مرسته نه ده ترلاسه کړې. هر چا خپلې وسلې تسلیم کړې او وتښتېدل. ولسوالي پرته له کومې نښتې سقوط وکړ. (۲۵ کلن افغان سرتیري رحیم الله)

اصلي خبره دا ده چې سرچینې کمې وې ځکه چې د امریکا ډېرې پیسې د دوبۍ یا قطر په ښېر ځایونو کې لګېدې، د بېلګې په توګه، د افغانستان پخوانی مرستیال احمد ضیا مسعود د 50 میلیون ډالرو څخه د ډېرو لګښتونو په تور تورن شو. هغه دوبۍ ته راغی چېرې چې هغه په یو لوکس او عصري کور کې ژوند کاوه او رولز رایس موټرونه یې چلول. په یوه بل مثال کې لوړپوړي پوځي او دولتي چارواکي د سرتېرو د شمېر په اړه دروغ وایي او د هغو سرتېرو معاشونه یې جیبونو ته اچولي چې شتون نه لري. یوه ورځ، امریکایانو چې د 300,000 څخه د زیاتو پوځي پرسونل او کارکوونکو معاشونه ورکول او احواله کول یې، معلومه کړه چې د دوی حقیقي شمېر په ډېر مشکل حتی د 250,000 څخه ډېر وو. د قانوني معاش او حقوقو د ادا کولو په صورت کې، ډېری قوماندانانو او جنګسالارانو معمولا د هغې یوه ښه لویه برخه شاته ساتل او سرتیري یې لا نور هم بدبخته او بی وزلی کول. په نهایت کې، سره له دې چې دوی باید د بریښنایی تادیاتو سیستم رامینځته کړ، ستونزې دوام درلود.

خو دا فساد یوازې په لوړپوړو کسانو پورې تړاو نه درلود، فساد په پراخه کچه وه. په هرصورت، که تاسو یو سرتیري ته چې د میاشتې 200 ډالرحقوق یې تر لاسه کول، د 1000 ډالرو په ارزښت تجهیزات ورکړئ، دا به د حیرانتیا خبره نه وي چې دا تجهیزات به په تور بازار کې ښکاره شي. همداسې وشول کله چې پنټاګون هڅه وکړه چې د افغانستان پوځ د شپې لیدو کمرو یا دوربینونو سمبال کړي، خو دا د شپې لید کمرې اکثرا ورکې شوې او وسایط او وسلې، مهمات، تیل، ګرځنده تلیفونونه او مهمات ټول په تور بازار کې ښکاره شول. په عموم کې، امریکایانو د رسېدونو په مقابل کې پیسې تادیه کولې، او د کنټرول نشتوالي ښکاره او څرګند وو. سربېره پردې، سرتیرو او پولیسو زیاتره په پوستو کې رشوتونه راټولول، چې د خلکو لویه برخه یې بې باوره کړه. پولیس په هېواد کې ترټولو ډېر د کرکې او نفرت اداره شوه. طالبانو هم همداسې کار کولو او جزیه یې راټولوله، خو برعکس یوازې یو ځل یې مقابل لورې ته د پیسو د اخیستلو په مقابل کې سند ورکولو، دا برعکس د پولیسو د کړنې وو چې په پرله پسې ډول د پیسو د تادیې غوښتنه یې کوله.

د طالبانو اصول دا دي چې کله تاسو مالیاتي رشوت ورکوئ، تاسو ته یو رسېد یا سند درکول کېږي چې په ټول هېواد کې کار کوي او د منلو وړ دی او نور د مالیاتی رشوت ورکولو ته اړتیا نلري. له بلې خوا، د پولیسو افسران د رشوت اخیستلو لپاره هېڅ رسېد یا سند نه ورکوي (احمد سعید، د هرات ولایت د سوداګرۍ خونې مرستیال).

نو که تاسو یو داسې اردو ولرئ چې په لویه کچه تعلیم یې نه وی کړی او روزل شوی نه وی، په تجهیزاتو سمبال شوی نه وي، په هېڅ ډول کار کې اړینه انګیزه و نه لری، پایله به یې هغه څه وی چې موږ لیدلي دي.

د افغانستان د دفاع وزیر اسدالله خالد په ۲۱/۲۰۲۰ کې د اوو میاشتو لپاره دنده کې یې حاضر نه وو.

کله چې طالبان پوځي پوستو ته ننوتل او هغوی ته یې ګواښونه وکړل، ډېر ځواکونه یې طالبانو ته د پوځي تجهیزاتو په ورکولو سره وتښتېدل.

دا پدیده هغه وخت نوره هم زور واخیست کله چې دوی نور د امریکا ملاتړ نه درلود.

سرتیري د یوې موخې لپاره نه جنګیدل او د دوی شاوخوا هر څه فاسد وو. په دې حالت کې ولې خپل ژوند په خطر کې واچوی.

دې کار افغان ځواکونه داسې کچې ته راټیټ کړل چې په پای کې په اصل کې په اردو کې د 167,000 سرتیرو څخه ډېر کم کسان وو.

ځینې سرچینې وایي، چې د اګست په دویمه د ولایتونو پر مرکزونو د برید پر مهال شاوخوا پنځوس زره وسله وال پوځ د جګړې لپاره چمتو وو، خو پرته له کومې ستراتیژۍ او تاکتیک څخه په ټول هېواد کې خواره او پراته وو.

موږ ټول اوس مهال یې په پایله پوهېږو.

امریکا ادعا کوي چې پر دغه هېواد یې تر یو ټریلیون ډالرو زیاتې پیسې لګولي، خو فساد د دې لامل شوی چې له مرستو څخه ناوړه ګټه واخیستل شي او په هېواد کې پرمختګونه کم او د ملاحظه څخه ټیټه کچه کې وي.

خو حقیقت دا دی چې امریکایانو د خپلو لګښتونو او مرستو له لارې په افغانستان کې د فساد په وده کې رول لوبولی دی. له بده مرغه هغه څه چې نړیوال راپورونه یې نه وایي د بهرنیو مرستو په ځانګړې توګه د امریکا د مرستو د پلې کولو لپاره د یوې فاسدې شبکې او اجرایوي سیستم شتون دی. له دې مرستو څخه تر ۲۰ سلنې زیاته برخه پخپله له امریکا نه راځي او دا هغه پیسې دي چې افغانستان ته د پروژو د تمویل له لارې امریکایي شرکتونو ته د قانوني لګښتونو، مشورتي لګښتونو او د څارنې د لګښتونو او د پروژو د تطبیق په برخه کې ورکول کېږي.

مرستندویه هېوادونه له افغانستان سره د خپلو مرستو ډېره برخه د دولتي او خصوصي بنسټونو له لارې په مستقیم ډول د خپلې خوښې افغان قراردادي شرکتونو او د خپلې خوښې غیر دولتی موسسو ته ورکوي، نه د افغانستان د دولت له لارې او د پلټنې او حساب ورکولو مسوولیت هم د دغو بهرنیو بنسټونو په غاړه دی.

- **د نړیوالو ځواکونو وتل او د مقاومت لپاره د باور او هڅونې پای**

له دې ټولو دلایلو سره سره، له افغانستان څخه د نړیوالو ځواکونو په ځانګړې توګه د امریکایي ځواکونو وتل او د طالبانو د واک پر شریکولو د سیمه ییزو او نړیوالو لوبغاړو ټینګار، د وسله والو ځواکونو قومندانانو او سرتېرو ته دا وښودله چې د افغانستان د جوړولو او ملاتړ پروژه خپل انتها او اختتام ټکی ته رسېدلی دی.

امریکا، چین، روسیه، ایران، هند، اروپایي ټولنه، بریتانیا او البته پاکستان د طالبانو له استازو سره له هغه مهاله په خبرو بوخت دي چې ډونالډ ټرمپ له زلمي خلیلزاد سره د افغانستان د سولې پلان پیل کړ. په قطر کې د طالبانو سیاسي دفتر د ډیپلوماتیکو تګ راتګ په مرکز بدل شو او د اشرف غني او عبدالله عبدالله حکومت د سولې په خبرو کې د دویم لاس لوبغاړی شو.

تر دې وړاندې هم کله چې د داعش خراسان ولایت د خپل شتون اعلان وکړ، ایران او روسیې چې پر افغان حکومت او پوځ یې باور نه درلود، دا یې غوره وبلله چې د ؛اسلامي دولت؛ جنګیالي له خپلو پولو بهر او لرې وساتي او د اسلامي امارت؛ له مشرانو سره د خپل ځان د خوندیتوب لپاره لاس په کار شي.

په افغان حکومت باندې د شا اړولو په اړه د نړیوالو لوبغاړو اصرار او د طالبانو د مخالفانو په راټولولو کې د دولت ناتوانۍ په طبیعي ډول د اردو لپاره هېڅ ځای پرېښودلی نه دی چې په واک کې د طالبانو په وړاندی د 20 کلنې لاسته راوړنو څخه دفاع وکړي، او اردو ته په قدرتک کې هېڅ ځای پاتی نه شو.

هغه کسان چې په ناکراره منځني ختيځ کې د ژوند تجربه لري په جګړه کې د ايمان او د اعتقاد اهميت پيژني. د افغانستان وسله وال ځواکونه د طالب مجاهدينو په وړاندې ايمان او باور نه لري. ښايي د سخاوتمند نړيوال ملاتړ تکيه د ملي اردو او پوليسو په څير په لسګونو زره خلک سره يوځای کړي. کله چې دا ملاتړ په يوه سخته دوره کې له لاسه ورکړل شو، دا قالبونه په خپله له منځه ولاړل.

- **د ملي اردو د مورال کمزوری کول**

افغانستان له تېرو څلورو لسيزو راهيسې په کورنۍ جګړه کې ښکېل دی:

د خلقی جمهوريت او د شوروی د پوځی ملاتړو پر ضد د مجاهدينو جګړه.

د مجاهدينو د ټوپکسالارانو د مختلفو ډلو تر منځ کورنۍ جګړه.

د طالبانو او مجاهدينو ترمنځ جګړه؛ او بلاخره

د افغنستان د اسلامي جمهوريت او نړيوالو ملاتړو سره د طالبانو جګړه.

په تېرو ۲۰ کلونو کې ۱۵۰ زره افغانان په جګړو کې وژل شوي، چې ۴۳ زره يې ملکي وګړي او نږدې ۱۱۰ زره يې پوځي او امنيتي ځواکونه دي. له بده مرغه، له دې لويې مرګ ژوبلې وروسته، موږ بېرته «صفر نقطې» ته، يعنې واک د طالبانو لاسته بېرته راستون شوی يو.

د بريتانيا د بهرنيو چارو وزير او د جرمني د مسيحي ديموکرات ګوند مشر دواړو په افغانستان کې له عملياتو څخه د ناټو وتل يوه ناکامي بللې ده.

د يو باثباته افغان اردو او پوليسو په رامنځته کولو کې د امريکا ناکامي او د طالبانو پر وړاندې د هغوی د سقوط لاملونه د پوځي شنونکو له خوا به ممکن د کلونو لپاره وڅېړل شی. په هرصورت، د مسلې بنسټيز اړخونه روښانه دي او د هغه څه په څير ندي چې په عراق کې پيښ شوي. په غوره وسلو سمبال، دا "تش په نامه" ځواکونه تر ډېره حده د هغه اصلي عنصر څخه بې برخې دي چې دوی يې جګړې ته هڅولي.

د پوځ يو متقاعد جنرال ډګ لوټ چې د جورج ډبليو بوش او بارک اوباما په حکومتونو کې يې په افغانستان کې د امريکا د جګړې د ستراتيژۍ په رهبري کولو کې مرسته کړې، وويل چې افغانان له معتبرو منابعو ډېر څه تر لاسه کوي، خو تر ټولو مهم شيان يې په دی ناڅرګندو سرچينو کې وجود نه درلود.

لوټ داسې وويل:"په جګړه کې اساسي مسله ثبات دی. اخلاقي عوامل پر مادي عواملو غالب دي. د ځواکونو مورال، نظم، رهبري او همغږي د ځواکونو او تجهيزاتو د شمېر په پرتله ډېر تعيين کونکی دي. موږ د خارجيانو په حيث کولی

شو چې افغانستان کې مو لازمه مواد برابر کړی وای. خو یوازې پخپله افغانان وو چې د نه منلو وړ اخلاقي او معنوي عوامل چمتو کولی شي."

طالب اورپکي د کمو عسکرو، ساده وسلو او هوايي ځواک په نه درلودلو سره په دې وتوانېدل چې ځان په افغانستان کې واکمن ځواک جوړ کړي. د امریکا استخباراتي ادارو تر ډېره حده د دې برترۍ اندازه کمه ارزولې وه او حتی وروسته له دې چې د امریکا ولسمشر جوبایډن په اپریل میاشت کې له افغانستانه د ټولو امریکایي سرتیرو د ایستلو اعلان وکړ، استخباراتي ادارو د داسې پرمختګونو اټکل نه کاوه.

ستفان بیډل، د کولمبیا پوهنتون د نړیوالو او عامه چارو پروفیسور او په افغانستان کې د امریکايي قوماندانانو پخوانی سلاکار، په دې برخه کې اسوشیټیډ پریس ته وایي:

"د بایډن له خوا له افغانستان څخه د وتلو د وخت او نیټې اعلان د وروستي زوال یا نسکوریدو لامل و. که موږ د یو اقدام په توګه امید نه وای کارولی، نو موږ به لیدلي وای چې د امریکایي ځواکونو چټک وتل به د افغانستان دولتی ځواکونو ته اشاره وکړي چې دوی یواځې پرېښودل شوي دي. "

بیډل زیاتوي: "د امریکا په وتلو کې ستونزه دا ده چې دا نړیوال سیګنالونه په ناڅاپه توګه ولېږل شول او ټولو هغه په یو شکل ولوستل. د اپریل له میاشتې مخکې د افغانستان دولتی ځواکونه په ورو خو په پرله پسې ډول په جګړو کې د ماتی سره مخامخ وو، او کله چې پوه شول د امریکا ملګري خپل کور ته روان دي. پرته له جګړې د تسلیمیدو مفکوره د هېواد په دفاعي ځواکونو کې د اور په څیر خپره شوه."

په وروستیو کلونو کې، د متحده ایالاتو پوځي مشرانو ستونزې ډېری لږی ښکاره کولی او ټینګار یې کولو چې بریالیتوب په لاره کې او لاسته راتلونکی دی. په 2015 کې، کریس میسن، د اردو د حربی پوهنتون کې د ستراتیژیکو مطالعاتو په انستیټیوټ کې د جګړو د مطالعاتو پروفیسور، د اردو د ماتولو او د تیرو جګړو څخه د زده کړې په اړه یو کتاب لیکلی. په دې کتاب کې یې د افغانستان مسلې ته هم اشاره کړې ده.

کریس میسن په یوه مقاله کې لیکلي: "د افغانستان په قضیه کې، موږ باید پوه شو چې متحده ایالاتو دوه ځله په ویتنام او عراق کې ستراتیژیک ګامونه پورته کړي، او اوس هېڅ منطقي دلیل نشته چې موږ ته داسې ووایی چې په افغانستان کې به پایلې توپیر ولري."

ښاغلي میسن دا پیشبینی او یا وړاندوینه هم کړی وو چې د افغانستان په سیاسي نظام کې د سقوط څخه تېښته نشته دی او یوازینی پوښتنه دا ده چې دولت به کله ناکام شي.

د افغانستان د جګړو پخوانی شنونکی د نړیوال استراتیژیکو مطالعاتو په مرکز کې داسې وایی:"په افغانستان کې د متحده ایالاتو او د هغه د ناټو متحدینو له خوا جوړ شوي امنیتي ځواکونه د (منځ تشه کور) په توګه وګرځېدل چې په آسانی سره ونړېد. دا د امریکا د ملکي مشرانو او نورو متحدینو ماتې وه."

د افغان ځواکونو پیاوړتیا تر ډېره کچه د امریکا د حضور په اندازه پورې تړلې وه، چې حتی د افغان پوځیانو معاشونه هم د پنټاګون له خوا ورکول کېدل. خو د په داسې حال کې دی چې د دغو سرتېرو او پوځي افسرانو تر منځ د فساد کچه ډېره لوړه شوې ده.

خبریال کریګ ویتلوک، خپل په کتاب کې د (د افغانستان پاڼې) کې لیکلی دی چې د امریکا جنګی ستراتیژۍ د افغانستان د اردو د کارونو سره تړاوو لری، پنټاګون په حیرتناکه کچه دغه پوښتنی ته توجه نه ده اړولی چې ؛آیا افغانان دی ته حاضر دی چې د دولت لپاره خپل ځانونه قربانی کړی او که نه؟؛.

**دوهم، د امریکا د سیاسي او ستراتیژیک لومړیتوبونو بدلیدل**

په افغانستان کې د امریکایانو موخه څه وه؟ امریکایان هېڅکله په اوږدمهاله پلانونو باور نه لري. د دوی تګلارې د ورځې د ګټو سره سم بدلون مومي. دوی نه دایمي دوست لري او نه هم دایمي دښمن. د بېلګې په توګه، تر هغه وخته چې چین یو پرمختللی هېواد وو، دوی ورسره کومه ستونزه نه درلوده او په تېرو څلوېښتو کلونو کې یې له دغه هېواد سره د سوداګرۍ او صنعتي همکاریو له لارې په زرګونو ملیارده ډالره ګټلي دي. خو نن چې چین په ټولو سیمو کې د امریکا نړیوال تسلط له خطر سره مخامخ کوي، د امریکا لومړی دښمن ګرځېدلی دی. هغه روسیه چې خیر یې غوښت او بی وزله وو په ۱۹۹۰ لسیزه کې د یلسین له وخته د امریکا د ملګری په توګه بلل کیدو، خو د پوتین په مشرۍ د روسیې یو ځواکمن حکومت د امریکا دښمن ګڼل کېږي. د امریکا په بهرنۍ پالیسۍ کې دغو ستراتیژیکو بدلونونو په افغانستان کې د امریکا د حضور د اهدافو په ګډون د امریکا په بهرنۍ پالیسۍ کې د تاریخ ټولې معادلې بدلې کړې!

د امریکا ولسمشر جوزف بایډن د ۲۰۲۱ کال د اګست په ۱٦ له افغانستان څخه د وتلو د پرېکړې دفاع وکړه او ویې ویل چې امریکا هېڅکله په افغانستان کې د دولت جوړونې او ملت جوړونې موخې نه دي ټاکلې. د دې نظر د تاییدولو لپاره د ډګروال یا کلونیل لارنس بی ولکرسن خبرې را په یاد شي چې د جورج ډبلیو بوش د ولسمشرۍ پر مهال کولن پاول د بهرنیو چارو وزیر وو، دا ملت جوړونه نه ده، هغه په ران پاول انستیتیوت کې د امریکا ستراتیژیک اهداف تعریف کړی وو۷:

لومړی - د ۲۰۰۱ کال د سپتمبر د پېښو د تکرار د مخنیوي لپاره له القاعدې او نورو ترهګرو ډلو سره مقابله؛

دوهم - د چین د سینکیانګ ولایت د بې ثباته کولو لپاره د ختیځ ترکستان اسلامي غورځنګ (ETIM) عملیاتو څخه د ملاتړ لپاره د CIA لخوا د افغانستان کارول او له سینکیانګ څخه مرکزي آسیا، اروپا او سویلي او لویدیز آسیا ته د چین د سړک پروژې (Built and Road) ګډوډ کول؛ او

درییم - د اړتیا په صورت کې د پاکستان د اټومي وسلو د زېرمو په شاوخوا کې د هغوی د ساتنې لپاره د هغی په مجاورت کې پاتی کیدل.

په افغانستان کې امریکایانو په تېرو پنځو کلونو کې یو سرتېری هم له لاسه نه دی ورکړی او له حکومت سره د امنیتي تړون له مخې کولای شو چې په آسانۍ سره له افغانستان څخه ووځي، په ۲۰۱۳ کال کې د خپلو ځواکونو شمېر له ۱۲۰ زرو څخه په ۲۰۱۹ کې ۱۲۰۰ ته راټیټ کړی وو. طالبان دومره احمق نه وو چې د امریکایانو په بشپړ ډول د وتلو مخه ونیسي، لکه څنګه چې پخوا نه وه. د دوحې د تړون په پټ ضمیمه کې د امریکا متحده ایالاتو سره موافقه شوې وه چې د سي آی اې په مرسته د ختیځ ترکستان اسلامي غورځنګ لخوا د چین د سینکیانګ ولایت د بې ثباته کولو لپاره له CIA سره کار وکړي. د چین بې ثباته کول نن ورځ د متحده ایالاتو ستراتیژیک هدف دی او د ختیځ ترکستان اسلامي غورځنګ سره د مرستې لپاره د طالبانو له افراطي اسلام پال دریځ څخه کار اخلي. دې موخې ته د رسېدو لپاره امریکایانو طالبان پیاوړي کړل او بلاخره یې افغان حکومت له سیاسي پلوه کمزوری کړ. هغه مهال په افغانستان کې د امریکا موخه د طالبانو په مشرۍ د ګډ حکومت جوړول او په کابل کې د پخوانیو جهادي مشرانو په ګډون دا و چې په افغانستان کې د القاعده د څارنې لپاره د سي آی اې د یوې پټې اډې د اوږدې مودې موجودیت سره موافقه وکړي. د چین د سینکیانګ ولایت چې د افغانستان سره همسرحده دی،په جنوبی یا سویلي آسیا او افغانستان کې د د القاعدی د فعالیتونو ناظر اوسی.

خو له طالبانو سره هوکړه به د دوه مخي توري په څېر عمل وکړي. د طالبانو لپاره، د ختیځ ترکستان اسلامي غورځنګ، تحریک طالبان پاکستان، د ازبکستان اسلامي تحریک، القاعده او داسې نور په یوه کربنه کې دي او دا ټول د دوی ایډیالوژیکي او ستراتیژیک ملګري او متحدین دي.

یوه افغان افسر وویل: "له موږ سره خیانت وشو. موږ ته ویل شوي وو چې د سولې هوکړه شوې ده. انتقالي حکومت جوړېږي، نو له جګړې لاس واخلئ او خپلو اډو ته ورشئ. بیاَ موږ ته امر وشو چې هرڅه طالبانو ته وروسپارو.؛

د امریکایی یو ویدیویی برنامی په اساس چې وژول پولیتس نومېږی vi]تصور وکړئ چې تاسو د متحده ایالاتو ولسمشر یاست، او د 20 کلونو جګړې او زرګونو وحشتناکو تلفاتو وروسته، تاسو په یوه جګړه کې ښکیل یاست او تاسو پوهېږئ چې تاسو هېڅکله دغه جګړه نشي ګټلی. یوې امریکایي خبریالې لورا جوډي وویل: "زه د افغانستان په اړه د یو داسې ځای خوب وینم چې له زړورو او ویاړلو خلکو څخه ډک وي چې نه یې غوښتل موږ هلته واوسو." د یوې ثانیې لپاره تصور وکړئ چې تاسو یوی نوی نړۍ ته لېږدول شوي یاست: ښاغلی ولسمشر صاحب،موږ د زمری د خونی څخه د

تیښتی فورمول موندلی دی! موږ د نورو تلفاتو د مخنیوي، د نورو اقتصادي لګښتونو د مخنیوي، د ترهګرو ډلو د نفوذ د مخنیوي او په ورته وخت کې د ځینو جغرافیایي او اقتصادي ګټو د ترلاسه کولو لپاره یو پلان لرو چې افغانستان ورته برابروي. په زړه پورې ښکاري، نه داسې نه ده؟ ښه، اوس تصور وکړئ چې دا پلان په ځانګړي ډول له طالبانو سره تړون کول او حتی واک ته د دوی د لاسرسي اسانتیا شامله ده. هو، هو، دا هغه څه دي چې ما وویل. د پلان له مخې په ۲۰۱۸ کال کې د ټرمپ ادارې له پاکستانه وغوښتل چې ملا عبدالغني برادر خوشې کړي او د امریکا د بهرنیو چارو وزیر مایک پامپیو له هغه سره د لیدو لپاره دوحې ته سفر وکړ. هغه د طالبانو د اوسني سیاسي مشر برادر دی. پایله دا شوه چې د ۲۰۲۰ کال د فبرورۍ په ۲۹ د دوحې تړون لاسلیک شو، چې د افغانستان دولت یې سخت مخالفت وکړ، که څه هم کومه ګټه یې ونه کړه. دغه تړون له افغانستانه د نړیوالو ځواکونو د وتلو، د زرګونو طالب بندیانو د خلاصون او د هوایي بریدونو د کمولو او همدا راز د امریکا د پوځي عملیاتو د زیاتېدو مهالویش ټاکلی دی. د دې په بدل کې چې طالبان پر نړیوالو ځواکونو بریدونه نه کوي، تروریستي ډلو ته به پناه نه ورکوي او له افغان دولت سره د سیاسي حل په اړه خبرې کوي. موږ له ۵۵۰۰ څخه د زیاتو طالب بندیانو پر خوشې کولو هوکړه وکړه، چې ډېری یې د بشریت پر ضد په جدي جرمونو محکوم دي او پر افغان حکومت یې فشار راوړ چې خوشې کړي. موږ د سولې لپاره دروند قیمت ادا کړی او جدي خطرونه مو ومنل. خو له بده مرغه تر اوسه مو کومه ګټه ورڅخه نه ده لیدلې.]

د امریکایانو د سولی هوکړه د طالبانو سره د امریکایاتو له نظره په یو ډول منطقی دی د امریکا د سولې د انستیتوت غړی اندریو واټیکنز Andew Watkins, member of the US Institute of Peace: ؛که تاسو له طالبانو سره تړون وکړئ او ډاډ ور څخه ترلاسه کړئ چې هغوی تروریستي ډلو ته پناه نه ورکوي چې پر متحده ایالاتو برید وکړي، تاسو ته به مرګ ژوبله نه وي. خپل پام او سرچینې په آرام سمندر کې خپل اصلي لومړیتوب او د چین کنټرول ته متمرکز کړئ. او که، سربیره پردې، دوی واک ته ورسېږي، نو، دا حتی کولی شي د ځانګړو فرصتونو دروازه پرانیزي. اجازه راکړئ تشریح یې کړم. افغانستان د معدنونو له پلوه خورا بډای هېواد دی چې د ټیکنالوژۍ معدنونه لکه مسو، لیتیم، نیوبیم کوبالټ، نادره ځمکه، او همدارنګه سره زر او یورانیم خورا غنی دي.

په حقیقت کې، د پنټاګون د راپور له مخې چې په 2010 کې د نیویارک ټایمز لخوا حواله شوی، افغانستان د سعودي عربستان لیتیم جوړولو وړتیا یا پوتانسیل لري. نه یوازې دا، د ټاپي د ګازو نل لیکه، د 1127 میله او 1814 کیلومتره پایپ لاین پروژې په څېر پروژې شته چې کولی شي طبیعي ګاز له ترکمنستان څخه پاکستان، هند او چین ته انتقال کړي او د شورون د تیلو شرکت ملکیت لري. دا کولی شي د روسیې طبیعي ګاز باندې د چین انحصار کم کړي او د ایران ستراتیژیک اهمیت کم کړي. ښه، د ۲۰۲۱ کال د فبرورۍ په میاشت کې، طالبانو ترکمنستان ته په یوه سفر کې چې ظاهراً پخپله د امریکا په همغږي وه، لیدنه وکړه او ژمنه یې وکړه چې د دې پروژې ساتنه به کوي ځکه چې پایپ لاین باید له افغانستانه تېر شي. او تر اوسه ستونزه دا ده چې تاسو د کانونو د استخراج یا د انرژۍ شبکې جوړولو لپاره

سیاسي ثبات ته اړتیا لرئ. څو چې تاسو له طالبانو سره په جګړه کې یاست په دې برخه کې هېڅ هم نه شي کولای. خو د دوحې تړون د امریکایانو لپاره یو فرصت وو. د ډېرو شنونکو لپاره، دا په ډاګه کوي چې ولې متحده ایالات په حقیقت کې پر طالبانو خپل بریدونه بند کړل، سره له دې چې طالبانو د افغانستان اردو او د هېواد د بنسټونو په وړاندې خپل عملیات دومره زیات کړي چې ملګري ملتونه په 2020 کې تر ټولو زیات په هېواد کې د تاوتریخوالی کلونه بیانوي.

د دوحې تړون ممکن عمومي سناریو تشریح کړي. دا هغه توضیحات دي چې روښانه دي څکه چې د تړون ډېری مادې پټې او مخفی دي. په بل عبارت، امریکایانو د افغانستان لپاره د راتلونکي نقشې په اړه خبرې اترې وکړې، نه له افغان دولت سره، چې حتی د خبرو اترو میز ته کې حاضر هم نه وو، بلکې له طالبانو سره. د دوحې په تړون کې طالبانو لپاره د یو کال مهلت ورکړل شو، او هغوی وتوانېدل چې د خپلو امنیتي لیکو د پیاوړي کولو لپاره په احتیاط سره پلان جوړ کړي څو د امریکایي بمباریو له وېرې پرته په ازاده توګه تګ راتګ وکړي.

**دریم: د افغانستان د دولت د مشرتابه کمزوری**

پورته مو د اسلامي جمهوریت د دولت د کمزورتیا لاملونه په تفصیل سره بیان کړل. د نظاریانو شورا ډیموکراسي او د قانون حاکمیت ته درناوی نه لری. عبدالله د حکومت د اجراییه رییس په رول کې ځان بې کفایته بولي، د عطا محمد نور په شان یوه والي ولسمشر ته وویل چې ته زما د لرې کولو یا برطرفه کولو واک نه لري، وروسته امان الله ګذر اعلان وکړ چې کابل به د خاورو او وینو سره یو کړی! له دی څخه ډېر په هېڅ حکومت کې انارشیزم په لویه کچه نه لیدل کېږي. د نظاریانو شورا په وار وار د ناکراریو، کودتاګانو او د موازي حکومت د جوړولو په اړه غږېدلي او د ۲۰۱۹ کال له ټاکنو وروسته یې ترسره کړي دي.

په سیمه ییزو واکونو باندې د مرکزي حکومت حاکمیت تامیین کول، په پخوانیو جنګسالارانو پورې تړلي د نیمه خودمختاره سیمه ییزو واکونو پای ته رسول، مرکزي حکومت ته د سیمه ییزو ارګانونو اداري او مالي حساب ورکول او داسې نور نوښتونو ته اړتیا وه چې دا نوښتونه اکثرا د اجراییه رییس د پلویانو له ګټو سره په ټکر کې وو او د اجراییه رییس لخوا د پروسی په پیل کې به له منځه یوړل شو.

د سیاسي توافقنامې څخه مخکې د ۲۰۱۴ کال د ټاکنو د تفتیش شویو نتایجو د خپریدو د مخنیوي لپاره د ملګرو ملتونو د ځانګړي استازي خبرداری باید اشرف غني ته د هېواد د بهرنیو ملاتړو د ګډوډ دریځ او د هغوی د جوړجاړي رول په اړه هېڅ شک نه وو پریښبودی. په پای کې، لکه څنګه چې مو ولیدل، د اشرف غني له قاطع او پریکنده بریا سره سره، چې په نړۍ کې د ټاکنو د تر ټولو ستر څارونکیو له خوا تایید شو، د امریکا ګډوډي او جوړجاړي دریځ د دې لامل شو، چې پر اشرف غني ۵۰-۵۰ ایتلاف ضعیف دولت په هېواد کې مسلط شي.

د اشرف غني د حکومت د کمزوري کولو لپاره د مصنوعي سیاسي بحرانونو رامینځته کول او د دې بحرانونو اداره کول د هغه د نظارې شورا د مخالفینو رسمي پالیسي وه. د عبدالله عبدالله او د هغه د پلویانو له خوا د څارونکو په شورا کې د درېیو پرلپسې ټاکنو د پایلو رد کول او نه منل دا څرګنده کړه چې د افغانستان دولت سیاسي نظام له جدي خطر سره مخامخ دی. د جنګسالارانو د جهادي مافیا خطر چې د نظام له ماهیت، څرنګوالی او د قانون له حاکمیت سره په ټکر کې دي او د حکومت د بنسټونو په کمزوري کولو سره د طالبانو اسلامي امارت ته د هېواد د نسکوریدو لامل شو. دا بې دلیله نه ده چې په افغانستان کې ډېر کسان د طالبانو د بریا هرکلی کوي ځکه چې دوی د سیاسي او مافیایي واک انحصار د هغه څه په واسطه پای ته رسولی چې دوی یې "لنډه غران" بولي.

**څلورم: د پاکستان لامل**

د افغان حکومت په نسکورولو کې د پاکستان د رول د اصلي ابعادو او اهمیت په ارزولو کې د امریکایانو او اروپایانو له بې غورۍ سره سره بیاّ هم د پاکستان عامل یو مهم لامل دی. ډېری افغانان او شنونکي په دې باور دي چې د پاکستان پوځ طالبان روزلي، لوژستیکي خدمات یې ورته برابر کړي او حتی افسران، سلاکاران او سرتېري یې له طالبانو سره د مرستې لپاره ورکړي دي. په بل عبارت، ملي اردو په حقیقت کې له یوه داسې ځواک سره مخامخ ده چې تر ډېره حده د یوه ډېر لوی او مسلکي اردو له خوا روزل کېږي. خو پاکستان ولې د طالبانو ملاتړ کوي؟ په عمده توګه د افغانستان کنټرول، د هند پر وړاندې د ستراتیژیکو ژورو جوړول او په افغانستان کې د هند د نفوذ څخه مخنیوی. د دې ترڅنګ د ټاپي د ګازو د پایپ لاین مسله هم شته چې یوه ورځ به له ترکمنستان څخه پاکستان ته ګازله دی لاری ورسوي او د افغانستان له لارې د منځنۍ آسیا هېوادونو ته د پاکستان د لاسرسي مسله هم شته. په دغو حالاتو کې په افغانستان کې یو فرمانبردار حکومت د پاکستان د مشرانو له خوا یوه حیاتي اړتیا ګڼل کېږي.

داسې برېښي چې د ۲۱ پېړۍ د دې سترې لوبې اصلي ګټونکی پاکستان دی. دېرش کاله وړاندې، کله چې ولسمشر ضیاءالحق پوه شو چې امریکا نور له افغانستان سره علاقه نه لري، نو د افغانستان په اړه یې د پاکستان تګلاره داسې تعریف کړه، چې په افغانستان کې د برتانوي استعمار له سیاستونو سره ډېر توپیر نه درلود: په [کابل کې] د داسې قدرت د لرلو حق چې زموږ لپاره ډېر دوستانه وي موږ لاسته راوړی، او موږ د لومړۍ کرښې هېواد په توګه جدي خطرونه په پام کې نیولي دي او اجازه مو ورکړې چې د هند او شوروي اتحاد له پراخ نفوذ او ادعاوو سره سم له جګړې مخکې حالت ته ورګرځو. افغانستان زموږ د هېواد لپاره تعریف شوی وو، موږ دا اجازه نه ورکوو (۳)؛ په دې ورځو کې له افغانستان څخه د امریکا د وتلو په حال کې دا انګیرنه هماغسې رېښتیا ده لکه څنګه چې دېرش کاله مخکې د افغانستان په اړه د پاکستان تګلاره ټاکلې وه.

په حقیقت کې د پاکستان له نظره اوس داسې ښکاري چې امریکا د پاکستان د ټولو سیمه ییزو سیالانو ملاتړ کوي. دا د پاکستان لپاره ستراتیژیک ناورین دی. (۴) د احمد رشید په وینا، کابل په ناڅاپه توګه د هند او پاکستان تر منځ د نوي

کال کې د افغانستان لخوا ملګرو ملتونو ته د جګړې د راجع کېدو مخه ونیوله. د داوود خان دواکمنۍ پر محال امریکا له خپل دوو متحدینو سره د ډیورنډ کرښې په رسمیت پېژندلو مشروط ملاتړ وکړ .

**په نړیواله محکمه کښې د افغانستان دریځ**

د زرین تلویزیون دخپرونو یو ناظر پوښتنه وکړه چې ایا په نړیواله محکمه کې د افغانستان دریځ ګټلی شي ؟دې پوښتنې ته زما ځواب هو دی. هو، که افغان حکومت په نړیواله محکمه کې د ډیورنډ کرښې لاندې له لاسه وتلې ځمکې د بیرته نیولو غوښتنه وکړي،نو د دعوا د ګټلو چانس یې ډېر دی ؟څنګه؟ او ولې یې تر اوسه دا ادعا نه ده کړې؟ که افغانستان له یوې نړیوالې محکمې څخه د ازادو قبایلو د خاورې د بیا ضمیمه کولو غوښتنه وکړي،د دې ډول ادعا د بریالیتوب امکان به څنګه وي؟

**د برېتانیې د حکومت لخوا لیکل شوې مشوره !**

د لودویک ادامک په وینا د کابل تړون د دریو کلونو له پاره د اعتبار وړ و .اړخونه کولی شي دا قرارداد مخکنی خبر تیا سره فسخ کړي. له همدې امله برېتانیا تل له دې ویره لرې چې افغان حکومت به په یو اړخیزه ډول د ډیورنډ کرښه و تړي. ( لودویک دبلیوادامک، په اریزونا پوهنتون کې پروفیسور، د افغانستان تاریخي ډیکشنیري.). [32]

د هندوستان د خپلواک حکومت او پاکستان نوي حکومت چې ۱۹۴۷ کال داګست په ۱۵ مه جوړ شوي، دبریتانوي هند وارثان دي لکه څنګه چې د هند د حکومت په ۱۹۳۵ قانون کې تعریف شوی . د هندوستان د قانون پر بنسټ ازادو قبایلو د ۱۹۳۵ زکال تړون کې (( د ازاد قبایل سیمې )) د برېتانوي هند په قلمرو کې نه دي شاملې.همدا خبره، پخپله مورتمر ډیورنډ وروسته د دیورنډ له تړون څخه هم تائید کړې ده. دقبایلو ازادې سیمې د حایل شوې سیمې په توګه د برېتانوي هند د شمال لوېدیځ ایالت او د افغانستان د ختیځ او جنوب د سیمو ترمنځ واقع شوې دي.

له همدې امله په لوېدیځ هند کې د برېتانوي هند د خاورې د میراث په توګه د پاکستان په رامنځ کولو سره، قبایلي سیمې د پاکستان په خاوره کې نه شاملېږې

د شواهدو له مخې، او نه یې دا حساسه موضوع د ۱۹۴۷ کال د نومبر په ۵ مه د برېتانیې د حکومت حقوقي سلاکار و ګڼله .د بریتانیې د حکومت حقوقي سلاکار په هغه وخت کې خپل حکومت ته مشوره ورکړه چې د پاکستان په حق

[32] The A to Z of Afghan Wars, Revolutions and Insurgencies, By Ludwig W. Adamec, pages 61-63. Scarecrow Press Inc, Maryland, 2005.

کې نظر ورکړي کله چې له یوې نړیوالې محکمې  و پوښتل شول چې ایا پاکستان د ۱۹۲۱ کال د کابل د تړون د دوهمې مادې له مخې نړیوال سرحدونه په میراث کې لري

په ۱۹۴۹ ز کال د اپریل په ۲۸ نېټه په اشد محرمانه لیک کې د بریتانیا د کامنولث د اړیکو دفتر خپل حقوقي سلاکار خبر کړ، چې «... د برېټانوي هند شمال لوېدیځ ایالت د افغانستان تر سرحد پورې دوام نه لري او قبایلي سیمې د برېټانوي هند او افغانستان تر منځ د یو خالیگاه په توگه پاتې دي. » بریتانیا له خپل حقوقي سلاکار څخه وغوښتل چې د پورته یادې شوې موضوع په نظر کې و نیول شوه  سره د ۱۹۴۷ ز کال د نومبر د ۵ نېټې پر مشورې تجدید نظر وکړي او په هکله یې خپل نوی نظر وړاندې کړي.

په ۱۹۴۹ ز کال د اپرېل په ۲۸ نېټه د بریتانیا حقوقي مشارو د دویم ځل له پاره خپل نظر داسې وړاندې کړ:

په ۱۹۴۷ ز کال د اگست په ۱۵مه . په داسې حالت کې د قبایلو خپلواکې سیمې د پاکستان دي، ددې سربېره چې یولړ گمرکي، مخابراتی او نورې اړیکې له پخوا څخه ورسره لري.داسې ښکاري، چې پاکستان نه شي کولی،د هغه سرحد خاوند شي، چې په ۱۹۲۱ کال کې یې له افغانستان سره تعین کړې، یا د دې تړون د دویمې مادې مطابق د هر ډول حق وارث شي. سربېره پر دې دا پر دې مانا نه ده،چې د ډېورنډ کرښه پس له دې د افغانستان بین المللي سرحد نه دی. مگر دا امکان لري،چې پاکستان کوم قانوني اعتراض ونه کړی شي، که چېرې قبایل د افغانستان لهٔ ملاتړه برخمن شي، یا د قومونو پر مټ دغه سیمې له افغانستان سره ونښلوي.( منبع: لودیک دبلیو ادامک، د افغانستان تاریخي ډکشنري، کال، ۲۰۱۲)[33].




[33] Ludwig W. Adamec, 1967, Afghanistan 1900-1923, A Diplomatic History, Berkeley University Press, USA. Afghanistan: A "Spy" Guide, By International Business Publications Staff, Global Investment and Business Center, Inc. Staff, USA

## د ډیورنډ کرښې اهمیت

ډیورنډ کرښه له ۱۸۹۳ کال له را هیسې او په ځانګړې توګه د پاکستان له جوړېدو څخه را هیسې د افغان حکومت د بهرنۍ تګلارې یو مهم عنصر دی . د افغانستان لپاره د پښتنې خاورې له لاسه ورکول او د دوه پر دریمې برخې نفوس له لاس ورکولو په هېواد کې تر ټولو لوی توکمیز ګروپ دی .په دی اساس د پاکستان رسمي احصایې د ډیورنډ د کرښې هغې خوا کې د پښتنو نفوس د ۴۰ میلیون کسانو په شاو خوا کې حساب شوی دی چې د پنجابیانو څخه وروسته د پاکستان تر ټولو لوی قوم شمېرل کېږي.سربېره پر دې د بلوچستان د لاسه ورکولو سره، افغانستان د پاکستان پرته د عربي سمندر او د هند سمندر اوبو ته لاسرسی له لاسه ورکړ. لکه چې ومو لیدل د افغانستان پرله پسی دولتونو د تېرو ۱۲۵ کلونو په اوږدو کې د ډیورنډ کرښه یې د نړیوال سرحد په نامه نه ده منلې او د قبایلي خلکو د تګ راتګ د ازادې کرښې په دوو خواوو کې تامین کړې ده. په ۲۰۰۱ کال کې د افغانستان د اسلامي جمهوریت له جوړېدو وروسته د ډیورنډ قضیې په اړه د حکومت رسمي پالسي دا وه چې د ډیورنډ د قضیې هوارول د کرښې دواړو غاړو ته پرتو قومونو پورې اړه لري او د افغانستان حکومت یې کوي .د مسلې په اړه پریکړې واک نلري . جمهور رییس کرزي د ۱۳۹۲ د ثور په ۱۴ د شنبې په ورځ په یو خبري کنفرانس کې په کابل کې وویل د پاکستان لخوا سرحدي یرغلونه دوه دلایل لري: یو د افغانستان د پرمختګ او ترقۍ څخه مخنیوی کول او دوهم،د ډیورنډ د کرښې د په رسمیت پېژندنې په موخه د فشار واردول. کرزي وویل:؛دوهم دلیل شاید چې دا وي چې د افغانستان خلک دې ته اړ شي چې د ډیورنډ د کرښې په اړوند مذاکرې ته کښیني او دا کرښه په رسمیت وپیژني؛.

ښاغلي کرزي ټینګار وکړ چې د افغانستان د پرمختګ څخه د مخنیوي په ډګر کې ټولې هڅې او همدا راز د ډیورنډ د کرښې په رسمیت پېژندنه به کومه پایله و نلري؟؛ هغه کسان چې دا د وحشت او دهشت ګامونه پورته کوي، بریالیتوب لاسته نشي راوړلی. د افغانستان ملت له هغې ورځې چې انګلیسانو دغه کرښه منځ ته راوړې، هغه یې نه ده منلې؛ (د المان غږ د ویبسایټ څخه په نقل قول).

د پاکستان لپاره د ډیورنډ مسئله یو د مرګ یا ژوند مسئله ده. د دعوا لاندې سیمې د ٦٠ سلنه په حدودو کې د پاکستان خاوره جوړوي. د دې احتمال چې پاکستان د یوې نړیوالې محکمی فیصله په دی اړوند چې غصب شوې سیمې د ډیورنډ د کرښې افغانستان ته په داوطلبانه ډول سره ورکړي ډېر لږ به وي. له بلې خوا نړیوال قدرتونه لکه امریکا، انګلستان او چین به هم په دې مسئله کې د پاکستان په دفاع کلک مخالفت وکړي.

د سړې جګړې د کلونو په ترڅ کې، د افغانستان ښکاره کېدل د شوروي او د پاکستان په سرلیک، د امریکا سره د نظامي تړون په شکل او د دې دواړو د نړیوال او منطقوي قضیو کې د اختلافات د دې سبب شوي چې د ډیورنډ موضوع په همغه ډول سره لاینحله پاتې شي او هغې ته په کلکه پاملرنه ونشي.

د ۱۳۵۳ د چنګاښ د ٢٦ کودتا، او د هغه څخه وروسته د ۱۳۵۷ د ثور ۷ کودتا او د افغانستان د یو شمېر سیاسي څېرو سیاسي پناه وړل د پاکستان دولت ته د پاکستان د دولت لپاره یو طلایي چانس منځ ته راوړ څو د افغانستان دولتونه بې

ثباته او ساقط کړي او د افغانستان دولت او اردو له منځه یوسي او دا چې افغانستان دومره ځواکمن نه شي چې وشي کولی چې په یواړخیز ډول سره د پاکستان سره شته سرحدونه تعدیل کړي.

د مجاهدینو د دولت په جوړېدو په ۱۹۹۲ کال کې پاکستان په عملي توګه خپل دغه هیلې ته ورسېد، پر دې قادر شو چې د افغانستان امنیتي ځواکونه او د دولت اداره په مکمل ډول سره وران کړي په پایله کې یې د منځنیو پېړیو د طالبانو رژیم په افغانستان کې ځای پر ځای کړ. د افغانستان د اسلامي جمهوریت د دولت د جوړېدني څخه وروسته د بن د کنفرانس پر بنسټ، د دې سره سره چې د نیت حسن ښکاره شو، پاکستان د افغانستان او د نوي دولت د بی ثباته کولو په اړوند هېڅ فرصت له لاسه ورنکړ.

### د افغانستان تګلاره

داسې کسان هم شته چې د ؛ لوی افغانستان ؛ په خوښه د پښتنو او بلوڅو قومونوپه یووالي سره د ډېورنډ له کرښې دې غاړې ته اوښتي دي.د دې په پام کې نیولو سره چې  پاکستان د افغانستان  شپږ برابره نفوس لري او خورا پیاوړی پوځ او لوي اقتصاد لري، د افغانستان له لاسه وتلې ځمکې بېرته ترلاسه کولو لاري چارې  به دا وي:

- د پاکستان د حکومت سقوط
- په ډېر احتمال سره د هندوستان سره د څلورمې جګړې په پایله کې
- د پاکستان د یوی داخلی جګړی منځ ته راتګ
- په پاکستان کې د یو د ننني انقلاب ښکاره کېدل
- او ټول پورتنی امکانات

د پورتنیو سناریوګانو دمخنیوي لپاره پاکستان لا هم یو بهرني سپانسر ته ارتیا لري، یو دا بهرنی سپانسر امریکا وه کله چې چین نن د هند په وړاندې د پاکستان د شتون د تضمین کولو لپاره دا رول په غاړه واخیست.

د پښتون ژغورنې غورځنګ تر چتر لاندي د ډیورنډ کرښې په اوږدو کې د ملیونونو پښتنو وروستي پاڅون د پښتون ژغورنې غورځنګ د پلویانو تر منځ ډېرې هیلې راپارولې دي . دا پاڅون  ګډوډی په حالت کې و او تر اوسه یې د مشخصو موخو لپاره اړین سازمان نه دی موندلی . د پښتون مساوات غورځنګ ټاکل شوي اهداف په هر لحاظ په پاکستان کې د مېشتو نورو قومونو سره دي . د غورځنګ مشرانو له افغانستان سره د سوداګریزو او ټرانسپورټي لارو د بندېدو په اړه شکایت وکړ او ادعا یې وکړه چې د پاکستان تګلاره فاتا( FATA)د نابودی لامل شوې ده .دوی وایي، پنجابي مشرانو له  هند سره له سیاسي اختلافونو سره سره د واګې بندرونه خلاص ساتلي او له افغانستان سره دایمي تړلي وي.د پاکستان

د پوځ وياند اصف غفور ويلي، د غورځنګ پراخول د افغانستان د ملي امنيت اداري کار دی او په ټولنيزو رسنيو کې د افغان پښتنو له پراخ ملاتړ څخه ويره لري (د ګندهارا انګليسي ويبسايټ ۲۰۱۸ د اپريل په ۱۱ نېټه).

**د تيوري د حل لپاره پايلې او عملي لارې**

**د ډيورنډ کرښه په رسميت پېژندنه يا د پاکستان د پښتنو او بلوڅو د ترمنځ عمومي ريفرنډم**

د پاکستان لخوا د طالبانود ملاتړ د ختمولو په بدل کې د افغانستان لخوا د ډيورنډ کرښه په رسميت پېژندل .د دې حللارې امکانات ډېر لږ دي. د ډېورنډ د کرښې مسئله د افغانستان دولت لپاره يوه ناموسي مسئله ده. له بلې خوا د پاکستان دولت هېڅکله نه مني چې د طالبانو د نظامي عملياتو ملاتړ کونکی دی.

دامسئله د خبرو اترو له لارې حل کړي او يوې حللارې ته ورسېږي ؛د بيلګې په توګه د ملګرو ملتونو تر نظارت لاندې د پاکستان د پښتنو او بلوڅو قومونو ترمنځ د ريفرنډم په تر سره کولو موافقه او دوی ته د انتخاب حق ورکول .

- د پاکستان د حاکميت دوام
- افغانستان سره يوځای شئ
- سياسي خپلواکۍ

دوه طرفه حل منطقي ښکاري او د پاکستان ادعا ته په کتو سره چې په پاکستان کې مېشت پښتانه او بلوڅ قومونه د انګريزي ـ هندـ پاکستان د ۱۲۵ کلنۍ پرمهال د پنجابيانو او سنديانو په ګډون له نورو پاکستانيانو سره په کلتوري او سياسي لحاظ په بشپړ ډول مخالفت لري . پاکستان بايد په دې برخه کې کومه ستونزه ونه ويني . مګر د دې امکان چې پښتون او بلوڅ خلک د سياسي خپلواکۍ د حللاره او د خپل خپلواک هېواد جوړېدل وټاکی ډېر دی. له دی وجهې پاکستان په دې اړوند ډېر نامکنه ښکاري.

**د افغانستان او پاکستان د يوی فعاله همکارۍ پارتنرشيپ رامنځته کېدل**

په دې اساس يوازېنۍ منطقي لاره د افغانستان او د پاکستان د سياستمدارانو په وړاندې دا ده چې يو منطقوي فعاله پارتنرشپ جوړ کړي د قبايلي سرحدي ټولنيز پرمختګ، انرژي، ترانسپورت، ښوونه او روزنه، تجارت، ساينسي او ټکنالوژي،د تجارتی ازادو بازارونو جوړول،مخکې له مخکې د سرحدي قومونو لپاره د بندري تېرېدو را تېرېدو د لارو خلاصول په برخو کې، د ډېورنډ د کرښې مسئله په عملي توګه کم ارزښته کړي. ما دا وړانديز دوو کاله د مخه کړی و.

شواهد ښيي، چې ولسمشر اشرف غني هم پردغه ډول حل لارې باور لري . کله چې اشرف غني واک ته ورسېد، نو له پاکستان سره يې د داسې ملګرتيا د رامنځته کولو نوښت وکړ او له ډېرو داخلي مخالفتونو سره سره يې له پاکستان پرته

د یو لاس کولو سره لومړی گام پورته کړ.په تاسف سره دا د نیږدې همکارۍ نوښت د دوو هېوادونو د اردو او امنیتي سازمانونو او د گډو اقتصادي او ترانسپورتی طرحو د جوړولو لپاره چمتووالی د افغانستان سره د پاکستان له خوا څخه یې مناسب عکس العمل تر لاسه نه کړ.په پایله کې یې په افغانستان کې د جگړې د کچې په کمولو او د طالبانود تروریستي فعالیتونو په برخه کې مطلوبه نتیجه ورنکړه .

له یوي خوا پاکستان هڅه کوي چې د طالبانو او نورو ډلو تروریستي فعالیتونو ته په شدت ورکولو سره افغانستان نور هم بې ثبانه کړي، څو له افغانستان د ناټو ځواکونو په وتلو سره له رامنځته شوې تشې څخه ډېره گټه پورته کړي . له بلی خوا یې د پاسپورټ او د ویزې د خنډونو په منځته راوړلو، د دیوالونو او گړنگونو او اغزي لرونکی تارونو د خنډونو په جوړولو د ډېورنډ د کرښې په شاخوا کې یې پیل وکړ.

د دواړو هېوادونو د سرحدي ستونزو د حللاره د ویزې او پاسپورت خنډونه، د دیوالونو او خندقونو جوړول، د اغزن تار لگول نه دي.دا سیاستونه په المان یا کوریا کې بریالي نه دي. که چیرې ښه نیت شتون ولري او د حکومت امنیتي وسایلو لخوا د تروریزم ملاتړ ونه شی، د سوداگرۍ زیاتوالی او د تگ را تگ ازادي به د وخت په تیریدو سره د ډیورنډ کرښه په عمل کې حل کړي .

د اروپا د استعمارگرانو تر ټولو لوی میراث د پخوانیو استعماري زمانو د پوځي او سیاسي گټو پربنسټ د مصنوعي پولو جوړول دي، چې د تاریخ، کلتور او د هېوادونو د توکمیزو وېش له امله نن د پوهیدو وړ نه دي .د ډېورنډ د کرښې ستونزې دې ډول غیر عادلانه او استعماري سرحدي کرښو یو روښانه مثال دی چې په تېرو اویا کلونو کې د دوو هېوادونو پاکستان او افغانستان پر مناسباتو یې سیوری خپور کړی او هر کله چې د دې دوو هېوادونو د سیاستمدارانو لخوا په اگاهانه ډول سره د دې سره مقابله و نه شي، په همدې ډول به سیوری پرې پروت وي.

# شپاړسمه برخه:

# متنوع مقالې او یادښتونه

**د امریکایي ترانسپورتي الوتکو سره د هلمند د یورانیمو د قاچاق اوازې**

داسې اوازې لکه پورتنۍ ادعاوې د وختونو سره سم په رسنیو کې لولو. ایا دا ډول اوازې کولی شي چې حقیقت وي ؟ زما په یاد دي چې په ۱۹۷۶ز کال کې د یو ماښام اته بجې وې او زه لاهم د ولسمشر داود خان د اووه کلن پلان د هغه مشر زوی انجینر عمر داوود په دفتر کې په پښتونستان واټ د پلان وزارت کې د ترمیم په چارو بوخت وم تیلفون ته زنګ راغی د معادن او صنایعو د وزارت د معادن رییس وو او غوښتل یې چې په ډېره بیړه راشي او ډېر مهم خبر د ځان سره راوړي. په هلمند کې د یورانیم د لابراتواري نتایجو د تایید خبر یې راوړی. موږ دری کسانو دغه ښه خبر په خپل منځونو کې سره ولمانځلو او یو بل ته مو مبارکی ورکړې.زه په هغه وخت کې د پلان په وزارت کې د صنایعو مدیر ووم او همدا راز د اووه کلن پلان د انسجام او توحید د سکرتریت دنده می هم په غاړه وه چې عمر داوود یې رییس وو.

باید پوه شو چې د یورانیم د استخراج، تصفیه کولو او غني کولو پروسه یوه ډېره مغلقه او مفصله پروسه ده.په یو ټن خاورو او تېږو کې چې یورانیم پکې وي، د هغه اندازه د ۰.۱ وي.اوس تاسو د خپل ځان سره محاسبه وکړئ څو ټنونه د تیږو او خاوره باید استخراج شي څو یو کیلو ګرام یورانیم چې په صنعتی برخه کې د استفادې وړ وي ; uranium oxide (U3O8) concentrate یا ؛ژیړ کیک؛ به ترلاسه شي. د مثال په توګه یو اتومي د برق د تولید کارخانه زر میګاواټ هر کال ۲۰۰ ټن uranium oxide (U3O8) concentrate ته ضرورت لري. اوس ۲۰،۰۰۰ ټن تېږې باید چې استخراج شي څو ۲۰۰ ټن (U3O8) یا ژیړ کیک لاسته راشي.

کوم سلیم عقل کولی شي چې باور وکړي چې په داسې حال کې چې د هغه کارخانو په نشتون کې چې خامې تېږې په هلمند کې پروسس کړي، امریکایانو په زرګونه ټن د یورانیم تېږې د الوتکو پواسطه انتقال کړې؟په داسې حال کې چې د یورانیم تېږه په امریکا کې شته او هغه په ډېره ساده ګی کولی شي له برازیل، استرالیا، هندوستان او نورو هېوادونو څخه د معدني موادو انتقالوونکې لویو کښتیو له لارې وارد کړي.




### د کابینې د غړو یا وزیرانو ټاکل د ولسمشر لخوا

په هېواد کې د سیاسي شعور کچه په اسانی سره ازمویل کیدی شي . یو مثال یې د ولسمشر لخوا د کابینې د غړو د ټاکلو سره مخالفت دی. زما په اند د جمهور رییس لخوا د وزیرانو یا د کابینې د غړو ټاکلو په اړوند بحث یو بې ځایه بحث دی. ولسمشر د خپلو برنامو د ترسره کولو په اړوند د ملت او د ملي شورا په وړاندې مسوول وو. ولسمشر خپل مکتوبونو لپاره د کابینې غړي ټاکي. کله چې ولسمشر فکر کوي چې یو ځانګړی کس د ده برنامې د سیاسي نظره په یوه ځانګړي سکتور کې بهتره او د ده په خوښه کولی شي پلې کړي دا لازم دي چې د هغه انتخاب ته احترام وشي. ملي شورا صلاحیت لري په دې اړوند د اعتماد رایې ورکړي.

په دیموکراسی هېوادونو کې لکه استرالیا هر کله چې ولسي جرګه د حکومت غوښتنې دوه ځلې رد کړي، د حکومت رییس دا حق لري چې ولسي جرګه منحل کړي او د نوې ولسي جرګې ټاکنه تطبیق کړي. همدا نن د استرالیا لومړی وزیر ولسي جرګه منحل کړه او د نوی ټاکنو غوښتنه د جولای په میاشت کې وکړه، دا ځکه چې ولسي جرګه د حکومت غوښتنې دوه ځلو لپاره په یوه ځانګړې موضوع کې رد کړې وه.

د کابینې د غړو تعیینول یانې د وزیراتو تعینول په هر ولسي جرګه دیموکراسی هېواد کې د استرالیا، امریکا او افغانستان او نورو په شمول د سیاسي ملحوضاتو او د اعتماد پر بنسټ سرته رسېږي نه د مسلکي او شایسته ګیو پر بنسټ،ځکه

وزارت یو سیاسي پوست دی مسلکي نه دی. د مسلکي چارو لپاره کارمندان په وزارت خانو کې تر معیین او مشاورینو او متخصیصینو په مقام کې موجود دي.

په عامیانه ژبه داسې وایي چې زړه یې خپل بایسکل یې ؛دلش بایسکلش). کابینه د حکومت د رییس،لومړی وزیر او د جمهور رییس بایسکل دی، په هغه هېوادوونو کې چې جمهور رییس د حکومت رییس هم دی.

دا لیکنه د ولسمشر غني په ملاتړ کې نه ده زه د یواصل خبره کوم او هر څوک چې ولسمشر وي، دا اصول بیا هم رینبتیا دي .

## ایا وزارت سیاسي یا اداري واک دی؟

زموږ هېوادوال باید دې ټکي ته پاملرنه وکړي په ځانګړې توګه چې په هېواد کې په نیږدې وختونو کې د ولسمشری ټاکنې به هم سرته ورسېږيي او یو نوی حکومت به د چارو واک په غاړه واخلي.

وزارت یو سیاسي پوست دی اداري نه دی. وزیر باید په ولسي جرګه کې د بریا لپاره سیاسي ملاتړ ولري. د وزارت اجرایوي چارې به د یوه مرستیال له خوا چې مسلکي او غیر سیاسي شخص وي اداره کېږي.ټول اداري کارمندان باید مسلکي او غیر سیاسي وي مګر د وخت د ټاکل شوي حکومت په خدمت کې وي.

د کابینې غړي به حتماً په سیاسي توګه د ولسمشر تر مشرۍ لاندې یو منتخب حکومت ته ژمن وي . د دې څخه په غیر په بې ثباتۍ او زوال محکوم وي . هغه څه چې باید پرې ټینګار وشي دا دی چې د دولت اداري دستګاه باید غیر سیاسي،مسلکي او د دولت د پالیسیو په تطبیق کولو کې د وخت د دولت په خدمت کې وي. دا زه د خپلې تجربې څخه د استرالیا په فدرالي ایالتي حکومت کې د تېرو پنځه ویشتو کلو له تجربې څخه وایم. همدا اوس هم د استرالیا په حکومت کې دنده سرته رسوم. یو څو موده هم د قبایلو د چارو د سر مشاور په صفت د استرالیا د فدرالي حکومت د لومړي وزیر دفتر کې دنده سرته رسولې ده.

## د ایران او سعودي عربستان په وړاندې د افغانستان دریځ

په تاسف سره چې افغانستان په داسې شرایطو کې نه دی چې د نورو هېوادونو د سیاستونو په اړوند په سیمه کې د اخلاقي لحاظه موضعګیري وکړي. زموږ لپاره د افغانستان ستراتیژیک منافع اولویت دي .

د سعودي عربستان، عربي خلیجي هېوادونو او پاکستان په شتون کې په هېواد کې د سولې د ټینګښت په صورت کې د خپلو تاریخي ملاتړو له ملاتړه د طالبانو محرومول د افغانستان ستراتیژیکې ګټې دي . ایران په منځ کې چې زړه یې و غواړي مرستې نشي کولی . په عوض کې یې پاکستان، عربستان او خلیج هېوادونه دا قدرت لري.

په دې ورستيو کې د سعودي عربستان پاچا په مستقيمه زموږ د روحاني ملاتړ غوښتنه وکړه. دې ډول غوښتنی ته مثبت، ځيرک او ديپلوماتيک ځواب ورکول د افغانستان د منافعو سره سم دی. د يمن د وضعيت په اړه د افغان حکومت په اعلاميه کې هم ليدل شوي دي .

موږ غواړو چې د طالبانو وسله واله مبارزه پای ته ورسېږي او افغانستان ته سوله راشي . د پاکستان او عربانو په وړاندې د طالبانو تندلاري سياستونه د افغانستان لپاره ګټورې پايلې نه لري .دا اړينه ده چې طالبان له خپل اصلي ملاتړ څخه محروم کړي چې پاکستان، سعودي عربستان او د فارس خليج عربي هېوادونه دي .د افغانستان د ستراتيژيک نيږدېوالي له امله د سعودي عربستان، پاکستان او د فارس د خليج د هېوادونو سره په عملي ډول برابروي.هغه قيمت چې افغانستان به يې له ايران سره په خپلو اړيکو کې ورکړي د افغانستان لپاره د زغم وړ دی .

د ايران حکومت د افغانستان رسمي دريځ،د ځينو افغانانو په پرتله چې ټول لاسونه يې ترلي دي ښه پوهېږي . د افغانستان دريځ ديپلوماتيک او حساب شوی دريځ دی او د ايران لپاره کوم ضرر نه لري. که نه نو د ايران حکومت به د احتجاج په توګه د اشرغني سفر لغوه کړی وی او يا به يې لږ تر لږه د ولسمشرغني هر کلی نه وی کړی. مګر موږ وليد چې د ځينو افغانانو د توقع پر خلاف، د ايران دولت له هغې څخه لا ډېر هوښيار دی چې په داسې چټکۍ ګامونه اوچت کړي. د افغانستان د کډوالو په اړوند په ايران کې بهتره ده د جمهور رييس غني له ژبې يې واورو.هغه په خپله مرکه کې وويل چې که چېرې ايران د کډوالو افغانانو په اړوند خپل سياست ته تغير ورنکړي افغانستان به هم په خپل لاس کې د موجوده کارتونو څخه کار واخلي. هېره دې نه وي په افغانستان کې د امريکايي ځواکونو له شتون سره ايران د افغان حکومت په پرتله د افغان حکومت همکارۍ او ښه نيت ته اړتيا لري .

د افغانستان جګړه د درېښو کلو څخه اوږده ده په يو ځلې نه تمامېږي. جګړه او سولې مسلې د برق د سويچ په څېر ندي چې هرکله چې څوک وغواړي يا بندېږي. د افغانستان جګړه د دوو هېوادوونو جګړه نه ده چې دوه جمهور رييسان په يو ځلې د هغې په اړوند تصميم ونيسي. په دې جګړه کې متعدد اړخونه شامل دي چې هر اړخ خپلې موخې او منافع پسې دی. په همغه ډول سره چې د جګړې پيل په تدريجي او د وخت په تېرېدو وو د هغه پای به هم تدريجي وي.

## تاريخ ښيي : خليل الله خليلي د ايران شاه ته د افغانستان د اشغال بلنه ورکړه

د خليلي په اړه د ايران د شاه د وزير اسدالله عالم په يادونو کې ( د عالم يادونه ۴۶۱- ۴۵۶مخ ۵ جلد، ۱۳۵۴ ) کې مو لوستي چې خليل الله خليلي چې کله په بغداد کې د افغانستان سفير و، د ايران له سفير څخه يې غوښتنه وکړه . بغداد د شاه محمد رضا پهلوي سره د پټې ناستې لپاره چمتو کول . هغه د ايران سفير ته وايي چې د داوود خان رژيم د سقوط په حال کې دی او د دې څخه د مخه چې افغانستان د کمونيستانو لاس ته ورنه شي اقدام وکړي د افغانستان ټول خلک ؛چې شاهنشاه خپل شاهنشاه ګڼي؛ د هغه له اقدام څخه به ملاتړ وکړي. د ايران سفير په يو اشد محرم تلګرام کې شاهنشا ته ليکي چې د خليلي منظور په ايران کې د زرګونو افغان کارګرانو څخه استفاده او د هغوی په دې مقصد تنظيم کول

دي. د ایران سفیر دغه پیام په محرمانه ډول سره شاهنشاه ته لیږي او علم لیکي چې هغه دا پیام شاهنشاه ته ورکوي.هر هغه څوک چې د دې کتاب په اړوند کوم شک لري کولی شي د هغه ټول پنځه جلدونه د لاندې پته یا لینک څخه ډاونلوډ کړي او ویې لولي:

**د نوروز نمانځل**

د وهابي مذهبي افراطیانو د ادعا په خلاف، د نوروز د لرغونې ورځې نمانځل په افغانستان کې یو زردشتي مذهبي دود نه دی.د مثال په توګه،د ایرانیانو پر خلاف د نوروز په ورځ څوک د اور پر سر خېزونه نه اچوي بلکې د افغانستان خلک د نوروز د راتلو څخه د اوړې د موسم د راتلو او د کرنې او د بزګرۍ لمانځنه کوي.حتی د نوروز د جنډې پورته کول د کابل د ښار په منډیي کې د برکت څخه د ډک کال د هیلې ممثل د کرنې او بزګرۍ او د زراعتي محصولاتو په اړوند دی،د غلې د ډېروالي ممثل.

د نوروز په سهار کې لمر د استوا څخه د سوېل څخه شمال ته تېرېږي او په شمالي نیمه کره کې پسرلی او د ودې فصل پیل کېږي.دا په خپله د لرغوني اریایانو د ستورو پېژندنې او برتري ښکاره کوي . په حقیقت کې، د یونان زودیاک میاشتې چې اروپایان نن ورځ د قسمت ویلو لپاره کاروي د دې عام اریایي میاشتو پر بنسټ وړ دي او د مارچ ۲۱ د aris zodiac میاشتې سره مطابقت لري .

د وخت په اوږدو کې ځینو دا هڅه وکړه چې د جنډې پورته کول د مزار شریف د سخي جان په زیارت او په کابل کې د اسلام او په ځانګړې توګه د شیعه مذهب سره ارتباط ورکړي.په داسې حال کې چې د نوروز د لمانځنې پخوانی تاریخ د منځنی اسیا د اریایانو، پارسیانو، اسوریانو او کردانو په منځ کې د اسلام څخه د مخه زمانو پورې رسېږي .

ځیني ناپوهان فکر کوي چې نوروز د پارسیانو ځانګړی دود دی او له موږ سره هیڅ تړاو نه لري . حقیقت دا دی چې نوروز په اوله درجه کې افغانستان سره اړه لري ځکه چې د هېواد شمال د اریایي تمدن زانګو ده.له دې مخې زردشتي دین او د بلخ د خلکو ژبه یانې دري ژبه سوېل او لویدیځ او فارس ته اوږدېږي او د ساسانیانو درباري ژبه باندې بدلېږي په داسې حال کې چې د پارس خلک په ساساني پهلوي او ارامي ژبه خبرې اترې او کتابت کوي.د اسلام د تاریخ په اوږدو کې په دې هېوادونو کې د افغانستان خلک نوروز د یو فرهنګي او غیر مذهبي دود په شکل نمانځلی دی مګر اوس د تکفیري او وهابي افراطیانو په منځته راتلو د هغه سره مخالفت پیل شوی دی.

**په افغانستان کې دحکومت د نظام د اصلاح لپاره بیړنی اړتیا ده .**

د افغانستان اوسنی حکومت د فکري انزوا او په متفرقه سیاسي او قومي بنسټونو رنځ وړي. د بن د کنفرانس جوړښت چې د اوسني حکومت ډېره کېښودل شوه په ۲۰۰۱ کال کې په افغانستان کې د طالبانو پر ضد د فعالو سیاسي او نظامي ځواکونو د یو ځای کېدو پایله وه او بل ډول نه شي کېدی . نن ورځ د افغان حکومت په روښانه سیاسي لید باندې تکیه

کولو پرته سیاسي ټوټه ټوټه او ولسمشرۍ د رژیم د نمیګړتیاوو له امله ده چې ولسمشر هم د ګوند له سیاسي زیربنا څخه خپلواک اجرایوي واک لري .د حل بهترینه لاره به دا وي چې اساسي قانون کې تعدیل راشي او د لومړي وزیر چوکۍ د حزبي ولسي جرګې اکثریت پر بنا منځ ته راشي څو حکومت جوړ شی د دولت اجراییوي چارې په غاړه واخلي داسې یو شی لکه د فرانسې دولت.فکر کوم چې هېواد د یو داسې سیستم د منلو لپاره نن چمتو دی.په هغه صورت کې حکومت پر حزبي اکثریت په ولسي جرګه کې دا چې د اکثریت د ګوند لخوا جوړېږي او یا د هېواد د څو ګوندونو د ایتلاف څخه د سیاسي ایدیولوژۍ په پاملرنې یې اداره کوي او ولسمشر او ولسي جرګې ته به ځواب ورکوونکی وي او په دې ډول د حکومت د غړو د منفرده سیاسي پاشل کېدو څخه چې نن ورسره مخامخ یو مخنیوی کېږي. مګر لومړنی شرط د دې ډول یو سیستم د بریالیتوب د حکومت په تجرید کې دی له دولتي سازمانونو ادارو څخه. د دولت د اداري دستګاه باید یو غیر سیاسي سیستم وي په مکمل ډول سره مسلکي ؛پروفیشنل؛ وي چې دنده یې د خلکو د ټاکل شوي حکومت د سیاستونو تطبیقول دي.

**د هزاره ګانو د روښانتیا غورځنګ وپېژنو!**

لکه څنګه چې شواهد ښیي د هزاره ګانو هغه خوځښت چې ؛روشنایي؛ دی دوه اصلی موخي لري:

1 ) د هزاره خلکو د سیاسي مشرتابه غصب چې دودیزو مذهبي مشرانو لکه خلیلي، محقق او نور له لاسونو څخه ووځي

2 ) د افغان حکومت توهین، سپکاوی او بې عزتي د نړیوالې ټولنې په تمه ده

د یو هزاره تېره لیکوال په وینا، حمزه واعظي،د افغانستان هزاره تر اوسه په نننی ټولنه کې له سیاسي، ټولنیز مشروعیت،شته او اقتصادي امکاناتو او داخلي او بهرنۍ استازیتوب څخه دوو ځانګړو کسانو ته منحصر شوي وو:خلیلی او محقق.د سیاسي واقعیتونو له مخې تر دې دمه هغه غورځنګ او هر هغه مرجع او عنصر چې په ټولنه او د هزاره ټولنې په سیاست کې اغېزمن حضور غواړي باید د دې حقیقت په درک کولو سره سیاسي لوبې او ټولنیز حضور ته ننوځي .

د روښنایی د خوځښت موخه د پورتني نظم تغیر دی. حمزه واعظی په انټرنیټي ویبپاڼه کې ؛روزګارما؛ (۱۳۹۴ د میزان ۲۰) کې لیکلي وو:؛ زر کلنه ټولنه د پخوا په پرتله ډېره فکري جوړښتي بدلون سره مخ شوې، ښاري کېدو، زده کړې ته لاسرسی نسبي اقتصادي فرصتونو ته لاسرسی او په سیاسي ـ مدني فعالیتونو کې ګډون د اجتماعي ژوند بڼه د بدلون په څنډه کې اچولې ده . داسې معیارونه لکه د سیاسي مشرانو څخه ملاتړ کول، اړخیز ګرایشونه، د ګوندونو سره عصبیت، د سیاست پدیدې ته په عمومي ډول مخه کول او قدرت ته د تغیر په حال د رڼا په شکل کتل.په متعبدانه ډول د مشرانو څخه پیروي کول او په ګیله منه شکل قومي مشرانو ته رجوع کول تر ډېره حده تلطیف شوي دي او په لویه کچه ابزاري لیدلور یې موندلی دی. پر سیاسي مشرانو پراخ بنسټه ډول او نیوکې د فرهنګ او هزاره فکري پوهانو په منځ کې، په تقریبي ډول سره په یو مدني کړنه بدله او منل شوی دی. د نیوکو د هضمولو ظرفیت او حتی د سیاسي مشرانو

غچ په توجهي ډول سره پورته ولاړ دی. دا ټول په فرهنگي او ټولنيز برخو کې په کراره د تغيراتو د راتللو او ښه نيولو ښکارندوی په هزاره ټولنه کې دی چې د سياسي سنتي مشرتابه الگو يې هم تر يو ډېره حده مشکلاتو سره مخ کړی دی. له همدې امله،هر ډول سياسي خوځښت او بدلون چې په دې ټولنه کې رهبري کېږي،بايد د دی ټولنيزو شرايطو او کلتوري – سياسي شرايطو درک سره مل وي .

د هزاره گانو د روښنايي د خوځښت مشرتابه تر اوسه په ډېرې زرنگۍ د ځوانانو دغه فکري تحول څخه استفاده نه ده کړې. هغه څه چې د يوې خوا د تشويش وړ دي د ايران نيشنلېزم پورې د تړلي پېژندل شويو عناصرو د نفوذ ورځ په ورځ لا ډېريدل يا د پاکستاني هزاره گانو (کويټه) د سياسي فعالين، چې د افغانستان هېواد سره هېڅ عاطفي پيوستون نلري،د دوی په منځ کې دي.د دي‌ي کسانو لپاره د افغانستان د دولت تحقير، توهين او بی اعتباره کول د نړيوال انظارو په وړاندې حتی د هزاره د قوم د سياسي مشرتابه د احراز څخه وړاندې ممکن وو او د نن ورځې په دستور کې شامل وو.

د هزاره گانو د روښنايي خوځښت مشرتابه د مالي سرچينو څخه په استفاده چې د دوی د سياسي تړاوونو بهرنيو استخباراتو پورې څخه دوی ته برابر شوی، پورتنی موخې ته د رسېدو په تکل کې دي. په ځانگړې توگه د افغانستان د ملی شورا راتلونکو ټاکنولپاره ليد او د هېواد د اساسي قانون تعديل لپاره د لويې جرگې رابلل د دې موضوع اهميت زياتوي.

## موږ څه غواړو ؟ باميانو ته برېښنا برښنا يا توتاپ د باميان له لارې په کوم قېمت ؟

وايي چې موږ دباميانو د خلکو حق غواړو چې: بريښنا: ته د لاسرسی ولري نه توتاپ ته . توتاپ د ۵۰۰ کيلو واټو څخه په ډېر ظرفيت د باميان لپاره نه دی د باميان د برېښنا ضرورت ۲۲۰ کيلو واټه دی چې په ساده گی سره د پروان د سبستيشن د جوړولو له لارې کې‌ږدی شي د غوربند له لارې چې هلته سړک شته تامين شی.د توتاپ د احداث په خاطر د باميان له لارې اول د سړک موجوديت ته ضرورت شته، دوهم ۸۴ کيلو متر لا نور اوږده لاره ده،دری کاله اضافه موده غواړي چې تکميل شي او څلورم په ميليونونو ډالره يې بيه ډېرېږي.

تاسو له کابل څخه لندن ته د لويو الوتکو په پواسطه ځئ، خو له کابل څخه باميان ته د کوچنيو دوه اړخيزو الوتونکو په واسطه ځئ . په دې اساس توتاپ، لکه د هېواد د ځينو حلقوي لېږد لينونو په څېر، د ترکمنستان څخه د لوړو ولتاژ منزلونو ته تر ټولو مستقيم او خورا اسانه او خورا اقتصادي لارې ته اړتيا لري . په ټولو پرمختللو هېوادونو کې، د لوړ ظرفيت او لوړ ولتاژ بريښنا لېږد لينونه د هېوادونو د حلقوي سړکونو په اوږدو کې جوړ شوي . د دې بريښنا مزي څخه د ليرې پرتو سيمو د بريښنا اړتيا د سبستيشنونو په جوړولو او د ولتاژ په پای ته رسولو سره د ۲۰۰ کيلو واټو او فرعي لېږد لينونوپه واسطه پوره کېدی شي.

د حاجیگک د اوسپنې د تېرې د پروژو په پرمختیایی پروژو او د لوگر د عینگ د مسو د بریښنا د نشتون له وجهې شاته نه دی غورځېدلی، نور دلایل لري. د حاجیگک لپاره د دره صوف سکاره د انرژۍ تر ټولو مهمه سرچینه ده چې هم د اوسپنې په ویلې کولو یا ذوب اهن او هم د حرارتي بریښنا په تولید کې له هغې څخه استفاده کولی شو.

هم ولسمشر او هم اجراییه رییس دواړو وویل چې دا پروژه دری کاله د مخه د اسماعیل خان لخوا د سالنگ له لارې د پروژې وړاندیز شوی و او د فهیم له لوري تصویب شو او دوی یې چارې په غاړه واخستې. زه د دی دوو کسانو په خبر باور کوم.

د حاجی گک د اوسپنې استخراج او انتقال او ویلې کول یا ذوب کول زما د دفتر یوه پروژه ده د داوود خان د ۷ کلن پلان په طرح کې په ۱۹۷۶ کال کې وو کله چې زه د پلان په وزارت کې د صنایعو او معادن عمومي مدیر وم.دا پروژه تر نن پورې چې ۴۰ کاله له هغې وتلې دي په هم هغه ۴۰ کاله پخواني دریځ کې ده باور وکړئ چې دا تاخیر د دې پروژې د بریښنا سره هېڅ ارتباط نلري.

د لوگر د عینگ د مسوکان چې په ۱۹۷۶ کال کې د داوود خان په ۷ کلن پلان کې هم زما له دفتره یوه پروژه وه، کابل او پروان تر بامیان پورې نیږدې دی، د منافقت بل دلیل نشته .

د یو ملي پروژې سبوتاژ کول د ؛حق غوښتل؛ نه دي، بلکې د نورو حق اخیستل دي، د عامه امنیت اخلا دی، د یو ملت په تشویش کې غورځول دي، دښمنانو ته د فرصت برابرول دي، د ملي نفاق منځته راوړل دي او د نړیوالو مرسته کونکو د زړه صبرکېدل دي. د هېواد ولسمشر ته توهین کول هغه هم د هېواد څخه بهر، د حق غوښتنه نه ده بلکې د افغان ملت ته توهین دی، د افغانستان د خلکو لپاره د نړیوالو مرستو بندول دي، لکه څنگه چې ځینې شر اچوونکي هزاره گان په لندن کې شعار ورکړ، د حق غوښتنه نه ده بلکې د افغانستان ملت ته خیانت کول دي، همدا اوس ایران د چمتوالي اظهار کړی دی چې د خپلې خاورې له لارې د ترکمنستان بریښنا پاکستان ته رسوي. شاید لکه لطیف پدرام،ناهید فرید او نورو د ځینو کسانو موخه د افغانستان د دولت بدنامه کول او د دې ملي پروژې سبوتاژ کول وي.

## د اساسي قانون د جعل کولو ادعا

د زکریا اصولي دا ادعا چې د ولسمشر کرزي اساسي قانون جعل شوی، زموږ پر هېواد د ایران د کلتوري یرغل پر وړاندې د خندونو د لیري کولو لپاره د یوې ناوړه دسیسې پیلامه ده.

د دې ناوړه ادعا سره باید مبارزه وشي. ما ټول ؛توشیح شوي؛مواد په نسخه کې د شاملو موادو سره چې په اصطلاح ؛تصویب شوي دي؛ مقایسه کړ او دا مقایسه دا ښکاره کوي چې ؛د اساسي قانون د املایي او انشایي تصحیح کمیسیون؛ چې د لویه جرگې ټاکلی دی خپل کار یې په سمه توگه سرته رسولی دی او د تصویب شوي اساسي قانون ټول املایي او انشایي نواقص یې د دې څخه پرته چې په مانا، موخو او د تصویب شوي موادو په روحیه کې کوم تحریف او کوم تغیر منځ ته راوړي د ډېر لږ لاسوهنې له لارې د لویې جرگې لارښوونو په مطابقت یې اصلاح کړي دي. مگر لکه چې د

دې مربوطه بند د لیکوال اصلی موخه د ؛اداري او ملي مصطلحاتو؛ په ساتنه د اساسي قانون د شپاړسمې مادې دی. دا مسخره ادعا په ۱۴ کلو کې چا نه وه کړې.موږ پوهېږو چې د دې مادې موجودیت د ډېر شمېر ایراني پالو او د افغانستان د دودیزې دري ژبې د دښمنانو ټوکو سره سازګاره نه دي او دا ماده د ایران د دودیزې فارسي ژبې د فرهنګي یرغل په مقابل کې چې د افغانستان د دودیزې دري ژبې په وړاندې دی یو خنډ دی. د دې ښاغلي دا ادعا په هېواد باندې د ایران د کلتوري یرغل په وړاندې د خنډونو د لیرې کولو لپاره د یوې ناوړه دسیسې پیل دی. د دې دسیسې په وړاندې مبارزه د دې هېواد د هر غږي وطنپال چې د خپل هېواد په ملي پېژندنه افتخار کوي او د دې ملي خپلواک هویت د کم راوستنې او کمولو چې د ایرانپالو اصلي موخه ده، ولاړېږي د هغوی دنده ده.

## هېواد وال یا اتباع

افغانان ټول د افغانستان اتباع دي د افغانستان د قوانینو تابع دي، همدا راز د هېواد د اساسي قانون او نورو قوانینو له شاملو امتیازاتو څخه استفاده کوي، د هېواد د قوانیونو په وړاندې مسول او تابع دي. هېواد وال یا همښار د انګلیسي Citizenدکلمې ژباړه ده.د همشهری د کلمې څخه استفاده کول د فرانسې د لوی انتقلاب په وخت کې ډېر رواج وموند او په ډېره د یو موټي والي، وروروليـ او د ښاریانو د همسنګریـ د دولت په وړاندې پر پاڅون یې تکیه کوله.په داسې حال کې چې د تبعه کلمې چې جمع یې اتباع دی د نفوس د مسولیت په مفهوم د دولت او د هېواد په وړاندې مانا لري.شهروند اصلا نوی جوړ شوی دی په ایران کې د عربي تبعه کلمې پر ځای دی مګر د دې څخه په بیخبریـ چې خپله د ؛شهر؛کلمه عربي ده.

## د افغانستان د ټاکنیز نظام اصلاح

د ټاکنو د سیستم د اصلاح په نامه باید د جګړه مارانو او د مافیایي ښکیلاکګرو لپاره د شرایطو ادامه د یو نوې څېرې سره یې په هېواد کې باید ورته اسانه نشي. د الکترونیکي تذکرو د قانون د عجولانه او ناځاپی توشیح د تیروتنې څخه باید زده کړو.دا تېروتنه د دې څخه پرته چې د قضیې مخکې له مخکې حل د ملي تفاهم له لارې وشي، زموږ د معاصر سیاسي ژوند د تر ټولو لوی کړکېچ سبب شوی دی. د ټاکنو د قانون او د ټاکنېز سیستم په اصلاح کې باید له شفافیت څخه کار واخیستل شي او ټول اصلاحي وړاندیزونه باید د ملی مباحثې لپاره وړاندې شي نه داچې د هغوی سره د بندو دروازو شاته چلند چې هلته قومي، مذهبي، نظامي، اقتصادي او سیاسي مافیا بلامنازعه نفوذ لري. دا مافیا د ټولو هغه کسانو دښمن دی چې د حکومت قانون، دیموکراسي او د هېواد د قومونو حقوق د نړیوال بشر حقوق د منشور په مطابق باندې عقیده لري. د ټاکنو د سیستم اصلاح باید د دیموکراسی په تقویت په هېواد کې او په هېواد کې د ډیموکراتیکو بنسټېنو په تقویت انجام شي نه دا چې د سیاسي قدرت په انحصار د جګړه مارانو په لاس، د سمتي او تضعیفي ملوک الطوایفی مرکزي دولت د قدرت په تقویت.

**د نوروز لمانځنل**

د وخت په اوږدو کې ځينو هڅه وکړه چې د جنډې پورته کول د مزار شريف د سخي جان په زيارت او په کابل کې د اسلام او په ځانګړې توګه د شيعه مذهب سره اړيکه ورکړي.په داسې حال کې چې د نوروز د لمانځنې پخوانی تاريخ د منځنی اسيا د اريايانو، پارسيانو، اسوريانو او کردانو په منځ کې د اسلام څخه د مخه زمانو پورې رسېږي.

ځيني په بې خبری فکر کوي چې نوروز د پارسيانو يو دود دی موږ سره اړه نه لري. حقيقت دا دی چې نوروز په اوله درجه کې افغانستان سره اړه لري ځکه چې د هېواد شمال د اريايي تمدن زانګو ده.له دې مخې زردشتي دين او د بلخ د خلکو ژبه يانې دري ژبه سوېل او لوېديځ او فارس ته اوږدېږي او د ساسانيانو درباري ژبه باندې بدلېږي په داسې حال کې چې د پارس خلک په ساساني پهلوي او ارامي ژبه خبرې اترې او کتابت کوي. اسلام د تاريخ په اوږدو کې په دې هېوادونو کې د افغانستان خلک نوروز د يو فرهنګي او غير مذهبي دود په شکل نمانځلی دی مګر اوس د تکفيري او وهابي افراطيانو په منځته راتلو د هغه سره مخالفت پيل شوی دی.

**د ايراني يرغلګرو په وړاندې د هرات د خلکو د اوه سوه ورځني مقاومت يوه بيلګه ده**

[د ۱۸۳٦ز د نوامبر ۲۰ څخه تر د ۱۸۳۸ز سپټمبر ۸ پورې]

**سريزه**

د هرات د نيولو لپاره د ايراني پر پوله زماد زېږون ځای دی ( ۲۹ عقرب ۱۳۲۸ ش ) او د هرات ښار موفق ښوونځی او سلطان عالی لېسه هغه مرکزونه دي چې ما خپلې لومړنۍ او ثانوي زده کړې پکې پيل کړې او دوام ورکړ.د ظاهرشاه پارک، ګزرګاه شريف، تخت سفر، پل مالان،خواجه غلطان ولي او نور د تل لپاره زما په خاطراتو کې ژوندي دي. کله چې د هرات د سلطان د ليسې په ۱۱ ټولګي کې وم هره اونۍ می د تهران چاپ شوې د اطلاعاتو اونيزه مجله لاسته راوړه او د سرليکونو څخه تر تجارتي اعلانونو ټول به می په ډېر شوق لوستل. ما هم په ايران کې د همدې عمر له ځينو محصلينو سره په اونيزه معلوماتي ليکونو کې د دوستۍ د ليکونو په کارولو سره د ليکنو ښوونځي ته لاره خلاص کړې وه . د دې قلمي ملګرو سره له نيکه مرغه تر نن ورځې، يانې د ۵۱ کلو څخه وروسته، تر اوسه هم سره ملګری يو. هغه علي مير فطروس، د ايران د نننې ډېرو مشهورو ليکوالانو او پوهانو څخه دی چې د ؛اسلام پېژندنې؛ کتاب يې تر اوسه له لسو وارو څخه اضافه بيابيا چاپ شوی دی. له نيکه مرغه د هغوی سره د ملاقات فرصت څو کاله وړاندې په پاريس کې هم راته پيدا شو. له دې کبله هر هغه څه چې ليکم د ايران په واړندې ضد او يرغل له مخې نه بلکې مسلکي صداقت ته د ايمان په درلودلو د تاريخي حقايقو بيا ويل دي، هغه مسوليت ته احترام دی چې د نننې نسلونو او راتلونکي نسلونو په مقابل کې کوم چې د تېرو پيښو په اړوند تاريخي ليکنو ته مراجعه کوي.

کله په ډېرو وړاندې تېرو زمانو کې،د هخامنشیانو او ساسانیانو په عصر کې د منځنی اسیا هېوادونه او ننني افغانستان د لرغوني فارس د اشغال شوي قلمرو یوه برخه یې جوړوله. په هم هغه ډول چې د دې هېوادونو برخې یا په ټوله کې د فارس په شمول یو وخت د دې سلوکي،کوشاني، هندي، اسلامي خلافت، مغولي، تیموري، غزنوي،غوري، سلجوقي او د نورو امپراتوریو اشغالي قلمرونه وو. د فارس د پان ایرانیست نېشنلیستانو لپاره، تر اوسه هم دا هېواد خیالي ؛ایرانزمین؛ دی. دا حقیقت دی چې د دې هېوادونو وګړي ډېر فرهنګي ګډ موارد سره لري او ټول یو ګډ فرهنګي تاریخي حوزې پورې تړلي دي. مګر په سلګونو کلونه دي چې د دې فرهنګي حوزو مختلف برخې د بېلو هېوادونو او ملتونو په جوړېدو په تاریخ کې خپلې سره بېل شوي لارې وهي او تاریخي، سیاسي،فرهنګي پېژندنې خپل ځان لپاره مختص یې منځ ته راوړي او ورپسې دي. دې عیني واقعیت ته باید احترام وکړو او د نورو ملتونو او هېوادونو د خپلواکۍ حرمت باید وساتو.

لازم دی په یاد ولرو چې د میرویس خان هوتکي د اقدام څخه وروسته (غلجي) چې کندهار یې د ګرګین خان د خونینې سلطې څخه چې صفوي حاکم وو راخلاص کړ یو خپلواک دولت یې جوړ کړ چې پلازمېنه یې په همدې هېواد کې وه (۱۷۰۹ز)، هرات د عبدالله خان ابدالي په مشرۍ په بریالیتوب سره د خپلواکۍ د غوښتنې پاڅون د فارس د صفویانو د نیږدې دوه سول کلن سلطې څخه وتلو لاس پورې کړ او د هرات د ابدالیانو خودمختاره حکومت یې منځ ته راوړ (۱۷۱۷ July, 26). په ۱۷۴۷ز کې د احمد خان په پاچا کېدو سره یو خپلواک هېواد چې نن د افغانستان په نامه په نړۍ کې پېژندل کېږي، منځته راغی. دا نوی ظهور کړی هېواد په ډېرې چټکۍ د ابدالي په امپراتورۍ، افغان امپراتورۍ او د افغانستان په هېواد بدل شو چې یو وخت د کسپین له سمندر څخه په شمال کې ننني ایران څخه تر ډهلي او د امو له سیند څخه تر عرب سمندر پورې د ننني پاکستان د سواحلو سره یې د قلمرو حدونه وو. د نوي ظهور شوي افغانستان د دولت له جوړېدو څخه نیږدې یوې پېړۍ په اوږدو کې تر د دې مقالې د بحث لاندې د پېښو تر کلونو (۱۸۳٦-۱۸۳۸م)، هرات او خلک یې د دې هېواد او د نوي ظهور کړي ملت یوه لاینفک جغرافیایي برخه وو.مګر په تاسف سره هېڅ کتاب، مجله،ورځپاڼه او تاریخي ایراني رسنۍ به و نه مومې چې په هغه کې تر اوسه هم د هرات د لاسه د ورکولو مسئله په اړه او حسرت یاد نکړي او په جعل سره د ایران د ملت د فرېب په موخه،د انګلیس ښکیلاک د دې په اړوند مقصر و نه بولي! لکه چې په ګوته کېږي چې ګني هرات په ۱۸۳۸ز کال کې له ایران څخه بېل شو په داسې حال کې چې دا ښار د ۱۷۱۷ز کال پاڅون سره خپل تصمیم د خپلواکۍ لپاره اعلان کړ او د ۱۷۴۷ز کال څخه وروسته په سیاسي جغرافیه کې یو خپلواک هېواد چې نن افغانستان نومېږي کې موجود وو.

د ټولو ناخوالو ګناه او ملامتي،د بې عرضه والي، بې خبریو او دریمې نړۍ د د ورسته پاتې شویو هېوادو ملتونو د تیرې زمانې د ښکیلاک په غاړه اچول او د لویدیځ صنعتي پرمخ تللې نړۍ په غاړه،زموږ د هېوادونو د معمولو تګلارو څخه دي. فرضیه دا ده چې موږ هېڅ وخت د هغه څه چې پر موږ تیر شوي مسوول نه وو دا نور کسان وو او دي چې موږ یې دا حال ته رسولي یو! که جیمي کارتر او د بي بي سي راډیو نه وی خمیني نشو کولی په ایران کې اسلامي دولت جوړ کړي، که د انګلیس ښکیلاک نه وی افغانستان به تر اوسه د ایران برخه وی،په سلګونو نور بی لارې کونکي او ځان غولونکې پلمې په همدې ډول. د دې څخه د فارس قاجاري د دولت بې کفایتي او ناتواني د هرات د محاصرې په ماتولو

کې د انگلیسانو په غاړه اچول دي، د دې سره سره چې د لوی اردو او د زمان د ښکیلاکگر تر ټولو لوی قدرت همکاري ورسره وه هم په دې قادر نشو چې د یو کال څخه په ډېر وخت کې د هرات د خلکو پرله پسې د مقاومت یرغل سره درې وړې کړي. بې ځایه نه دي چې د ایران د لومړي وزیر ناصر الدین شاه، د میرزا اقا خان نوري له خولې معروفه جمله په یاد راولو چې ویلې یې وو ؛هرات له لاسه ولاړ، د خدای څخه شکر زموږ صدارت لا پاتې دی.؛ (۱۳۹۳ د قوس اتمه حمید رضا پارسا،) له نیکه مرغه اراده، غوښتنه،عزم او عمل د هرات د خلکو د خپل راتلونکي په ټاکنه کې د سلگونو کتابونو او زرگونو تاریخی بې لارې کونکي ایراني مورخینو له لیکنو له لړه لکه د رڼا ورځې شانته دي، یوازې یو حقیقت لیدونکې سترگو ته ضرورت لري چې هغه ووینې. له دې کبله موخه دا ده چې د دې لرغوني ځای د خلکو قهرمانۍ د خپل ښار او ځای په دفاع کې، که څه هم په لنډه،په اکثر ډول سره د خپله ایراني موریخینو د لیکنو څخه په استفاده، ولیکو.

**لنډیز**

د ایران د اردو یرغل د هرات د تصرف په خاطر د ۱۸۳۶ ز کال د نومبر په ۲۰ نېټه د زرگونو افسرانو او توپخانو په کارولو او د نظامي څېزونو او وسایلو څخه په استفادې د غوریانو پر ولسوالۍ چې د افغانستان د ایران سره په سرحدي برخو کې موقعیت لري، باندې یرغل وکړ. دا یرغل د محمد شاه قاجار په مشرتابه پیل شو ایراني ستر ځواک په دې وتوانېد چې د غوریان د واړه کلي د مدافعینو مقاومت د دریو ورځو شدیدو جگړو څخه وروسته مات،تسخیر او د خاورو سره یې یو کړي.د دې څخه وروسته اردو د هرات په خوا مارش وکړ.روسي نظامي پیل کړل او د هرات حصار یې د مرمیو د باران لاندې ونیولو او د شپږ ورځو بمباریو څخه وروسته د ښار د برجونو او بارونو یرغل یې وکړ او د گړنگ تر څنگ راورسېدل او ځینې یې له گړنگ څخه تیر شول مگر د افغانانو ؛افاغنه؛د ډېر کلک مقاومت په پایله کې او د اوبو او د گړنگ له وجهو او د ډېرو تلفاتو له وجهې په دې ونتوانېدل چې ښار ته دننه شي او په همدې یرغل کې چې تر ټولو لوی د هرات د لسو میاشتو د محاصرې پیښه ده سرتیپ بروکلي د لهستان د کډوالو امیرزادگانو څخه چې د ایران د نظام په خدمت کې وو په قتل رسېږی. د یرغلونو نقشه کنت سیمونتیچ د روسیې وزیر مختار کښلې وه.؛ (تاریخي څېړنې؛څلورم کال، لومړۍ شمېره، ۱۳۴۸ د حمل او ثور). دا یرغل د ۱۴ میاشتو ته نیږدې یا اووه سوه ورځو څخه وروسته د هرات د خلکو د قهرمانانه مقاومت له مخه بریالی نه شو او د ایران لوی ځواک د ډېرو مالي، ځاني او رواني تلفاتو په تحمل ببرته تگ ته اړ شول.

ډاکټر مهدي ابو الحسني ترقي د ایران د اردو علتونه د هرات په محاصره کې په دې ډول لیکي:

؛د روسانو د مساعدت او مرستې په صورت کې ایران سره، په دې کې به شک نه وو چې د ایران نظامي ځواکونو ممکن د هرات په تصرف او د انگلیس هندوستان د سرحداتو د تهدید او حتی د سیمو په فتح به پیاوړي شوی و. مگر د افغانانو سرسخته مقاومت د انگلیسي افسر په تشویق او برنامو د دې کار د کېدو مخه یې ونیوله. د پاتینجر او د نورو انگلیسي نظامیانو د انکار نه کونکې برخې څخه د هرات د نه فتح کېدو، د ایراني قوماندانانو غلط او مشري او بې وزلي

او د دوی گډوډ یرغلونه د هرات د محاصرې په شنډولو کې ټول دخیل علتونه وو.حتی خپله الدرد حیران وو چې ولې ایرانیانو هرات فتح نکړی شو. دا د هغې زمانې له واقعتونو څخه وو مگر په حقیقت کې د انگلستان د وعدې ماتول او په پټه او ښکاره دخالت کولو د ایران په داخلي چارو کې او د ایران د دولتي مشرانو اتکا د تزاري روسیې په وعدو او د روسیې د حمایت نشتوالی د ایران له اردو څخه د ضرورت په وخت کې، دا ټول د دې حرکت د ناکامۍ سببونه شول.؛ (ډاکټر مهدی ابوالحسنی ترقي، د ایران د معاصر جامع تاریخ بنسټ، د سیاسي او پلټنو د مطالعاتو بنسټ، تهران).

پاملرنه وکړئ چې یو ایراني مورخ د ډاکټرۍ په درجه یو ؛انگلیسي افسر؛ (انگلیسي جاسوس) موجودیت د هرات په ښار کې د ایران د لوی اردو د نه بریالیتوب علت بولي او همدا مورخ په بل ځای کې تاییدوي چې دا جاسوس یا انگلیس افسر په بدل شوې جامه کې اول د اس د تاجر په نامه او وروسته بیا په دروغو د سید او د طریقت د اهل په شکل،د افغانستان د دولت څخه د رسمي اجازې پرته،کابل ته لاړ او له هغه ځایه هرات ته ورسېد او هره لحظه د نیول کېدو او اعدامولو او یا د برده پلورونکو په دام کې له لویدو څخه په ډار کې هم وو.نو په دې ډول سره که د دې ایراني ډاکټر توضیح ومنو د برېټانیا سلطنتي امپراتوري د انتلجنس سرویس ۰۰۷ مامور  په هغه وخت کې په هرات کې وو او د ایران د اردو ماته یې چې د تزاري روسیې د خوا یې هم ملاتړ کېدو طرح او پلې کړ! دا څنگه امکان لري چې د یو پوه او باخبره ایراني لوستونکي شعور د دې ډول جعلیاتو له لارې مسخرې لاندې ونیسو؟حد اقل دا لیکوال،د نورو ایراني مورخینو پر خلاف، د انگلیسي پنځه کښتیو تهدید د بوشهر پر بندر د یرغل لپاره د ایراني ځواکونو د ماتی پلمه د ۱۴ میاشتو جگړو څخه د هرات په شاو خوا کې نه مخته کوي!

د ایران د اردو د ماتې په اړوند د هرات په محاصره کې ایراني څېړونکي علی اکبر بینا د تاریخ د برخې ډاکټر لیکي:؛محمد شاه د ۱۸۳۸ز سپتمبر په ۸ د کومې پایلې د تر لاسه کولو څخه پرته د هرات له محاصرې څخه لاس په سر شو ...په دې ډول سره د ایران دولت په عملي توگه د هرات له تصرف څخه سترگې پټې کړې او انگلیسانو هغه ښار تسخیر او اشغال کړ.؛ (تاریخي څېړینې؛ څلورم کال، لومړۍ شمېره، ۱۳۴۸ ه ل حمل او ثور). دا ایرانی لیکوال او مورخ، یو ځل بیا د ډاکټرۍ په درجه، د ؛هرات د خالي اشغال د انگلیسانو لخوا اړوند کوم ماخذه څخه یادونه نه کوي. تاریخي حقیقت دا دی چې انگلیسان نه یوازې د هرات له محاصرې څخه وروسته مگر د هغې څخه وروسته هم په دریو جگړو کې چې د افغانستان سره یې وکړې (۱۸۳۹-۱۸۴۲ز،۱۸۸۰-۱۸۷۸ز، او ۱۹۱۹ز) هېڅکله یې پښه هرات ته و نه رسیده او دا ښار هېڅکله د انگلیسي ځواکونو د یرغل لاندې  را نغی او د دوی تسخیر او اشغال لاندې  را نغی.پوښتنه دلته ده چې څنگه امکان لري داسې یو روشنفکر ملت لکه ایران د تاریخي دې ډول جعل د واقعیتونو سره زړونه ښه کړي؟مگر یا دا چې پر دې جعلیاتو باندی اتکا کول د پارسیانو د پان ایرانیزم د خوځښت د ژوندي ساتلو په موخه لازمی دی؟

د دې یاداښتونو په اوږدو کې څو ټکي د تامل وړ دي: اول – د هرات د مالکیت د دعوا په شتون، ایراني مورخین په ټولو اشاروو کې هرات د افغانستان خاورې پورې شامل لیکي.دویم – یو بل مطلب په ښکاره ډول سره د ایراني مورخینو په لیکنو کې وینو  چې هغه د دوی اشاره د ؛افغانستان؛هېواد ته ده.حتی یو لیکوال می هم نه دی موندلی چې د افغانستان اوسني هېواد ته ؛خراسان؛ خطاب کړی وي.په حقیقت کې ټول ایراني مورخینو په دې یاداښتونو کې خراسان

یې یوازې د مشهد،نیشاپور، سبزوار،مرو، خیوه، بادغیس او هرات او د هغه ځایونو سیمې بللې دی. دریم – همدا راز بل مهم مطلب په ښکاره د ایراني مورخینو په لیکنو کې گورو چې ؛افغان؛ او ؛افاغنه؛ته اشاره د دوی د دې هغه کسانو په مانا چې په افغانستان کې مېشت دي.دا ډول اشاره په نننی ایران کې هم عامه ده مگر دا که په غلطی داسې تصور وکړو چې د افغانستان د خلکو ټول افتخارات د برېټانوي هند او د قاجاري او صفوي ایران پر ضد په جگړو کې یې ایرانیانو ؛پښتنو؛ته ورکړي وي.

## د هرات لنډ تاریخ

د هرات د لرغونی ښار څخه په زردشتی اوستا کتاب کې د ؛هریوا؛ په نامه یادونه شوې ده.هرات د ماورالنهر د دروازې په شکل (منځنی اسیا) او د هندوستان په لرغوني عصر کې د کوروش او د داریوش د فارس د هخانمنشي شاهانو د فتوحاتو په لارو کې او (۳۳۰-٦۳۰ ق م)، سکندر مقدوني او د باختر گریکو نور ټول قوماندانان (۲۳۹-۳۲۳ ق م) او ساسانیان (۲۲۴-٦۵۱م) کې وو. د هرات لرغونی نوم ؛اریا؛ وو چې په دري ادبیاتو کې د هرا، هراه، هرو او هریوا په نومونو هم بلل کېږي.د هرات د ښارمشهور ارگ د اختیارالدین په بنایي د کلي په نامه تاریخي ډول سره د هرات په ښار کې پاتی دی د سکندر له دوران څخه دي (پورتني تصویر ته پاملرنه وکړئ).د هرات ارگ چې د افغانستان تر ټولو لرغونی تاریخي اثارو څخه دی، د سکندر لخوا د (ارتاکوانا) یا نننی هرات د ښار د نیوولو څخه وروسته هلته یې خپلو نظامیانو لپاره جوړ کړ. دا قلعه د مغولانو لخوا ویجاړه شوه مگر د ملک فخر الدین ال کرت په عصر کې (۱۳۷۰ز) د وزیر یې اختیار الدین لخوا یو ځل بیا اباده شوه چې نن د هغه په نامه یادېږ،د هرات د ښار د قدامت په اړوند داسې وایو:

لهراسپ یو ښار جوړ کړ چې گشتاسپ وو او په هغه کې بهمن بله ودانی جوړه کړه او د هغه څخه وروسته بل عمارت جوړ کړ او رومي سکندر ټول وران کړ .

د عرب مسلمانان د فارس نیولو وروسته (٦۵۱ز)، مرو یې په خراسان کې په خپل نظامي اداري مرکز بدل کړ د دی ځایه پر خراسان،فارس، ماورالنهر او سیستان باندې حکومت کولو.په هغه وخت کې غزنی او کابل هندو شاهانو اداره کولو .د هرات د نیشاپور او مرو تر څنگ د دریو ښارونو څخه یو مهم ښار او د لرغوني خراسان ختیځ مرکز دی چې نن د افغانستان په قلمرو کې دی، دوهم د ایران په قلمرو کې او دریم د ترکمنستان په قلمرو کې دی. طاهر چې د هرات په فوشنج کې زېږېدلی دی،د امین الرشید د غایله د ختم سره سم د عباسي مامون الرشید لخوا په ۸۱٦ز کال کې د خراسان د حاکم په صفت وگمارل شو او د اته کالو نیمه خپلواک حکومت یې منځته راوړ.هغه یوه شپه په ۸۲۲ز کال کې له دې وروسته چې جمعې لمونځ په خطبې کې یې عباسي خلیفه په نامه و نه لوست د خپلې یوې مېرمنی لخوا چې د مامون الرشید لخوا مقرره شوې وه مسموم او مړ شو. د طاهر څخه وروسته د هغه زوی طلحه په خراسان کې حکومت ته ورسېد.طاهریان په خراسان کې شپېته کاله په خودمختار ډول حکومت وکړ او په دې موده کې هرات له مصیبتونو څخه خوندي وو. دوی لومړنی خودمختار دولت په اسلامي خلافت کې منځته راوړ د عربی خط او کتابت یې د دري په ژبه کې دودیز کړ.د طاهریانو د سلطه په اضمحلال، صفار یعقوب لیث د صفاریانو سلسله د نیمروز له زرنج څخه بیرغ پورته کړ او په ۸٦۷ز کال کې هرات یې لاسته راوړ او تر د ۹۵۰ز کال پورې د هغوی د قلمرو برخه وه په نیمه خپلواک

ډول د عباسي خلافت څخه اداره کېدو او په دې ورځو کې د هند شاهانو د واکمنۍ کابل مات کړل او بیا  د اسلام په دین مشرف کړ. د صفاریانو په وخت کې د لومړي ځل په دري ژبه شعر ویل د عربی عروضو سره سم مروج شو.د عمر او لیث له ماتې وروسته صفار د اسمعیل بن احمد ساماني په لاس له منځه ولاړ، هرات د هغه د کارکونکي لخوا ابوعلی سمجور اداره کېدو (۹۵۰-۹۹۳ز).

د سامانیانو په دوران کې د هرات ښار د ځانګړي مقام او منزلت څخه برخمن وو تر دې چې نصر بن احمد ساماني څلور کاله په دې ښار کې تیر کړي او همرکاب ارکین  یې رودکي سمرقندي دې ته اړ کړي چې څو شاه دې ته وپاري چې له ماورالنهر څخه بېرته وګرځي او رودکي خپل دغه معروفه قصیده  په هغه زمانه کې ولیکله او د شاه بخارا ته د راتګ سبب شو: (قصیده په پښتو نه ده ژباړل شوې)

؛بوی جوی مولیان آید همی - یاد یار مهربان آید همی ریگ آمو و درشتی راه او - زیر پـایم پرنیـان آید همی آب جیحون از نشاط روی دوست - خنگ ما را تا میان آید همی ای بخارا! شاد باش و دیـر زی - میر سویت شادمان آید همی میر ماه است و بخـارا آسـمان - مـاه سـوی آ ــس مان آیـد همـی میـر سرو است و بخارا بوستان - سرو سوی بوستان آید همی آفرین و مدح سود آید همـی - گر بـه گـنج اندر زیان آید همی؛

د جهانبخش ثواقب له قول څخه لولو چې:؛په واقعیت کې، په داسې حال کې د سامانیانو د امارت حقیقي بنسټ اېښودونکی، نصر بن احمد وو، د دې کورنۍ لومړنی خپلواک پاچا،د هغه ورور اسماعیل بن احمد دی چې د نصر بن احمد د مړینې څخه وروسته (۲۷۹ ه) په دې وتوانېد چې پر عمر او لیث باندې بریالی شي او د سامانیانو حکومت په ماورالنهر کې ټینګ کړ او د هغه حکومت د معتضد عباسی خلیفه له لوري په رسمیت وپېژندل شو.د نرشخی په لیکنه:؛کله چې د امیر نصر د مړینې خبر امیر المومنین معتضد بالله ته ورسېد،د ماورالنهر د عمل منشور یې امیر اسماعیل ته ورکړ.(نرشجی، د بخارا تاریخ،۹۴ ص.کامل،۱۳ ج،۷۰ ص) ؛سامانی اسماعیل؛ هم د خلیفه د ملاتړ په خاطر،د عمر تر اخیره هغه ته وفادار پاتې شو. هغه چې یو زړور او با تحریکه انسان وو،په یو سلسله سیاسي کارونو یې لاس پورې کړ او داسې فتوحات یې وکړل چې د هغو په اثر، مقام او حیثیت یې لا نور پورته شو  او په کراره سره په دې قادر شو چې د ماورالنهر ټولې برخې د خپل حکومت تر اطاعت لاندې  راولي.اسماعیل د خپل امارت مرکز بخارا کې جوړ کړ چې د خراسان او ماورالنهر سرحد  تر ټولو نیږدې ښار وو او د اصطخري په قول هر هغه څوک چې هلته وو،خراسان یې په مخ او ماورالنهر یې تر شاه وو.په هر ډول سره ابو علي سیمجور د خپل حکومت په اخیرو کلونو کې د بخارا سامانی امیرانو ته د مالیاتو او د باج د ورکولو څخه ډډه وکړ هرات یې تر خپل ماتې پورې د غزني د امیر سبکتګین په لاس کې ۹۹۳ز کال،په خپلواک ډول یې اداره کړ. د ابو علی سیمجور څخه وروسته هرات د غزنوي د لویې امپراتورۍ برخه شوه چې له غزنی څخه اداره کېده.

هرات د غزنویانو د واکمنۍ په ورستیو کې د سلطان سنجر سلجوقي په لاس ولوېد او د تاج الدین یلدوزي لخوا او د هغه څخه وروسته غلام بها الدین طغرل د سلجوقی حاکمانو لخوا اداره کېدو.هرات په ۱۱۶۹ز کال کې د سلطان غیاث الدین غوري لخوا فتح شو.سلطان غیاث الدین غوري ۴۳ کلونو لپاره په هرات کې حکومت وکړ او د هرات معروف جامع

جومات د هغه د واکمنی د دوران پاتی نښه په هرات کې ده. هغه په ۱۲۰۲ز کال کې د هرات په ښار کې وفات شو او د هرات د جامع جومات په محوطه کې خاورو ته وسپارل شو.

سلطان محمود خوارزم شاه د ۱۲۰٦ز کال څخه وروسته د هرات ښار فتح کړ.د خوارزمشاهانو مرکز د گرگنج ښار وو چې د ارال د گړنگ په جنوب کې په نننې ترکمنستان کې موقعیت لري چې په ۱۲۱۹ز کال کې د مغولانو لاسته ورغی.داسې ویل کېږي چې مغول چنگیز په داسې حال کې چې چین یې د سلطې لاندې وو د لویدیځ او سوېل خواوو ته د نړی د نیولو لپاره ضرورت نه درلود او یوازې د تجارتي اړیکو ټینگول د لویدیځ گاونډیانو سره یې په منځنی او سوېلي اسیا کې غوښتونکی وو چې د محمد خوارزمشاه لخوا اداره کېدو.مگر د سلطان محمد خوارزمشا تند ځوابونه د چنگیز خان دوستانه پیغامونو ته او د هغه د تجار او ورلېږل شویو کسانو قتل او د هغوی د سامانونو پلورل د هغه د بی تدبیری او د نا اشنایی د سیاست د قواعدو څخه ښکارندوی وو د چنگیز د قهر او غصې او د غچ اخیستو سبب شو.همدا راز سلطان محمد او د هغه مور د خپل سلطی لاندې په هېڅ هېواد کې له کاشغر (د نننی چین په لویدیځه برخه کې یو ښار) څخه تر عراق پورې هېڅ با قدرته پاچا یې خپلواک پرېښود او د هغوی لخوا د یرغل په ترځ کې تښتیدو،له همدې وجهې په ټوله امپراتوری کې داسې څوک نه وو چې مشري په لاس کې واخلي او د مغولو په وړاندې ودرېږي، داسې څوک پاتی نه وو. نفوذ ترکان خاتون، د سلطان محمد خوارزمشاه مور، د هغې او د زوی تر منځ یې د اتفاق نشتون تر دې حد پورې وو چې سلطان محمد حتی د هېواد د ولیعهد په ټاکنه کې خپله کوم اراده نه درلود او باید د مور د حکم څخه یې پیروي کړې وی.محمد خوارزمشاه د چنگیز د رالېږل شویو په دوه وار وژنه د ملگرتوب د لاس او تجارت ردول د دوی سره د مغولانو د قهر او غصه یې وپاروله او په پایله کې یې مغولانو په ۱۲۱۹ز کال کې تر ۱۲۲۲م پورې د ماورالنهر ټول ښارونه یو په بل پسې اشغال کړل او محمد خوارزمشاه فراري کېږي.

چنگیز خپل زوی تولي په خراسان کې مامور کړ (٦۱۸ ه س،۱۲۲۲ز).تولي خراسان له مرو څخه تر بهیق (سبزوار) پورې او له نسا او ابیورد څخه تر هرات یو په بل پسې اشغال کړل او هغه ځای یې هم د ماورالنهر د ښارونو په شان وران کړ.په دې زمان کې د چنگیز لور او د تغاجار مېرمنه چې مېړه یې د نیشاپور د ښار په محاصره کې مړ شوی وو،د غچ اخیستلو په موخه دې ښار ته راورسېده.د هغې په امر ښار ته اور واچول شو او ورانیو ته یې تر ۷ ورځو لپاره اوبه ورسمې کړې او وروسته یې پکې وربشې وکرلې. تولی د نیشاپور د له منځه وړلو څخه وروسته د هرات په لاره روان شو او خپل یو سردار یې د ۴۰۰ جنگیالیو سره هلته پرېښود.په مرو کې هم خلک د جلا الدین د بریالیتوب په هیله (د محمد خوارزم شاه زوی او پر ځای یې ناست) پر مغولو باندې پاڅون وکړ او ښار یو ځل بیا جلال الدین د یارانو لاسته ورغی.هغوی د مغولو د لاس کېښېنول شوی حاکم په مرو کې مړ کړ.د هغې څخه وروسته د چنگیز لښکریان د خلکو د پاڅون د ځپلو په موخه راورسېدل او په مرو کې مېشت اوسېدونکي په ډول ډول شکنجو لکه ټوټې کول او په اور یې وسوځول. په هرات کې هم خلک د ملک شمس الدین جوزجانې په مشرتابه په پاڅون پورته شول او مغولی حاکم یې ووژلو.څنگه چې دا خبر چنگیز ته ورسېد خپل زوی تولي ته یې سزا ورکړ او ویې ویل ؛که تا د هرات خلک په لومړي ځل ټول وژلي وی داسې یوه فتنه به منځ ته نه راتله.؛ او امر یې وکړ چې د هغې ښار د خلکو څخه یو هم ژوندی پرینږدي. ښار د ٦ میاشتو او ۱۷ ورځو لپاره په محاصره کې پاتی شو تر هغه چې د ٦۱۹ س په جمادی الاول کې (۱۲۲۲ز) ښار د مغولو لخوا تصرف شو

او هغوی هر چا ته چې یې لاس رسېدو، هغوی یې مړه کړل او ښار یې وران کړ.د مرو،هرات او نیشاپور د ورانېدو څخه وروسته، د ماوروالنهر د هېواد د سویلي خلکو پاڅون په ډېرې چټکۍ وځپل شو. چنګیز د طالقان د فتح څخه وروسته (طالقان بلخ) او بامیان د لویې ډلې سره د غزني خواته ولاړ.

د چنګیز له مړینې وروسته هرات او د هغه توابع او فارس د مغول هلاکو خان لخوا اداره کیدو. د هلاکو د مړینې څخه وروسته ملک شمس الدین کرت چې نیکونه یې سلطان غیاث الدین غوري ته رسېږي د چنګیز د لمسي لخوا اباقا خان د هرات، سیستان، اسفزار، غور، غرجستان، فراه په حکومت مامور شو او تر ۱۲۷۹ز پورې د دري دېرشو کلونو لپاره په قدرت کې وو.دوی په ال کرت مشهور دي او په مجموع کې ۱۴۰ کاله د هرات له مرکز څخه د نني افغانستان په اکثریت برخو حکومت کړی دی.په دې دوران کې د مغولانو امپراتورۍ ته په سمرقند او مغولي وایلخانان چې پلازمېنه یې تبریز وو وفاداره وو د خپل قلمرو ټولې برخې او هرات یې په نني افغانستان کې د پېښو له ضرر څخه په امان کې وساتلو.

په ۱۳۳۹ز کال کې ملک معزالدین د هرات حکمران شو او دا هغه وخت وو چې د مغول هلاکو خان د اولادې د حکومتونو د بخت ستوری په ایران او عراق کې د نزول له حالت سره مخ وو د دې سلسلې وروستنۍ پاچا سلطان ابوسعید بهادر خان د مغول اورنګ شاه سره د مقابلې په موخه را ووت او په لاره کې ناروغ او مړ شو. د دې زمانې څخه وروسته د داخلي جګړو څخه په استفاده د مغول ایلخانان پاتې په ایران کې،ملک معز الدین په هرات کې په خپل نامه د خطبې لوستلو باندې د خپلو هېوادونو خپلواکي اعلان کړه چې په هغه کې په برخو  کې د نني افغانستان  لویې برخې شاملې کړې وې او د مړینې کال پورې (۱۳۷۴ز) په خپلواک ډول په هرات کې حکومت وکړ.د خپل قیادت لاندې  په راوستلو مګر د څلوېښتو ورځو د محاصرې څخه وروسته ماته یې وخوړ ماورالنهر ته بېرته ولاړ.د ملک معز الدین څخه وروسته د هغه زوی ملک غیاث الدین پیر علي د هرات حکومت ته ورسېدلو چې د ۱۲ کاله حکمرانۍ څخه وروسته په ۱۳۸۷ز کال کې د ګوډ امیر تیمور لخوا (۷۷۱-۸۰۷ ه س ۱۳۰۷-۱۴۰۵ز) یوې خواته شو او هرات د تیموریانو د حکومت لاندې شو.

تیمور خپل زوی معیین الدین شاهرخ تیموري (۸۰۷-۸۵۰ ه س ۱۴۰۵-۱۴۴۷م ) یې د خراسان د حکومت لپاره په هرات کې وټاکلو.هغه د ګورکانی تیمور څلورم زوی او د هغه پر ځای کېناست او د تیموري پاچایانو د مشرانو څخه دی. د تیمور د مړینې څخه وروسته هغه حاکمان چې د هغه له ډاره اطاعت ته حاضرشوي وو هر یو د خپلواکۍ بیرغونه پورته کړل. د تیمور هر یو زوی هم په یوه څنډه کې خپل حکومت جوړ کړ.په پایله کې شاهرخ پر رقیبانو د غلبې وروسته د خپل پلار د ځایناستي یا جانشین په توګه حکومت په خپل لاس کې واخیست.شاهرخ د خپل پلار بر خلاف یو ارام غوښتونکی سړی وو او ابادۍ او عمران سره یې ډېر شوق نه درلود.دا وضعه د هغه د ځایناستو په وخت کې هم لږ او ډېر دوام درلود. د هغه څخه وروسته زوی یې الغ بیګ (۸۵۰-۸۸۳ ه س/ ۱۴۴۱-۱۴۴۹ز) د تیموري د امپراتورۍ حکمران شو.شاهرخ هنر او ادب سره ډېره مینه درلوده او د علم او هنر سره یې ډېر علاقه درلود.د بیلتون پاڅونونه یې ټپ کړل او د خراسان د هېواد جوړولو ته یې ملا وتړلو.هغه خپله پلازمېنه د سمرقند څخه هرات ته انتقال کړه او هغه ښار یې د

پوهانو او هنرمندانو مرکز باندې بدل کړ.د هرات هنري سبک يا مکتب د هغه او د زوی يې بايسنقر د ملاتړ لاندې شکل نيولی. د هغه مېرمنه گوهرشاد هم ډېر جوماتونو او مدرسې او ودانۍ جوړې کړلې چې د گوهرشاد مشهد مسجد،د گوهر شاد جومات او په هرات کې د گوهرشاد مدرسه د هغو له ډلې څخه دي.

د تيموريانو د حکومت په ورستيو کلونو کې هرات د سلطان حسين بايقرا په زمانه کې په ماورالنهر کې شيبايی خان ازبک چې د چنگيز زوی وو په ماوروالنهر کې د اوزکانو مشرتابه ته ورسېد او په چټکۍ يې د خپل حکومت لمنه خراسان ته وغځوله. په دې زمانه کې کابل د بابر په لاس د مغولی / تيموري شاهزاده گانو څخه يو بل ته لوېدلی وو. سلطان حسين بايقرا بابر ته بلنه ورکړه چې هرات ته راشي مگر د بابر د رارسېدو څخه د مخه سلطان حسين بايقرا مړ کېږي. کله چې بابر هرات ته رارسېږي گوري چې د سلطان حسين بايقرا سلطنت د هغه د دوو زامنو تر منځ په مساوي توگه وېشل شوی دی او دواړه په هرات کې حکومت کوي. بابر دا حتمي وگڼلو چې دا حکومت به د ازبک شيبانی خان په لاس کې زوال مومي او د هزاره جاتو له لارې کابل ته ستون شو ډېر وخت نه وو تېر شوی چې هرات د ازبک شيباني خان لاسته ورغی او په دې ډول سره د تيموريانو ښه دوران په هرات کې پای ته ورسېد. کله چې ازبک شيبک خان د ازبکانو د خانۍ مقام ته ورسېد د ماورالنهر د نيولو په موخه د سلطان حسين ميرزا تيموري په وړاندې پرله پسې جگړې يې پيل کړې. په پايله کې يې د کلونو لپاره د اوږدو نښتو څخه وروسته، په ۹۱۳ ه.س محرم ۷ (۱۵۱۶ز) د باغيس جگړه د ازبک شيبک خان او د سلطان حسين بايقرا د زامنو تر منځ وشوه. په دې جگړه کې ازبکان پر تيموريان پياوړي شول او پر ماوروالنهر او د هغه پلازمېنه سمرقند باندې بريالي شول. ازبکانو خراسان هم ډېر ژر د وژلو او لوټلو له لارې لاندې کړ.په دې زمانه کې په ايران کې صفويان د يو قدرتمند حکومت د جوړولو په کار بوخت دي او د دوی منافع په شمال ختيځ کې د ازبک شيباني خان سره نښتې وکړې. محمد مهدي د اريانا په دانشنامه کې ليکي: ؛شيبک خان خپل د نيکونو د نامه ؛شيباني؛ پر ځان تخلص اېښودلی وو. هغه يو ډېر باتور او تورن، خود خواه او متعصب سړی وو. په ۹۰٦ ه.س (۸۷۹) کې د ماوروالنهر يوه برخه يې د سمرقند د ښار سره د امير تيمور د يو لمسي څخه ونيوله او د سلطنت په تخت کېښناست او د هغه څخه وروسته تر ۹۱۳ ه.س (۸۸٦ ز) کال پورې هم ټول ترکستان او ماوروالنهر يې د ټول خراسان او استراباد د سلطان حسين ميرزا بايقرا د پاتې شويو او د تيموري د خايناستو څخه لاسته راوړ او د لويديځ او سوېل څخه د عجم عراق، کرمان او يزد ولايتونه چې د صفوي لومړی شاه اسماعيل په قلمرو کې وو سره هم سرحده شو.له دې کبله چې شيبک خان د سني په مذهب او شاه اسماعيل خان په شيعه مذهب کې ډېر تعصب درلود، يو د بل سره يې په کلکه دښمني کوله. له دې کبله، ازبک خان،شاه اسماعيل ته د دښمن په سترگه کتل او په ليکونو کې يې سپکاوی کولو.په پايله کې شاه اسماعيل په ۹۱٦ ه.س (۸۸۹ز) کال کې د ډېر لوی لښکر سره پر خراسان يرغل وکړ او شيبک خان د هغه له ډاره د مرو قلعه ته پناه يوړه او محاصره شو.شاه اسماعيل په ډېر مکارۍ بلاخره هغه له قلعې څخه راويست او جگړې ته يې اړ کړ.د مرو په جگړه کې چې د محمود اباد د کلی سره نيږدې د مرو په دريو غرونو کې د دوو حريفانو تر منځ وشوه، وحشتناکه مرگ ژوبلې څخه وروسته ازبکانو ته يې ماتې ورکړه. شيبک خان د ملگرو د يوې ډلې سره يې په څلور ديوالونو کې محاصره شول او خان د خپل لښکر د اسانو تر پښو لاندې مړ شو او مړی يې شاه اسماعيل ته يوړل شو سر يې له تن څخه بيل کړ او د سر پوستگی يې له بوسو څخه ډک کړ او دوهم سلطان بايزيد

عثماني ته یې ولېږلو او د سر کوپړۍ یې په طلا پوښ کړه او د هغې څخه یې د شرابو جام جوړ کړ. ؛ پدې ډول د هرات ښار په ۱۵۱۹ز کال کې د صفویانو په لاس ورغی.

د هرات د ابدالیانو پاڅون د ازبک شیبانی خان د لنډې مودې څخه وروسته، هرات د ۱۸۷ راتلونکي کلونو لپاره د صفویانو لخوا اداره شو.شاه عباس صفوي هم په همدغه ښار کې زېږیدلی دی. کله چې کیخسرو خان گرجي د کندهار په لور روان شو، عبدالله خان ابدالي چې قوم یې د افغانانو غلجیانو سره دښمني درلود، د هرات حکومت ته یې منصوب کړ.دا چې کیخسرو خان ووژل شو او صفوي سپاهیان د غلجیي افغانانو څخه د میرویس خان په مشرتابه کندهار سره په نیږدې سیمه کې ماتې وخوړله، په هرات کې مېشت ابدالي افغانانو هم پاڅون وکړ او هرات یې د صفویانو له قبضې څخه خلاص کړ.په دې زمانه کې شاه سلطان حسین صفوي له اصفهان څخه د دوی قدرت خواته حرکت وکړ، مگر د تهران څخه مخته ولاړ نه شو یو سردار یې د ابدالیانو د نسکورولو په موخه ورولېږلو. ابدالیانو رالېږل شوی سردار هم ووژلو.محمد احمد پناهي سمناني لیکي: ؛د کندهار حاکم عبدالله خان لوټماری او د سلطان حسین صفوي د پاملرنې نشتون د کندهار د خلکو شکایاتو او عرضونو ته د هغه د ستمونو له لاسه،د کندهار د خلکو تمایل په ځانگړي توگه د غلجي قوم یې د هند د مغول حکومت خوا ته، د وضیع بهتری په هیله لا ډېر کړ.د کندهار د توپانونو د کنټرول کولو په موخه،شاه سلطان حسین خپل یو والي د گرگین په نامه یې په دې موخه چې غلجي په خپل لاس کې ونیسي، د کندهار حکومت ته منصوب کړ.په کندهار کې یو بانفوذه کس د میرویس په نامه چې یو ډېر قاطع او ځانگړی نقش د صفوي پر ضد د سازماندهی او د خوځښت په جوړولو کې د افغانانو په منځ کې درلود،د گرگین د انتصاب په اوږدو کې د ټول کندهار د حکمرانی لپاره، د هغه ښار مشري یا کلانتري په غاړه درلود.میرویس چې یو پوه او سیاستمدار کس وو په اخیر کې یې گرگین د افغانانو او د گرجی افسرانو پواسطه په قتل ورسولو.شاه سلطان حسین د میرویس د اوو کلو د حکمرانی په موده کې، په دې قادر نه شو چې هغه له گونډو وغورځوي او میرویس په خپلواک ډول سره کندهار اداره کولو. په پایله کې یې د میرویس له مړینې وروسته، میر عبدالعزیز یا میر عبدالله د میرویس ورور د هغه پر ځای کېښناست مگر...محمود افغان د میرویس مشر زوی،د میر عبدالله د وژنې څخه وروسته د کندهار کنټرول په خپل لاس کې ونیولو.؛ (محمد احمد پناهي سماني،؛ د حکومت د ناتوانی تراژیدي؛،لومړی چاپ، د نمونه کتاب انتشارات، ۱۳۷۴). ایراني راپور ورکونکی او څېړونکی بهرام مشیري په خپل یو تلویزیونی پروگرام کې وایي:؛د افغانانو یا افاغنه دا یرغل پر ایران نور یوې خواته کېږدئ، دوی د مغول او تیموریانو په شان خو نه وو، دوی زموږ په شان یو فرهنگي حوزه وو.کله چې یې گرگین د کندهار د حکومت لپاره اعزام کړ هغه ته یې وویل چې له ظلم او تیري څخه هېڅ کمی ونکړی.دوی سني دي څو چې مو په وس کې وي پرې ظلم وکړئ. ښه هغوی هم ورسېدل او پلازمېنه یې ونیوه. هغه اشرف افغان د خپل حکومت په وخت کې د ایران څخه یوه جانانه دفاع د عثمانیانو پر وړاندی وکړه او عثمانیانو ته یې ماتې هم ورکړې ده...؛ د ویلو د پاتې نه وي چې د طلا اشرفی سکې چې په ایران کې معمول شول د اشرف هوتکي په زمانه کې منځ ته راغلې او د هغه په نامه مشهور شول.

د کندهار او هرات سربېره، د صفویانو په نورو مفتوحه منطقو کې هم د پاڅونونو توپان لمنه لا نوره اوږده کړه.له یوې خوا د عمان خوارج عربان، هغه منطقې یې د ایران له ښکیلاک څخه بهر کړې او له بلې خوا،د تون د ښار پخوانی

حکمران – ملک محمود سیستانی – چې خپل ځان یې د صفاریانو پاتې شونی بللو په ۱۲۲ س / ۱۲۱۰ز کې پر مشهد یرغل وکړ او په خراسان کې د حکومت په خپلواکۍ پیل وکړ.محمود افغان د صفوي د دولت د دې ناتوانۍ څخه په استفاده ایران ته یې لښکر وکیښې او د اصفهان د محاصرې څخه وروسته د صفوي دولت ته یې ماتې ورکړه او ویې ځپلو او د افغانانو دولت یې په ایران کې جوړ کړ.

لکه چې یې وینو هرات د ساماني،غزنوي، غوري، سلجوقي او مغولي لښکر کښیو په ترڅ کې د خراسان، سیستان،کابلستان، زابلستان، فارس، عراق او شام د نیولو لپاره د تل لپاره د نړۍ نیونکو لخوا د یرغل او تیري لاندې وو.د تیموریانو څخه وروسته، هرات د ازبکانو، صفویانو او افشاریانو د لښکر کښیو شاهد وو او د ۱۷۴۷ز کال راهیسې د لویدیځ د قوي قلعې په شکل د افغانستان د خپلواک افغانستان وو د فارس د واکمنو دسیسې او لښکر کښۍ یې د هغې د نیولو په خاطر نابودې او خنثی کړې.

**د استعمار لویه لوبه**

د نولسمې پیړۍ په پیل کې کله چې انګلستان خپل واک پر هندوستان باندې ټینګ کړ د هغې د ساتلو په خاطر د دری خطراتو څخه ډارېدو:

- دهند مهاراجانو په بلنه د انګلیسانو د ایستلو لپاره د افغانستان د پاچاشاه زمان درانې یرغل
- د ناپلیون عروج او د عثماني دولت سره د اتحاد احتمال د ایران او افغانستان له لارې پر هنددوستان د هغه یرغل
- په مرکزي اسیا کې د روسانو فتوحات او د تزاري روسیې احتمالي حملې خطر د ایران او افغانستان له لارو هندوستان باندې

دغه درې بهرني خطرونه د دې لامل شول چې برتانوي واکمنان په جنوبي اسیا او په ځانګړې توګه هند مستعمرو د ساتلو لپاره له ایران سره دوستانه اړکې ټینګې کړي . سرجان ملکم ایران ته اعزام ۱۸۰۰ ز کال کې د هند د ټولو ویسراوو لخوا هندوستان او برېټانیا امپراتورۍ سره یې تړون وکړ او هغه د ایران سره په همدې موخه عقد وو. سر جان ملکم د ۱۱۷۹ ق په منی کې (۱۸۰۰ ز)، بوشهر ته داخل شو او وروسته بیا تهران ته راستون شو. د ۱۸۰۱ ز کال د جنورۍ په میاشت کې،تجارتي او سیاسي قرارداد د ایران او انګلیس د هېوادونو تر منځ منعقد شو. د دې قرارداد د منعقد کېدو سره سم، فتح علی شاه امر وکړ چې په ټول هېواد کې باید د انګلیس د عمال سره ملګرتوب وکړی شي او د فرانسویانو د دخول څخه د ایران سوېلي سیمو ته او د فارس خلیج بندرونو ته ممانعت د وکړی شي.د دې څخه سربېره د فارس قاجاري دولت متعهد شوی وو چې د افغانانو د حملې په صورت کې به د برتانوي هند پر ضد د افغانستان پر ضد لښکرې وباسي. مشیری چې ایراني تاریخ لیکولان دی، لیکي:؛د عهد نامی په پنځم فصل کې په مفصل ډول سره د ایران او انګلستان منځ کې راغلي وو:((هر کله که افغانانو د انګلستان د دولت د اولیاوو سره جګړه وي، د ایران د دولت اولیا

به لښکر وتاکی هغې ساحې ته چې د دوو دولتونو مصلحت وي، د انگلیس د دولت لپاره یې اماده کړي او د مصرف پیسې یې بیا د انگلیس د دولت څخه تر لاسه کړي.)) (مشیری،۴۳-۱۳۷،۴۴). په دې ترون کې ایران تعهد وکړ څو فرانسویانو ته اجازه ورنکړي چې په ایران کې فعالیت وکړي. فتحعلي شاه د انگلیسانو سره د نیږدې اړیکو په پیل سره،د فرانسویانو د وتلو امر وکړ او اعلان یې کړ:؛هر کله که فرانسویان و غواړي د ایران خاورې ته قدم وړاندې کړي، هغوی ونیسی او بندیان یې کړئ.؛ همدا راز ایران د تجارتي فعالیتونو لړۍ په خپلو بندرونو کې،د انگلستان انحصار ته پرېښود (محمود محمود [۱]، د ایران او انگلیس د سیاسي اړیکو تاریخ په ز نولسمی پېړۍ کې، تهران ۱۳۵۳ ه ل). په عوض کې یې انگلیسي افسران د ایران د توپخانې د تجهیزاتو او د ځواکونو د تعلیماتو تعهد ایران سره وکړ.

**د افغانستان له خطر سره مقابله**

په افغانستان کې شاه زمان چې د احمد ابدالي لمسې وو د تیمورشاه چې د دې پلار وو، د وفات څخه وروسته د پاچاهۍ په تخت کښېناست. محمود او فیروز، د شاه زمان دوه ناراضه ورونه، دوی د ایران حکومت څخه د شاه زمان په مقابل کې د فتح علی شاه د مرستې په لټه کې شول . په دې زمانه کې د ایران تاریخ لیکوالانو په قول چې محمود محمود نومېږی: ؛شاه زمان حاج ابراهیم خان کلانتر د ایران لومړی وزیر ته یې یو سفیر ولېږلو او د خراسان د الحاق غوښتنه یې دافغانستان سره وکړه (مشهد، نیشاپور، تربت جام او د هغې اړوند سیمې – لیکونکی). دا موضوع د ایران د شهریار د غوصی د پارولو سبب شو.؛

ډاکټر مهدي ابوالحسنی ترقي په یو انټرنیټي خپرونه کې ؛د ایران د معاصر تاریخ جامع پایگاه؛ د جورج پاتینجر په قول داسې لیکي: چې ؛انگلیسان پخپله په دې اعتراف کوي چې که یو دښمن افغانستان، د برتانوی هند لپاره یو گواښ دی، دا دښمنی موږ پارولې ده.؛ (پاتینجر، ۱۳۷۹، ۱۹). دی لیکي چې ؛د افغانانو څلور ځلې لښکر کښۍ د هندوستان طرف ته د ۱۷۴۸ ز کال څخه تر د ۱۷۵۹ ز کال تر اخیر پورې د نړۍ د نیولو په خاطر نه وو.؛ لکه چې پوهېږو افغانان د هرې حملې څخه وروسته بېرته خپل هېواد ته راستون شوي دي. لیکي: ؛د انگلیسانو د حد څخه اضافه ظلمونه د هندي سوله غوښتونکي او صبورو خلکو په مقابل کې تر دې حده پورې په شدت روان او بې رحمه وو چې دوی یې په خپل مقابل کې راوپارول او د هند امرای چې په سختو شرایطو کې وو د افغان شاه زمان څخه چې د احمد خان ابدالي لمسې وو، مرسته او یاري یې ورڅخه وغوښتله، هغه څخه یې د خپل هېواد د خلاصون او ساتنې په خاطر د انگلیسانو پر اړو یې ورڅخه د حملې غوښتنط کولې او دا یې پارولو او تحریک کولو یې. هم تعهد یې وکړ چې د ورځې یو لک روپۍ ده د لښکر مصرف به هم ورکوي. دا مطلب محمود محمود د ایران او انگلیس د سیاسي اړیکو د ز نولسمی پیړس په کتاب کې لیکلی هم لولو (محمود محمود ۱۱ ص). لرد جان راسل، د انگلستان د ولسې جرگې د استازو څخه وو، وروسته یې بیا وویل:((په هندوستان کې په عمومي ډول سره عقیده داسې ده چې د فاتحینو د لښکر ننوتل هند ته، نه یوازې په تحت الحمایه سیمو کې، مگر په خپله انگلیسي هند کې به هم د پاڅونونو باعث وگرځي.)) (سیمونیچ،۱۳۵۳، ۱۵۲). په ۱۷۹۸ کې ریچارد ولزلي د هند نوی قوماندان، د افغان شاه زمان د لښکرو د راتگ څخه پریشان شو. د بلی خوا څخه تیپو سلطان چې د هند په سوېل کې د انگلیسانو پر ضد یې قیام کړی هم د فرانسویانو د

مرستې ځانته د اړولو په کوښښ کې وو چې د هغې پواسطه انګلیسان وباسی او د دی په خاطر د افغان واکمنو سره په تماس کې وو (پاتینجر، ۳۹).

انګلیسان د شاه زمان د (۱۷۹۹ ز– ۱۷۹۸ز ) د لښکري لاریونونو څخه په وحشت کې شول او د ایران دربار یې د رشوت په ورکولو او د نورو تحفو په ورکولو، یې دې ته اړباسلو چې دافغانستان خواته لښکري وباسي وکړی (مشیری، ۱۳۴۷، ۱۸-۱۹،پاتینجر، ۱۳۷۹، ۴۰، محمود محمود، ۱۱ ص.) د ناصري په روضه الصفای کې [۲] د محمود محمود له قوله څخه لولو چې ؛په دی وخت کې مهد علی خان د جګړې بهادر د هندوستان د مشر لخوا د انګلیس لیک او تحفه ورسره وو او ... د ربیع الاول په اخیر کې ۱۲۱۴ د پاچا په شرف اسلام سره مشرف شو ...ځکه د نادر شاه افشار څخه وروسته احمد خان د افغانستان حکومت تر لاسه کړ ....په دې ورځو کې څلورم ویلیام د انګلیس پاچا هندوستان خپل لاسته راوړ...او همداراز غوښتنه یې وکړه چې د ایران دولت د د انګلیس د دولت سره یو موافقت ولري څو افغانان د هندوستان د نیولو قصد ونکړي او د ایران شاه دې قوم ته د ارام وخت ور نکړي چې د هندوستان د سفر په فکر کې شي...د څو ورځو څخه وروسته پوه او د نړی ساتونکی مهدی علی خان نواب ته رخصت ورکړ او د ځواب نامې سره یې په خوشحالۍ د مقصد و خواته ولېږلو. ؛(محمود محمود،۱۳۵۳، ۱۲ ص).

فتح علي شاه د ایران ځواکونه یې د افغانستان په لور د حملې په موخه د محمود اختیار ته پرېښود. ؛زمانشاه د هند د دروازی شاته را رسېدلی وو چې په همدې وخت کې د شهزاده محمود د ایراني ځواکونو سره د افغانستان لور ته د لښکري لاریون له قصده خبر شو او سم دستي بېرته خپل هېواد ته راستون شو. مګر کندهار د محمود لاسته ورغی. د دوو ورونو تر منځ لانجه پیل شوله.شاه زمان شکست وخوړ، اسیر شو او په دواړو سترګو ړوند شو او وزیر یې وفادار خان د محمود په لاس و وژل شو. د هندوستان حکومت چې له ډېره وخته د دوی څخه په ډار کې وو، اوس د دې په ړوند کېدو او د سلطنت واګې د محمود شاه لاسته د راتللو وروسته ارام او په راحت شول.دا وو د افغانستان اوضاع په ۱۲۱۵ ه س کې چې د ۱۸۰۰ ز سره سمون خوري؛. (محمود محمود، ۱۳۵۳، ۱۴ ص).

دا پیښه د افغانستان د دولت د بې ثباتۍ پیل او د کورنیو جګړو د پیل کېدو سبب ګرځېدلې ده چې د انګلیس او د ایران او روسیې د مستقیم مداخلو او تېریو لپاره یې د ډېرو کلونو لپاره د افغانستان په داخلي چارو کې لاسوهنې لاره هواره کړې ده.

### برتانوي هند، روسیه ناپلیون او ایران

انګریزان د افغانستان پر وړاندې دوه ګونی هدف لري:د یوې خوا څخه په دې پوه وو چې څو په افغانستان کې یو موټی او واحد حکومت د درانی تر حاکمیت لاندې موجود وي، د افغانانو د حملی خطر و هندوستان باندې پاتی ګڼل کېږي او د انګلیسانو د نیت د تر سره کېدو امکان او عملي کول نه برابرېږی، ولې د بلې خوا څخه یو ضعیف مرکزه د افغانستان حکومت او د انګلیسانو سره ملګری حکومت، د ناپلیون او د تزار روسیې د احتمالي حملو څخه پر

هندوستان باندې د ایران او افغانستان له لارو ضروري وو. د انگلیسي افسر راپور ارتور کنلی چې په ۱۸۳۱م کې د سنپیترز بورگ له لارې ببرته هند ته راستون شوی وو داسې ښکاره کوله چې که چېرې روسان خیوه ونیسي، د دوی د حملی واقعي تهدید د ایران او هرات له لارې منځ ته راځي.د ده په نظر کې د افغانستان څخه د تهدید سره د مقابلې ښه وسیله ده (پاتینجر، ۱۳۷۹، ۴۲- ۴۳). د انگلیسانو دا دوه مخې اهداف د نیمه خپلواک اماراتو په جوړولو په افغانستان کې لکه په هرات، کندهار او کابل کې د ایرانیانو د نظامي حملو په پایله کې د انگلیسانو په تحریک منځ ته راتلو. د شاه محمود په حمایت د ایرانیانو نظامي حمله د شاه زمان پر ضد چې د هغه په پایله کې هغه ړوند کړی شو، د افغان شهزاده گانو تر منځ اختلافات ډېر شول او بلاخره د یو کنفدراسیون نیمه پر سر رسېدلی اماراتو باعث شو چې په افغانستان کې. په ۱۸۳۷ز کال کې دوست محمد خان بارکزي د کابل امیر او ورور یې کهندل خان، د کندهار امیر د کامران میرزا پخواني دښمنان په هرات کې وو. د دې په اساس د هند وایسرا،لرد اکلند، د ۱۸۳۷م څخه وروسته خپل ټول کارونو ته متوجه کړل، څو د یوې خوا څخه د افغانستان ایالات په همدې شکل سره حایلي پاتې شي د روسیې او ایران په مقابل کې او ایران د هندوستان لپاره (کلي، ۱۳۷۳، ۱٦) او د بلې خوا څخه د یو نظامي حملې تدارک د افغانستان خواته څو هغه په یو مستعمره بدل شی او یا حد اقل د یو داسې شاه کېنول چې د دوی تابع وي (په هغه وخت کې شاه شجاع چې په کابل کې د ماتې څخه وروسته هند ته یې پناه یوړله) پیل کړ.

محمد شاه قاجار تصمیم ونیول چې هرات باندې نظامي حمله وکړي په داسې ډول چې د انگلیس حکومت استازی د محمد شاه د تصمیم د مخنیوي لپاره کومې نتیجې ته و نرسېدل،دا په دې خاطر چې د یوی خوا څخه محمد شاه په خپله دې ته خوشحاله وو چې د هرات کار یوې خواته کړي د بلی خوا څخه د روس دولت استازی محمد شاه یې نظامي حملې لپاره پارولو،دا وضع د ژوییه مسترالیس ۸ نېټه په راپور کې و لرد پالمرستون ته ښکاره کېږي، - په دې راپور کې د برېټانیا استازی داسې وایي د روسیې دولت او استازی دولت شاه یې نظامي حملی لپاره د هرات طرف ته ولېږلو. په پخواني گزارشونو کې د خپل تذکراتو په هکله د ایران دولت ته د سولې د ساتلو په خاطر مې ولیکلو مگر د روسانو تینگار بلاخره په جگړه به بدل شي.د مذاکرې په اخیر کې چې د حاج میرزا اقاسی او میرزا مسعود د ایران د بهرنیو چارو وزیر په حضور کې وو،دوی ته می وویل چې د ایران د دولت اقدام افغانستان ته د نظامي حملې د ایران د دولت د توجه نشتوالی د انگلستان د دولت د تمایل کموالی ښکاره کوي.میرزا اقاسی وویل چې افغانانو د ترکمنانو په ملگرتیا کې د ایران ځینې سیمي غلا او غارت کړې د ایران رعایایې یې په اسارت وړي.لاسته راغلی خبرونه داسې دی چې میرزا مسعود د ایران بهرنیو چارو وزیر د روسیې د دولت د پروژې پلوي کوي. د دې راپور څخه دوه ورځې وروسته د ۱۸۳٦ د جنوری په لسمه مستر الیس ته لردپالمرستون د روس د دولت د مامورینو د کارکولو د څرنگوالي په اړوند انگلیسانو سره، شکایت وکړ او داسې یې وویل: ؛د روسانو نفوذ د ایران په دربار کې ورځ په ورځ زیاتېږي او ماته داسې بریښي چې روسان ایران د یو نظامي یرغل لپاره ختیځ خواته ته پاروي. د روسانو د دې سیاست څخه استفاده دا ده چې ((خیوه)) تصرف کړي او د ایران نظر د افغانستان خواته راواړوي. ؛(۷) د همدې راپور څخه وروسته د جنوری په ۱۵ نېټه په ۱۸۳٦ کې مستر الیس لرد پالمرستون ته په یو راپور کې داسې لیکي:؛ما د ایران دولت د ایران او انگلیس تر منځ معاهدې ته متوجه کړ او دا می ورته ذکر کړ چې د ایران د دولت دا اقدام د انگلیس هند د امپراتورۍ امنیت او

منافعو ته خطر رسولی شي او د ایران مشرانو ته مې اخطار ورکړ چې د انګلستان دولت نشي کولی د ایران نظامي یرغل د افغانستان خوا څخه نظارت وکړی او په پایله کې د روس د دولت نفوذ د هندوستان خواته زیاتېږي. زموږ سفارت په تهران کې د روسانو د فوقالعاده نفوذ د زیاتېدو د ایران په دربار کې ډېره بده وضع لري.؛

یوه میاشت وروسته، یانې د ۱۸۳٦ د فبروری په ۱۵ نېټه د روسانو د اقدام په اړوند په ختیځ ایران کې مستر الیس په یو راپور کې چې ۱۸ شمېره راپور دی وو لرد پالمرستون ته داسې بیان وکړ:؛په دې ځای کې د روسانو د نظریاتو څخه د خیوه په اړوند خبرې کوي او وایي چې د اتباعو او د تجارت د حفظ به خاطر د روسیې تزاري دولت د استحکاماتو د پیاوړی کولو په کارونو اخته دی. زه باید په تاسف سره لرد ته ووایم چې د ایران شاه بیا د هرات و خواته ته د نظامي یرغل په اړوند خبرې کوي.؛ (۸)

کاپتان هنټ د ایران او انګلیس د جګړې په کتاب کې په دې اړوند داسې لیکي: په هغه وخت کې انګلیسي مامورین دا کوښښ درلود چې د ایران ځوان پاچاه، په هر ډول چې وي د هرات خواته د نظامي یرغل کولو څخه بېرته وباسي او کوښښونه یې وکړل چې قضیه د دوستانه مذاکراتو له لارې حل او فصل شي، مګر ((کنت سیمونتیچ)) (۹) د روس وزیر مختار د ایران پاچاه ته توصیه وکړه چې د هرات تسخیر کول چې په اوس وخت کې د لس زره جنګي کسانو پواسطه امکان لري، په راتلونکي کې به د دې جنګي کسانو په کراتو اضافه ځواکونو سره هم ممکن الحصول به نه وي. د هغو ولسي جرګې اسنادو چې د روسیی د دیپلوماسیو په اړوند مهم ټکي پکې شته، د روس د دولت عجیب او غریب حرکات په واضیح ډول سره روښانه کوي. اجمالا د ((کنت سیمونتیچ)) اقدامونه په دې اندازه د روسیې د دولت په خلاف وو چې لرد پالمر ستون بلاخره په ۱۸۳۷ کې ((اورل اودرهام)) (۱۰) د برېټانیا وزیر مختار چې په ((سنپیترزبورګ)) کې مېشته وو ولیکلو او مشاورعالیه ته یې امر وکړ چې د ((کنټ سیمونتیچ)) په خلاف اقدامات د روس دولت ته ورښکاره کړي. د برېټانیا وزیر مختار د امر په اساس د مشارعالیه د دولت سره په مذاکراتو کې داخل شو او ((کنټ نسلرود)) (۱۱) په ځواب کې داسې ښکاره کړ چې د دې ښکارندوی وو چې ځینې حادثې د سوو تفاهم یا غلط فهمی د ((کنټسیمونتیچ)) لپاره یې برابر کړي وو او مشاورعالیه امر صادر کړ شاه په موقع او د نسبت په اساس د هر موضوع په اړوند د جګړې څخه منحرف کړئ. ولې د دې سره سره نه یوازې ((سیمونتیچ)) شاه یې د هرات تسخیر کولو ته پارلو مګر دې ته هم حاضر شو په خپله هم په ځینو نظامي خدماتوکې ونډه واخلي. ؛ (۱۲)

په دی اړه مستېرالیس په ۳۵ شمېره ګزارش کې چې د ۱۸۳٦ د اپریل په ۱٦ نېټه وو لرد پالمرستون ته یې داسې لیکلي؛اطلاع را رسېدلې چې نیږدې همکاری د روسیه او ایران تر منځ د هرات په قضیو کې موجوده.د حاج میرزا اقاسي له طرفه خبر راکړل شوی چې روسانو ژمنه کړې ده چې د هرات په نظامي لاریون کې مرسته کوي او نظامي مستقیم یا غیر مستقیم مرسته به وکړي.؛ (۱۹)

مستېرالیس د انګلستان د دولت استازی په تهران کې په یو لیک کې د ۱۸۳٦ فبروري میاشت کې شهزاده کامران میرزا هرات ته داسې لیکي: ((د لوی برېټانیا دولت دې ته خوشبینه دی او له خپل نفوذ څخه به کار واخلي څو په هغه ناحیه کې سوله ټینګه کړي. د برېټانیا دولت د افغانستان سره د تجارت کولو په موخه، همیشه دا غوښتنه درلوده

چې اوضاع یې ارامه او کراره وي. زه تاسو ته یادونه کوم او د شاه د تبرک د جلسې په حال کې مې هم ذکر وکړ د ایران په لوېدیځ کې باید چې د سولې ټینګار وشي او د جګړې څخه د پرهیز وکړی شی او په دې اړوند د ایران مسولینو موږ ته وعدې راکړې.)) ((مسټر مک نیل)) (۴)

مګر د توافقنامې برخلاف ایرانیان د هرات د حاکم کامران میرزا، د انګلسانو د فرانسویانو سره تړونونه کړي وو څو د روسانو په مرسته هرات تر خپل لاس لاندې راولي او د ناپلیون په اختیار کې یې کېږدي او د څلویښت زریزه ځواک په استقرار سره په هرات کې فرانسې ته مدت او مرسته ور ورسوي (محمود، ۱۳۴۴، ۱ج، ۷۰-۷۷، دوما،۱۳۶۱، ۶۲-۶۷). د موجودو اسنادو په اساس، سیمونیچ د روس وزیر مختار په تهران کې د ایرانیانو تر څنګ نظامي مشاور وو او دوی ته یې د هرات د فتح کولو په لار کې نظامي لارښوونې کولې (نصیري مقدم، ۱۳۷۴، ۱۳۰-۱۵۶). او حتی د هرات د محاصرې د کار نظارت کار یې خپل یو افسر ته وروسپارلو.

مسټر مک نیل د انګلستان وزیر مختار په ایران کې په یو راپور کې چې د ۱۸۳۷ د نومبر د میاشتې په ۲۴ نېټه وو داسې لیکي:؛د ایران د دولت د ادعاوو څخه په صرف نظر کولو د هرات د ملکیت په اړوند، که د اختلاف موضوع د دوه خپلواک دولتونو تر منځ فرض کړو، نو زه په دې معتقد یم چې حق د ایران د دولت په طرف دی او هرات په دې برخه کې مقصر دی. د عباس میرزا د مړینې په وخت چې اوسني پاچا د هرات له محاصره کولو څخه تیر شو او بېرته راستون شو د طرفینو مذاکرات د یو قرارداد په کولو سرته ورسېده چې په هغه کې سرحدي خطونه تعیین کړی شول او طرفینو هم تعهد وکړ چې د یو بل خواته د حملو څخه به مخنیوی کوي. له هغې تاریخ څخه تر نن پورې د ایران دولت د افغانستان پر خاوره هېڅ تېری نه دی کړی په داسې حال کې چې د پخوانی شاه د مړینې څخه وروسته، د هرات حاکم د ترکمنانو او هزاره ګانو سره یو موټی شو او د ایران پر خاوره یې یرغل وکړ او د دې هېواد خلک یې په غلامۍ ونیول او د هرات افغانان دې شان حملو او تېریو ته لا هم ادامه ورکوي او ایران د دې ډول لا پوځونو د درولو په موخه مبارزه نه ده کړې مګر دا چې د هرات دا اخیرنۍ یرغل د دی څخه وبلل شي. د پورتنې مسایلو په اساس د کامران میرزا په قلمرو یرغل کړل شوی وعدو ته اعتنا نه کول، د دی ډول اقداماتو څخه پرته کیدی نه شي.)) (۵)

**پر افغانستان د ایران یرغل او د هرات محاصره**

مخکې ویل شول چې شاه زمان د ایران څخه غوښتنه وکړه څو د خراسان ولایت چې د ایران د اداري لاندې وو، افغانستان ته ورکړي. په همدې موخه کامران میرزا د هرات حاکم کله نا کله د خراسان د نیولو په موخه یې نظامي حملې کولې. تر هغه وخت چې ۱۲۵۲ س کال په وروستیو کې دهرات د واکمن کامران میرزا او محمد شاه قاجار تر منځ تړون لاسلیک شوی و، کامران میرزا د دې لپاره سره متحد شوی و چې له تفریقې او جګړې لاس واخلي او د ایرانیانو د ځپلو لپاره، او خراسان سرحد ګډوډ کړي او ګډوډۍ . او د امکان تر حده د ترکان هم د ایران د سرحداتو پر سره د حملې څخه متوقف کړي او که چېرې د ایران لښکر د ترکمنانو په لوري یرغل وکړي، نو د ایران د نظامیانو پلوي وکړ. د بندیانو ازادول د هرات د حاکم له تعهداتو څخه وو.په مقابل کې یې د ایران دولت هم ځینې تعهدات

منلي وو چې د هغې له جملې څخه دا وو:د ایران د شاه کامران میرزا د وروولی رفتار،د ایران د دولت د باورمندو دخالت نه کول د هرات په چارو کې او د هغې ځای کارونه او امور هراتیانو ته پرېښودل، د غوریان د قلعی شیر محمد خان ته پرېښودل،د ایران د شاه د نظامي یرغل نه کول هرات ته او د خپل کسانو د نظامي یرغل هغې صوبی ته حرام ګڼي.د ایران په غوښتنه د انګلستان دولت د دې قرارداد یا پرېکړه لیک د امضا کېدو او د اجراتو ناظر حساب شوی وو (نصیر مقدم،۱۳۷۴، ۳۳-۳۴). البته محمد شاه د دې څخه د مخه هم په کراتو د کامران میرزا د عهدونو د ماتولو تصریح کړی، وایی: ؛تاسو ته اطمینان درکوم چې دا ټول د دروغ او حیلې څخه پرته بل څه نه دي... تر دې حده، چې د انګلستان تضمینات هم بلکل په درد نه خوري.؛ (سیمونیچ، ۱۳۵۳، ۱۳۰).

په دی دوران کې کامران میرزا او یار محمد خان د هرات د برجونو او قلاوو په تحکیم کولو باندی پیل وکړ او د ۲۲ زره څخه اضافه عسکر یې دی ښار کې په کار وګومارل. پوتینجر ۳۷ د انګلیس د سیاسي اعمالو د ساختګی یا دروغ په نامه د خپلو اسانو تجار او علوی سید او خپل ډاکټر یې هرات ته ورسولو او د کامران میرزا او یار محمد خان سره د هرات د حصار په جوړولو او د هغې په دفاع کې مرسته وکړه.د هرات د دفاعی وسایلو په اړوندمسټر الیس په خپل راپور کې چې ۲۷ شمېره یې ده د اپریل په اول د ۱۸۳٦ کې د انګلستان بهرنیو چارو وزارت ته داسې لیکي: ؛د کامران میرزا دفاعي وسایل ډېر شوي مګر داسې دلیل موږ سره نشته چې دی وکولی شي چې د ایران د شاه د یرغل په مقابل کې مقاومت وکولی شي. ؛ ۳۸

د انګلستان د دولت تحریکات او د کامران میرزا د استازی اقدامات د محمد شاه په اراده کې کوم توپیر را نه وست او بلاخره د محمد شاه قاجار ایراني ځواکونو د هرات لور ته نظامي یرغل وکړ او د تهران څخه روان شول. د ایران لښکر نظامیان اول سر کې د غوریان د قلا په محاصره چې د هرات له دروازو څخه بلل کېده پیل وکړ، د دې قلا څخه دفاع د کامران میرزا لخوا شیر محمد خان د یارمحمد خان ورور ته سپارل شوی وو. د قلا محاصر کېدل دری ورځې دوام وکړ او د ۱۸۳٦ کال د نومبر په ۲۴ غوریان فتح شوه او ((پاچا امر د قلا د بنسټ د ورانولو وشو، قلا یې له ریښو څخه ویجاړ کړه د شاهي اردو د هرات خوا ته په حرکت کې راغلل.)) ۳۹

د مرات البلدان په کتاب کې اعتمادلسلطنه د غوریان له فتح څخه وروسته داسې لیکي: (( د هغه څه توضیح کول چې د غوریان د فتح د خبر څخه وروسته د جان کنیل لومړنی دارلخلافې ته د انګلیس صاحب مختار وزیر او د هغې څخه وروسته د روسیې دولت مختار ویر غراف سیمونیچ صاحب هرات ته ولاړل او د پاچاهی په حضرت کې مېشت شول.)) (۴۰)

هراتیانو دا تصور هم نه کولو چې محمد شاه به د خراسان څخه قدم هم بلې خواته کېږدي. په همدې دلیل د ښار څخه په دفاع کولو یې پیل و نه کړ او د ارامی په حال کې ژوند کولو. مګر په ډېرې چټکۍ سره معلومه شوه چې د ایران پوځونو غوریان ته رسېدلي او هغه قلا یې نیولې ده. دا په داسې حال کې وه چې د روس وزیر مختار،د غوریان ناچېزه فتح، او د شاه د نظامیانو بی اړینه خوشحالي او بزرګنمایانی،دا ټول یې د محمد شاه د هرات د فتح د ناکامۍ دلایل بللی وو (سیمونیچ، ۱۳۵،۱۴۵). د دې سره، د غوریان فتح محمد شاه ته تبریکي ورکړه او خپل پیغام یې د ډاګ یا پسته

رسان په لاس چې د شاه د اردو خواته روان وو ور ولېږلو او شاه یې د فتوحاتو د لړیو د ادامې ورکولو په کار لا نور هم تشویق کړ (نصیر مقدم، ۱۳۷۴، ٥٦). دا خبر ډېرې ګدوډۍ رامنځ ته کړې او که د پاتینجر د توپخانی نایب، هلته حضور نه درلود،ممکن چې کامران میرزا او د دې وزیر هم پلازمېنه خوشې کړې وی. دا ځوان افسر ډېر پوی او په خپل کار کې ماهر وو،د افغانستان او هرات څخه تیر او د یو څو مودی لپاره په تهران کې مېشته شو او ځکه هېڅ چا هلته دی نه پېژندو د دې په موجودیت خبر نه شول.د امرونو او د لازمو اطلاعاتو لاسرسوونو د لاسته راوړلو څخه وروسته د مشهد له لارې هرات ته راغلی وو.دی د محاصره شویو د غیرت او نارینتوب رګونه تحریک او پارول او د دې د فعالیتونو او کوښښونو په سیوري کې هغه فرصت چې له لاسه لاړو،دې جبران کړ.دا وو چې د حق ورکولو په موخه د خپل ماتې خوړلي دولت څخه یې غچ واخیست او په هغه اعلامیه کې چې د کمپاین مدیر د هرات د محاصرې د رفع کېدو څخه وروسته ورکړ دی په ډېر ښه شکل سره د تمجید او مننې وړ وګرځېد (سیمونیچ، ۱۳۵۳، ۱۴۵-۱۴٦).

د هرات جلګې د سفر کولو لپاره صعب العبوره غرونه په شمال کې درلود، ډېره خوړه منظره یې درلود. هرات د افغانستان په معتدل ترینه سیمه کې واقع دی او د بید او سپېدار ونې د لرې ترې ښکاري او روانې اوبه د کلیو او ولسونو ځمکې او باغونه خړوبول (پاتینجر، ۱۳۷۹، ٥۲). دا ښار د خښتو د قلا په واسطه مستحکم شوی وو او په هر کنج کې یې دفاعي لوی برجونه درلودل او د هغو تر منځ واړه واړه برجونه لکه مرچلونه موجود وو. دا د خښتې دېوال د یو خوړ په سر جوړ شوي وو چې ٦۰ پښې ارتفاع یې درلود، پاتینجر امر وکړ په بهر طرف یې دوه مخفی مغارې یا تونلونه د یو بل په سر وکیندی. د لاندې تونل په مخ کې د خوړ وي. اګر چې خوړ ډېر پراخوالی نه درلود، خو د دی سره سره هم چا نشو کولی چې له دوو خواوو څخه هغه ته لاس ورورسوي. هغه قلا چې د امیر تخت پکې وو ډېر اهمیت نه درلود.ښاري کورونه د دیوالونو په پناه کې وو چې کیدی شو هغه یې د یو توپ په مرمی د خاورو سره یو او نسکور کړي وی (سیمونیچ،۱۳٥۳، ۱۴٦).

د هرات محاصره لس میاشتې دوام پیدا وکړ ځکه ((حاج میرزا اقاسي د ایران لومړی وزیر خپل له تدبیر څخه غلطه استفاده وکړه او ښار یې د دریو خواوو څخه په محاصره کې کړ او د دې کار لپاره یې داسې دلیل ویلو: کسان چې په محاصره کې ناراضي او ناراحته وي د ښار څخه د ووزي، په پایله کې د ښار دفاعي ځواک له منځه ځي.)) (۴۱)

د ایران نظام د ربیع الاول په ۱۷ د ۱۲٥۴ کې خپل عملیات پیل کړ او د هرات حصار یې د مرمیو لاندې ونیولو او د شپږ ورځو بمباریو څخه وروسته چې پر تونلونو او دیوالونو یې حملې وکړې، دوی خوړ څنګ ته ورسېدل او ځینې د خوړ څخه هم تیر شول مګر د افغانانو د کلک مقاومت په پایله کې او د خوړ د اوبو له وجهې او د ډېر تلفاتو د ورکولو له وجهې یې و نشو کولی چې ښار ته داخل شي او په همدغه یرغل کې چې د معاصر تاریخ تر ټولو لویه لس میاشتنۍ حادثه ده په هرات کې برید جنران بروکلی چې د لهستان د مهاجرو امیرزاده ګانو څخه وو او د ایران نظام ته یې خدمت کولو په قتل ورسېد. د حملو نقشه د روسیې وزیر مختار کنت سیمونیچ ترسیم کړې وه او څنګه چې د انګلستان دولت د روسیې د وزیر مختار له اقداماتو څخه د پیترزبورګ دربار ته یې شکایت کړی وو، د روسیې د بهرنیو چارو وزارت هم د دې ښکاره کولو لپاره چې د سیمونیچ کارونه د مرکزي دولت د اجازی څخه پرته دي، دا یې راوغوښت.سر

هنگ استوارت د ۱۸۳۷ په سپتمبر کې د محمد شاه اردو ته ورسېد. د دې د رارسېدو څخه د مخه،د ایران عسکرو بل کلک یرغل هم پر هرات باندې کړی وو. استورات محمد شاه یې جګړې ته سخت تهدید کړ او روسان هم په ډېرو سختو او حساسه زمانه کې د ایران د مرستی او پلوی څخه لاس اخیستی وو،ناچاره محمد شاه د ۱۸۳۸ د سپتمبر په ۸ د نتیجې د نه اخیستو سره د هرات له محاصرې څخه لاس واخیست او د انګلستان د دولت ټولې غوښتنی یې ومنلې او په دې ډول سره د ایران دولت د هرات له تصرف څخه لاس واخیست...

په عین زمان کې الدرد پاتینجر چې انګلیس وو او د دري او پښتو ژبو سره هم اشنا وو، یو د اسانو تجار چې د چک اهل وو،معرفي کړ او د ملګري د درلودلو څخه پرته د شکارپور او پېښور له لاری کابل ته ولاړ.د اسانو په هکله تخصصي معلومات یې درلود او زده یې وو څو د قبایلو خانګړو پوښتنو ته ځواب ورکړي. مګر کله چې پلازمېنې ته ورسېد په دې باندې متیقن نه وو چې د اس ساتنې افسانې سره کار کولو ته ادامه ورکړي او د سیادت ادعا وکړي،حاکمیت وکړي او که صوفی شي.دا معلومه ده چې د دې پریکړې په کولو کې د خپل کاکا هنري پاتینجر چې پخوا افغانستان او ایران ته یې سفر کړی وو، ډېره ګټه پورته کړ. په دې اساس د ځینې تصوف او روښانتیا اعمال او عادتونه یې پیل کړل. د کابل څخه په چل او هنر په پټه ووت تر دې حده چې د انګلیسي پټ مامور سره د چارلز ماسون سره یې هم ارتباط و نه نیولو او په صبر، حوصله او د ځان په کنټرول کولو او د سیاست څخه په استفاده د هزاره خان له لاسه یعقوب بیګ چې غلام خرڅونکی او اخیستونکی وو، خپل ځان یې وژغورلو.په ۱۸ ډیسمبر الدرد هم د حاکمیت په نقاب کې هرات ته راداخل شو (پاتینجر، ۱۳۹،۴۹-۵۲). کله چې سید پاتینجر هرات ته داخل شو محمد شاه، کامران او یار محمد خان د ښار څخه د باندې د نظام د چلونکي او تحرک د تنظیم کولو په کار اخته وو چې د یو غیر ضروري کار په خاطر د جوین سیستان د قلا پر ضد وو.

ښار په محاصره کې وو، لازمي خوراکي توکي او د کچرو لپاره واښه په ښار کې بار شول، د شاو خوا ځمکو ته اور واچول شو، د اوبو څخه ډک ځاګانې او د میوو څخه ډکې ونې له رېښې څخه وکښلې (پاتینجر، ۱۳۷۹،۵۶). په بل ګزارش کې راغلي چې کله چې پاتینجر هرات ته داخل شو، کامران میرزا او یار محمد خان ته چې د ده وزیر وو لس زره تومان ورکړ او دوی یې د ښار په تونلونو او د خښتو په دیوالونو بیا ودانولو او د مقاومت ادامې لپاره وپارل.(حسینی فسایي، بی تا، ۲۹۴).مکنیل چې پوه شوی وو چې د محمد شاه پر سر د فشار د راوستلو موقع وه،خپله د شاه اردو ته روان شو. دارسی تود، د بنګال د توپخانی افسر چې د دې څخه د مخه ۵ کاله ایران کې یې د توپخانې زده کړه کړې وه،هم د هغې سره وو (پاتینجر، ۱۳۷۹، ۶۴). دارسی تود د هراتیانو سره د مذاکرې په بهانه د ښار داخل ته ولېږلو. کنیل هم د ماښام لخوا د هرات دروازې ته ولاړ څو د یار محمد خان سره مذاکره وکړي. دوی د محمد شاه د راضي کولو په هیله او په دې هیله وو چې د هراتیانو سره سوله وکړي او تهران ته بېرته راشي.

د هرات د استحکاماتو لیدل د روسیې سفیر حیران کړ.د یرغل په وخت کې، مختلف فوجونو د خپل ځان څخه شجاعتونه ښکاره کول.حتی پولنډی بروفسکی چې قومنداني یې په غاړه وه،ومړ. ایراني اکثر قوماندانان د هرات د قلا د دیوالونو شاته مړه شول (نصیری مقدم، ۱۳۷۴، ۱۶۴-۱۶۵).

د ۱۸۳۸ د مارچ په میاشت کې مستر ماک نیل د دې په نامه چې د کامران میرزا او محمد شاه تر منځ سوله وکړي، د مهدی خان قره پاپاخ په اتفاق چې د ایران له صاحب منصبانو څخه وو او څلور سپارو کسانو سره د هرات ښار ته ورداخل شو. ماک نیل ځو ځلې د منځګړیتوب په نامه او د سولې د راستلو په نامه د کامران میرزا او محمد شاه مداخله وکړ او هر ځلې یې قراردادي صورت یې محمد شاه ته تسلم کړ، مګر شاه او حاجي میرزا اقاسی موجود نه وو د هغې څخه وروسته د هرات د محاصرې ځنډېدل او محاصرې څخه خالي لاس او بدون د نتیجې ووت او تصمیم یې درلود حد اقل د انګلیس له دولت څخه څه پیسی لاسته راوړي.

کامران میرزا د هر ډول عقد له موافقتنامی څخه ځان ساتلو او د کندهار سردار هم خپل د اتباعو لخوا د فشار لاندې وو چې د ایران سره سوله و نه کړي. دوی غوښته چې د خپل د متصرف شوې ځمکې څخه د ګټه اخیستنه وکړي یانې فراه او شین افغانستان یې درلود (سیمونیچ، ۱۳۵۳، ۱۶۸).

د انګلستان د دولت له جانبه ماک نیل ته امر راغی چې دی خپل د دولت عدم د موافقت او اعتراض د ایران د دولت اقداماتو په وړاندې په جدي شکل سره د محمد شاه او د ایران د دولت مشرانو ته ورسوي او په همدې مناسبت سرهنګ استوارټ له شاهرود څخه د محمد شاه اردو ته اعزام شو څو د ایران پاچا ته پیغام ورکړي چې د انګلستان دولت د هرات پر ضد عملیات د هند پر سر د تهدید په کچه بللي او د دې ذکر کوي چې دا اقدام د هغه عهد نامې مخالف دی چې د ایران او انګلستان د دولتونو تر منځ منعقد شوی. په همدې موقع کې د انګلستان د دولت استازي یاده کړه چې پنځه انګلیسي کیښتۍ د اعتراض تر نامه لاندې د خلیج فارس اوبو ته راغلې او د خارک جزیره هم د انګلیسي ځواکونو لخوا نیول شوې ده.

د انګلیس د نظام څخه یو فوج او یو مرکب د پنځه جنګي کیښتیو څخه د فارس خلیج ته داخل شوي دي. او سپاهیان د خارک جزیره کې پیاده شوي دي. د روس د وزیر مختار په وینا، ((داسې یو وضع منځ ته راغلې وه چې شاه د تسلیمۍ څخه بله لاره نه درلود. دی غافلګیره شو او د شک څخه پرته باید د خپل سلطنت د راتلونکي په هکله یې فکر کړی وی.)) (سیمونیچ، ۱۳۵۳، ۱۶۹) کله چې دوې ورځې وروسته کله چې محمد شاه استودارت ته د وړاندې شوي سند ترجمه ولوست هغه یې د هېڅ ډول مخالف څخه پرته ومنلو او ویې ویل چې د برېتانیا سره به په جګړه کې داخل نه شي او ((که د دوی د دوستۍ په خاطر نه وي، موږ ممکن بېرته هرات ته نه وو راستون شوي او که پوهېدو چې زموږ راتګ د دوی سره زموږ د دوستانه ارتباط لپاره خطر پېښوي، موږ په هېڅکله نه وو راغلي.)) (اعتضادالسلطنه، ۱۳۶۵، ۸۷). روسانو تر دې‌ې هم ډزې کولې.د روسانو اخرنۍ وړاندیز په دی بنسټ وو چې کامران میرزا د هرات د دروازې بهر خواته راغلی چې شاه ته احترام وکړي څو محاصره لرې کړی شي هغه د افغانانو لخوا رد کړی شو (پاتینجر، ۱۳۷۹، ۶۹-۷۰).

د ۱۲۵۴ په شعبان کې د ایران د نظامیانو د بېرته راتګ څخه وروسته د هرات له بې نتیجې محاصرې څخه، مکنیل په یو لیک کې د ایران بهرنیو چارو وزارت ته خپل خوشحالي او د خپل دولت خوښي یې د دې عمل او تهران ته د دې د بېرته راستنېدو د ایران د بهرنیو چارو نایب ته یې ولېږلو او حتی د انګلیس د سفارت نایت تهران د ماتې خوړلي

شاه د نورو مسایلو سره چې دوه طرفه اختلاف پرې موجود وو،ولېږل شو (نصیری مقدم، ۱۳۷،۱۶۲-۱۶۳). محمد شاه هم په هغه فرمان کې چې د هرات له بېرته راتګ څخه یې وروسته نشر کړ خپل خلک او قوماندانانو ته یې ژمنه وکړه چې په نیږدې راتلونکي کې د ځواکونو په تجدید سره افغانستان او هرات ته به بیا ستون شي (محمود، ۱۳۴۴، ۱ج، ۳۷۳). همدا وو چې هنري الیس بل کال ته تهران ته ولاړ او خبرداری یې ورکړ چې محمد شاه د روسانو د لاس ګوډاګی بیا د افغانستان او هرات ته د نظامي یرغل تکرار ونکړي (پاتینجر، ۱۳۷۹، ۷۴). د ایران دولت حاجی خان بهادر د ایران د جګړې قوماندان د هرات په جګړه کې معزول کړ.په دې ترتیب د ایرانیانو نظامي یرغل پر هرات باندې چې د ۱۸۳٦ز کال د نومبر په ۲۰ نېټه وه د سرحد څخه د تېرېدو او پر غوریان د یرغل سره پیل شوی وو او د ۱۸۳۸ز کال د سپتمبر په ۸ نېټه د ایران د ځواکونو په شاته کېدو د مشهد خواته یانې د اوو سوه ورځو ته نیږدې مودې څخه وروسته، جګړه او محاصره ختم کېږي. ډاکټر مهدي ابو الحسنی ترقي د ایران د اردو ماتې د هرات په محاصره کې داسې خلاصه کوي:

؛د روسانو د مساعدت او مرستې په صورت کې ایران سره، په دې کې به شک نه وو چې د ایران نظامي ځواکونو ممکن د هرات په تصرف او د انګلیس هندوستان د سرحداتو د تهدید او حتی د سیمو په فتح په پیاوړی شوی وی. مګر د افغانانو سرسخته مقاومت د انګلیسي افسر په تشویق او برنامو د دې کار د کېدو مخه یې ونیوله. د پاتینجر او د نورو انګلیسي نظامیانو د انکار نه کونکی برخې څخه د هرات د نه فتح کېدو، د ایراني قوماندانانو غلط او مشري او بې وزلي او د دوی ګډوډ یرغلونه د هرات د محاصرې په شنډ کېدو کې ټول دخیل علتونه وو.حتی خپله الدرد حیران وو چې ولې ایرانیانو هرات فتح نکړی شو. دا د هغې زمانې له واقعتونو څخه وو مګر په حقیقت کې د انګلستان د وعدې ماتول او په پټه او ښکاره دخالت کولو د ایران په داخلي چارو کې او د ایران د دولتي مشرانو اتکا د تزاري روسیې په وعدو او د روسیې د حمایت نشتوالی د ایران له اردو څخه د ضرورت په وخت کې، دا ټول د دې حرکت د ناکامۍ سببونه شول.؛ (ډاکټر مهدی ابوالحسنی ترقی، د ایران د معاصر جامع تاریخ بنسټ، د سیاسي او پلټنو د مطالعاتو بنسټ، تهران).

### ایا غلجي د خلجیانو په شان دي ؟

اسدالله ابوبکر لیکلي: ؛ غلزاي پښتنو د افغانستان په جوړښت کې بنسټیز رول لوبولی دی، د افغانستان تاریخ د غلزیانو له بشپړې پېژندې پرته به نابشپړه وي ( غلزایي افغانان او د پښتونخوا لوری ). ددې اصلیت د لا ښې پوهېدنې لپاره یوې ارزښتمنې تاریخي څېړنې ته اړتیا ده.

د ۲۰۱۸ کال په پیل کې د هندي (( پدماوتي )) فلم په خپرېدو سره یو ځل بیا د علاء الدین خلجي نوم د خلکو په خولې کې ولوېد، چې په پایله کې دنړۍ مېشت افغانانو او د هند نیمې وچې اړوند وګړو تر منځ د خلجي سلسلې په هکله لېوالتیا بې سارې زیاته شوه. پدماوتي؛ یو هندي حماسي فلم دی. ددې فلم چار سمبالی سنجي لیلا بنسالي دی. دا فلم چې د ملک محمد جیاسي د یو حماسي شعر پر بنسټ جوړ شوي دی. د کره کتونکو لخوا ډول ډول و ارزول شو. دا په

داسې حال کې ده چې ددې فلم صحنه سازي، سینماتوګرافي او د خلجي په جامه کې د بازي سنګ لوبېدل وستایل شول، په عین وخت کې د داستان منتقیدینو د فلم پر اجرا او اوږد والي نیوکې وکړې، په ځانګړې توګه د سلطان علاءالدین خلجي کلشه ئي تمثیل د یو خونخوار مسلمان واکمن په توګه، د حق پرجانب هندي واکمن رتن سنګ پر وړاندې، د کره کتونکو لخوا تر نیوکو لاندې ونیول شو. که څه هم دا فلم د هندوستان په ځینو ایالتونو کې د لیدولو لپاره وړاندې نشو، خو په ټولیزه توګه د اقتصادي عوایدو له مخې ښه بریالی هندي فلم ګڼل کېږي چې عواید یې ۸۱ میلونه امریکایي ډالرو یا ۵،۸۵ کروړه هندي روپیو ته رسېږي د پدماوتي فلم په لیدلو سره ډېری کسان غواړي پوه شي چې خلجیان څوک وو، په فلم کې داسې ښیي چې خلجیان له افغانستانه راغلي وو. ټول لیکونکي هم تر دې دمه په همدې اند دي چې خلجیان له افغانستانه راغلي وو. مګر داچې دقومیت په لحاظ د دوی ریښه څه وه، دڅېړنې او بحث وړ موضوع ده. ځینې کسان خلجیان ترکان بولي، خو ځینې ( سونیل ګمار، ۱۹۹۴ م ص ۳٦) له دې نظر سره موافق نه دی. دی خلجیان همدا نني خلجیان، غلجایان یا غلزایان بولي..

د اتیمولوجي ( Etymology ) یا د ریښې پېژندنې په رڼا کې ویلی شو، چې د غلجی ویی ( لغت ) د ( غر- زی ) څخه اشتقاق شوي دي. ، چې د ( غرونو بچې) مانا ورکوي. غلجیان؛ چې د غلزائي، غلزی، وغرزی په نومونو مشهور دي، د پښتون ټبر یو لویه برخه جوړوي. په ټولیزه توګه نن په افغانستان،د ډیورند کرښې هاخوا، خیبرپښتونخوا او ټوله نړۍ کې د غلجایي ټبر شمېر تر ۳۵ میلیونه کسانو زیات اټکل شوي دي. د غلجایي ټبر وګړي د ډیورند کرښې هاخوا، خیبر پښتونخوا او د افغانستان په ختیځو ولایتونو( لغمان، ننګرهار، کنړ او نورستان ) او سوېلي ولایتونو( لوګر، وردګ، پکتیا، خوست او پکتیکا ) کې ژوند کوي. د افغانستان اکثریت کوچیان، غلجایي ټبر پورې اړوند دي. د غلجایي ټبر مشهورې ښاخې عباردت دي له ؛ منګل، ځاځي، تره کي،شینواري، وزیر، خوګیاني، هوتک، مسعود او داسې نور... دوی په بېلابېلو دورو کې د افغانستان پرخاوره واکمني کړې، له زرم زېږدیز کال څخه تر ۱۷۷۴ زېږدیز کال پورې د قدرت واګې د غلجیانو په لاس کې وې، له دې وروسته د قدرت واګې درانیاتو ته ور په برخه کې شوې. غلجیان د پښتنو تر ټولو بانفوسه ټبر وو. غلجیانو د ۱۷۰۹زېږدیز کال څخه تر ۱۷۳۸ زېږیز کال پورې د هوتکو امپراتورۍ جوړه کړه. دوی لومړی په کندهار، ورپسې په اصفهان او فارس او همدارنګه بېرته په کندهار کې واکمني وکړه. ازاد خان غلزایي وروسته له نادر افشار څخه د یو څو مودې لپاره د ایران پر اذربایجان واکمني وکړه.

اریانای، یونان – باختر، د اسلام د پراخه کېدو د وخت خراسان او د اوسنی افغانستان خاورې د هند نیمې وچې په شمال لوېدیځ کې واقع شوي دي، په دې لیکنه کې د اسانتیا په موخه ورته افغانستان او هندوستان ویل کېږي. نظر نورو ګاونډیانو ته د جغرافیې به لحاظ؛ دېېړیو په بهیر کې د افغانستان او هندوستان ترمنځ د خلکو، فرهنګونو او واکمنانو پراخه راکړه ورکړه یاداښت شوي دي. چې ټولو ته ښکاره او معلومه ده. مګر ډېری خلک تعجب کوي چې ترکان څه ډول هندوستان ته ولاړل او حتا هلته واکمنان هم شول! المعتظم ( ۲۱۸-۲۷ لمریز ۸۳۳-۴۲ ز ) لومړنی پېژندل شوی خلیفه دی، چې له ترک ټبر مري پوځیانو څخه یې په پراخه کچه پخپل مرکزي خلافت ( بغداد او وروسته په سمارا ) کې د ځانګړو ساتونکو په توګه کار واخیست، مګر دالړۍ د هغه دپلار هارون الرشید په پېر کې پیل شوې وه. ( لیوي، ساختمان اجتماعي اسلام، صفحات ۴۱٦۱۹ ). ترکان د یو ښه او اتل ټبر په توګه وپېژندل شول، د دوی پخواني شالید ته په کتو سره

چې له ربړو ډک او سخت ژوند یې درلود،مګر د خپلو مشرانو ولي نعمت ته یې پوره ژمنتیا درلوده، دا په داسې حال کې ده چې ډېری سربازان ددې کار له توانه نشي وتلی. نو په دې اساس د را وروسته پېړیو په بهیر یې داسې چټک غشي وشتونکي او او سپاره جنګیالي درلودل، چې د وخت هغه واکمنو ته چې په دغه سیمه کې یې ځواکمن ځواک درلوده، د ملاحظې او پاملرنې وړ و. په ځانګړې توګه د ماورالنهر سامانیانو او خراسانیانو د څلورمې پېړۍ په پیل ( لسمه زېږیزه پېړۍ ) کې د ترک تېر غلام ځواکونو څخه په منځنۍ اسیاکې ګټه واخیسته او د پوځ ټول لوړ پوړي افسران یې ترکان ؤ، لکه څنګه چې د عباسیانو په پېر کې یې خپله د خلیفه په ټاکلو کې لوی لاس درلود، همدارنګه وروسته یې د لویو سلطنتونو په جوړېدو کې هم اړین رول ولوبو.

د غزنویانو په دور کې د افغانستان او د ایران په ختیځو سیمو کې د ترک تبره پوځیانو کارول د یو جنګي او مسلکي ځواک په توګه د کورني او باندني د ښمنانو په وړاندې یو معمول دود ؤ. د غزنویانو پوځ د خپل دور د نورو پوځیانو په څېر له بېلابېلو ټبرونو( عربو، کردانو،دیلمیانو، تاجیکانو، پښتنو او هندیانو ) څخه جوړ شوی وو، خو مرکزي هسته یې ترکي غلام سربازانو جوړوله، چې په مرکز کې یې د قصر ساتونکو شته و، چې د سرای په غلامانو باندې مشوره وو. ( سی ای بوسورث، دایرته المعارف ایرانیکا، ۲۰۱۲.(په حقیقت کې محمد بن قاسم لومړنی مسلمان یرغلګر بلل کېږي،چې پر هندوستان یې یرغل وکړ، خو د ژر مړینې له کبله په دې توانېده چې په هندوستان کې یوه امپراتوري جوړه کړي. سلطان محمود هم په دې و نه توانېده چې په هندوستان کې یوه اسلامي امپراتوري جوړه کړي، یوازې یې په دې اکتفا وکړه چې پنجاب د خپل قلمرو په سیمو کې دننه کړي. ناچاره دا ستر کار د معزالدین محمد غوري په غاړه کې ولوېد، دی په دې توانېده چې په هندوستان کې د یوې لویې اسلامي امپراتورۍ بنسټ کېږي. د محمد غوري ( ۱۱۷۵ – ۱۲۰٦ ز) لخوا نیول شوې سیمې د هندوستان په شمال کې له پنجاب څخه تر بنګاله د لومړنۍ امپراتورۍ د جوړېدو لامل شو. ( ممتا اګروال، وبایت مباحث تاریخ( محمد غوري په ۱۱۹۲ ز کال د تراورۍ په جګړه کې د پریتویرایانو په وژلو او ماتې ورکول سره د هندوستان د شمال ډېرې ارتې سیمې ونیولې، له دغې سترې بریا څخه وروسته محمد غوري خپل مرکز غزني ته را ګرځي او په هندوستان کې خپل ځایناستي( وایسرای یا قائم مقام ) خپل یو ترک ټبره باوري غلام قوماندان قطب الدین ایبک چې ده ته ډېر وفاداره کس ؤ، ټاکي. قطب الدین ایبک مخلصانه محمد غوري ته خدمت وکړ، همدارنګه نوموړي د محمد غوري مشر ورور سلطان غیاث الدین غوري ته هم چې په هرات کې یې واکمني درلوده ډېر وفاداره ؤ.

محمد غوري په ۱۲۰٦ ز کال د مارچ په میاشت کې د سند سیند ترڅنګ د خوکرانو ( اسمعلیانو ) لخوا ووژل شو. محمد غوري د خپل ورور له مړینې وروسته د هغه ځایناستی شو، او یوه لویه امپراتوري چې ټول افغانستان او دهند شمالي سیمې یې را نغاړلې وې،رامنځته کړ.

دا چې محمد غوري کوم زوی نه درلود، چې له مړینې وروسته یې ځایناستی شي، نو دده وفاداره قوماندان قطب الدین ایبک چې لاهور کې ؤ، که څه هم نوموړي د سلطنت اعلان ونه کړ، خو ډېر ژر یې د محمد غوري د نیول شویو سیمو کنټرول په خپل لاس کې ونیوه. نو ځکه ځینې کسان نوموړی د (( ډهلي سلطنت )) او د (( غلامانو دسلطنت دسلسلې

